مکمل شده

مَنْ يُرِدِ اللهُ بِهِ خَيْراً يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ. [الحديث]

د پلچرخي په صليبي زندان کې د اهل السنت والجماعت
او د لامذهبو (وکتوري اهل حديثو، مماتيان، بريلويان مودوديان) دعقايدو او د مسائلو په تشريح
کې ليکل شوی کتاب



# إحقاق الحق

## في الدفع عن المذهب الحق


مؤلف

الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الافغاني

كاتب: مولوي هدايت الله (بدر)


دويم ټوک


اهل السنة والجماعة العالمي

د کتاب ځانګړنې

د کتاب نوم: احقاق الحق في الدفع عن المذهب الحق

ليکوال: الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقانى الننجرهارى

زيار او تصحيح: الشيخ الشهيد مولاناعبد السلام الحقانى الننجرهارى

اول چـــاپ: ۲۰۱٤م کال

دويم چاپ: ۲۰۱٥م کال

لسم چاپ: ۲۰۲۰م کال

تعــــــداد: ۱۲۰۰ ټوکه

کمپوز او ښايست: مولوي هدايت الله همت بدر، حافظ حمزة مجاهد



د ترلاسه کيــدو ځايونه:

محله ځنګي پشت قصه خواني نديم مارکيټ

اهل السنة والجماعة العالمي ادار

مسئول اداره: م بدر

داريکو شمېرې: ۰۳٤۷۰۰٥۰۹۰٤-۰۳٤۸٤۳۱۹٥٤۱

د

## اهل السنة والجماعة العالمي

**اداري لخوا د حضرت شيخ القران والحديث حضرت العلامه**
**ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الافغاني چاپ شوي كتابونه:**

١- احقاق الحق فى الدفع عن مذهب الحق (٥) جلد
٢- احسن التوضيح شرح مشكوة المصابيح (١) جلد
٣- شرح عقد اللألى على حاشية الخيالي
٤- احسن الفرائد شرح شرح العقائد النسفي
٥- د رسول الله صلى الله عليه وسلم لمونځ د حنفي فقهې د تدوين مطابق
٦- احكام الغنيمة
٧- قواعد المناظره
٨- القول المفيد فى اثبات التقليد.

ان شاء الله تعالى چې اهل السنة والجماعة العالمي اداره به د حضرت شيخ صاحب حفظه الله ټول تصنيفات او شروحات چاپ ته وړاندې كوي.

مسؤل: مولوي هدايت الله بدر
٠٣٤٨٤٣١٩٥٤١

**دليکوال لنډه پېژندنه:**

**نوم او نسب:** الشيخ محمد رحيم الله بن العالم سعد الله بن محمد اجان بن الشيخ محمد بن العارف بالله وبأمر الله الشيخ عبد المجيد آخند زاده بن العارف بالله وبامر الله الشيخ عبد الله آخند زاده خليفه العارف بالله مولانا عبد الغفور سيد وشريف سوات.

**دولادت نېټه:** ۱۳۵۷ لمريز د ميزان ۱۵ (۱۹۷۸) ميلادي، (۱۳۹۹) قمري کال د جمعې ورځ.

**قوم:** خروټی

**مقام ولادت:** افغانستان، د ننگرهار ولايت د آګام ولسوالی پاس صبر.

**ابتدايي تعليم:** د روسانو له تجاوز څخه د هجرت پر مهال:

۱ - مدرسة الهجرت والجهاد - تر ۱۱ صنف.

۲- دارالعلوم اسلاميه رستم مردان.

۳ - دارالعلوم منهاج العلوم نرياب هنگو.

۴ - فيض العلوم لوګر محمد آغه.

۵ - دارالعلوم هاشميه باړه خيبر ايجنسي.

۶ - دارالعلوم فاروقيه لمولانا سيد قريش رحمه الله يار حسين صوابی.

۷ - دارالعلوم اسلاميه دير کومبړ لصوفي محمد.

**موقوف عليه:** جامعه نعمانيه چارسده اتمانزي عند الشيخ مولانا محمد ادريس حفظه الله

**تفسيرالقرآن:** جامعه مظهر العلوم داګی عند الشيخ مولانا حمد الله جان الداجوي حفظه الله.

**فراغت:** ديوبند ثاني الجامعة الحقانيه اکوړه خټک نوښهر.

**سال فراغت:** ۱۹۹۸ ميلادي

**تدريس:** ټول فنون تر دورة الحديث پورې په لاندې مدرسو کې:

الجامعة الرازيه ناصرباغ پشاور، الجامعة الصديقيه، درونټه ننګرهار د اسلامي امارت جهادي مدرسه. الجامعة الاسلاميه جلال آباد، الجامعة الاسلاميه تالاب سفيد سنګ، الجامعة الهاشميه باړه خيبر ايجنسي. د پلچرخي په زندان د رهيم بلاک کې په شخصي مدرسه کې د موقوف عليه، ترمذی او تفسير درس. ، الجامعة المحمديه ماشوخېل پشاور. الجامعة الاسلاميه هري پور مهاجر کېمپ، د دوهم

ځل لپاره دپلچرخي په زندان کې شخصي درس. شمس المدارس سربند او فی الحال په جامعه زبيريه پشاور کې دحديثو استاذ.

## جهادي خدمات

**لساني جهاد:** دصليبيت ،رافضيت،مودوديت، مماتيت،بريلويت ،داعشيت اولامذهبيت مکمل ترديد او دمناظرو دکرسونو سره سره عملي مناظرې.

**بدني جهاد:** ديوې دلګۍ سرپرستي، دننګرهار ولايت دنظامي کميسيون مسؤليت، داسلامي امارت مرکزي نظامي کميسيون کې خدمت، دمرکزي نظامي کميسيون دملکي تلفاتو په اداره کې خدمت، په خصوصي محاکمو کې خدمت، دمجاهدينو داصلاح او نظرياتي تربيت لپاره مختلفو ولاياتو ته سفرونه.

**تصانيف:** عقدالفرائد شرح خيالي، احسن الفرائد دشرح العقايد شرح. الروض المکلل شرح المطول، فريدة الغواص شرح سلم العلوم، احقاق الحق فی الدفع عن المذهب الحق څلور جلده.

**بيعت:** العارف بالله وبأمرالله مولانا عبدالسلام رحمه الله (پيرسباق) وابنه العارف بالله وبامرالله قاري بشيراحمد حفظه الله.

بسم الله الرحمن الرحيم

# امين پټ ويل

الحمدلله رب العلمين والصلوة والسلام علي قائدالمجاهدين وعلي آله واصحابه اجمعين

امابعد!

مسلمانانوورڼو! دايوتاريخي حقيقت دی چې افغانستان، پاکستان، هندوستان، تاجکستان اواکثرواسلامي ممالکو ته اسلام راوړونکي مجاهدين اهل سنت والجماعت احناف وو، په ميلونونو کافرانو ددوی په دعوت اسلام قبول کړو

احنافو مجاهدينو دې ملکونو ته قران او سُنّت اوپه قران، اوپه سُنّت په اجماع اوپه قياس باندې مبني فقه حنفي دځان سره راوړه، بی شميره مدارس يې جوړکړل، چې قران او سُنّت اوپه دوی باندې مبني فقه په کې لوستل کيدله، په لکونه مساجديې جوړکړل چې دحنفي مسلک موافق لمونځونه په کې کيدل.

په دې ملکونو کې يې اسلامي حکومتونه جوړکړل، اوپه کتاب اوپه سنت په اجماع اوپه قياس باندې مبني فقه حنفي يې ورته اساسي قانون کړو.

## لکه څرنگه چې دغيرمقلدينو سرگروه نواب صديق خان ليکي:

(خلاصه دا چې دهندوستان دمسلمانانو دا حال دی چې دکوم وخت نه دلته اسلام راغلې دی، چونکه اکثرخلک دبادشاهانو طريقه او مذهب خوښوي دهمغه وخت څخه ترننه پورې دا خلک په حنفي مذهب دي اودهمدې مذهب عالمان، فاضلان، مفتيان، قاضيان، اوحاکمان دي.

تردی چې ددې مذهب يوه غټه ډله علماء راټول شول اوفتاوی هنديه يعنې فتاوی عالمگيري يې وليکله چې پدوی کې دشاولی الله رحمه الله والدبزرگوارشاه عبدالرحيم رحمه الله هم موجود وو.[ترجمان وهابيه ازنواب صديق خان، ص۱۰].

خلاصه دا چې په هندوستان باندې دانگريزي دوری څخه مخکې په دې هيوادونو کې ټول سُني مسلمانان حنفيان وو.

بالکل دا ختلاف بوي نه وولدې وجهې دا خطروو، چې که داخلک همداسې متحدوي نویواه ورځ به برطانوي حکومت درېورېاو د خاوروسره یوځای کړي.

نوددې اتحاد دختمولولپاره یې دمذهبي ازادۍ اشتهارونه چاپ کړل چابه چې ددې اشتهارله وجهې حنفي مذهب پریښودلوهغوئ به دبرطانوي حکومت په فرمان منونکوکې شمیرل کېدل، لکه څرنګه چې نواب صدیق حسن خان لیکي : یعني بعضې خلکودحکومت په وینا حنفي مذهب پرې نه ښودلو هغوی دانګریزانودشمنان دي.

مونږدانګریزي حکومت په خدمت کې دومره قرباني ورکړه چې حنفي مذهب موپریښودلو، لامذهبه شو اودبرطانوي حکومت د دروازې فقیران شوو.

مونږبه څرنګه ستاسومخالفت وکړودملکې وکټوري عالیې معظمی دام اقبالها اشتهارد ټولولپاره دمذهبي ازادۍ اعلان کړی دی. (ترجمان وهابیه، ص ۴۵)

**په بل ځای کې لیکي چې:** خلاصه دا چې که څوک دانګریزي حکومت مخالف وي هغه هغه خلک دي چې مذهبي ازادي نه خوښوي اوپه هغه یو مذهب کلک ولاړدي چې یې دپلرونواودنیکونودوخته راروان دی. (ترجمان وهابیه، ص ۵)

نوهغه مساجدچې دولس سوه کاله په عبادة، ذکر، اوتلاوت باندې ابادو و، اوس دجنګونواوجګړوپه میدانونوبدل شوي وو، دورځې لخوابه په امین بالجهر، رفع الیدین، وغیره مسایلوباندې جنګونه اوبحثونه کېدل، اودشپې لخوابه دی خلکودمقلدینوپه مساجدوکې ګندګي اومرداري اچولې، ډیرومساجدوته قلفونه ولګیدل اوډیرې مقدمې دبرطانوي حکومت پورې ورسیدلې.

اکثرمقدمې به دسب ډ ویژن اوضلع څخه تیرې شوې د اله ابادهای کورټ اودکلکتې پورې به ورسیدلې اویوه مقدمه تر(پریوی کونسل لندن) پورې ورسیده، چې اخرغیرمقلدینوګټله. (الحیات بعدالممات، ص ۶۱۴).

اوس هم داحنافوپه مساجدوکې بمونه اولوزوي، دامین بالجهرمسئله هم د هغومسایلوڅخه وه چې دډیرومسلمانانو ویني ورباندې وبهیدلې اوپه حکومتي محکموکې لکونه روپۍ ورباندې مصرف شوی، اوډیرې رسالې ورباندې ولیکل شوې.

ډیره د توجه خبره داده چې د انګریزي دورې څخه پنځه دقیقې مخکې هم یوه رساله پدې ملکونو کې څوک په امین بالجهر وغیره اختلافي موضوعاتو نه شي ثابتولی، غیر مقلدین دي په هندوستان د انګریزي دورې څخه صرف پنځه دقیقې مخکې خپله یوه رساله ثابته کړي، یو داسې مسجد دی ثابت کړي چې په هغې کې په جهر امین ویلی شوی وي، یا پکې رفع الیدین شوی وي، او یا په کې قرائت خلف الامام وغیره شوې وي.

یو څوک دي د ملکې وکټورې د اشتهار څخه یوه دقیقه مخکې دې په دې ملکونو کې په دې مسائلو یوه مناظره ثابته کړي او که نه یئ شي ثابتولی نو بیا نو ظاهره ده چې د دې اختلافاتو ټوله ذمه واري په غیر مقلدینو ده، کوم چې په شعوري یا غیر شعوري او طریقه باندې انګریزانو د دې خدمت لپاره ګومارلي دي.

کله چې د دوی د افتنه تر افغانستان پورې راو غزیده، او د لته هم د احنافو په خلاف محاذونه جوړ شول، او حتی چې په محبسونو کې یې د احنافو په خلاف پروپاګند کاوه، نو په محبس کې مې دیو څو رسالو د لیکلو اراده وکړه، خو چونکه زه په صلیبي زندان کې یم اسباب راسره نشته، له دې وجهې یې په اختصار سره لیکم.

## څلور مذاهب

**(۱) احناف:** د دوی په نیز باندې د امام او د مقتدي دواړو له پاره د (آمین) لوستل پټ بهتر دي. [ کتاب الاثار / ص۲۳ / محلی ابن حزم/ ج ۲-/ ۲۰۶ ].

**(۲) مالکیان:** د دوي په نیز د امام لپاره بالکل امین نه شته، او د مقتدیانو لپاره بهتر اخفاء ده. [محلي ج۳ / ۱۵۸ طبع بیروت. عارضة الاحوذي ج۳/ ۵۰] المدونة الکبری ج۱/ ص۷۱ طبع مصر ج۱/ص۱۶۷ طبع بیروت، شرح المهذب ج۳/ ص۳۷۳، الشرح الصغیر علی اقرب المسالک الی مذهب الامام مالک ج۱/ ص۳۲۷].

**(۳) امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ:** د امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ په قول قدیم کې د امام او د مقتدي دواړو لپاره جهر بهتر دی. لکن بیا یې د دې قول څخه رجوع وکړه، نو د امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ په قول جدید کې د

امام لپاره امين بالجهر او د مقتدي لپاره امين بالسر بهتر دی. مشهور غيرمقلد ناصرالدين الباني ليکي چې: فظهر من هذا البيان أنهما أثران لايصلح الاحتجاج بهما ولعله من اجل ذلک رجع الشافعي رَحِمَهُ اللَّهُ عن قوله القديم فقال في الجديد: ان المؤتم لايجهر بأمين ونصه فى الام ج١/ ص٦٥ فاذا فرغ الامام من قراءة أم القرآن، قال آمين. ورفع بها صوته، ليقتدي بها من خلفه، فاذا قالها، قالوها واسمعوا انفسهم، ولا أحب أن يجهروا بها، فان فعلوا فلاشئ عليهم. وبهذا نأخذ ان شاء الله تعالى وأيضاً لم يذكر أحد ممن روى جهره بالتأمين أن الصحابة رضى الله عنهم كانوا يجهرون بها وراءه، فلوكانوا يفعلون ذلک، لنقلوه الينا، لاسيما وان الجهر بها خلاف الاصل، قال تعالى : [ادعوا ربکم تضرعا وخفية انه لايحب المعتدين] فلايجوز الخروج عن هذا الاصل الا بدليل صحيح، وقد خرجنا عنه فيما يتعلق بجهر الامام، لثبوث ذلک عنه ، فيبقى ماعداه على الاصل وبالله التوفيق. اصل صفة صلوة النبي ﷺ ص٣٨٠ مکتبة المعارف للنشر والتوزيع، الرياض ١٤٢٧هق].

ألباني رَحِمَهُ اللَّهُ ليکي چې زما ددې مخکني بيان څخه ظاهره شوه، چې دا دواړه اثار د استدلال قابل نه دي، او کيدای شي چې د همدې وجې څخه حضرت امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ خپل مخکني قول څخه رجوع کړي وي، نو امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل قول جديد کې فرمايي چې مقتدي به امين بالجهر نه کوي، ددې په باره کې دده د کتاب الام ج١/ ص٦٥ تصريح داسې ده چې کله امام د سورة فاتحې د قراءت څخه فارغ شي، نو په اوچت اواز سره دې امين ووايي، ترڅو چې مقتدي يې واوري، او په امين ويلو کې دده پسې اقتداء وکړي، نو کله چې امام امين ووايي نو مقتديان دې يې هم ووايي او خپلو ځانونو ته دې ورواوروي، او زه (امام شافعي) د مقتديانو لپاره امين بالجهر نه خوښوم، ليکن که هغوی امين بالجهر ووېلو نو هم څه ګناه وربانذې نه شته. او ان شاء الله تعالى مونږ هم همدا غوره کوو. د هغو دلايلو په بنا باندې چې مخکې تيرشو له او دې وجې څخه يې هم غوره کوو چې کومو صحابه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ چې د رسول الله ﷺ د امين بالجهر روايت کړی دی، نو هغوی رضی الله عنهم ددې روايت نه دی کړی چې صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ په اقتداء کې په جهر باندې امين ويلی دی، که صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله صل په اقتداء کې په جهر باندې امين ويلی وي نو ضرور به دغو صحابه کرامو رضی الله عنهم روايت کړی وی، او خاصکر دا چې اصل امين بالسر دی له وجې ددې قول

د الله جل جلاله څخه چي (وبولئ تاسې رب خپل هروخت په زارۍ، عذر، او په پټه سره، بې شکه چې هغه (الله جل جلاله) نه خوښوي د حد څخه تجاوز کوونکي) نه ددې قانون څخه وتل ندي پکار، مګر د صحيح دليل په وجه او موږ د امام په باره کې ددې قانون څخه د صحيح دليل له وجې ووتلو ځکه چې دا جهر د رسول الله ﷺ څخه ثابت دی او مقتديانو او دمنفرد په باره کې په دې اصل باندې پاتې شو وهکذا [انوار الباري ج١٦/ ص٤٤٤].

**(۴) امام احمد** رَحِمَهُ ٱللَّهُ: دده په نيز د امام او د مقتدي دواړو لپاره امين بالجهر بهتر دی لکن دومره جهر نه لکه څومره چې د لامذهبو دی، مشهور غيرمقلد ألباني ليکي چې: قال عبدالله بن أحمد في مسائله: سألت أبي عن الجهر بآمين، فقال: يسمع من خلفه. [اصل صفة صلوة النبي ﷺ ج١/ص٢٧٧]. عبدالله بن أحمد فرمايي چې: ما د خپل څخه د آمين بالجهر په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه جواب راکړ چې صرف خپلو مقتديانو ته يې ور واروه.

## د لامذهبو، اهلحديثو غيرمقلدينو آمين د امام أحمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ

### د آمين سره يو څو فرقونه لري:

**اول فرق دادی** چې: امام أحمد رحمة الله عليه آمين بالجهر ته مباح او يا مستحب وايي، او لامذهبان ورته کله فرض، او کله واجب، او کله سنت وايي، او دعوی کوي چې ددې څخه بغير مونځ نه کيږي.

**دوهم فرق دادی** چې حنابله ذ آمين بالجهر مسئلې ته مسئله منصوصه متعارضه وايي، نو په اجتهادي مسائلو کې يې داخلوي، او لامذهبه اهلحديث ورته مسئله منصوصه، غيرمتعارضه، او غيرمحتمل التأويل وايي نو اجتهادي مسئله يې نه ګڼي.

**دريم فرق دادی** چې امام أحمد رحمة الله عليه مجتهد دی، نو اهليت د تطبيق او د ترجيح لري نو په دې متعارضو احاديثو کې تطبيق او ترجيح کوي، او لامذهبان مجتهدين نه دي، نو اهليت د تطبيق او د ترجيح نه لري لهذا دوی تطبيق او ترجيح نه شي کولای.

**څلورم فرق دادی** چې امام أحمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ مجتهد دی دواړه طرفه احاديث مني او بيا پکې تطبيق او ترجيح کوي، نو د امام أحمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّهُ آمين بالجهر په متعارضو احاديثو کې په تطبيق او په

ترجيح باندې بناء ده. او لامذهبه اهل حديث دواړه طرفه احاديث نه مني. بلکې يو اڅې د آمين بالجهر احاديث مني، او د امين بالسـر د احاديثو او د آثارو څخه بالکل انکار کوي. نو ددوی امين بالجهر په انکار د حديثو باندې بناء دی، تاسو د مثال په توګه د لامذهبه امين الله عبارت ولولئ امين الله ليکي چې: نو اجمالاً په دې خبره ځان پوه کړئ چې په هيڅ حديث شريف کې دا نه شته چې رسول الله ﷺ امين بالسر ويلی وي، او نه يې دا ويلی دی چې امين په قلاره باندې ووايي، او نه د يو صحابي څخه دا په صحيح سند باندې ثابته ده چې هغه امين په پټه باندې ويلی وي. [امين الفتاوی ج۱/ ص۲۵۴].

**پنځم دا چې** امام أحمد رَحِمَهُ اللَّهُ مجتهد دی او مجتهد ته د خطأ په صورت کې يو ثواب وي او حق ته د رسيدلو په صورت کې ورته دوه ثوابه وي. [بخاري ج۲/ ص۱۰۹۲، مسلم ج۲/ ص۷۶] نو د حنبليانو په آمين بالجهر په هرصورت کې ثواب دی لکه د نورو امامانو د مقلدينو په آمين بالسر کې چې ثواب دی. او لامذهبان پخپله مجتهدين نه دي، او نه د بل مجتهد پيروي کوي، او داسې سړی په هرصورت کې ګناهګار وي، که حق ته ورسيږي هم ګناهګار دی، او که خطا شي هم ګناهګار دی. [نووي شرح مسلم ج۲/ ص۷۶]. نو پدې منصوصي متعارضه مسئله کې لامذهبه اهلحديث په هرصورت کې ګناهګار دي.

**شپږم دا چې** امامان او د دوي مقلدين آمين بالسر وايي او که آمين بالجهر وايي نو د ثواب په نيت يې وايي، او لامذهبان يې د شرارت په نيت باندې وايي، لهذا دا دريم قسم آمين دی. دآيمه يې ثلاثه وو رحمهم الله آمين بالسر دی، د امام أحمد امين بالجهر دی، او د لامذهبو اهلحديثو امين بالشر دی.

## د احنافو او د لامذهبو مسلکونه

د لامذهبو غټه دهوکه داده چې دوی خپله دعوه په پوره وضاحت سره نه بيانوي، بلکې ددې پرځای چې ددعوې پوره وضاحت وکړي، او بيا ورباندې دلايل او شواهد پيش کړي، نو ددعوی پرسر بله دعوه کوي، وهلم جرا.

دانګريزانو د دورې څخه ترننه پورې دوی په دې مسئله په سلګونو رسالې ليکلي دي، لکن په دې کې يوه رساله هم داسې نشته چې دوي په کې اصل مسئله په پوره وضاحت سره بيان کړي وي، له دې وجهې ضروري ده، چې د بحث څخه مخکې د فريقينو مسلک په پوره وضاحت سره بيان کړو.

**داهل سنت والجماعت احنافو مسلک:**

(۱) په ټولو اذکارو او دعاګانو کې بهتر اخفاء (پټ لوستل) دي، له دې وجهې په لمانځه کې ټول ذکرونه او دعاګانې پټې لوستلی شي، چونکه امین هم دنورو دعاګانو په شان دعاده، له دې وجهې په پټه لوستل یې بهتر دي.

(۲) په بعض ذکرونو او دعاګانو کې د الله ﷻ دیاد و لوسره سره دانسانانو اطلاع هم مقصود وي، له دې وجهې هلته دضرورت له وجهې جهرا (په زوره) لوستلی شي، خو دا لوستل خلاف الأصل او ترخپل مورده پورې خاص دي لکه: اذان، اقامت، د امام لپاره د انتقال تکبیرونه وغیره.

**دلامذهبو مسلک:**

(۱) ددوی منفرد (ځانته لمونځ کونکي) په فرضو، سنتو او نفلو کې امین په پټه وائي.

(۲) که فرض لمونځ په جماعت باندې اداکوي نو صرف په شپږو رکعتونو کې امین په اوچت اواز لولې او په پاتې یوولسو رکعتونو کې یې په پټه لولي.

یعنې د سهار په دوو رکعتونو کې، او د ماښام په اولو دوو رکعتونو کې، او د ماخوستن په اولو دوو رکعتونو کې یې جهرا یعنې په زوره لولي چې ټول شپږ رکعته شول. او د ماسپښین، مازدیګر، د ماښام د یو وروستني رکعت او د ماخوستن په وروستنیو دوو رکعتونو کې یې په پټه لولي، چې ټول یوولس رکعته شول.

(۳) دامین څخه بغیر نور ټول ذکرونه او دعاګانې په ټولو لمونځونو کې په پټه لولي، لکه سبحانک اللهم او درکوع او دسجدې تسبیحات، تشهد، درود، اخري دعا وغیره.

**دلامذهبو تقیه:**

دلامذهبو ددعوې اجمالاً دغه درې حصې دي، ترننه پورې دوی د اولې او ددریمې حصې لپاره بالکل په خپلو رسالو کې ځای ندی ورکړی، او نه به یې ترقیامته په احادیثو صحیحه وو، صریحه وو، مرفوعه وو کې ثابتې کړي لکه څرنګه چې ددوی دعوه ده، چې دلایل صرف دوه دي قران او حدیث صحیح صریح مرفوع.

دوی صرف ددوهمی حصې داثبات لپاره قلمونه رااخستي دي، هغه هم د شپږو رکعتونو په باره کې، دپاتې يو لسو رکعتونو د حکم څخه ددوي کتابونه خالي دي .

# اول بـاب (داحنافو دلايل)

## اول فصل

### دامين معنى او تلفظ:

آمين بالمد بر وزن تامين فصيح دی، او آمين بر وزن ثمين هم جائز دی. امام نووی رحمه الله فرمايي چې: (وَفِي آمِينَ لُغَتَانِ: آمِين و اَمين  الْمَدُّ وَالْقَصْرُ وَالْمَدُّ أَفْصَحُ وَالْمِيمُ خَفِيفَةٌ فِيهِمَا ) [ نووی شرح مسلم/ ج۱/ ص ۱۷٤ / شرح مهذب/ ج ۳/ ص ۳۷۳ ].

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (آمِينَ وَهِيَ بِالْمَدِّ وَالتَّخْفِيفِ فِي جَمِيعِ الرِّوَايَاتِ وَعَنْ جَمِيعِ الْقُرَّاءِ ... وَمَعْنَاهَا اللَّهُمَّ اسْتَجِبْ عِنْدَ الْجُمْهُورِ). [ فتح الباری شرح صحيح البخاری/ ج ۲ / ص ۳۳/ طبع دارالسلام/ رياض ].

امين يوه دعائيه کلمه ده معنى يې داده چې ياالله زما دعاقبوله کړه، تفصيل به يې وروسته راشي ان شاء الله تعالى، ددې فصيح تلفظ داالف د مدسره اداکيږي لکه څرنګه چې په حديث کې راغلي چې (مدبهاصوته)

## دوهم فصل

دجهر معنى ( اوچت اواز ) دی . اوداخفاء معنى (پټ اواز) دی بيا دهريو لپاره درې مراتب دي: اعلى، اوسط اوادنى .

### داخفاء مراتب :

(۱) اعلى درجه اخفاء داده چې په زړه کې تکلم وي، ليکن ژبه اوشونډې په کې شريکې نه وي.

(۲) اوسطه درجه اخفاء داده چې دزړه سره ژبه هم شریکه شي چې تر خپلو غوږونو پورې اواز راورسیږي.

(۳) ادنی درجه اخفاء داده چې دزړه سره ژبه هم شریکه شي او ځنګ کې سړی یې واوري.

**دجهرمراتب :**

(۱) اعلی درجه جهرداد ی چې بنې چیغې ووهي.

(۲) اوسطه درجه جهردادی چې نه دومره او چت وي چې ترلرې لرې پورې ورسیږي اونه دومره په قلاره وي چې مقتدیان یې هم وانه وري لکه الله ﷻ چې فرمائي : (وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِکَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِکَ سَبِيْلًا) خلاصه داچې اوسطه درجه جهردادی چې ترڅلورو پنځوصفونو پورې ورسیږي.

(۳) ادنی درجه جهردادی چې تریو دووصفونوپورې ورسیږي.

## دریم فصل (آمین دعا ده)

**(۱) دلغت په لحاظ :** ځکه چې دمعانیولغویهٔ ولپاره داهل لغتوبیان دلیل جوړیدی شي، او داهل لغتوبیان دادی چې دادعائیه کلمه ده.

**(۲) دقران کریم له وجهې :** په قران کریم کې دحضرت موسی علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام په باره کې الله ﷻ فرمائي : (قَدْ أُجِيْبَتْ دَّعْوَتُکُمَا...) سورة یونس.

په تحقیق سره قبوله کړی شوه دعاستاسو دواړو . په تفسیر الدر المنثور جلد ۳ ص ۳۱۵) کې دحضرت ابو هریره رضی الله عنه ،حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه ، حضرت عکرمه رضی الله عنه حضرت ابو صالح رضی الله عنه ،حضرت ابو العالیه رضی الله عنه ، حضرت ربیع رضی الله عنه او حضرت زید بن اسلم رضی الله عنه څخه روایت دی چې موسی علیه السلام دعا کوله او هارون علیه السلام امین ویلو الله ﷻ دواړو ته دعاکونکي ویلي دي . ددې څخه صفا ظاهریږي چې امین دعاده .

**(۳) دحدیث پاک له وجهې:** دبخاری شریف په ص ۱۰۷ باندې دي چې (قال عطاء امین دعاء ) حضرت عطاء فرمائي چې امین دعاده. او امام بخاری رحمه الله د آمین حدیث د صحیح البخاری په کتاب الدعوات کې له دعاګانو سره ذکر کړی دی. وګوره : [صحیح البخاری/ ج ۲ / ص ۹۴۷].

او ابن خزيمه ﷺ روايت کړی دی : عَنْ اَنَس بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ انَّ اللهَ أَعْطَانِيْ التَّامِيْنَ وَلَمْ يُعْطَهُ أَحَدٌمِنَ النبيين قبلي الاان يكون الله قداعطاه هارون يدعوموسي وهـارون يؤمن ابن كثير، ج ۱ص ۳۱]

حضرت انس ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې بيشکه الله ﷻ راکړی دی ماته امين، او نه يې دی ورکړی هيڅ پيغمبرته زما څخه مخکې، مګر حضرت هارون عليه السلام ته يې ورکړی وو، حضرت موسی عليه السلام به دعا کوله او حضرت هارون عليه السلام به امين ويلو.

**( ٤ ) دتفاسيروله وجهې :** په تفسير جلالين ،معالم التنزيل ،مدارک ،مظهری وغيره تفاسيرو کې هم دا شته چې امين دعاده، ځکه چې حضرت موسی عليه السلام دعا کوله او حضرت هارون عليه السلام امين ويلو، الله ﷻ دواړو ته دعاکونکي ويلي دي.

ابن جرير طبری رحمه الله فرمايي چې: (لان المؤمن داعٍ وكذلک قال اهل التأويـل) [تفسير ابـن جرير / ج ٩ / ص ١٦٠]. علامه ابن حزم رحمه الله ليکي چې: (فالتأمين دعاءٌ صحيح بـلا شـكٍ فـكل تأمين دعاءٌ وليس كل دعاءٍ تأميناً ) [ محلی/ ح ٣ / ٢٦٦].

عنِ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ رحمهما الله تعالٰی عنه ، قُلْتُ لِأَبِي الْعَالِيَةِ " {قَدْ أُجِيبَتْ دَعْوَتُكُمَا} [يونس: ٨٩] ، قَالَ: إِنَّمَادَعَا مُوسٰى عليه السلام، وَأَمَّنَ هَارُونُ عليه السلام " فمِن ثمّ قال: قد اجيبت دعوتكما).

[التمهيد والاستذكار/ لابن عبدالله/ موسوعه شروح الموطأ/ ج ٤/ ص ٣٧٢ / حاكم فی معرفـة علوم الحديث / ج ١/ ص ٩١ ].

نو دلمر په شان واضحه شوه چې امين دعاده.

## ځلورم فصل

## اصل په دعاکې اخفاء (پټ لوستل) دي

**(۱) اول دليل قران دی:**

**الله ﷻ فرمايلي دي** :(اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً اِنَّه لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ) سورة اعراف ( ٥٥)

بولي تاسې رب خپل هروخت په زارۍ، عذر، اوپه پټه سره . بې شکه چې هغه نه خوښوي د حد څخه تجاوز کونکي، حضرت زيدبن اسلم ﷺ فرمائي چې : (ان الجهر بالدعاء الاعتداء) [ در منثور/ ج ۳/ ص ٤٣٠ ]
د حد څخه د تجاوز معنی داده چې په اوچت اواز دعا وکړئ، يعنې په پټه دعا کونکي د الله ﷻ محبوبين دي او (بلا ضرورته ) په زوره دعا کونکي د الله ﷻ محبوبين ندي .

غير مقلد قاضي شوکاني ليکي چې: (او يرفع صوته بالدعاء صارخاً به) [فتح القدير /ج ۲ /ص۲۱۳]. څوک چې (بلا ضرورته) په اوچت آواز سره دعا کوي هغه معتدي يعنې له حد څخه تجاوز کوونکی دی.

**(۲) دويم دليل هم دقران ايت دی :**

الله ﷻ فرمائي :(وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ) [سورة اعراف ] او يادوه ته (ای بنده ) رب خپل په زړه کې.

**(۳) دريم دليل هم دقران ايت دی:**

الله ﷻ د سورة مريم په اول کې په ذکريا ﷺ باندې د خپلو رحمتو نو د نازلولو ذکر کړی دی، فرمايلي يې دي چې دا رحمتونه پرې الله ﷻ ځکه نازل کړل چې ده خپل رب ته يه پټه دعا وکړه .

(ذِكْرُ رَحْمَةِ رَبِّكَ عَبْدَه زَكَرِيَّا اِذْ نَادٰى رَبَّه نِدَاۤءً خَفِيًّا) [سورة مريم: ] ذکر د رحمت د رب ستا دی پر بنده خپل زکريا کله چې غږ( سوال ) يې وکړ خپل رب ته غږ( سوال ) ورو.

**(٤) څلورم دليل، اول حديث :**

يو صحرايي سړی رسول الله ﷺ ته راغلو عرض يې وکړو چې يا رسول الله ﷺ زمونږ خدای زمونږ څخه ليرې دی، چې په اوچت اواز دعا گانې وکړو، او که نږدې دي، چې په پټه دعا گانې وکړو، الله ﷻ ده په جواب کې دا ايت نازل کړو چې (وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِيْ عَنِّيْ فَاِنِّيْ قَرِيْبٌ):

او کله چې پوښتنه وکړي له تا څخه بندگان زما ( له لرې والي او نژدې والي ) زما نو بې شکه زه نژدې يم . معلومه شوه چې الله ﷻ نږدې دی، نو په پټه دعا پکار ده .

## (۵) پنځم دليل دوهم حديث:

حضرت ابو موسى اشعرى ﷛ فرمائي چې کله رسول الله ﷺ د خيبر د غزاء لپاره ووتلو نو په يو ميدان کې صحابه ﷛ وو په اوچت اواز سره د الله اکبر الله اکبر اوازونه شروع کړه.
رسول الله ﷺ وفرمايل چې په خپلو ځانونو نرمي وکړئ، بې شکه چې تاسو کوڼ او غايب ته اوازونه نه کوئ بلکې داسې ذات ته اوازونه کوئ چې اوريدونکې اونږدې دى او ستاسو سره دى. (بخارى، ج ۲ص ۳٤٦/ بخارى / رقم ۲۹۹۲ / ٤٢٠٢ / ٦٣٨٤ / ٦٦١٠ / ٧٣٨٦/ مسلم /ج ۲/ ص ٣٤٦/ رقم ٦٨٠٢/ ٦٨٠٤/ ٦٨٠٧/ ٦٨٠٨/ ترمذى/ رقم / ٣٤٦١/ ابوداود/ رقم ١٥٢٦/ ابن ماجه/ رقم ٣٨٢٤ / تفسير ابن کثيره سورة اعراف د۲٤ رکوع تفسير.

## (٦) شپږم دليل، دريم حديث :

حضرت سعد بن ابى وقاص ﷛ فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمائي چې: (خير الذکر الخفي وخير الرزق مايکفي) يعنې بهترين ذکر هغه دى چې په پټه وي او بهترين رزق هغه دى چې د ضرورت لپاره کفايت کوي. [مسند احمد، ج ۱ص ۱۷۲-/ رقم / ١٤٧٧/ ١٤٧٨/ ١٥٥٩/ ١٥٦٠ / ١٦٢٣ ] مواردالظمان ، تلخيص ،صحيح ابن حبان ،بسند صحيح ،الجامع الصغير، ج ۲ص ۸ ) ( السراج المنير، ج ۲ص ۲٦۲ )

## (۷) اوم دليل، څلورم حديث:

د حضرت عايشى رضى الله عنها بيان دى چې رسول الله ﷺ فرمائي چې د هغې لمونځ اويا درجې فضيلت دى چې د کوم لمونځ لپاره مسواک استعمال شوى وي په نسبت سره هغې لمونځ ته چې مسواک ورته نه وي استعمال شوى. او د پټ ذکر هم اويا درجې فضيلت دى.
چې کله د قيامت ورځ شي او الله ﷻ خپل مخلوق د حساب لپاره راجمع کړي، او د اعمالو راجمع کونکي او ليکونکي ملايکې راشي ، نو الله ﷻ به دى ملايکو ته ووائي چې ايا زما د دې بنده کوم يو نيک عمل پاتې دى؟ ملايکى به ووائي چې نه يا الله ﷻ مونږ هيڅ شى ندى پريښى مگر ليکلى مو دي، نو الله ﷻ به دى بنده ته ووائي چې زما سره ستا يو نيک عمل شته چې تاته ندى معلوم، زه نن د هغې بدله تاته

درکوم اوهغه پټ ذکردی. اخرجه ابويعلى [ رقم / ٤٧١٩ ] قال الهيثمى فيـه معاويـة بـن يـحى الصـدفى وهوضعيف [ مجمع الزوايد، ج ١٠ ص ٨١ / رقم ١٦٧٩٦ ]

**(٨) اتم دليل، پنځم حديث :**

قال الحسن بن علي بين دعوة السروالعلانية سبعون ضعفا ولقـد كان المسـلمون يجتهـدون في الدعاء ومايسمع لهم صوت ان كان همسابينهم و بين ربهـم. (معـالم التنزيـل / در منثـور/ ج ٣/ ص ٤٣١/ طبع مكتبه حقانيه/ پشاور]

حضرت امام حسن بن علی ﷺ فرمائي چې دپټې اودزوره دعاپه مابين کې اويادرجې فرق دی، اوخامخاپه تحقيق سره مسلمانانوبه په دعاګانو کې کوشش کولو،او ددوي اوازبه نه شوا وريدل کيدلې بس ددوي دعاګانې به ددوي اودرب په مينځ کې پټې کيدلې.

**(٩) نهم دليل ، شپږم حديث :**

د حضرت انس رضى الله تعالى عنه مرفوع حديث دی چې: (دعوة فى السِرّ تعدل سـبعين دعـوة فى العلانية ) [ جامع الصـغير/ للسـيوطى/ رقـم : ٤٢٠٦ ]. يعنې په پټه باندې دعـا کول د اويـاوو جهري دعاګانو سره برابره ده.

**( ١٠) لسم دليل، اووم حديث :**

د حضرت انس رضى الله تعالى عنه مرفوع روايت دی چې: (خير الدعاء الخفى) [اعلاء السنن / ج ٦ / ص ١١١ / رقم: ١٧٤٣]

**خلاصه ددليل:**

ددريم فصل څخه ثابته شوه چې. امين دعاده، اودڅلورم فصل څخه ثابته شوه چې. اصل په دعـاکې اخفاءده، نواصل په امين کې اخفاء يعنې پټ لوستل دي، تزيين دقيـاس داسې دی چې. الامين دعـاء (صغري ) امين دعاده. والاصل في الدعاء الاخفاء ( کبري ) اصل په دعـاء کې اخفـاءده. ( فالاصل في

الامین الاخفاء (نتیجه) نو اصل په امین کې اخفاء شوه. دلایل دصغری په دریم فصل کې بیان شو، او دلایل دکبری په څلورم فصل کې بیان شو.

اوس که غیر مقلدین دې دلیل ته جواب ورکوي نو یابه اوله مقدمه یعنې صغری پریږدي، او په قران او دحدیث به داثابتوي چې امین دعا نده، اویابه دوهمه مقدمه یعنې کبری پریږدي او په قران او په حدیث به داثابتوي چې اصل په دعاکې اخفاء نده.

او که اوله مقدمه هم مني، او دوهمه مقدمه هم مني، نو بیا خو دنتیجې څخه انکار داسې دی، لکه یو څوک چې ددې څخه انکار کوي چې دوه جمعه یې دوه څلور کیږي، نو غیر مقلدین دهغه کم عقل ماشوم په شان دي چې یوه کلمه په ټکو صحیح ووائي او تلفظ ورباندې غلط وکړي مثلاً په ټکو (مکه) داسې ووائي (میم زبرمه، کاف زبرکه) او تلفظ وکړي (قادیان).

## دهمدې دلیل له وجهې ډیروشوافعوخپله اسلحه په زمکه ایښي ده .

دشوافعو مشهور منطقي او مناظر امام فخرالدین رازي رحمه الله هم داحنافو ددې دلیل په مقابل کې خپله اسلحه ایښي ده، او فرمایلي یې دي چې ددې دلیل څخه که دامین دپټ ویلو وجوب ثابت نه شي نو استحباب خو ضرور ثابتیږي او زه هم ددې قائل یم. (تفسیر کبیر، ج ۱۴ص ۱۳۱)

سورة اعراف /آیت نمبر ۵۵/ عبارت یې داسې دی چې: (قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْـهِ: إِخْفَـآءُ التَّأْمِينِ أَفْضَلُ. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ، إِعْلَانُهُ أَفْضَلُ، وَاحْتَجَّ أَبُو حَنِيفَةَ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْـهِ عَلَى صِـحَّةِ قَوْلِهِ، قَالَ: فِي قَوْلِهِ: «آمِينَ» وَجْهَانِ: أَحَدُهُمَا: أَنَّهُ دُعَآءٌ. وَالثَّانِي: أَنَّهُ مِـنْ أَسـمَآء اللهِ، فَـإِنْ كَانَ دُعَـآءً وَجَبَ إِخْفَآؤُهُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى: ادْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًاوَخُفْيَةً وَإِنْ كَانَ اسْـمًا مِـنْ أَسْـمَآءِ اللَّهِ تَعَـالَى وَجَـبَ إِخْفَآؤُهُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعاً وَخِيفَةً. فَإِنْ لَمْ يَثْبُتِ الْوُجُوبُ فَلَا أَقَلَّ مِنَ النَّدْبِيَّـةِ وَنَحْنُ بِهَذَا الْقَوْلِ نَقُولُ [ تفسیر آیت نمبر / ۵۵ / سورة اعراف].

همدارنګه علامه جلال الدین السیوطي رحمه الله ددې آیت په تفسیر کې فرمایی چې: ادعوا ربکم تضرعاً (حال تذلل) وخیفة (سراً) انه لایحب المعتدین (بالتشدق ورفع الصوت) جلالین ص: ۱۳۴].

علامه قسطلاني رحمه الله دصحيح البخاري رحمه الله په شرح کې ليکي چې: وقال الحنفية والكوفيون، ومالك في رواية عنه بالاسرار، لانه دعا وسبيله الاخفاء، لقوله تعالى: ادعوا ربكم تضرعاً وخفية [قسطلاني شرح صحيح البخاري].

يعنې ددې آيت له وجې احناف او مالکيان په پټه آمين وايي، بعضې حضرات آمين په ذکر کې شماري، نو بيا يې هم پټ لوستل بهتر دي: ١- حافظ ابن کثير رح فرمايي چې لانه ذكر من الاذكار فلا يجهر به كساير أذكار الصلوة. [ج/١ ص٣٤].

يعنې آمين د نورو ذکرونو په شان يو ذکر دی نو د مانځه د نورو ذکرونو په شان به دا هم په جهر نه لوستل کيږي. ٢- امام ابو اسحاق شيرازي رحمه الله فرمايي چې: لانه ذكر مسنون في الصلوة فلا يجهر به المأموم كالتكبيرات كساير أذكار الصلوة. [مهذب ج/٣ ص٣٦٨ مع شرح مهذب]. **آمين په مانځه کې يو مسنون ذکر دی نو مقتدي به يې په جهر نه لولي لکه د مانځه تکبيرات او د مانځه نور ذکرونه.**

**اوله فايده:** دقران پاک دهمدی اشاراتو او رواياتو له وجهې دلمانځه دټولو اذکارو او دعاګانو پټ لوستل ثابتيږي لکه دثناء ،دتعوذ ،دتسميي ، دتکبيراتو دمنفرداو دمقتدی ،دتسبيحاتو درکوع اودسجدې ،د تشهد درود شريف ،اودنورو دعاګانو .

**دوهمه فايده:** اصل دادی چې دعااوذکرپټ ولوستل شي، ځکه چې الله ﷻ په زړونو عالم دی، مګرکله چې دالله ﷻ ديادولوسره سره د انسانانو اطلاع هم مقصود وي، اوانسانان پټ اوازنه أوري، نودضرورت له وجهې هلته په زوره لوستلي شي لکه:

**(١) اذان** : چې هلته انساناتوته وراورول هم مقصوددي له دې وجهې په زوره کولی شي .

**(٢) اقامت** : هلته هم دمقتديانو خبرول مقصوددي له دې وجهې په زوره لوستلی شي .

**(٣) امام به تکبيرات دانتقال هم په زوره لولي** : ځکه چې دمقتديانو خبرول پکاردي، ليکن مقتدی اوځانته لمونځ کونکي ته دا ضرورت نه شته لدی وجهې به په پټه لوستلې شي.

**د غیر مقلدینو وسوسی :**

مونږ په قرآن ،حدیث ،او په لغت باندي ثابته کړه چې امین دعاده ،د قرآن او د حدیث په خلاف غیرمقلدین د خلکو په زړونو کې یوه وسوسه اچوي چې امین تابع د دعادی، که دعا په جهرویلی شي نو امین به هم په جهرویلی شي او که دعا په پټه وویلی شي نو امین به هم پټ ویلی شي ،الحق الصریح ج ۴ص ۲٦۰ دوهمه چهپائی .

**الاخساء :** دامضمون (چې امین تابع د دعادی ) نه د قرآن ایت دی، او نه د رسول الله ﷺ حدیث دی، بلکې د قرآن او د حدیث په مقابل کې دلامذهبو قیاس دی او بیا یې دا قیاس غلط هم دی ځکه چې دوی وائي چې ځرنګه الحمدلله وي همغسې به امین وي ، نو د غیرمقلدینو مقتدیان خو الحمدلله په پټه لولي نو یو اځې امین ولی په زوره وائي ؟

بله وسوسه دا اچوي چې احناف ولې بعضې دعاګانې په اوچت اواز کوي؟ مونږ وایو چې په کومه دعاکې مقتدیانو ته وراورول او د مقتدیانو اطلاع مقصود نه وي په هغې کې اصل اخفاء ده.

د مسلمانانو لپاره د ټولو څخه مخکې قران پاک دی چې کله د قران څخه د امین پټ ویل ثابت شول، نو د احادیثو راوړلو ته ضرورت نه شته لیکن د زیات اطمینان او د قران پاک د زیات تائید لپاره یو څو مبارک احادیث هم رانقلوو

**اول حدیث:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا قَالَ الإِمَامُ: {غَيْرِ المَغضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] فَقُولُوا: آمِينَ، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ المَلاَئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ". (صحيح بخارى ،ج ١ص ١٠٨ / رقم: ٧٨٢/ ٤٤٧٥ / نسائى /ج ١/ ص ٩٤ / رقم: ٩٢٩ ) ( ابوداود/ج ١/ ص ٩٤/ رقم: ٩٣٥] .

د حضرت ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې کله امام (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ) ووائي نو تاسو امین ووائي (پدغه وقت کې ملایکې هم امین وائي) نو د چا امین چې د ملایکو د امین سره موافق شو دده تیر ګناهونه به معاف شي .

**دملایکو امین :** د فکر کولو څخه وروسته د ملایکو په امین کې درې شیان را معلومیږي .

**اول** دملايكوامين په مونږکې هيچاهيڅکله هم ندى اوريدلې، نوظاهره ده چې هغوى په پټه امين وائي.

**دوهم** ملايكى بغيرد لوستلو د الحمد لله څخه امين وائي.

**دريم** ددوي دامين لپاره خاص وقت دى، يعنې چې کله امام ولاالضالين ووائي نو دوي امين وائي.

## اهل سنت والجماعت احنافو ته زيرې

مونږ اهل سنت و الجماعت احناف دالله ﷻ په فضل او کرم سره ددې زيري پوره پوره مستحق يو، چې دوقت او وصف په هر اعتبار سره زمونږه امين د ملايكو دامين سره موافق دى.

(۱) لکه څرنگه چې ملايکې په پټه امين وائي مونږه يې هم په پټه وايو.

(۲) ملايکې بغيرد لوستلو د الحمد لله څخه امين وائي، مونږ احناف مقتديان هم بغيرد لوستلو د الحمد لله څخه امين وايو.

(۳) ملايکې په هغه وخت کې امين وائي چې کله امام (ولا الضالين) ووائي، يعنى دفاتحې دختميد لو څخه وروسته امين وائي، مونږ هم په هغه وخت کې امين وايو چې کله دامام فاتحه ختمه شي.

**دلامذهبو نامرادي:**

لا مذهبان لکه څرنگه چې دمخکنيو قراني ايتونو څخه باغي دي، همدارنگې دامين په ويلو کې هم دملايکو سره مخالف دي، دڅو وجهو څخه.

**اول :** دوى دملايکو دطريقې په خلاف په زوره امين وائي.

**دوهم :** ددوى دامين وقت هم دملايکو دامين دوقت سره مخالف دى.

ځکه چې ددوى کوم مقتديان چې وروسته راشي او په جماعت کې شريک شي ظاهره ده، چې هغه غير مقلد پخپله هم فاتحه لولي دده فاتحه لانوي ختمه شوى، چې امام ولاالضالين ووائي، نو اوس که دامقتدى امين وايي، نو دخپلې فاتحې په مينځ کې يې امين وويلو، او دقران کريم تحريف راغلو. ځکه چې په قران کريم کې امين د فاتحې په اخر کې دى اوده په مينځ کې وويلو نود. (يحرفون الكلم عن مواضعه) مصداق شو او که دامام سره يې نه وايې بلکې دخپلې فاتحې دختميد لو څخه وروسته امين وائي نو دملايکو دامين سره په وقت کې مخالفت راغلو همدارنگه (امين) طابع يعنې مُهر دى او مُهر وروسته وي.

**دريم :** ملايکی دامام سره دالحمد لله دلوستلو څخه بغيرامين وائي او د امام په الحمد لله اکتفاء کوي اوغير مقلدين دامام سره الحمد لله لولي ،اوبيا امين وائي .

دوهمه طريقه د استدلال داده چې : که امام آمين بالجهر ويلې، نو مقتديانو به د امام آمين اورېدلی ،نو بيا خو داسې په کار و چې : ( اذا قال الامام آمين فقولـوا آمـين ) لکن دلته داسې نه ده، ځکه چې مقتديان دامام امين نه اوري، بلکې (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۝) اوري، نو ځکه يې وفرمايل چې : ( اذا قال الامام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ).

## دوهم حديث

**دوهم حديث:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا قَالَ الْقَارِئُ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] فَقَالَ: مَنْ خَلْفَهُ: آمِينَ، فَوَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ أَهْلِ السَّمَاءِ، غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ". (صحيح مسلم ،ج ١ص ١٧٦ )حديث نمبر٩١٩)

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله چې قاری ( امام ) (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ) ووائي بيا مقتديان امين ووائي، پس کله چې د دوی امين داسمان والاخلکو (ملايکو) دامين سره موافق شي نو دده مخکني ټول ګناهونه به معاف شي او ظاهره ده چې :

(١) د ملايکو امين چاندی اوريدلې نو په پټه يې وائي .

(٢) او د فاتحې په اخرکې يې وائي .

(٣) او بغير دلوستلو دالحمد لله څخه يې وائي .

**دريم حديث:** ابن عيينة رحمه الله عَنِ الزُّهْرِيِّ رحمه الله، عن سعيد رحمه الله عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه رفعه قال: «إِذَا أَمَّنَ الْقَارِي فَأَمِّنُوا، فَمَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَآئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ» [مصـنف ابن أبي شيبة ج٥/ ص٣٠٩ رقم٨٠٤١].

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي چې: کله امام آمين ووايي نو تاسو هم آمين ووايي نو د چا آمين چې دملايکو د آمين سره موافق شو دده تيرشوي ګناهونه به معاف شي. [طريقه د استدلال يې مخکې تيره شوه].

## څلورم حديث

حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَابْنُ خَشْرَمٍ قَالَا: أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا يَقُولُ: " لَا تُبَادِرُوا الْإِمَامَ إِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَإِذَا قَالَ: وَلَا الضَّالِّينَ فَقُولُوا: آمِينَ، وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ ". [مسلم ج۱/ ص۱۷۷ رقم ۹۳۱].

ابو هريرة ﷺ فرمايي چې رسول الله ﷺ به مونږ ته (د مونځ) تعليم راكولو، فرمايل به يې چې د امام څخه مه مخكې كيږئ، كله چې امام الله اكبر ووايي نو تاسو هم الله اكبر ووايئ، او كله چې امام ولاالضالين ووايئ، نو تاسو آمين ووايئ، او كله چې امام ركوع كوي نو تاسو ركوع وكړئ، او كله چې امام سمع الله لمن حمده ووايي نو تاسو ربنا لک الحمد ووايئ.

**طريق الاستدلال:** پدې حديث كې د اذا كبر فكبروا ذكر راغلو څكه چې هغه امام په جهر وايي، همدارنګه د (اذا قال غير المغضوب ...الخ) ذكر راغلو څكه چې دا هم په جهر دی نو كه آمين په جهر وي نو د مقتدي آمين به يې د امام د آمين پورې داسې معلق كړی وي چې اذا أمن فقولوا آمين او دلته يې د امام د ولاالضالين پورې معلق كړی دی.

## پنځم حديث

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّينَ} [الفاتحة: ۷]، فَقَالَ الَّذِينَ خَلْفَهُ: آمِينَ، فَالْتَقَتْ مِنْ أَهْلِ السَّمَآءِ وَأَهْلِ الْأَرْضِ آمِينَ، غَفَرَ اللهُ لِلْعَبْدِ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ "، قَالَ: " وَمَثَلُ الَّذِي لَا يَقُولُ: آمِينَ، كَمَثَلِ رَجُلٍ غَزَا مَعَ قَوْمٍ فَاقْتَرَعُوا، فَخَرَجَتْ سِهَامُهُمْ وَلَمْ يَخْرُجْ سَهْمُهُ، فَقَالَ: مَا لِسَهْمِي لَمْ يَخْرُجْ؟ قَالَ: إِنَّكَ لَمْ تَقُلْ: آمِينَ "

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې كله امام (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ) ووائي، بيا امين ووائي، پس د زمكې د خلكو امين چې د اسمان د خلكو د امين سره موافق شي نو بنده له ټول مخكني ګناهونه معاف شي، او څوک چې امين ونه وائي د هغه داسې مثال دی

چې یو سړی دنورو خلکو سره جهادته د تللو لپاره قرعه اندازي وکړي، او دده قرعه راونه وزي، نو دې پوښتنه وکړي چې زما قرعه ولې راونه وتله؟ جواب ورته ورکړل شي چې تاامین ندی ویلی.

پدې حدیث کریمه کې دمغفرت وعده په هغه امین باندې ورکړل شوي ده، چې د ملایکو دامین سره موافق شي او دملایکو، امین سره هغه امین موافق کیږي چې پټ ولوستل شي ځکه دملایکو امین چاندی او ریدلی نو په پټه دی.

## شپږم حدیث :

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا قَالَ الْإِمَامُ {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ۷] فَقُولُوا: آمِينَ؛ فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَقُولُ: آمِينَ، وَإِنَّ الْإِمَامَ يَقُولُ: آمِينَ، فَمَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةَ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ". [رواه احمدوالنسائی ص ۱۴۷/ رقم: ۹۲۷/ والداری ج۱ص ۳۱٤ واسناده صحیح اثارالسنن/ج ۱/ص ۱۰۰/ باب تامین الامام/ ابن حبان فی صحیحه، ج ۱ص ۱۹٤ و فی البعض : ص ۲۲۰ ].

**طریقه داستدلال :** په دې حدیث کې درې دلایل دي چې امین په پټه لوستلی شي.

(۱) - رسول الله ﷺ مقتدي ته حکم کړی دی چې کله هغه دامام.(ولاالضالین) .واوري نو امین دې ووائي، نو دمقتدي امین یې دامام دولاالضالین پورې معلق کړی دی، ددې څخه صفا معلومیږي چې امام ولاالضالین په زوره وائي امین په زوره نه وائي، که نه دمقتدي امین به یې دامام دامین پورې معلق کړی وي او داسې به یې ویلي وي چې کله امام امین ووائي تاسو امین ووائی.

(۲) رسول الله ﷺ فرمائي چې. (فان الملایکة تقول امین).

یعنې بې شکه چې ملایکې امین وائي دا جمله رسول الله ﷺ لـه دې وجهې ذکر کړې ده چې مونږ دملایکو امین نه اورو، که مونږ د ملایکو امین اوریدلی نو بیا به درسول الله ﷺ دا خبر را کول یو لغوه کار وو. (معاذالله) وروسته رسول الله فرمایلي دي چې: (وان الامام یقول امین) یعنې بې شکه چې: امام امین وائي.

داجمله هم دمخکني جملې په شان لدې وجهې ذکرشوی ده چې مقتدیان دامام امین نه اوري لکه دملايکو آمين چې نه اوري، که مقتديانو دامام امين اوريدلې نوبيابه دانحضرت ﷺ دااطلاع ورکول هم يوبې فايدې کاروی (معاذالله).

(۳) دحديث په اخر کې رسول الله ﷺ فرمائي چې: (فمن وافـق تأمينـه تـأمين الملائكـة غفـرله ماتقدم من ذنبه) يعنې دچاامين چې دملايکودامين سره موافق شي دده تيرشوي ټول ګناهونه به معاف شي اومخکې بيابيادا خبره تيره شوې ده چې دملايکو دآمين سره هغه امين موافق دی چې په پټه ولوستلې شي ځکه چې ملايکی يې هم په پټه وائي.

**اووم حديث :** وَعَنْ أَبِي مُوسَي الْأَشْعَرِيِّ ﷺ (فِيْ حَدِيْث طَوِيْل ) قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا صَلَّيْتُمْ فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ فَإِذَا كَبَّرَ فكبروا وَإِذ قَالَ (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ) فَقُولُوا آمِينَ يُجِبْكُمُ اللَّهُ فَإِذَا كَبَّرَ وَرَكَعَ فَكَبِّرُوا وَارْكَعُوا فَإِنَّ الْإِمَامَ يَرْكَعُ قَبْلَكُمْ وَيَرْفَعُ قبلكُمْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَتِلْكَ بِتِلْكَ». قَالَ: «وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ ؛فَقُولُوا اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ يسمع اللَّهُ لَكُمْ» .. [ مسلم ،ج ۱ص ۱۷٦/ رقم: ۹۰۳]

دحضرت ابو موسی اشعری ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ مونږته دجماعت لمونځ رانبودلو، ويې فرمايل چې: کله مو دلمانځه اراده وکړه، نوخپل صفونه سيده کړئ بيادی يوکس امامتي درکړي نوکله چې امام الله اکبروائي تاسو هم الله اکبروائي اوچې کله امام (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ) ووائي تاسو امين ووائي، الله ﷻ به ستاسو سره محبت وکړي، اوچې کله امام الله اکبروائي اورکوع وکړي تاسو هم الله اکبرووائي، اورکوع وکړئ ،امام رکوع اودرکوع څخه راجيګيدل ستاسو څخه مخکې کوي اوچې کله امام (سمع الله لمن حمده) ووائي، نو تاسو (ربنالک الحمد ) ووائي.

**طريقه داستدلال :** په دې حديث کريمه کې رسول الله ﷺ په تکبير، رکوع ،وغيره کې امام اومقتدي دواړوته حکم کړی دی نوپه دې امورو کې امام اومقتديان شريک دي . اوپه فاتحه ،امين، تسميع ،اوتحميد کې يې تقسيم کړی دی، يعنې امام به فاتحه لولي چې کله يې . (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ) ولوستلو نومقتديان به امين وائي اوهمدارنګې امام چې کله ( سمع الله لمـن حمـده ) ووائي

نومقتديان به ( ربنالک الحمـد ) ووائي، نورسول الله ﷺ د ( ربنالک الحمد ) په باره کې داسې الفاظ ذکرکړي (فقولو ربنالک الحمد ) ووائي تاسو ربنالک الحمد او دامين په باره کې يې هم همداسې الفاظ راوړي دي (فقولوا امين) ووائي تاسو امين .

او ربنالک الحمد خو اتفاقا پټ لوستلی شي، نو امين به هم پټ لوستلی شي داسې نه شي کيدلې چې دربنالک الحمد په باره کې د( قولوا ) لفظ .په معنی دپټولوستلوشي، اودامين په باره کې د( قولوا ) لفظ . په معنی د اوچتو لوستلو سره شي .

## په دې حديث کې داحنافو دوه مسائل :

(۱) پـه دې حـديث کـې رسـول الله ﷺ الحمـد لله لوسـتل صـرف دامـام وظيفـه گرزولـې ده، داسـې يـې فرمايلي دي چې (واذاقال غيرالمغضوب ) يعنې چې کله امام (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ) ووائي که چيرته د الحمد لله لوستل دامام او مقتديانو دواړو وظيفه وي، نورسول الله ﷺ به داسې فرمايلي وو چې . (اذاقلتم غيرالمغضوب الخ ) يعنې چې کله تاسو ټول (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ ) ووائي .

(۲) په دې حديث کې يې د امين لپاره دربنالک الحمد په شان د( قولوا ) لفظ استعمال کړی دی چې دربنالـک الحمد پـه بـاره کـې پـه معنـی دپټولوسـتلو دی، نـو دامين پـه بـاره کـې بـه هـم پـه معنـی دپټولوستلو وي ځکه دواړه په يو حديث کې راغلي دي .

## د لامذهبو خيانت

بعضـې غيرمقلـدين درسـول الله ﷺ ددې لفـظ (فقولـوا امـين ) ترجمـه داسـې کـوي چـې پـه اوچـت اوازباندې امين ووائی، حالانکه دا( د اوچت اواز) کلمـه دوي دخپـل ځـان څخـه دحديث پـه معنی کې ورزياتوي، گويا چې دوي رسول الله ﷺ ته دامشوره ورکوي چې: يارسول الله ﷺ ! ستاالفاظ کافي نه دي د( اوچت اواز) لفظ ورزياتول پکاردي . مونږ ددې لامذهبو څخـه پوښتنه کوو چې تاسو د قولوا دلفظ په ترجمه کې اوچت اوازورزيات کړو، نو داحاديثو ددې لاندې جملو څه معنی ده ؟

(١) اذا قال الامام سمع الله لم حمده فقولواربنالک الحمد [بخاری/ ج ١ / ص ١٠٩/ مسلم / ج ١ / ص ١٧٦] ایاددې هم دامعنی ده چې په اوچت اواز باندې ربنالک الحمدووائی ؟

(٢) (قولـوا التحیـات لله) [بخـاری /ج ١/ ص ١١٥]. ایـاددې هـم دامعنـی ده چـې پـه اوچـت اوازالتحیات ووائي ؟

(٣) قولـوا اللهـم صـل علي محمـد. ایاددې هم دامعنی ده چې په اوچت اواز اللهم صلی علی محمدووائي؟

په دې جملوکې لامذهبه داوچت اوازکلمه نه ورشاملوي، اوداامین په باره کې یې ورشاملوي. افسوس چې لامذهبه دومره متعصبه فرقه ده، چې کله په ضدکې راشي نود. (صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ) مصداق شي، دقران څخه هم منکریږي، اوداحادیثوهم غلطې ترجمې کوي، ترڅوچې خپل روحاني پلرونه انګریزان خوشحاله کړي، اوپه یوه بهانه دمسلمانانوپه مینځ کې اختلاف پیداکړي.

لامذهبه ملانیاز محمد نیاز عرف امین الله پشاوری لیکي چې دلته داذاقال مقابله دقولوسره راغلې ده، اوداخوواضحه خبره ده چې امام خوقول په جهرسره کوي، نومقتدیان به هم امین په جهرسره وائي ځکه ظاهره داده چې دلته اتفاق په صفت کې مراددی. (الحق الصریح ج ٤ص ٢٢١ بـاب القـراءة فی الصلـوة المسئالة الخامسة ).

**الاخساء :** په بخاري اوپه مسلم کې حدیث کې دي چې (اذاقـال الامـام سـمع الله لمـن حمـده فقولواربنالک الحمداھ (مشکوة ج١ص ٨٢ باب الرکوع الفصـل الاول. دلتـه دقال مقابله دقولواسره راغلی ده اوداهـم واضـحه ده چې امـام قـول په جهرکـوي، نوایادلتـه بـه هم مقتـدیان ربنالـک الحمدپـه جهرسره وائي ؟ لامذهبه خناسه ! دلته ولی اتفاق په وصف کې ظاهرندي ؟

**فان قیل:** چې امام بخاري رحمة الله علیه د (قولوا) څخه آمین بالجهر ثـابتوي او دې حدیثونو تـه دآمین بالجهر باب لګوي، همدارنګه محمد بـن اسحاق بن خزیمـة النیسـابوري رحمة الله علیه هم ورتـه دآمین بالجهر باب قایموي. [وګوره صحیح ابن خزیمة ج١/ ص ٢٨٦ رقم ٥٧٠].

**قلنا:** چې حافظ ابن حجر رحمة الله علیه هم د الزین بن منیر قول رانقلوي چې کله مطلق خطاب راشي یعنې د جهر او سر قید پکې نه وي نو هغه په جهر ورحملیږي. [فتح الباري ج٢/ ص٣٤٥] القول المتین ص٢٤.

د امام بخاري رحمه الله سره که د آمين بالجهر په باره کې کوم صحيح حديث واى نو خامخا به يې په صحيح البخاري کې ذکر کړى واى. او باب جهر المأموم بالتأمين د امام بخاري رحمه الله خپل باب دى لاندې په يو حديث کې هم د آمين سره د جهر لفظ نه شته.

**اتم حديث:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا أَمَّنَ الإِمَامُ، فَأَمِّنُوا، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ المَلاَئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ. [صحيح البخاري ج١/ ص١٠٨ رقم٧٨٠ ورقم ٦٤٠٢] مسلم باب التسميع والتحميد والتأمين رقم ٩١٤ ] ترمذي رقم ٢٥٠ نسائى رقم ٩٢٨].

د اهل سنتو فخر مولانا سرافراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې هغه ټول احاديث چې په هغې کې د اذا أمن الامام فأمنوا جمله راغلې ده؛ هغه زمونږ لپاره دليل دى. [خزاين السنن ص٣٢٨].

پدې حديث کې راغله چې: (اذا أمن الامام فأمنوا) د مقتديانو آمين يې د امام د آمين پورې معلق کړو، او په نورو حديثونو کې داسې راغلي وو چې: (اذا قال غير المغضوب عليهم ولا الضالين، فقولوا آمين) نو پدې کې يې د مقتديانو آمين د امام د (ولا الضالين) پورې معلق کړو نو په (اذا أمن الامام فأمنوا) کې داسې تاويل پکار دى چې د نورو احاديثو سره يې موافقت راشي.

(١) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: فالجمع بن الروايتين يقتضي حمل قوله اذا أمن الامام على المجاز. [فتح الباري ج٢/ ص٣٤٢ طبع دار السلام رياض] يعني علماوو فرمايلي دي چې: د اذا قال الامام غير المغضوب عليهم ولا الضالين او د اذا أمن الامام فأمنوا په مابين کې د جمع او د تطبيق لپاره په دوهم عبارت کې مجاز پکار دى.

(٢) امام نووي رحمه الله د دواړو حديثونو په مينځ کې تطبيق کوي او فرمايي چې: وتأولوا قوله ﷺ: اذا أمن الامام فأمنوا، قالوا معناه: اذا أراد التأمين. [نووي شرح مسلم ج١ ص١٧٤].

جمهورو علماءو د اذا أمن ترجمه داسې کړې ده چې: کله امام اراده د آمين وکړي نو بيا تاسو آمين ووايئ.

(٣) امام نووي رحمه الله مزيد فرمايي چې: وأما روايته اذا أمن الامام فأمنوا فمعناها: اذا أراد التأمين. [نووي شرح مسلم ج١/ص١٨٦].

(٤) همدا خبره امام نووي رحمه الله په شرح المهذب کې هم ليکلي ده فيحمل الأول على أن المراد اذا أراد التأمين فأمنوا ليجمع بينهما [شرح المهذب ج٢/ ص٣٧٢].

(۵) غيرمقلد شوكاني ليكي چې: وجمع الجمهور بين الروايتين بأن المراد بقوله اذا أمن الامام، أى أراد التأمين ليقع تـأمين الامـام والمـأموم معاً. [نيـل الأوطـار ج۲/ ص۲۳۳]. يعنې جمهـور د دواړو روايتونو په مابين كې تطبيق داسې كوي چې: د (اذا أمن الامام) ترجمه په (اذا أراد التأمين) باندې كوي او دا ددې لپاره چې كه امام اول امين ووايي او بيا مقتديان آمين ووايي، نو د امام او د مقتديانو آمينونه په يو وخت كې رانغلل. او كه امام اراده د آمين وكړي او مقتديان آمين ووايي نو د امام او د مقتديانو آمينونه به په يو وخت كې شي.

(٦) علامه ابن دقيق العيد فرمايي چې: دلالة الحديث على الجهر أضعف من دلالتـه على نفـس التأمين قليلاً، لأنه قد يدل دليل على تأمين الامام مـن غـير جهـر. [أحـكام الأحـكام بحـواله طـرح التثريب فى شرح التقريب ج۲/ ص۲٦۸].

د اذا أمن الامام والا د حديث دلالت په جهر باندې ډېر ضعيف دی، د دلالت د ده څخه په نفس آمين چې معمولي غوندې وي ځكه چې كوم يو دليل خامخا د امام په آمين باندې دلالت كوي، حاصل دا چې جمهور علماء د (اذا أمن) ترجمه په (اذا أراد التأمين) باندې كوي او اراده د زړه فعل دی او د زړه فعل پټ وي نو ددې څخه معلومه شوه چې امام په پټه آمين وايي.

**د يو لامذهبه جهالت:** رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې. (اذا أمن الامام فأمنوا) يعنې كله چې امام امين ووائي نو تاسو هم امين ووائی.

يو لامذهبه ليكلي دي چې ددې حديث څخه معلومېږي چې امام په اوچت اواز باندې امين وائي، اوچې كله مقتديان دا امام امين واوري نو دوی دې هم امين ووائي، او د حديث دا جمله بعينه د رسول الله ﷺ ددې قول په شان ده چې (اذا اكبر فكبروا) يعنې چې كله امام الله اكبر ووائي نو تاسو هم الله اكبر ووائی او ظاهره ده چې امام په اوچت اواز الله اكبر وائي.

**جواب** : ددې حديث څخه دلامذهبو استدلال بالكل غلط دی، ځكه چې كله امام په اوچت اواز الله اكبر ووائي نو مقتديان يې چې واوري هغوئ په پټه الله اكبر وائي نو (امنوا) د (كبروا) په شان دی. يعنې لكه څرنګه چې مقتديان په پټه الله اكبر وائي همدا رنګې دی امين هم په پټه ووائي.

پاتې شو د امام امين لوستل، نو دا د امام په الله اکبر لوستلو ورقياس کول غلط دي، ځکه چې د امام الله اکبر او د مقتديانو الله اکبر په يو وقت کې لوستل ندي ضروري، کله چې امام الله اکبر ووائي او مقتدي د امام الله اکبر واوري او د امام څخه لږ وروسته الله اکبر ووائي نو جايزدي.

ليکن د امين متعلق ډير روايات مخکې تيرشول چې د امام، مقتديانو، او د ملايکو امين بالکل په يو وقت کې لوستل مناسب دي. نو د (اذا أمن) معنى داده چې کله امام اراده د امين وکړي او اراده په زړه کې کيږي لکن د زړه په دې اراده باندې قرينه شته چې هغه د ولا الضالين لوستل دي. او يا د (اذا امن) معنى داده چې (اذابلغ الي موضع استدعي التامين) يعنې چې کله امام هغه ځاى ته ورسيږي په کوم ځاى کې چې امين لوستلې شي او دا معنى د بل حديث (اذاقال الامام (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ فقولواامين) سره موافق ده.

## دشعبه رَحِمَهُ اللَّهُ په طريقه په ديارلسو سندونو باندې

## د حضرت وايل بن حجر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديثونه

(۱)وَبِهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ حُجْرٍ أَبِي الْعَنْبَسِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلْقَمَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ وَائِلٍ ﷺ، (أَوْ سَمِعَهُ حُجْرٌ، مِنْ وَائِلٍ ﷺ) قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا قَرَأَ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ۷] قَالَ: «آمِينَ» وَأَخْفَى بِهَا صَوْتَهُ، وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى، وَسَلَّمَ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ". مسندأحمد ج۴/۳۳۶ رقم ۱۹۰۵۹]ترمذي رقم ۲۴۸،۲۴ صـ ۱۲۷.

حضرت وايل بن حجر ﷺ فرمايي چې رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ راکړو، کله چې رسول الله ﷺ (غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين) ولوستلو نو آمين يې وويل او اواز يې ورباندې پټ کړو، يعنې په پټه يې ولوستلو، او ښي لاس يې په چپ لاس باندې کيښودلو، او ښي او چپ طرف ته يې سلام وګرځولو.

(۲) وَبِهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ قَالَ: وَقَالَ شُعْبَةُ: وَخَفَضَ بِهَا صَوْتَه.(مسند أحمد رقم ۱۹۰۴۹ طبع بيروت الافكار الدولية لبنان طبع رابع سنة۲۰۱۰ھ) يعنې حضرت شعبة رحمه الله فرمايي چې اواز يې ورباندې ښکته کړو.

(۳) وَبِه قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، قَالَ: سَمِعْتُ حُجْرًا أَبَا الْعَنْبَسِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلْقَمَةَ بْنَ وَائِلٍ، يُحَدِّثُ عَنْ وَائِلٍ، وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنْ وَائِلٍ رضي الله عنه، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَرَأَ {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ۷] قَالَ: «آمِينَ» خَفَضَ بِهَا صَوْتَهُ [مسند ابوداؤد الطيالسي رقم ۱۱۱۷ طبع هجر للطباعة والنشر سنة ۱۴۱۹ھ ومسند ابوداؤد الطيالسي ص۱۳۸ رقم ۱۰۲۴ منحة المعبود فى ترتيب مسند الطيالسي ص۹۲].

حجر ابو العنبس رحمه الله فرمايي چې ما د علقمه رحمه الله په واسطه هم د حضرت وايل رضي الله عنه څخه اوريدلي دي او بالذات مې هم د حضرت وايل رضي الله عنه څخه اوريدلي دي چې ده د رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ کولو نو کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ) ولوستلو نو وروسته يې په پټه آمين وويلو.

(٤) وَبِه حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَاعِدٍ , ثنا أَبُو الْأَشْعَثِ , ثنا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ , ثنا شُعْبَةُ , عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ , عَنْ حُجْرٍ أَبِي الْعَنْبَسِ , عَنْ عَلْقَمَةَ , ثنا وَائِلٌ , أَوْ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضي الله عنه، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعْتُهُ حِينَ قَالَ: " {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ۷] " , قَالَ: «آمِينَ» وَأَخْفَى بِهَا صَوْتَهُ , وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى , وَسَلَّمَ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ [سنن دار قطني ج۱/ص۳۳٤] سنن دار قطني مترجم ج۲/ جزء٤ ص٤٥۲ وص٤٥۳ رقم ۱۲٥٥].

د حضرت وايل بن حجر رضي الله عنه څخه روايت دی چې دوی رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مونځ کولو نو فرمايي چې ما ترينه واوريدل چې کله يې چې غير المغضوب عليهم ولا الضالين) وويلې نو وروسته يې په پټه آمين وويلې او ښی لاس يې په چپ لاس باندې کيښودلو او ښی او چپ طرفته يې سلام وګرځولو.

(٥) وَبِه قَالَ:أَخْبَرَنَاهُ أَبُو بَكْرِ بْنُ فُورَكٍ، أنبأ عَبْدُ اللهِ بْنُ جَعْفَرٍ رحمه الله، ثنا يُونُسُ بْنُ حَبِيبٍ، ثنا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، ثنا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ قَالَ: سَمِعْتُ حُجْرًا أَبَا الْعَنْبَسِ قَالَ: سَمِعْتُ عَلْقَمَةَ بْنَ وَائِلٍ يُحَدِّثُ عَنْ وَائِلٍ وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنْ وَائِلٍ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَرَأَ {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ۷] قَالَ: آمِينَ خَفَضَ بِهَا صَوْتَهُ " [سنن كبرى بهيقي ج۲/ ص٥۷]

حجر ابو العنبس فرمايي چې ما په واسطې د علقمة هم د حضرت وايل رضي الله عنه څخه اوريدلی دي او بالذات مې هم د حضرت وايل رضي الله عنه څخه اوريدلي دي چې ده رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مونځ وکړو نو کله يې چې (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ) وويلې نو وروسته يې په پټه آمين وويلو.

(٦) قَالَ اَبُوْعِيْسٰى وَرَوٰى شُعْبَةُ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ حُجْرٍ أَبِي العَنْبَسِ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَآئِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ}، فَقَالَ: آمِينَ وَخَفَضَ بِهَا صَوْتَهُ. [ترمذي ص١٢٧ تحت رقم ٢٤٨ طبع بيروت].

حضرت وايل ﷺ فرمايي چې رسول الله ﷺ د غير المغضوب عليهم ولا الضالين څخه وروسته په پټه آمين وويلو.

(٧) رواه ابو مسلم الكجي فى سننه، حدثنا عمرو مرزوق، قال: حدثنا شعبة، عن سلمة بن كهيل، عن حجر بن عنبس، عن علقمة بن وايل، عن وايل، قال وسمعه حجر من وايل قال صلى النبي ﷺ فذكر الحديث. [تلخيص الحبير لابن حجر ذيل شرح المهذب ج٣/ ص٣٤٩] ترجمه يې مخکې ذکر شوه.

(٨) وَبِه قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ إِسْحَاقَ الْفَقِيهُ، وَأَبُو عَبْدِ اللَّهِ الصَّفَّارُ الزَّاهِدُ، وَعَلِيُّ بْنُ حَمْشَاذَ الْعَدْلُ، قَالُوا: ثنا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِسْحَاقَ الْقَاضِي، ثنا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَأَبُو الْوَلِيدِ، قَالَا: ثنا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، قَالَ: سَمِعْتُ حُجْرًا أَبَا الْعَنْبَسِ، يُحَدِّثُ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَآئِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَالَ: غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] قَالَ: «آمِينَ» يَخْفِضُ بِهَا صَوْتَهُ " «هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلٰى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ، رحمهما الله تعالى وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ» [مستدرک حاکم ج٢/ ص٦٠٨ رقم ٢٩٦٨ طبع دار المعرفة بيروت مستدرک حاکم مع تلخيص ذهبي ج٢/ ص٢٣٢].

حضرت وايل ﷺ فرمايي چې ده ﷺ د رسول الله ﷺ سره مونځ وکړو نو رسول الله ﷺ د (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ) څخه وروسته په پټه آمين وويلو.

(٩) امام طبري رحمة الله عليه فرمايي چې: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ الْمُثَنَّى، ثنا أَبُو الْوَلِيدِ، ثنا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا عَنْبَسٍ، يُحَدِّثُ، عَنْ وَآئِلٍ الْحَضْرَمِيِّ، أَنَّهُ صَلَّى خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَالَ: " {وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] قَالَ: «آمِينَ» فَأَخْفَى بِهَا صَوْتَه. [معجم كبير للطبراني ج٢٢/ ص٤٥].

ترجمه يې د مخکې په شان ده.

(۱۰) امام طبراني رحمه الله فرمايي چې: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ الْمُثَنَّى، ثنا أَبُو الْوَلِيدِ: حَدَّثَنَا أَبُو مُسْلِمٍ الْكَشِّيُّ رحمه الله، ثنا حَجَّاجُ بْنُ نُصَيْرٍ، ثَنا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ قَالَ: سَمِعْتُ حُجْرَ أَبَا الْعَنْبَسِ رضي الله عنه يُحَدِّثُ، عَنْ وَآئِلٍ الحَضْرَمِيِّ، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَالَ: " {وَلَا الضَّآلِّينَ} [الفاتحة: ۷] قَالَ: «آمِينَ» وَأَخْفَى بِهَا صَوْتَه، ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرٰى، وَجَعَلَهَا عَلَى بَطْنِهِ، [معجم كبير للطبراني ج۲۲/ ص۴۳و ص۴۴].

ترجمه يې د مخکې په شان ده، پدې حديث کې د علقمة رحمه الله واسطه نه شته.

(۱۱) وبِهِ قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ السَّيُوطِيُّ، حَدَّثَنَا عَفَانُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كهيل، عن حجر أبي العنبس، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَآئِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَالَ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّينَ} [الفاتحة: ۷] قَالَ: «آمِينَ» خَفَضَ بِهَا صَوْتَهُ " [معجم كبير للطبراني رقم ۱۷۴۷۲].

وايل بن حجر رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مونځ وکړو نو کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ولاالضالين وويلې نو وروسته يې په پټه آمين وويلو.

(۱۲) د سفيان رحمه الله په روايت کې د يمد بها صوته لفظ دی: وبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ حُجْرِ بْنِ عَنْبَسٍ، عَنْ وَآئِلِ بْنِ حُجْرٍ رضي الله عنه قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ: {وَلَا الضَّآلِّينَ} [الفاتحة: ۷] فَقَالَ: «آمِينَ» يَمُدُّ بِهَا صَوْتَهُ. [مسند أحمد رقم ۱۹۰۴۷].

وايل بن حجر رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه واوريدل چې (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّينَ) يې ولوستلو بيا يې آمين د مد سره وويلو.

د شبعة رحمه الله د روايت تصحيح د امام حاكم رحمه الله او د علامه ذهبي رحمه الله څخه ماسوی امام محمد بن جرير طبري هم کړې ده، الجوهر النقي ج۲/ ص۵] او د غير مقلدينو سرګروه نواب صديق حسن خان هم کړې ده. [نزل الابرار ص۸۲]. علامه قاضي عياض مالکي رحمه الله فرمايي چې د شعبة رحمه الله روايت چې د آمين بالسر روايت يې کړی دی او د سفيان رحمه الله روايت چې آمين بالمد ذکر يې کړی دی، دواړه صحيح دي. [العرف الشذي مع الترمذي ج۱/ ص۱۳۳].

## پدې حديث کې د شعبة رحمه الله شاګردان ټول ثقه دي:

۱- محمد بن جعفر غندر رحمه الله أثبت الناس فى شعبة رحمه الله د امام شعبة څخه د أخفى بها صوته روايت کړى کوي. [مسند أحمد رقم ۱۹۰۵۹].

۲- امام عبدالرحمن بن مهدي رحمه الله چې انتهايي ثقه راوي دى، [تقريب ص۳۲۱]. د خپل استاذ شعبة رحمه الله څخه د خفض بها صوته الفاظ رانقلوي.

۳- امام يزيد بن ذريع رحمه الله چې انتهايي ثقه دى هغه د امام شعبة رحمه الله څخه د أخفى بها صوته الفاظ رانقلوي.

۴- امام ابوداؤد الطيالسي د خپل استاذ شعبة رحمه الله څخه د خفض بها صوته الفاظ رانقلوي. [مسند ابوداؤد الطيالسي ص۱۳۸ رقم ۱۰۲۴] بهيقي ج۲/ ص۵۷].

۵- عمرو بن مرزوق رحمه الله چې ثقه دى او د امام بخاري استاذ دى بخاري ج۱/ ص۴۰۴ دا هم د خپل استاذ شعبة رحمه الله څخه د وخفض بها صوته الفاظ رانقلوي. [تلخيص الحبير ج۲/ ص۳۴۹].

(۶) سليمان بن حرب رحمه الله هم د خپل استاذ شعبة رحمه الله څخه د وخفض بها صوته الفاظ رانقلوي. [مستدرک حاکم رقم ۶۹۶۸].

(۷) امام ابو الوليد بن هشام بن عبدالملک الطيالسي او حجاج بن نصير رحمه الله دواړه د امام شعبة رَحِمَهُ اللَّهُ څخه د أخفى بها صوته الفاظ رانقلوي. [طبراني کبير ج۲۲/ ص۴۳ و ص۴۴ وص۴۵].

(۸) امام عفان هم د امام شعبة رَحِمَهُ اللَّهُ څخه د خفض بها صوته الفاظ رانقلوي. [طبراني کبير رقم: ۱۷۴۷۲].

## اعتراضات

د حضرت وايل رضي الله عنه په حديث څلور اعتراضونه شوي دي.

## (۱) اول اعتراض :

د شعبه رحمه الله څخه دسلمه بن کهيل رحمه الله دا استاذ د نوم په ذکر کولو کې غلطي شوې ده. ځکه شعبه ﷺ دده نوم حجر ابو العنبس ذکر کړي دي حالانکه دهغه نوم حجر بن العنبس دی کمافی روایة سفيان. اودده کُنيه ابو السکن ده. ترمذی شريف دا اعتراض په داسې الفاظو رانقل کړی دی چې. (فقال عن حجر أبي العنبس وانما هو حجر بن العنبس)

**جواب** : په اصل کې د حجر د پلار او د ځوی دواړو نوم عنبس دی، نو د حجر ابو العنبس ويل ورته هم صحيح دي او د حجر بن العنبس ويل ورته هم صحيح دي، له دې وجهې دده نوم دواړه قسمه ذکر دی، لکه په ابوداود، ج ۱ص ۱۳۴) ۱۳۵) باب التامين وراء الامام / رقم : ۹۳۲ کې د سفيان په طريقه کې دده نوم حجر ابو العنبس ذکر دی، او امام ابن حبان د شعبه په طريقه کې دده نوم حجر ابن العنبس ذکر کړې دی. (موارد الظمان، ص ۱۲۴) حديث نمبر ۴۴۷)

او امام دارقطنی رحمه الله يې دواړه نومونه ذکر کړي دي داسې يې فرمايلي دي چې. عن حجر ابي العنبس رحمه الله وهو ابن عنبس. (سنن دارقطنی، ج ۱ص ۳۳۳) باب التامين في الصلوة الغ/ رقم: ۱۲۵۳)

ددې اعتراض د جواب نور پوره تفصيل په معارف السنن باب ما جاء في التامين ج ۲ ص ۴۰۰ و ص ۴۰۵ کې او په عمدة القاري کې کتلی شئ.

## دوهم اعتراض :

په دې روايت کې حضرت شعبه رحمه الله د حجر بن العنبس او د وايل ﷺ په منځ کې د علقمه رحمه الله واسطه زياته کړې ده، حال دا چې ددې دواړو په منځ کې واسطه نشته کمافی روایة سفيان. امام ترمذی دا اعتراض په داسې الفاظو رانقل کړې دی چې :(وزاد فيه عن علقمه بن وايل وليس فيه عن علقمه)

**جواب** : ډير ځلې داسې کيږي چې راوي يو روايت بالواسطه هم واوري او بلا واسطه يې هم واوري او په دواړو طريقو سره يې روايت کړی. دلته هم هم داسې شوي دي چې حجر بن العنبس رحمه الله دا روايت په دواړو طريقو اوريدلې دی.

ددې دليل دادی چې ابوداود طيالسی ددې روايت تخريج کړی دی چې سلمه بن کهيل رحمه الله په کې فرمائي چې:(سمعت حجربن العنبس قال سمعت علقمة بن وايل يحدث عن وايل وسمعت من وائل) (مسندابوداودالطيالسی ص ۱۳۸ ) حديث نمبر ۱۰۲٤)

همدارنګې مسنداحمد/رقم ۱۹۰۵۹ اوسنن ابومسلم بحواله تلخيص الجبير ذيل شرح المهذب/ج ۲/ص ۳۴۹ کې هم ددې تصريح شته چې حجربن العنبس رحمه الله دا روايت دواړه رنګه اوريدلې دی. (اثارالسنن، ص ۹۷ _ ۹۸ ) باب ترک الجهربالتامين، اوهمدارنګې دارقطني کې د يزيد بن زريع له طريقه هم شته (سنن دارقطني، ج ۱ص ۲۳۴ ) داجواب هم په معارف السنن کې تفصيلا کتلی شئ

**دريم اعتراض** : په دې روايت کې حضرت شعبه رحمه الله د(مدبهاصوته) پرځای (خفض بها صوته) ذکرکړی دی، حال داچې صحيح روايت د(خفض بها صوته) دی. امام ترمذی دا اعتراض په داسې الفاظو رانقل کړی دی چې (وقال و خفض بها صوته وانما هو مدّ بها صوته).

**جواب** : حضرت شعبه رحمه الله ته محدثين اميرالمومنين فی الحديث وائي، اودهغه فقاهت مسلم دی، نوپه هغه دابدګماني بې دليله ده چې هغه دې په روايت کې دومره تصرف کړی وي چې د(مدبهاصوته) پرځای دی يې (خفض بهاصوته) روايت کړی وي، حافظ ابن حجررحمه الله فرمائي : چې ثقة ،حافظ ،متقن ،کان يقول الثوری هواميرالمؤمنين في الحديث وهواول من فتش عن الرجال وذب عن السنة وکان عابدا ،تقريب ص ۳۰۱ تهذيب الکمال ج ۴ص ۵۹۰ ).

(راجع للتفصيل الی تعليق اثارالسنن ، ص ۹۸ )باب ترک الجهر بالتامين ) اود سفيان د روايت سره يې هيڅ تعارض نشته، ځکه چې د حضرتِ سفيان له څخه هيڅکله هم جهر نه دی روايت شوی، بلکې (مد) روايت شوی دی. يعنې آمين به د الف ممدوده سره وای.

۲- حضرت سفيان رحمه الله څخه د جهر روايت نه دی شوی، ځکه چې هغه خپله د آمين بالسر قايل دی. [محلی/ج ۳/ص ۳۶۴/ بتحشية احمد شاکر/شرح مهذب/ج ۳/ص ۳۷۳ ].

۳ د شعبه رحمه الله په روايت کې د لمانځه ذکر دی اود سفيان رحمه الله په روايت کې د لمونځ ذکر نشته.

۴ البته د سفيان ثوري رحمه الله په يو موضوعي روايت کې د (رفع بِها صوته) لفظ دی، چې تفصيل به يې وروسته راشي. ان شاءالله.

۵ حافظ ابن حجر رحمه الله د سفيان ثوري رحمه الله په طريقه کې د (صليتُ خلف النبي صلى الله عليه وسلم) لفظ ذکر کړی دی. [تلخيص الحبير/ج ۳/ص ۳۴۸]. د حافظ ابن حجر رحمه الله زبردست وهم دی، ځکه چې د حديثو په هيڅ کتاب کې د (صليت خلف النبی صلی الله عليه وسلم) لفظ د سفيان په روايت کې نشته. همدا وهم نذيرحسين هم نقل کړی دی. [فتاوی نذيريه/ج ۱/ص ۴۴۶]

**څلورم اعتراض :** څلورم اعتراض دا شوی دی چې د علقمه رحمه الله سماع د خپل پلار وائل بن حجر رحمه الله څخه نده ثابته، ځکه چې امام بخاری فرمائي چې دی د خپل پلار د وفات څخه شپږ میاشتې وروسته پيدا شوی دی.

**جواب :** دا ډير کمزوری اعتراض دی، حقيقت دا دی چې د علقمه رحمه الله سماع د خپل پلار څخه ثابته ده. د دې تفصيل دا دی چې د وايل بن حجر ﷺ دوه ځامن وو. اول: حضرت عبدالجبار رحمه الله بن حضرت وايل ﷺ. دوهم: حضرت علقمه رحمه الله.

علقمه رَحِمَهُ اللَّهُ مشر او عبدالجبار رَحِمَهُ اللَّهُ کشر دی او د وايل ﷺ د کوم ځوی په باره کې چې دا مشهوره ده چې د خپل پلار د وفات څخه شپږ میاشتې وروسته پيدا شوی دی هغه عبدالجبار رحمه الله دی.

لکه امام ترمذی رحمه الله چې په (ابواب الحدود باب ما جاء في المرأة اذا استكرهت علي الزنا :کې ديو حديث لاندې ليکي چې (سمعت محمدا يقول عبدالجبار بن وايل بن حجر لم يسمع من ابيه ولا ادرک يقال انه ولد بعد موت ابيه باشهر) [ترمذی/ رقم: ١٤٥٣]

نو د دې څخه معلوميږي چې د امام بخاری رحمه الله دا قول د عبدالجبار بن وايل په باره کې دی، د علقمه رحمه الله په باره کې ندی.

او تحقيق دا دی چې د عبدالجبار په باره کې هم دا وينا صحيح نده چې هغه د خپل پلار د وفات څخه شپږ میاشتې وروسته پيدا شوی دی. (تعليق اثار السنن ص ۹۹/ ۱۰۰) او په بعضې چاپونو کې ص ۱۰۶ وص ۱۰۷ باب ترک الجهر بالتامين].

امام ترمذی د (باب ماجاء في المرأة اذا استكرهت علي الزنا. په اخر کې ليکلي دي چې: (وعلقمة بن وايل بن حجر سمع من ابيه وهو اكبر من عبدالجبار بن وايل وعبدالجبار بن وايل لم يسمع من ابيه) [ترمذی/ رقم: ١٤٥٤].

خپله امام بخاری په جزء رفع اليدين / رقم: ۱۰ کې دده سماع ذکر کړيده فرمايلي يې دي.

حَدَّثَنَا أَبُو نُصَيْحٍ الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، أَنْبَأَنَا قَيْسُ بْنُ سُلَيْمٍ الْعَنْبَرِيُّ قَالَ: سَمِعْتُ عَلْقَمَةَ بْنَ وَآئِلِ بْنِ حُجْرٍ، حَدَّثَنِي أَبِي » الخ... (اثارالسنن ، ص ۹۹).

**پنځم اعتراض**: علامه ابن القطان رحمه الله فرمايي چې: حجر بن عنبس مستور او مجهول دی.

**جواب:** دا اعتراض د سفيان په روايت هم دی. حجر بن عنبس عند البعض صحابي دی. [ الاصابة / ج ۲ / ص ۵۹ / تجريد اسماء الصحابة / ج ۱ / ص ۱۳۲].

امام يحيى بن معين، خطيب بغدادی او دارقطنی رحمهم الله ټول دده توثيق کوي. [ تهـذيب التهـذيب/ ج۲/ ص۲۱٤/ تاريخ بغداد/ ج ۸ / ص۲۷٤ / نيل الاوطار/ ص۴۰۳ / تحفة الاحوذی/ ج ۱/ ص ۲۰۹].

## دشبعه روايت راجح دی

(۱) امام احمد بن حنبل فرمائي چې وشعبة احسن حديثا من الثوري ولم يكن فی زمن شعبه مثله في الحديث ،ولا احسن حديثا منه .

(۲) محمد بن العباس النسائی فرمائي چې ( سالت اباعبدالله يعنی احمد بن حنبل : من اثبت شعبه اوسفيان ؟ فقال كان سفيان رجلا حافظا،وكان رجلا صالحا،وكان شعبه اثبت منه .

(۳) فضل بن زياد فرمائي چې (سئل احمد بن حنبل : شعبه احب اليک حديثا اوسفيان ؟ فقال شعبة انبل رجالاً وانسق حديثا.

(٤) وقال عبدالله بن احمد بن حنبل عن ابيه : قال كان شعبة امة واحدة في هذا الشان .

(٥) وقال عبدالله بن المبارک : حدثنا معمران قتادة كان يسئال شعبه عن حديثه .

(٦) وقال حماد ابن زيد: قال لنا ايوب : الان يقدم عليكم رجل من اهل واسط هو فارس فی الحديث فخذوا عنه، قال حماد: فلما قدم شعبة اخذت عنه.

(۷) ابو الوليد الطيالسی فرمائي : چې قال لي حماد: اذا اردت الحديث فالزم شعبة

(۸) خپله سفيان ثوری رحمه الله فرمايل چې : شعبة اميرالمؤمنين في الحديث .

(۹) شعبه دسفيان ثوری رحمه الله استاذوو. (۱۰) امام شافعی فرمائي چې لـولا شـعبة مـاعرف الحديث بالعراق .

(۱۱) قال ابو زيد الهروی : قال رجل لشعبة :ياباسطام سمعت ؟ فقال : والله لان اتقطع احب الي من ان اقول لمالم اسمع : سمعت .

(۱۲) _ قال محمدبن منهال : سمعت يزيدبن زريع غيرمرة يقول : كان شعبة مـن اصـدق النـاس في الحديث . (۱۳) وقال عمروبن علی : سمعت ابابحرالبكراوی يقول مارايت اعبدالله من شعبة لقدعبدالله حتی جف جلده علی ظهره لـيس بينهمـاالحم . (١٤) علی بن المدينی فرمائي : سـئالت يحـيي بـن سـعيد: ايهماكان احفظ للاحاديث الطولات سـفيان اوشـعبة ؟ فقـال كان شـعبه امرفيهـا (١٥) علي بـن المـدينی فرمائي: وسمعت يحيي يقول :كان شعبة اعلم بالرجال فـلان عـن فـلان كذاوكـذاوكان سفيان صـاحب ابواب (١٦)_ ولمامات شعبة : قال سفيان: مـات الحـديث (۱۷) قيـل لابی داوداشـعبة احسـن حـديثامن سفيان ؟ فقال : ليس في الدنيا احسن حديثامن شعبة ومالک علی القلة . [تهـذيب الكمـال ج ٤ص ٥٩٠/ ترمذی/ كتاب العلل/ ج۲/ ص۲۳۸ / اعلام الموقعين/ ج ۱ / ص ۷۳ / فتاوی ابن تيميه/ ج۱ / ص ۸۲].

**يو ويشتم حديث:**

عَنِ الْحَسَنِ، أَنَّ سَمُرَةَ بْنَ جُنْدُبٍ، وَعِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ ﷺ، تَذَاكَرَا فَحَدَّثَ سَمُرَةُ بْنُ جُنْـدُبٍ ﷺ، أَنَّهُ حَفِظَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " سَكْتَتَيْنِ: سَكْتَةً إِذَا كَبَّرَ، وَسَكْتَةً إِذَا فَرَغَ مِـنْ قِـرَاءَةِ {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ۷] "، فَحَفِظَ ذَلِكَ سَمُرَةُ وَأَنْكَـرَ عَلَيْـهِ عِمْـرَانُ بْـنُ حُصَيْنٍ ﷺ فَكَتَبَا فِي ذَلِكَ إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ فَكَانَ فِي كِتَابِهِ إِلَيْهِمَـا أَوْ فِي رَدِّهِ عَلَيْهِمَـا: أَنَّ سَـمُرَةَ ﷺ قَدْ حَفِظَ. [رواه ابوداود، ج ۱ص ۷۹ مطبوعه نورمحمداصح المطابع كراچی/ رقم: ۷۷۹ / مسـند احمد / رقم: ۲۰۳٤۱].

حضرت حسن فرمائي چې دحضرت سمرة بن جندب اودحضرت عمران ابن حصين رضی الله عنهما په منځ کې مذاکره وشوه، حضرت سمرة رضی الله عنه وفرمايل چې ماته بنه په ياددي چې رسول الله ﷺ دوه سکتې کولې، يوه دتکبير تحريمه څخه وروسته اودوهمه .د(غَـيْرِ الْمَغْضُـوْبِ عَلَـيْهِمْ وَلَا الضَّـالِّيْنَ ) څخه وروسته

حضرت عمران بن حصین ﷺ ددې څخه انکار وکړو بیا دوی دواړو په دې باره کې حضرت ابی بن کعب ﷺ ته ولیکل، حضرت ابی بن کعب ﷺ جواب ورکړو، چې رشتیا هم حضرت سمرة بن جندب ﷺ ته ښه یاد دي.

### دوه ویشتم حدیث :

عَنِ الْحَسَنِ رحمه الله، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ ﷺ " أَنَّهُ كَانَ إِذَا صَلَّى بِهِمْ سَكَتَ سَكْتَتَيْنِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، وَإِذَا قَالَ: {وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] سَكَتَ أَيْضًا هُنَيَّةً "، فَأَنْكَرُوا ذَلِكَ عَلَيْهِ، فَكَتَبَ إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، فَكَتَبَ إِلَيْهِمْ أُبَيٌّ أَنَّ الْأَمْرَ كَمَا صَنَعَ سَمُرَةُ. (رواه احمد/ مسند احمد / رقم: ۲۰۵۳۰ والدارقطنی / کتاب الصلوة / باب مواضع السکتات / رقم: ۱۲۶۰ واسناده صحیح اثارالسنن، ج ۱ص ۹۶) او په بعضو چاپونو کې ص: ۱۰۴].

حضرت حسن د حضرت سمرة ﷺ څخه روایت کوي چې ده به کله لمونځ کولو نو دوه سکتې به یې کولې یوه د لمانځه د شروع په وخت کې او دوهمه به یې د (ولاالضالین) څخه وروسته لږه سکته کوله.

خلکو ددې څخه انکار وکړو، بیا دوی په دې باره کې حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه ته ولیکل، نو حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه جواب ورکړو چې بې شکه حکم هم داسې دی لکه څرنګه چې حضرت سمرة ﷺ کړی دی.

### درویشتم حدیث:

عَنْ مُغِيرَةَ رحمه الله، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله أَنَّهُ كَانَ إِذَا كَبَّرَ سَكَتَ هُنَيْهَةً، وَإِذَا نَهَضَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ لَمْ يَسْكُتْ، وَقَالَ: {الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ} [الفاتحة: ۲] " (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۱ص ۳۰۹)

حضرت مغیره ﷺ د ابراهیم نخعی رحمه الله څخه روایت کړی دي چې ده به کله الله اکبر د لمانځه شروع لپاره وویلو نو لږه سکته به یې وکړه او چې کله به دوهم رکعت ته پاڅیدلو نو سکته به یې نه کوله او لحمد لله به لوستله.

### څلورویشتم حدیث:

عَنِ الْحَسَنِ رحمه الله، عَنْ سَمُرَةَ ﷺ، قَالَ: سَكْتَتَانِ حَفِظْتُهُمَا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَنْكَرَ ذَلِكَ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ ﷺ، وَقَالَ: حَفِظْنَا سَكْتَةً، فَكَتَبْنَا إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ بِالْمَدِينَةِ، فَكَتَبَ أُبَيٌّ ﷺ: أَنْ حَفِظَ سَمُرَةُ ﷺ، قَالَ سَعِيدٌ رحمه الله، فَقُلْنَا لِقَتَادَةَ رحمه الله: مَا هَاتَانِ

السَّكْتَتَانِ؟ قَالَ: إِذَا دَخَلَ فِي صَلاَتِهِ، وَإِذَا فَرَغَ مِنَ القِرَآءَةِ، ثُمَّ قَالَ بَعْدَ ذٰلِكَ: وَإِذَا قَرَأَ: {وَلاَ الضَّآلِّينَ}، قَالَ: وَكَانَ يُعْجِبُهُ إِذَا فَرَغَ مِنَ القِرَآءَةِ أَنْ يَسْكُتَ حَتّٰى يَتَرَادَّ إِلَيْهِ نَفَسُهُ.وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ.حَدِيثُ سَمُرَةَ ﷺ حَدِيثٌ حَسَنٌ. [ ترمذی / رقم: ۲۵۱ ].

## طريقه داستدلال:

ددې احاديثو څخه معلوميږي چې رسول الله ﷺ به هميشه دوه سکتې کولې .

**اوله** : داول الله اکبر څخه وروسته يعنې د ( سبحنک اللهم ) لپاره وه، دا اوږده سکته وه، چې په دې باندې د دواړو صحابه وو کرامو اتفاق وو.

**دوهمه** : د ولاالضالين څخه وروسته دومره باريکه سکته وه چې حضرت عمران بن حصين رضی الله عنه ورته بالکل متوجه نه شو او مختصره سکته د مختصر عمل له پاره وي. اودا وخت د آمين وخت دی، نو چې د آمين په وخت کې سکته وه نو معلوميږی چې د آمين عمل جهراً نه و. همدارنګه په احاديثو کې په ډيرتکرار سره راغلي دي چې دولاالضالين څخه وروسته امين دی، نو دوهمه سکته دامين لپاره ده، په دې احاديثو کې د سبحنک اللهم او امين دواړو لپاره د سکتې لفظ استعمال شوی دی، او سبحنک اللهم خو اتفاقاً په پټه لوستلې شي نو همدارنګې به امين هم په پټه لوستلې شي .

بعضې غيرمقلدين وائي چې دوهمه سکته دامين لپاره نه وه بلکې دبل غرض لپاره وه، اوامين جهرالوستل شوی دی، لکن داخبره غلطه ده ځکه چې که امين جهراوي نو بيا په حديث کې ددوهمې سکتې دبيان په وخت کې داسې ويل پکار وو چې ( واذاقال امين سکت ايضاهنية ) . همدارنګه که دا سکته د تنفس د سمولو له پاره وي نو بيا خو مقتدي د ( ولاالضالين ) څخه وروسته فوراً آمين وايي، نو څرنګه هم تنفس برابروي او هم آمين وايي؟ همدارنګه دتنفس د سمولو لپاره خو نورې سکتې هم جايزې دي نو بيا ددې سکتې د تخصيص څخه وجه ده ؟

په دې احاديثو کې دحفظ لفظ دی، يعنې لکه څرنګه چې د حافظ قران ښه ياد وي همدارنګې دامسئله حضرت سمرة ﷺ ته ښه ياده ده، اوحضرت ابی بن کعب ﷺ ديته امر يعنی حکم ويلي دي

ګویاچې دادرسول الله ﷺ حکم هم دی چې امین په پټه وائي . د حسن بصري رحمه الله سماع د سمرة بن جندب رضی الله عنه څخه ثابته ده. [صحیح البخاری/ج ۲ / ص ۸۲۲].

## دخلفاء راشدینو او عامو صحابه وو او تابعینو آثار

یوه ورځ رسول الله ﷺ داختلاف ذکروکړواوبیایې داختلاف څخه د خلاصیدلو اصول بیان کړل چې (علیکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدین) تاسوزماطریقې اوزمادخلفاو طریقې په ځان لازمي کړئ! یعنې چې کله په احادیثو کې اختلاف راشي نو په هغو احادیثو عمل وکړئ چې دخلفاء راشدینو دعمل سره موافقې وي.

(۱) وبه قال حدثنا سلیمان بن شعیب الکیساني ، قال حدثنا علی بن معبد، قال حدثنا ابوبکر عن ابي وایل قال کان علي وعبدالله لا یجهران ببسم الله الرحمن الرحیم ولا بالتعوذولا بالتامین . [رواه الطبرانی فی الکبیر/ ج ٤ / ص ٥٦٦ / رقم: ٩٣٠٤ وطحاوي ۱۱۳۷/ الجوهر النقی/ باب الجهر باالتامین / المحلی/ مسئله نمبر: ۳٦۳/ مجمع الزواید/ رقم: ۲٦۳۲ وفیه ابوسعیدالبقال وهوثقة مدلس مجمع الزواید، ج ۲ / ص ۱۰۸ ]

دابو وایل ﷺ څخه روایت دی چې خلیفه راشد حضرت علی ﷺ او حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ په لمانځه کې بسم الله الرحمن الرحیم او امین په زوره نه لوستلو.

## (د ابوسعید البقال رحمه الله توثیق)

د ابوسعید البقال نوم سعید بن المرزبان العبسی الکوفي دی، دا د حسن درجې راوي دی.

د امام ترمذی په نیز حسن الحدیث دی. [وګوره ترمذی رقم ۳۳۸۹].

۱- کتاب الدعوات باب ماجاء فی الدعاء اذا أصبح واذا أمسی: قال ابوعیسی: هذا حدیث حسن غریب من هذا الوجه.

۲- امام ترمذی رحمه الله د امام بخاری رحمه الله شاګرد دی، نو د امام بخاری رحمه الله څخه یې په العلل الکبیر کې دده په باره کې د مقارب الحدیث جمله رانقل کړې ده. [بحواله نصب الرایه ج ۴/ ص ۳۶۶ تعلیق المغنی ص ۳۶۰ شمس الحق عظیم آبادی غیرمقلد ].

٣- امام ابو ذرعه رحمه الله ليکی چې صدوق مدلس ميزان الاعتدال ج۱/ ص۳۹۱ مجمع الزوايد ج۱/ ص۱۴۱].

٤- امام ابن عدی رحمه الله فرمايي چې دا په هغو ضعفاءوو کې دی چې روايت يې د تائيد لپاره پيش کيدلی شي او دده روايت پرينبودلی نه شي [تهذيب التهذيب ج۴ ص۸۰]

٥- امام ابو اسامه رحمه الله فرمايي چې ابوسعيد البقال رحمه الله زمونږ څخه حديث بيانوي او ثقه دی. تهذيب التهذيب ج۴/ ص۷۹ مجمع الزوايد ج۱/ ص۱۴۱].

٦- علامه هيثمی رحمه الله فرمايي چې [ثقة مدلس]. مجمع الزوايد ج۲/ ص۱۰۸].

٧- امام ابوداؤد رحمه الله فرمايي چې وكان من أقرأ الناس.

٨- امام عقلی رحمه الله ورته ثقه ويلي دي. [تهذيب ج۴/ ص۸۰].

٩- امام ساجی رحمه الله فرمايي چې صدوق فيه ضعف، تهذيب ج۴/ ص۸۰].

١٠- علامه منذری رحمه الله فرمايي چې وقد وثق ،الترغيب والترهيب ج۴/ ص۸۰].

١١- عبدالله بن المبارک رحمه الله فرمايي چې ما د شريک بن عبدالله النخعی رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چې تعرف ابا سعيد البقال؟ قال أی والله! اعرفه عالی الاسناد...الخ . [الکفاية فی علم الرواية ص۳۶۰].

او د تدليس طعن د متابعت له وجې ختميږي، د غيرمقلدينو مشران دا اصل مني [وګوره تحقيق الکلام ج۱/ ص۶۲] مقدمة تحفة الاحوذی ص۱۹۳] نيل الاوطار ج۱/ ص۱۷۹].

عن ابراهيم قال: قال عمر: أربع يخفيهن عن الامام: التعوذ، بسم الله الرحمن الرحيم، وآمين، واللّٰهُمَّ ربنا لکِ الحمد. [رواه ابن جرير] [کنز العمال ج٤/ ص٢٤٩ کتاب الصلوة].

حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي چې امام به دا څلور شيان په پټه ووايي ١- اعوذ بالله...الخ ٢- بسم الله ٣- آمين ٤- او ربنا لک الحمد.

وروينا عن عبدالرحمن بن أبی ليلی أن عمر بن الخطاب قال: يخفی الامام أربعاً : التعوذ، وبسم الله الرحمن الرحيم، وآمين، وربنا لک الحمد. [محلی ابن حزم.ج٣/ ص١٤٨ طبع دار الاحياء التراث العربی بيروت سنة ١٤٢٢ه].

حضرت عمر ﷜ فرمايي چې امام به دا مذكور څلور شيان په پټه وايي ١- اعوذ بالله ٢- بسم الله ٣- آمين ۴- ربنا لک الحمد. فان قيل: چې د عبدالرحمن بن ابى ليلى سماع د حضرت عمر ﷜ څخه نه ده ثابته؟ **قلنا:** امام احمد رحمة الله عليه فرمايي چې د شپږو كالو والا هلک چې ذهين او فطين وي نو سماع ته يې اعتبار شته دی، لكه د سفيان بن عيينه رحمة الله عليه او د وكيع رحمة الله عليه حديثونو ته چې اعتبار دی. [كتاب الكفاية فى علم الرواية ص١٦]. امام بخاري رحمة الله عليه د محمود بن ربيع د پنځه كلنۍ په عمر كې د حديث ذكر كړی دی. [صحيح بخاري ج١/ ص١٧]. نو ددې اصل په بناء باندې امام مسلم فرمايي چې: وأسند عبدالرحمن بن أبى ليلى وقد حفظ عن عمر بن الخطاب. [مسلم ج١/ ص٢٤]. امام ترمذى رحمة الله عليه فرمايي چې: وقتل عمر بن الخطاب وعبدالرحمن بن ابى ليلى ابن ست سنين .... وقد روى ابن ابى ليلى عن عمر ﷜ . [ترمذى كتاب الدعوات باب ما يقول عند الغضب رقم ٣٤٥٢].

قال الطبرى فى تهذيب الاثار: أنا ابو كريب، نا ابوبكر بن عياش، عن ابى سعد، عن ابى وايل قال: لم يكن عمر وعلى يجهران ببسم الله الرحمن الرحيم، ولا بآمين. [الجوهر النقى ج٢/ ص٤٨ وص ٥٨ طبع ادارة تاليفات اشرفيه ملتان، شرح سنن ابى داؤد، علامه بدرالدين عينى ج٣/ ص١٣٥ طبع دار الكتب العلمية بيروت]. يعنې د حضرت عمر ﷜ او حضرت على ﷜ به بسم الله ...الخ او آمين په پټه ويلو.

عن ابي وايل قال كان عمروعلي لا يجهران ببسم الله الرحمن الرحيم ولا باالتعوذولا بالتامين. (رواه ابن جريرالطبرانى فى تهذيب الاثارالجوهرالنقى، ج ١ص ١٣٠/ باب جهر الامام باالتامين/ سنن طحاوى/ج ١/ ص٩٩ /اوپه بعضې چاپونو كې ص ١٥٠/ باب قراة بسم الله الرحمن الرحيم في الصلوة).

د حضرت ابو وايل ﷜ څخه روايت دی چې حضرت عمر ﷜ او حضرت على ﷜ نه بسم الله په زوره ويلې ده نه اعوذ بالله الخ او نه امين.

روي ابومعمر رحمه الله عن عمربن الخطاب انه قال يخفي الامام اربعا.

١ - التعوذ. ٢ - وبسم الله الرحمن الرحيم. ٣- وامين. ٤ - وربنالک الحمد. [كنزالعمال /ج٤ /ص٢٤٩/ بحواله ابن جرير/ محلى ابن حزم /ج ٢/ ص ٢٠٦ / عيني شرح هدايه/ ج ١ / ص ٦٢٠ ]

د ابومعمر ﷜ څخه روايت دی چې حضرت عمر ﷜ فرمائي څلور شيان پټ لوستلې شي اعوذ بالله، بسم الله الخ امين او ربنا لک الحمد.

**يوحقيقت :** علامه نيموى رحمه الله فرمايي چې: (لم يثبت الجهر بالتامين عن النبى صلى الله عليـه وسلم ولا عن الخلفاء الاربعة. و ما جاء فى الباب فهو لا يخلو عن شئ ) [ آثارالسنن / ص ١٤١ ].

له حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه او په خلفاء راشدينو كې د يو څخه هم په زوره امين ندى ثابت، او كوم شيان چې خلک ذکر کوي هغه ضعيف دي، بلكې د خلفاء اربعه وو څخه په ضعيف سند باندې هم آمين بالجهر نه دى ثابت، بلكې د خلفاء راشدينو په زمانه کې ديو کس څخه هم په زوره امين ندى ثابت. كه غيرمقلدينو كې جرات وي نود يو خليفة الراشد څخه دې په زوره امين ثابت كړي، او يا دې په پوره دوره د خلافت کې په کوم يو مسجد کې دكوم سړى څخه په زوره امين ثابت كړي.

عبدالرزاق عن الثورى عن منصور عن ابـراهيم قـال خمـس يخفـيهن الامـام سـبحنک اللّٰهُمَّ وبحمدک والتعوذ و بسم الله الرحمن الرحيم وامين وربنالک الحمد.

( رواه عبدالرزاق/ رقم:٢٥٩٧ واسناده صحيح اثارالسنن ، ص:١٠٧ باب ترک الجهر بالتامين .

د حضرت ابراهيم نخعى ﷺ څخه روايت دى چې امام به پنځه شيان پټ وائي : (١) سـبحنک اللّٰهُمَّ الخ. (٢) اعوذبالله الخ. (٣) بسم الله الخ. (٤) امين). (٥) ربنالک الحمد.

محمد قال اخبرنا ابوحنيفة عن حماد عن ابراهيم قال اربـع يخافـت بهـن الامـام سـبحانک الله وبحمدک، والتعوذ من الشيطن، وبسم الله الرحمن الرحيم، وآمين. [كتاب الآثار للامام محمد رقـم ٨٣ كتاب الآثار لابى يوسف رقم ١٠٦]

ابراهيم نخعى رحمة الله عليه فرمايي چې امام به دا څلور شيان په پټه وايي : ١- سبحانک الله اللهم ٢- اعوذ بالله ٣- او آمين.

عبدالرزاق عن معمر عن حماد عن ابراهيم قـال: اربـع يخفـيهن الامـام بسـم الله الـرحمن الـرحيم، والاستعاذة، وآمين، واذا قال سمع الله لمن حمده، قال: ربنا لک الحمد. [عبدالرزاق ج٢/ ص٨٧ رقم٢٥٩٦].

ابراهيم نخعى رحمة الله عليه فرمايي چې امام به دا څلور شيان په پټه وايي: (١) بسم الله (٢) اعوذ بالله (٣) آمين. او چې كله امام سمع الله لمن حمده وو ايي نو دا به ربنا لک الحمد وايي.

وعن سفيان الثوري رحمه الله عن منصور المعتمر عن ابراهيم قـال خمـس يخفـين: سـبحنك الله وبحمدک، والتعوذ ، وبسم الله الرحمن الرحيم، وآمين، واللّٰهُمَّ ربنا لک الحمد [المحلی ج٣/ ص١٤٨ طبع بیروت احياء التراث بيروت.

حدثنا وكيع ، عن سفيان، عن منصور عن ابراهيم قال: خس يخفيهن الامام، الاسـتعاذة، سـبحانک اللّٰهُمَّ وبحمدک، وبسم الله الرحمن الرخيم، وآمين وربنالک الحمد. [مصنف ابن أبي شيبة رقم ٨٩٤١].

حدثنا هشيم، قال حدثنا حصين ومغيرة عن ابراهيم قال : يخفى الامام: بسم الله الرحمن الرحيم والاستعاذة، وآمين، وربنا لک الحمد. [مصنف ابن ابی شيبة ج١/ ص٤١٠/ وص٤١١ ج٢/ ص٥٣٦ وج٣/ ص٣٧٤ رقم٤١٥٩ ج٦/ ٨٦ رقم٨٩٤٤].

حدثنا وكيع، عن ابن ابی ليلی، عن الحكم، عن ابراهيم قال: أربـع لا يجهـر بهـن الامـام، بسـم الله الرحمن الرحيم، والاستعاذة، وآمين والله ربنا لک الحمد. [مصنف ابن أبي شيبة ج٦/ ص٨٦ رقم ٨٩٤٠].

عبدالرزاق عن معمر، عن الثوری، عن منصور، عن ابـراهيم انـه كان يسر بـآمين. [مصـنف عبدالرزاق ج٢/ ص٩٦ رقم٢٦٣٥].

قال الطبری وروی عن النخعی والشعبی وابراهيم الشيمی كانوا يخفـون بـآمين. [الجـوهر النـقی ج٢/ ص٥٨].

ددې ټولو روايتونو څخه معلومه شوه چې ابراهيم نخعی رحمه الله پخپله هم آمين په پټه ويلو، او امام ته يې هم د آمين بالسر تعليم ورکولو، په مذكورو بعضو روايتونو کې د امام لفظ وو، او په بعضو کې نه وو، ددې څخه معلوميږي چې دا روايتونه عام دي امام او مقتديانو دواړو ته شامل دي.

حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله د تابعينو سردار و، د دارالعلم كوفې مفتی و، دا ښار د زرګونو محدثينو او فقهاوو دا وسيدلو ځای و.

حضرت ابراهيم نخعی دصحابه وو رضی الله عنهم په زمانه کې پيدا شو او د صحابه وو په زمانه کې وفات شو، دده دعلم اندازه ددې څخه معلوميږي چې دصحابه وو كرامو په موجودګی کې به يې فتوی وركولې، دصحابه وو رضی الله عنهم په موجوده ګی کې حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله د امين د پټو ويلو فتوی وركړه،

او هيڅ صحابي ترينه انکار ونکړو. او هيچا ونه ويل چې دا خلاف سنت دی، حالانکه چاچې د صحابه وو تاريخ مطالعه کړی وي هغه پرې پوهيږي چې صحابه ﷺ په سنتو څومره فدايان وو؟

دخپل ځان، مال، عزت، ابرو، هرڅه نه په يو سنت باندې هزارها ځلې قربانولو ته تيار وو، لکن دامين د پټ ويلو دفتوی پر خلاف هيڅ صحابي او از پورته نه کړو، او نه کوم تابعي يا تبع تابعي څه اواز او چت کړو. او نه په خيرالقرون کې دد ې فتوو په خلاف چا تقرير وکړو، او نه چا کومه رساله وليکله، او نه په کوم مسجد کې ورباندې جنګ وشو، او نه ورباندې د مناظرو چيلنجونه ورکړل شول، او نه چا د امين پټ لوستونکو ته ديهودي يا مخالف سنت لقب ورکړو. او عجيبه خبره لا دا ده چې حضرت وايل بن حجر ﷺ دکوم څخه چې لامذهبانو په خپل ګمان د امين بالجهر سند ترلاسه کړي دي، هغه هم پدې وخت کې په کوفه کې موجود وو ليکن ددې فتوی پر خلاف يې هيڅ کوم حديث پيش نکړو.

په هندوستان او پاکستان کې هم دانګريزي دورې څخه مخکې هيڅ رساله په امين بالجهر نده ليکل شوی، او نه کوم تقرير په دې مضمون شوی دی، او نه ورباندې اشتهار چاپ شوی دی، او نه چا د پټ امين ويلو والاته ديهودي او د مخالف سنت لقب ورکړی دی.

په افغانستان د سرولښکرو دير غل څخه مخکې دلته هم هيچا په زوره امين ندی ويلي، او نه په دې مضمون کومه رساله چاپ شوی ده، او نه ورباندې کوم تقرير شوی دی، او نه په کوم مسجد کې ورباندې جنګ شوی دی، ليکن چې کله د هندوستان ځمکې ته د انګريزانو منحوس قدم داخل شو، نو ددې بادار په اشارو بعضو خرڅو شو و نام نهادو مسلمانانو د اختلاف جوړول خپله اهمه فريضه وګڼله، حتی چې د روسانو دير غل په وخت کې د افتنه د سياف صليبي او جميل الرحمن کنړي، په واسطه دلته هم راورسيدله، د لامذهبو هيڅ رساله، هيڅ جلسه، او هيڅ تقرير ددې خرافاتو څخه خالي پاتې نه شو، د د يار لسو سوو کلونو څخه زيات چې کوم مذهبي اتفاق او اتحاد وو د هغې د ختمولو لپاره يې دخپلو بادارانو په اشاره د هيڅ قسم قرباني څخه ځان وروسته نکړو.

عن ابي حمزه عن ابراهيم النخعي عن علقمة والاسودكليهماعن ابن مسعود ﷺ قال يخفي الامام ثلاثا التعوذ، وبسم الله الرحمن الرحيم وامين. [محلى ابن حزم ج ٣ص ٢٠٦ / ١٤٨ و ١٥٨ / طبع دار احياء التراث / بيروت].

قال سفيان الثوری وابوحنيفة يقولهاالامام سراذهبواالي تقليدعمربن الخطاب وابن مسعودؓ.

(محلي ابن حزم ج ۲ص ۲۰٦).

**الحاصل :** څوک چې په پټه امين وائي دده داعمل دقران سره موافق دی، د رسول اللهﷺ د عمل سره موافق دی، داسمان اود زمکې د ملايکو سره موافق دی، دخلفاء راشدينو دعمل سره موافق دی اود عامو صحابه وو دعمل سره موافق دی.

امام طبري رحمه الله فرمايي (اكثر الصحابة والتابعين علي ذالک) دصحابه وو اودتابعينو اكثر يت امين پټ لوستلو. (الجوهر النقي ج۲ ص ۵۸ كتاب الصلوة باب جهر الامام). نودخيرالقرون دټولو تابعينو اوتبع تابعينو دعمل سره موافق دی، اوپه حرمينو، كوفه، هندوستان، پاكستان اوافغانستان اونورو اكثرو اسلامي ملكونوكې چې څه دپاسه ديارلس سوه كاله څومره مسلمانان تير شوي دي ددې ټولو دعمل سره موافق دی.

نن سبا چې لامذهبان په يوساه باندې احنافوته دامين، رفع اليدين وغيره مسائلو په وجه په سلګونو كنځلې كوي چې احناف مقلدين جاهلان دي، ړانده دي، دعتيان دي، مشركان دي، بی دينه دي، ځكه چې په زوره امين نه وائي، رفع اليدين نه كوي وغيره وغيره نوداسې خبرې ددې لوی دليل دی چې : دا خلک د منكرينو د حديثو د لاس آله ده، اود يهوديانو په شان كتمان كوي دوي دقراءة خلف الامام، زفع اليدين، امين بالجهروغيره مسائل اجتهادی نه ګڼي، بلكې دامسايل دحق اودباطل معيار ګڼي، له دې وجهې مونږه وايو چې د دوي آمين بالجهر نه دی، بلكې بالشر دی.

ځكه غير مجتهد چې د مجتهد په پيروی كې د مجتهد په تطبيق او ترجيح عمل نه كوي، بلكې په خپل فكر په متعارضو احاديثو كې په يو باندې عمل كوي او بل پريږدي. نودا سړی كه حق ته ورسيږي او كه خطا شي، په هر صورت كې ګناهګار دی. [ شرح مسلم / ج ۲ / ص ۷٦ ] نو د لا مذهبو آمين بالشر شو اودا حرام او ګناه ده.

# دوهم باب

## د هغه احاديثو تحقيق چې لامذهبان پرې ددلايلو ګمان کوي

په دې باب کې دابيانوو چې دلامذهبو په لمن کې څه شي دي ؟دغه دمردارډنډ چينډ خي په خپل ترارکې څه څه وائي ؟دوی په خپلو رسالو اؤ اشتهارونو کې څه شي ليکلی دی؟ په کومه طريقه ډالرهضموي ؟

اودبوسوپه کومه ډيری ناست دي چې دومره په جرائت دمناظرو چيلنجونه ورکوي، اودهرکور اومسجد څخه يې دجنګونوميدان جوړکړي دي ؟.

## اول فصل

### دلامذهبو مسلک

### دلامذهبو د مسلک تفصيلاً څلور اړخه دي:

**اول** : لامذهبان چې کله ځانته لمونځ کوي نوپه ټولو فرايضو، سننو او نوافلو کې امين پټ وائي، او ددوی په نيزدلايل دوه دي قران او حديث صحيحه مرفوعه نوددوی سره په دې پټ امين ويلو څه دليل دی ؟

کوم ايت يا حديث مرفوعه کې راغلي دي چې ځانته لمونځ کونکي به په فرايضو،نوافلواوسننوکې پټ امين وائي ؟

په دې اړخ باندې ترننه پورې دوي نه کومه رساله وليکله، نه يې وربانديې کومه مناظره وکړله، نه يې ورته کوم دليل بيان کړو.دوي دمسئلې دااړخ دتقيې په صندوق کې داسې بند کړې دی چې چاته په خوب کې هم داور معلومه نه شي چې دوی هم په اکثرو ځايونو کې امين پټ وائي .

په دې باره کې چې يوائې لمونځ کونکي به په هرلمانځه کې امين پټ وائي نه قراني ايت شته،اونه يې څوک دکوم نبوی ﷺ حديث څخه صراحةً ثابتولې شي، که څوک يې ثابتولې شي رامیدان ته دې شي . ديده بايد.

**دوهم** : لامذهبان دلمانځه نورټول ذکرونه اودعاګانې پټې کوي، صرف امين په زوره وائي ددې تخصيص څه دليل دی ؟

ايا په قران کې داسې کوم ايت شته چې داتخصيص يې کړی وي چې د لمانځه نورټول ذکرونه پټ ولولئ اوصرف امين په زوره ووائي ؟

ايا د دنياد کتب خانو په کوم کتاب کې داسې حديث شته چې په کې واضحه راغلي وي چې دلمانځه نورټول ذکرونه او دعاګانې پټې ووائي اوصرف امين په زوره ووائي ؟

**دريم :** مقتديان په ټلير شتو ساعتونو يعنې په يوه شپه او ورځ کې د امام پسې (ولس ۱۷) رکعته لمونځ کوي.

په دې اولسو (۱۷) رکعتونو کې د دوي مقتديان صرف په شپږو رکعتونو کې امين په زوره وائي او په پاتې (يولسو ۱۱) رکعتونو کې يې پټ وائي ، په دې باره کې، دی لامذهبان لاندې سوالونو ته جواب ووائي.

(۱) دقران په کوم ايت کې راغلي دي چې مقتديان دې صرف په شپږو رکعتونو کې امين په زوره وائي او په پاتې يوولسو ۱۱) رکعتونو کې دې يې پټ وائي ؟

(۲) د رسول الله ﷺ په کوم قولي حديث کې صراحة راغلي دي چې مقتديان دې صرف په شپږو رکعتونو کې امين په زوره وائي او په پاتې يوولسو رکعتونو کې دې يې پټ وائي ؟

(۳) دصحاح سته و يعنې دبخاري، مسلم ، ترمذی ،ابوداود ، نسائي ، ابن ماجه، يابل دحديثو په کوم کتاب کې يو صحيح يا حسن حديث شته، چې په هغې کې صراحة راغلي وي چې د رسول الله ﷺ مقتديانو په شپږو رکعتونو کې امين په زوره ويلې دی، او په پاتې يوولسو رکعتونو کې يې پټ ويلې دی ؟

(۴) ايا د کوم خليفة الراشد څخه ثابته ده چې هغه دې د مقتدي والي په حالت کې په شپږو رکعتونو کې امين په زوره ويلې وي، او په پاتې يوولسو رکعتونو کې دې يې پټ ويلی وي ؟

(۵) ايا په ټوله دوره د خلافت کې د خلفائي راشدينو کوم مقتدي داسې کړي دي، چې په شپږو رکعتونو کې يې امين په زوره ويلې وي، او په پاتې يوولسو رکعتونو کې يې پټ ويلې وي ؟

مونږ حيران يو چې کله د قران ايت ورسره نشته، صحاح سته و هم په ميدان پريښي دي، نورو محدثينو هم لاوارثه پريښي دي، نو دوي، په کوم جرائت د پسرلي د چينډ خو په شان ټراری کوي، او چلينجي اشتهارونه چاپوي؟ د ابو هريره رضي الله عنه د حديث حال به لږ وروسته بيان کړو. ان شاء الله تعالی .

**خلـــورم :** دلامذهبوپـه نيزبـه امـام هميشـه پـه شـپږو ركعتونو كې امـين پـه جهروائـي اوپـه يوولسو ركعتونوكې به يې پټ وائي.

لامذهبان په دې اقرار كوي چې دقران پاک په هيڅ ايت كې هم زمونږ دا مسئله نده ذكرشوى، له دې وجهې څخه دوي دمسئلې بنياد په حديث ايښې دى، دلامذهبوپه نيزدا امين ويل هم سنت مؤكده دي، اود امين په زوره ويل هم سنت مؤكده دي، مونږه وايو چې كه چيرته دنفس امين ويلوپه شان امين په زوره ويل هـم سـنت موكـده وى، نودرسـول الله ﷺ كـوم حكـم وښـائي چـې فرمـايلي ئـې وي چـې تاسـوپه شپږو ركعتونوكې امين پـه زوره ووائي اوپـه پـاتې يوولسـو ركعتونـو كـې يـې پـټ ووائـي ، اوس دهغه احاديثو تحقيق واورئ چې لامذهبان ترينه استدلال كوي.

## د ابو هريره ﷺ حديث

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ، قَالَ: تَرَكَ النَّاسُ التَّأْمِينَ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا قَالَ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} قَالَ: آمِينَ حَتَّى يَسْمَعَهَا أَهْلُ الصَّفِّ الْأَوَّلِ، فَيَرْتَجُّ بِهَا الْمَسْجِدُ.[ابن ماجه ص ٨١ / رقم ٨٥٣/ باب الجهربامين]

حضرت ابوهريره ﷺ فرمـائي چې ټولو خلكو امين پرېښـې دي او رسـول الله ﷺ بـه چـې كلـه سـورة فاتحـه ختمـه كـړه امـين بـه يـې وويلـو تـردې چـې اول صـف بـه واوريـدلوپس وبـه كړنګيدلو مسـجدپه امينونوباندې.

**اول جواب :** په دې حديث كې دمقتدي لفظ نشته، ليكن دمسجد دكړنګهار څخه قياسيږي، چې داكړنګهار دمقتديانودا واز څخه پيدا شوى دى ، حالانكه په نوروځايونوكې لامذهبان قياس تـه دشيطان كاروائي نودوي پخپل ګمان ولې دلته دا شيطاني كاروكړو؟.

**دوهم جواب :** دغه جمله چې دوي ددې قياس بيلډينګ وربانده درولې دي يوه بې بنياده جمله ده اودنقل اودعقل څخه مخالفه ده .

ځکه چې همدا روايت په (ابوداود، ج اص ۱۳۵ / رقم: ۹۳۴ / باب التامين وراء الامام ] او په مسند ابويعلى کې هم شته (تعليق اثار السنن، ج اص ۹۴) او هلته د مسجد د کړنګيد و جمله نه شته. حالانکه هغه حديث هم د بشر بن رافع څخه روايت شوى دى.

**دريم جواب** : د دې حديث په سند کې يو راوى بشربن رافع ابوالاسباط الحارثى النجرانى دى چې:

۱ - امام بخارى، امام احمد، امام ابن معين، امام نسائى امام ترمذى، ابوحاتم، يحيى بن معين او نور ټول محدثين رحمهم الله ورته ضعيف وايي. [ ميزان الاعتدلال، ج اص ۱۴۷) تهذيب الکمال ج ۲ص ۵۲ وتقريب التهذيب ص ۱٦۲ ]

۲ - او ابن حبان دده په باره کې فرمائي: (يروي اشياء موضوعة كأنه المتعمد لها) يعنې دده به موضوعي روايات رانقلول. [ ميزان الاعتدال/ ج ۱ / ص ۱۴۷ ].

۳ - او علامه ابن عبدالبر رحمه الله په کتاب الانصاف کې ليکلي دي چې: (اتفقوا علي انكار حديثه وطرح مارواه وترك الاحتجاج به لا يختلف علماء الحديث في ذلك. (اثارالسنن ص ۹۵)

د محدثينو په دې اتفاق دى چې د ده د رواياتو څخه سخت انکار پکار دى او د ده د رواياتو غورزول پکار دي او د ده په احاديثو استدلال ندى پکار په دې کې د علماؤ د حديث هيڅ اختلاف نشته.

۴ - امام ابوحاتم فرمايي چې: (وبشر بن رافع الحارثي ضعيف الحديث، منكر الحديث، لا ترى له حديثاً قائماً) [ كتاب الجرح والتعديل/ ج ۱/ ص۳۵۷].

۵ - امام محمد بن طاهر الظاهرى المتوفى ۵۰۷ هـ فرمايي چې: بشر بن رافع النجرانى يضع الحديث ) [تذكره مقدسى/ ص۱٦۵/ذيل موضوعات كبير]. او مخکې ليکي چې: (بشر بن رافع النجراني يروى الموضوعات) [ ص ۱۷۰ ].

٦ - حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (فقيه ضعيف ) [تقريب/ ص ۳۴ ]

۷ - د حافظ ابن حجر رحمه الله استاد علامه نورالدين الهيثمى فرمايي چې: ( وقد اجمعوا على ضعفه ) [مجمع الزوايد / ج ۱ / ص ۱۹۳ ].

**څلـورم جـواب** : ددې حديث يوبل راوى (ابن عم ابى هريرة) دى اوهغه مجهول دى. [ميزان الاعتدال/ج۳/ص۳۶۷/تلخيص الحبير/ج ۳/ص ۳۵۰/نصب الرايه/ج ۱/ص ۳۷۱/حاشيه ابن ماجه/ص ۲۷۱].

خپله غير مقلد مولوى عبدالروف دصلوة الرسول په حاشية باندې ليکلي دي چې ددې حديث سندضعيف دى، ځکه چې بشربن رافع ضعيف دى، اوابوعبدالله مجهول دى. (صلوة الرسول، ص ۲۳۹) ناصرالدين الباني هم دې حديث ته ضعيف ويلې دى. [ضعيف سنن ابن ماجه/ ۱۸۲/ ۸۵۳]

**پنځم جواب** : دحديث داجمله دقران پاک څخه صراحة مخالفه ده، ځکه چې په دې روايت کې داسې ذکرشوي دي، چې درسول الله ﷺ اوازبه صرف تراول صف پورې ورسيدلو، اودمقتديانواوازبه دومره په زوره ووچې مسجد به کړنګهار شروع کړو، ددغې دروغجن روايت څخه معلوميږي چې (معاذالله) صحابه وورضوان الله عليهم ټولو دقران پاک مخالفت کولو ځکه چې دالله ﷻ حکم دى چې. (لَا تَرْفَعُوْا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ) اوپه دې روايت کې دي چې صحابه وو، خاص طورپه مسجد کې، اوبيا خاص طوردرسول الله ﷺ پسې په لمانځه کې ددې قرآني ايت مخالفت کولو او خپل لمونځونه يې بربادول (معاذالله)

**شپږم جواب** : په دې حديث کې دمسجد دکړنګهارذکردى. حالانکه کړنګهارپه پوخ اوګمبتدار مسجد کې پيدا کيږي اودرسول الله ﷺ په دورکې دمسجدنبوى چت دکجورود ډډونو څخه جوړشوى وو، چې کړنګهارپيدا کيدل په کې عادةً محال وو.

**اوم جواب** : داجمله دقرآن، دعقل، او دنقل دمخالفت سره سره اود انتهائي ضعف اوموضوعيت سره سره دصحابه وو ﷺ اود تابعينو د اجماع څخه هم مخالفه ده، ځکه دهمدې حديث په اول سر کې د ابوهريرة ﷺ فرمان داسې دى چې. (ترک الناس التامين).

يعنې ټولو خلکو امين بالجهرپريښې دى. ابوهريرة ﷺ په دې کې هيڅوک ندي مستثنى کړي، معلوميږي داچې په دغه وخت کې هيچا هم په زوره امين نه ويلو.

دابوهريرة ﷺ وفاة پـه نهـه پنځوسـمه (۵۹ هـ) کې شوی دی اوده خلافت راشده ليـدلی دی،
معلوميږي چې دصحابه وو اود تابعينو کبارو پـه دورکې هيڅاپه زوره امين نه دی ويلی، بلکه پـه ټول
خيرالقرون کې هيڅاهم په زوره امين ندی ويلی ،مشهورغيرمقلد محمد ابراهيم سيالکوټي په خپل کتاب
تاريخ اهلحديث کې دخيرالقرون حدود داسې بيان کړي دي چې سنه ۱۱ هپورې دنبوت زمانه وه بيا ترسنه
۱۱۰ هپورې دصحابه وو زمانه وه ،بيا ترسنه (۱۷۰ ه) پورې دتابعينوزمانه وه ،بيا ترسنه ۲۰۴ هـ يا ترسنه
۲۲۰ هـ پورې دتبع تابعينوزمانه وه ،سيدنا امام اعظم په سنه ۸۰ هـ کې پيدا شوی دی اوپـه سنه ۱۵۰ هـ
وفات شوی دی ،امام صاحب رحمه الله په ټول عمر کې په زوره امين ندی ويلی ،(موطا امام محمد) امام
مالک په سنه ۹۳ ه کې پيدا شوی دی اوپه سنه ۱۷۹ هـ کې وفات شوی دی ،امام مالک هم پـه پټه امين
ويلو (المدونة الکبری ج ۱ص ۷۳).

امام شافعي په سنه ۱۵۰ ه کې پيدا شوی دی اوپه سنه ۲۰۴ ه کې وفات شوی دی چې پـه يو روايت
تردې وخته پورې دتبع تابعينو زمانه ختمه شوه ،امام شافعي رحمه الله رحمه الله به هم مقتديانو تـه د پټ
امين ترغيب ورکولو . کتاب الام ص ۹۵ ج۱

**اتم جواب** : پدغه روايت کې دشپږو رکعتونو اود يولسو رکعتونو هيڅ تفصيل نه شته، لامذهبان
دحديث دکوم ځای څخه معلوموي چې مقتدي به صرف په شپږو رکعتونو کې امين پـه زوره وائي، اوپـه
پاتې يوولسو رکعتونو کې به يې پټ وائي .

**نهـم جـواب** : ددې حديث اود وايـل بن حجر ﷺ دحديث پـه مابين کې چې لامذهبان يې دامين
بالجهر لپاره پيش کوي تعارض دی، ځکه چې په دې حديث کې دمسجد دکړنګيدو ذکر دی اودوايل ﷺ
په حديث کې داسې ذي چې .(سمعته وانا خلفه) نسائی ج ۱ص ۹۴) يعنې ما واوريدو اوزه يې شاته
ولاړووم نودا په دې دلالت کوي چې صرف يو کس واوريدلو . همدارنګه د حضرت ابوهريرة رضی الله
تعالى عنه په بل حديث کې د (حتى يسمع من يليه من الصف الاول) سره يې هم تعارض دی.

## دلامذهبو دروغ او خيانتونه

حافظ عبدالله روپړي دلامذهبو مشهور مناظروو، هغه په خپل كتاب كې چې په نامه د(اهلحديث كې امتيازي مسائل)دى ليكلي دي چې (د ابوهريره ﷺ څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ به كله (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ) وويلو نوامين به يې وويلوتردى چې داول صف نزدى خلكوبه واوريدلو)

داحديث ابوداودروايت كړى دى، اوابن ماجه هم روايت كړى دى، اوابن ماجه په كې داهم زيات كړي دي چې اول صف به كله درسول الله ﷺ امين واوريدلونود ډيرو امينونو څخه به مسجدو كړنگيدو، شوكاني په نيل الاوطاركې ليكلي دي چې داحديث حاكم هم روايت كړى دى اوفرمايلي يې دي چې دبخارى اودمسلم په شرط صحيح دى، او دارقطنى هم روايت كړى دى اوفرمايلي يې دي چې ددې سند صحيح دى اوبهيقى هم روايت كړى دى اوحسن يې ورته ويلي دي)انتهى.

لامذهبه شوكاني اولامذهبه عبدالله روپړي په دې حديث كې درې خيانته اودرې دروغ ويلي دي.

**اول خيانت** : په ابن ماجه كې په دې حديث كې د(فترك الناس التامين)الفاظ دي، يعنې ټولو خلكو امين پريښې دى، ددې څخه معلوميږي چې په دې دصحابه وو ﷺ اوتابعينو اجماع ده چې امين به جهرانه ويل كيږي . د لامذهبه دحديث داجمله نه رانقلوي.

**دوهم خيانت** :دالامذهبان دانه بيانوي چې ددې حديث يوراوي بشربن رافع انتهائي ضعيف دى

**دريم خيانت** : داهم نه بيانوي چې ددې حديث په سند كې يوراوي مجهول دى.

### او درې دروغ دادي:

**اول دروغ** :په دارقطنى كې ددې كړنگهاروالاحديث بالكل نه شته پاتې خولاداچې سندته يې صحيح ووائي.

**دوهم دروغ** : په مستدرك حاكم كې هم داحديث بالكل نه شته پاتې خولاداچې صحيح ورته ووائي.

**دريم دروغ**: په بهيقى كې هم د احديث بالكل نشته، پاتې خو لا دا چې حسن ورتـه ووائي، ددوى په دې مسئله كې نورهم بې شماره دروغ شته چې يوڅه يې دلته دنمونې لپاره رانقلوو.

(۱) دلامذهبو مشهور مناظر مستري نورحسين په خپله رساله (امين بالجهر) ص ۱۸) کې ليکلي دي چې (عبدالله بن عمر ﷺ به هميشه امين بالجهر ويلو، اوخلکوته به يې هم ددې امرکولوچې امين بالجهرووائي) (بخاری، ج ا ص ۱۰۸)

حالانکه دابرګ دروغ دي، دبخاری په دې روايت کې دجهرلفظ بالکل نشته، که چاثابت کړويوکړوړديناره به ورته انعام ورکړم، هلته الفاظ داسې دي چې (کان ابن عمر لايدعه (اى التامين) ويحضهم).

(۲) دهمدې رسالې په ص ۲۲ ص ۲۳ کې يې دحضرت ابن عباس ﷺ حضرت انس ﷺ حضرت عايشي ﷺ اوحضرت معاذبن جبل ﷺ څخه احاديث رانقل کړي دي، چې دهغې خلاصه داده چې: (يهوديان دمسلمانانوسره په درې شيانوحسدکوي: اول په امين بالجهر، دوهم په ربنا لک الحمد او دريم په سلام). حالانکه دا بالکل نه شته، دلته هم که چاجهرلفظ ثابت کړو مذکورانعام به ورته ورکړم. امين الله لامذهبه هم دا دروغ رانقل کړي دي. [الحق الصريح /ج ۴ /ص ۲۵۵].

د فقهي په کتابونوهم ددروغوحوالې ورکوي دمثال په توګه لاندې حوالې وګورئ.

(۴) دلامذهبوپـه مشـهورکتاب (حقيقـة الفقـه) چـې دمولـوى محمـد يوسـف جـى پـورې غيرمقلدتصنيف دى، پـه ص ۱۹۴ کـې دامين پـه بـاره کـې يـې پـه يـوه سـاه دهـدائي، شـرح وقـائي، اودرمختارپسې څلوردروغ تړلي دي، په يوځای کې يې ليکلي دي چې (امين دقبوليت مهردى) اوحواله يې په (هدايه، ج ا ص ۳٦۴) ورکړې ده.

په بل ځای کې يې ليکلي دي چې (احاديث دامين بالجهرپه اثبات کې راغلي دي اوحواله يې په (هدايه، ج ا ص ۳٦۵) شرح وقايه، ص ۹۷) ورکړې ده.

په بل ځای کې يې ليکلي دي چې (مقتدي کله دامام امين واوري نوامين دې ووائي) اوحواله يې په درمختار، ص ۲۲۹ ج ۱) ورکړې ده.

داټول دروغ دحقيقـة الفقـه پـه (۱۹۴) صـفحه کـې درج دي. پـه هدايـه شـرح وقايـه اودرمختـارکې داخبرې بالکل نشته، که چاثابتې کړې يوکړوړديناره ورته انعام دی، اوپه دې مسئله کې يې يوډيرعجيب

دروغ دهدائي پورې داويلي دي چې صاحب دهدائي ليکلي دي په (جلداول صفحه ۳۶۳) کې چې. (ابن همام دپټ امين احاديثو ته ضعيف ويلي دي) اوحواله يې په (هدايه ،ج ١ص ٣٦٣) ورکړې ده.

داڅومره عجيب دروغ دي؟ هدايه دشپږمې صدۍ کتاب دی، او ابن همام په نهمه صدۍ کې تيرشوی دی، او د هدايې شارح دی، نو د ابن همام څخه په درې سوه کاله مخکښي کتاب کې په ابن همام څرنګه حواله ورکړل شوې ده؟ حقيقة الفقه د لامذهبو مرکزي کتاب دی، دنن زمانې دغيرمقلدينو په کتابونو کې وربانديې بې شميره حوالې دي، اودغير مقلدينو دهرې کتابخانې زينت دی .[وګوره الحق الصريح او التحقيق السديد چې دامين الله پشاوری کتابونه دي په حقيقة الفقه ډيری حوالی ورکوي].

حکيم صادق سيالکوټي په خپل کتاب [صلوة الرسول ، ص۲۴۰ / و فی البعض ص ۱۹۳] کې ليکلي دي چې د رسول الله ﷺ د زمانې څخه ترننه پورې په مسجد نبوی کې مسجد د آمينونو څخه کړنګيږي، حالانکه دا بالکل دروغ دي، په خلافت راشده ،خلافت اموي، خلافت عباسی، خوارزمي، سلجوقي او ترکي ټولو خلافتونو کې په سوونو کلونو پټ امين ويل کيده. د يوسل او يايمې هجری څخه ترديارلس سوه شپږ شپيتمې هجری پورې د حرمينو امامان او خطيبان احناف وو.

مستري نور حسين په خپله رساله (امين بالجهر، ص ۳۱) کې ليکلي دي چې د امين بالجهر لپاره يوسل او پنځه دلايل دي ، حالانکه د دوام او د سنتيت جهر لپاره يو ضعيف حديث هم نه دی موجود.

## د عبدالله بن زبير رضی الله عنه اثر

لامذهبان د حضرت عطاء روايت هم پيش کوي چې امن ابن الزبير و من ورائه حتی ان للمسجد للجنة. (بخاری ، ج١ص ١٠٧).

(١) دا روايت په بخاری کې بې سنده دی اولامذهبان وائي چې بې سنده روايت لره هيڅ اعتبار نه شته . (امين الفتاوی ، ج /۲۸۵). په مصنف عبدالرزاق کې ئې سند شته، نو هلته په سند کې ابن جريج دی. ابن جريج په مکه مکرمه کې (۹۰) متعی کړی وي، او جايز به يې ورته ويلی او سخت مدلس وو. وګوره [تهذيب التهذيب/ ج ۶/ ص ۴۰۵ / طبقات المدلسين لابن حجر/ ص ۹۵ / الفتح المبين/ لزبير

علی زيی / ص ۵۵ ] . او د دريمې طبقې مدلس و، نو غير مقلدين دلته قران او حديث د يوی متعه خانې په دروازه کې ذبح کوي .

(۲) بل راوی يکې مسلم بن خالد دی چې وهمي و .

امام ابوداود او امام ابوحاتم فرمايي چې : (لا يحتج به) او امام بخاری رحمه الله چې : (منکر الحديث) [الترغيب والترهيب / للمنذری / ج ۵ / ص ۵۳۵ ] . امام ساجي فرمايي چې : (کثير الغلط کان يری القدر) [ميزان الاعتدل / ص ۱۶۵۳ ] . امام ابن حبان فرمايي چې : (کان يخطئ احياناً) . امام ابن سعد فرمايي چې : (کثير الغلط) . امام دارمی فرمايي چې : (ليس بذاک فی الحديث) . يحيی بن معين ورته (منکر) ويلې . [تهذيب التهذيب / ج ۱۰ / ص ۱۲۹ و ۱۳۰ / تقريب / ص ۴۹۱ ] .

الباني ليکي چې : (ففيه علتان عنعنة ابن جريج و هو مدلس والثانی ضعف مسلم [....../ اصل صفة الصلوة النبی صلی الله عليه وسلم / ج ۱ / ص ۳۲۹ ] .

(۳) : ددې روايت اول راوي عبد الرزاق د دريمې طبقې مدلس دی . [ طبقات المدلسين لابن حجر / ص ۶۹ / الفتح المبين از زبير علی زيی / ص ۴۵ / جزء منظوم لبديع الدين راشدی / ص ۸۹ ] . او د لا مذهبو په نزد د دريمې طبقې د مدلس حديث بغير د تصريح بالسماع څخه نه قبليږي .

(٤) : عبد الله بن زبير رضی الله عنه او ورسره نور خلک ټول امتيان دي او د امتيانو اقوال او افعال حجت نه دي ، اګرچه صحابه وي . نواب صديق حسن خان ليکي چې : (وفعل الصحابی لا يصلح للحجة) [التاج المكلل / ص ۲۰۷ ] .

(٥) - او بل دا چې داد خلافت راشده څخه وروسته د حجاج بن يوسف د زمانې واقعه ده او لامذهبان د خلافت راشده د زمانې شل رکعته دائمي تراويح و ته بدعت وائي او د خلافت راشده څخه وروسته يو ځلې امين بالجهر ويل شوی بيا هم ورته سنت وائي .

(٦) او په دې کې دا هم نه شته چې داد لمانځه واقعه وه او که د لمانځه څخه بهر شاه صاحب رحمه الله فرمايي چې : ( و لعله حين كان يقنت فی الفجر علی عبدالملک و كان هو يقنت علی ابن زبير . و فی مثل هذه الايام تجری المبالغات ) [ فيض الباری / ج ۲ / ص ۲۹۰ / باب جهر الامام بالتامين ] .

(۷) - اوکه په لمانځه کې وي نو بيا دانده معلومه چې دو لاالضالين څخه وروسته يې ويلی دی اوکه دقنوت نازله په وخت کې يې ويلې دی ځکه چې عبدالله بن زبير ﷺ دحجاج له خوا محاصره وو.

## د حضرت عطاء رَحِمَهُ اللَّهُ اثر

امام بيهقی پخپل سند باندې رانقلوی چې: وَأَخْبَرَنَا أَبُو يَعْلَى حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ الصَّيْدَلَانِيُّ أنبأ أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ الْقَطَّانُ، ثنا أَحْمَدُ بْنُ مَنْصُورٍ الْمَرْوَزِيُّ، ثنا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ شَقِيقٍ، أنبأ أَبُو حَمْزَةَ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ أَبِي أَيُّوبَ،(وَالصَّحِيحُ خَالِدبْن ابى نوف) عَنْ عَطَآءٍ رَحِمَهُ اللَّهُ قَالَ: " أَدْرَكْتُ مِائَتَيْنِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْمَسْجِدِ إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ۷]، سَمِعْتُ لَهُمْ رَجَّةً بِآمِينَ ". [سنن بهيقى ج۲/ ص۵۹ طبع اداره تاليفات اشرفيه ملتان].

حضرت عطاء رحمة الله عليه فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ دوه سوه صحابه پدې مسجد کې ليدلي دي، چې کله به امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين وويلو نو ما به ددوی کړنګاهاری په آمين واوريدلو.

دا حديث موضوعی دی.

۱- ددې په سند کې ابوبکر محمد بن الحسين دروغژن دی، علامه خطيب بغدادی دده په باره کې ليکي چې :محمد بن الحسين بن شهريار ابوبکر القطان: سمعت ابابکر الاسماعيلی، يقول: سمعت ابن ناجيه، يقول: يکذب يعني ابن شهريار يروی عن سلمان توبة النهروانی، وقد مات قبل أن يسمع منه. [تاريخ بغداد ج۲/ ص۲۳۲].

۲- ددې حديث يو راوی علی بن الحسن دی اثر ته اعتبار نه ورکوي، هغه فرمايي چې: وقال ابوعمار الحسين: قلت له: هل سمعت كتاب الصلوة من أبی حمزة السکری؟ فقال: نعم، سمعت ولكن نهق حمار يوماً فاشتبه علی حديث فلا أدری أی حديث هو؟ فتركت الكتاب كله، تهذيب التهذيب ج۷/ ص۲۹۹ كتاب الكفاية بغدادی ص۲۳٤].

حضرت ابوعمار حسين بن حديث رحمة الله عليه فرمايي چې: ما د خپل استاذ علی بن الحسين رحمة الله عليه څخه پوښتنه وکړه چې آيا تا د خپل استاذ ابوحمزه سکری رحمة الله عليه څخه (كتاب الصلوة) اوريدلی دی؟ هغه راته وويل چې: اوريدلی مې دی لکن يوه ورځ ما احاديث اوريدل چې په دې کې يو خره اوازونه

شروع کړل، نو ما باندې په یو حدیث کې اشتباه راغله، نو زه پوه نه شوم چې هغه حدیث څرنګه دی؟ لدې وجې ما د خپل استاذ څخه اوریدلي ټول کتاب الصلوة پرېښودلو. نو تعجب دی چې ددې اثر راوی دې اثر ته بې اعتماده وایي او غیرمقلدین یې د اعتماد وړ ګڼي.

(۳) ابو حمزه محمد بن میمون السکری رحمة الله علیه اګر چې د محدثینو په نیز ثقه دی، لکه ابن عبدالبر فرمایي چې: لیس بالقوی. امام نسائی فرمایي چې په آخر کې ړوند شو، امام ابن القطان فرمایي چې مختلط الحدیث دی. [تهذیب التهذیب ج۹/ ص۴۸۶، ۴۸۷].

(۴) د دې روایت په سند کې خالد بن أبی نوف مجهول دی، خپله متعصب لامذهبه زبیر علی زئی هم ورته مجهول الحال وایي. القول المتین ص۴۹].

ناصرالدین ألباني لیکي چې دا اثر ضعیف دی فرمایي چې: فعلته جهالة خالد بن أبي نوف، فانه لم یرو عنه الا اثنان: أحدهما: مطرف هذا- وهو ابن طریف- یونس بن أبی اسحق، فهو فی عداد مجهولی العدالة، وتوثیق ابن حبان له لایفید، لما علم من تساهله فی التوثیق، فظهر من هذا البیان انهما لایصلح للاحتجاج بهما ولعله من أجل ذلک رجع الشافعی عن قوله القدیم. [أصل صفة صلوة النبی ج۱/ ص۳۸۰].

پدې روایت کې علت د خالد بن ابی نوف مجهولوالی دی، دده څخه صرف دوه کسان روایت کوي، یو مطرف بن طریف او بل یونس بن أبی اسحق –نو دا په مجهولینو کې شمیرلی شي، او د امام حبان توثیق فایده نه لري، ځکه چې د هغه تساهل مشهور دی، ددې څخه دا ظاهره شوه چې دا اثر د استدلال لپاره صلاحیت نه لري او کیدای شي چې د همدې وجې څخه امام شافعي د خپل قول قدیم څخه رجوع کړې وي، فان قیل: چې حافظ ابن حجر رحمة الله علیه خو لیکي چې: مقبول من السادسة؟ قلنا: چې داد حافظ صاحب رحمة الله علیه خپله اصطلاح ده، هغه د مجهولو راویانو په باره کې همدا سې لیکي.

(۵) دا هم ندي ثابته چې د حضرت عطاء ملاقات دی ددوه سوه صحابه وو رضي الله عنهم سره شوی دی، حسن بصری رحمة الله علیه دده څخه مشر وو، بیا هم د هغه ملاقات د یوسلو شلو صحابه وو سره شوی وو.

## د ابوهريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث

كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَآءَةِ أُمِّ الْقُرْآنِ رَفَعَ صَوْتَهُ.قال الدارقطني رحمه الله: حديث حسن وقال البيهقي رحمه الله: صحيح .

كله به چې رسول الله ﷺ د سورة فاتحې د قراءت څخه فارغ شو نو په اوچت اواز يې امين وويلو.
[صحيح ابن حبان رقم ۱۸۰۳ صحيح ابن خزيمة ج۱/ ص۲۸۷۵ باب الجهر بآمين عند انقضاء].

۱- دا حديث صحيح نه دی بلکه دروغ دی ځکه چې دديٍ په سند کې اسحق بن ابراهيم بن العلاء بن زبيرق الزبيدی الحمصی دی، امام ابوداؤد فرمايي چې : ليس بشيءٍ. امام نسائی فرمايي چې : ليس بثقة. د حمص محدث امام محمد بن عوف الطائی فرمايي چې: دروغژن وو. [ميزان الاعتدال ج۱/ ص۸۵]. حافظ ابن حجر د امام محمد بن عوف څخه رانقلوي چې : ما أشک ان اسحق بن زبيرق يکذب. يعنې دا راوي يقيني دروغژن دی. [تهذيب ج۱/ ص۲۱۶] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: صدوق يهم کثيراً و اطلق محمد بن عوف أنه يکذب. [تقريب ۳۳۰] علامه نور الدين هيثمي فرمايي چې: اسحق بن زريق قلت: وتأتی أحاديث بمقلو بها. [مجمع الزوايد ج۱/ ص۸۱]. علامه ذهبي رحمه الله فرمايي چې ضعيف دی. [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۲۸۴].

۲- په دې حديث کې د ابن زريق استاذ عمرو بن الحارث الحمصی مجهول دی. علامه ذهبی فرمايي چې: عمرو بن الحارث الزبيدی الحمصی، عن عبدالله بن سالم الاشعری فقط، ولم نسخة تفرد بالرواية عنه اسحق بن ابراهيم زِبرِيق، ومولاة له- فهو غير معروف العدالة وزبريق ضعيف [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۲۸٤].

۳- د رفع الصوت څخه متنازع فيه آمين بالجهر نه ثابتيږي- مونږ وايو چې کله کله به رسول الله ﷺ آمين بالسر د تنفس د زور سره دومره ويلی چې د اول صف نزدې خلکو به اوريدلو، په رواياتو کې هم همداسې راځي چې: يسمع من يليه من الصف الأول.

۴- د ابن خزيمة په حاشية کې د الباني په خواله ليکل شوي دي چې اسناده ضعيف.

۵- امام زهري دغير مقلدينو دتحقيق مطابق مدلس دی، (نور العينين صـ ۱۱۸)

## د ابوهريرة اثر

ابوهريرة رضي الله عنه به امام ته ويلې چې ګورئ زما څخه آمين مه فوتوئ. [بخاري تعليقاً] ۱- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: ومراد أبي هريرة أن يؤمن مع الامام داخل الصلوة فتح الباری ج۲/ ص۳٤۰ طبع دار السلام رياض]. دابو هريرة رضي الله عنه مقصد دا وو چې په داخل د مانځه کې د امام سره آمين ووايئ.

د ابوهريرة رضي الله عنه ددې اثر څخه صرف د امين فضيلت رامعلوميږي، د بخاری په الفاظو کې صرف دومره دی چې ابوهريرة رضي الله عنه به امام ته اواز کولو چې خيال کوه چې زما څخه آمين تېر نه شي، او د نورو رواياتو څخه معلوميږي چې دا هغه وخت وو چې مروان حضرت ابوهريرة رضي الله عنه مؤذن جوړ کړی وو. مروان به په مونځ کې عجله کوله- نو ابوهريرة رضي الله عنه ورباندې شرط کيښودلو چې داسې به نه کوې چې زه اذان کوم د اذان خانې څخه لانه يم راغلی چې تا مونځ شروع کړی وي او زما څخه آمين فوت شي. [فتح البـاری ج۲/ ص۳٤۰ طبع رياض دار السـلام]. همداسې شرط ابـوهريرة رضي الله عنه پـه بحـرين کـې د آذان د خدمت د قبلولو په وخت کې هم لګولی وو په بحرين کې علاء بن الخضرمی رحمه الله امام وو. ابن ابی شيبة رقـم۸۰٤۵] مصنف عبدالرزاق رقـم ۲۶۳۷] طبقـات ابـن سـعد ج۴/ ص۳۶۰] فـتح البـاری ج۲/ ص۳٤۰] نوپدې کې د جهر لپاره هيڅ استدلال نه شته.

## د حضرت بلال رضي الله عنه حديث

عن بلال: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: لاتسبقني بآمين. [مستدرک حاکم رقـم۸۲۸]. حضرت بلال رضي الله عنه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: زما څخه مخکې آمين مه وايه. ۱- پدې حديث کې هم د جهر لفظ نه شته. فـان قيـل: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم څه خبر وو چې حضرت بلال مخکې آمين وايي، معلوميږي چې حضرت بلال رضي الله عنه په جهر ويلې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم پدې خبر شوی وو؟ قلنا: پـه بهيقی ج۲/ ص۲۲ کې راغلي دي چې: أنـه سـأل النبی صلى الله عليه وسلم فقـال: لاتسـبقنی بـآمين حضرت بلال رضي الله عنه درسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه کړې وه چې آيا زه ستاسو څخه مخکې آمين ويلی شم؟ نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم ورتـه وفرمايـل چې: زما څخه مخکې آمين مه وايه لهذا دا د آمين بالسر لپاره دليل دی.

(٢) همدارنګه دا حديث مضطرب دی ځکه چې ددې په عکس داسې روايت هم شوی دی چې عن بلال أنه قال: يا رسول الله ﷺ لاتسبقني بآمين. [مسند أحمد رقم٢٤٣٨٠].

بلال رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته وويلې چې زما څخه مخکې آمين مه وايه، يعنې هسې نه چې زه لا د آذان خانې څخه نه يم راکوز شوی او تاسو سورة فاتحه ختمه کړې وي او آمين مو ويلی وي، نو ماته لږ انتظار کوئ چې زه هم د رسره په آمين کې شريک شم.

## د سفيان په طريقه د حضرت وايل رضي الله عنه حديثونه

دحضرت وايل رضی الله عنه څخه څلورتابعينو روايت کړی دی (١) حجر بن عنبس رحمه الله (٢) علقمه بن وايل رحمه الله (٣) عبد الجبار بن وايل (٤) عاصم بن کليب رحمه الله د حجر بن عنبس رحمه الله شاګرد سلمه بن کهيل دی او د سلمه بن کهيل څخ شعبه رحمه الله (اخفی بها صوته) روايت کړی دی کما مر او حضرت سفيان رحمه الله ترېنه (مدّبها صوته) روايت کړی دی پدې روايتونو کې ځکه تعارض نه شته، چې دمدّ او ديمدّ معنی جهر نه دی بلکې معنی ئې داده چې آمين به ئې دالف ممدوده سره ادا کولو دحضرت سفيان رحمه الله څخه دجهر يو روايت هم ندی راغلی.

**علقمه بن وايـل:** دحضرت عقلمه بن وايل رضي الله عنه هم دوه شاګردان دي يو حجر بن عنبس رحمه الله او دوهم ابو اسحق، امام شعبه رحمه الله دحجر بن عنبس رحمه الله په طريقه خفض يعنی رو اواز روايت کړی دی او دابو اسحق به طريقه ئې (يجهر بأمين) روايت کړی دی اول دوهم سند داسې دی: سلمة بن کهيل عن حجربن عنبس عن علقمه عن وايل رضی الله عنه، او دوهم سند داسې دی چې: شريـک عـن ابي اسحق عن علقمه بن وايل، عن ابيه، قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يجهر بأمين مسـند احمد رقم (١٩٠٧٤) لکن دلته خو اول شرييک وهمي او ضعيف دی يجهر لفظ دده هم نتيجه ده، دوهم دا چې ددواړو روايتونو په مينځ کې ځکه تعارض نه شته چې دلته دجهر څخه هغه جهر مراد دی چې په اول صف کې نزدې خلک ئې واوري اود داخفاء سره منافي نه دی، او يا په اول سند باندې عادة مستمره بيان شوی دی او په دوهم سند باندې دضرورت دتعليم له وجې دجهر ذکر دی.

**حضرت عبدالجبار بن وايل:** پدې طريقه کې ابو اسحق تقريبا شپږ(٦) قسمه الفاظ روايت کوي(١) قال آمين مدّ بها صوته (٢) قال آمين فسمعته وانا خلفه(٣) فقا آمين يجهر(٤) فسمعناها منه (٥) قال آمين(٦) سمع النبي ﷺ يقول آمين .

**تفصيل سره داسې دى:**

**الف:** حدثنا عبدالله بن جعفر بن خشيش ، حدثنا الحسن بن احمدبن ابي شعيب يعنى الحرانى، حدثنا محمد بن سلمه، عن ابي عبدالرحيم، عن زيد بن أنيسه، عن ابي اسحق ، عن عبدالجبار بن وايل عن ابيه ، قال صليت خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم فلما قال ولاالضالين ، قال آمين مدّ بها صوته. دارقطني رقم(١٢٥٦) دلته دالف ممدوده ذکر دى دجهر نه شته .

**باء:** اخبرنا عبدالحميد بن محمد، قال حدثنا مخلد، قال حدثنا يونس بن اسحق، عن ابيه عن عبدالجبار بن وايل ، عن ابيه قال صليت خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم فلما كبر رفع يديه اسفل أذنيه فلما قرأ غير المغضوب عليهم ولاالضالين ، قال امين فسمعته وانا خلفه. نسائى رقم (٩٢٣) پدې روايت کې دوه خبرې دسوچ قابلې دي او دا چې حضرت وايل ﷺ په اول صف کې دنبي ﷺ شاته ولاړ وو، دوهم دا چې نبي ﷺ امين بالسر ويلى دى لکن حضرت وايل ﷺ اوريدلى دى امين بالسر هم دامام شاته مقتدي کله أوري که نبي ﷺ دتکبير په شان امين هم په جهره سره ويلى وي نو دحضرت وايل ﷺ دې وينا ته به بيا ضرورت نه وو چې :فسمعته وانا خلفه.

**ج:** ابو بكر بن عياش عن ابي اسحاق عن عبدالجبار عن ابيه، قال صلّيت معن النبى صلى الله عليه وسلم فلما قال: ولاالضالين قال امين فسمعنا ها منه . ابن ماجه رقم (٨٥٥) دلته هم فسمعنا ها منه دفسمعته په شان دامين بالسر مرادول اقرب دي.

**د:** په مصنف ابن ابي شيبه رقم(٨٠٤٢) کې دحديث الفاظ داسې دي چې : صليت خلف النبي صلى الله عليه وسلم فلما قال غير المغضوب عليهم ولاالضالين قال امين .

**ه:** په مسند احمد رقم(١٩٠٤٦) کې دابو اسحق عن عبدالجبار له طريقه داسې دي چې صليت خلفه ، فقرأ غير المغضوب عليهم ولاالضالين فقال امين يجهر . په روايت کې په جهر باندې تصريح ده

لکن دا روايت لـه دوو وجوهو څخه ضعيف دی آول دا چې: ابو اسحاق بيسـعي پـه اخر کې وهمي او مختلط العقل وو او دده څخه دزهير سماع بعد الاختلاط ده او دوهم دا چې دا حديث منقطع دی ځکه چې دعبدالجبار سماع دخپل پلار څخه نه ده ثابته همدارنګه عبدالجبار جهر لفظ نه دی ويلی بلکې د سمعته لفظ يئ ويلی دی نو کوم راوي دروايت بالمعنی په وجه ترېينه جهر جوړ کړی دی.

**عاصم بن کليب:** عن عاصم بن كليب عن ابيه عن وايل بن حجر رضي الله عنه انه سمع النبی صلی الله عليه وسلم يقول فی الصلوة امين. مسند احمد رقم(١٩٠) پدې حديث کې خو دجهر ذکر نه شته.

## دحضرت وايل رضي الله عنه دمختلفو تعبيراتو نتيجه:

دحضرت وايل رضي الله عنه په تعبيراتو کې دفکر کولو څخه وروسته داسې معلومېږي چې دحضرت وايل رضي الله عنه مقصد دا دی چې: ما چې دنبي صلی الله عليه وسلم امين په کوم انداز باندې اورېدلی دی نو په هغې کې دومره اخفاء هم نه وه چې يو مقتدي ئې هم وانه وري، او دومره جهر هم نه وو چې ټول مقتديان ئې واوري بلکې نبي صلی الله عليه وسلم دا اخفاء سره سره په داسې انداز سره امين وويلو چې شاته نزدې مقتديانو واورېدلو او زه دنبي صلی الله عليه وسلم پسې بالکل نزدې شاته ولاړ وم، په دې ټولو تعبيراتو کې اصل تعبير دا رامعلومېږي چې: فسمعته وانا خلفه باقي، مد، رفع، جهر، اخفی، او خفض ټول روايت بالمعنی دي معنی داده چې اخفاء هم وه او دالف مد هم وو، او شاته نزدې مقتديانو هم واورېدلو، او شاته دنزدې مقتديانو اورېدل د سِر سره منافي نه دي، دحضرت وايل رضي الله عنه الفاظ هم په دې دلالت کوي ځکه چې حضرت وايل رضي الله عنه خپله سماع په دليل سره ثابتوي چې: وأنا خلفه دی يعنی دنبی صلی الله عليه وسلم امين ټولو مقتديانو نه وو اورېدلی او ما ځکه واورېدلو چې زه دنبي صلی الله عليه وسلم شاته نزدې ولاړووم او دومره اورېدل د سِر سره منافي نه دي

## دسفيان په طريقه دحضرت وايل رضي الله عنه دحديث تفصيل

و به قال حدثنا بندار، حدثنا يحي بن سعيد و عبدالرحمن بن مهدی قالا حـدثنا سـفيان عن سلمة بن كهيل عن حجر بن عنبس عن وايل بن حجر قال سمعت النبي صلى الله عليه وسلم قرء غير المغضوب عليهم

و لا الضالين وقال امين مد بها صوته . [ترمذى ص ، ٦٣ باب ماجاء في التامين / رقم: ٢٤٨ / و شرح السنة / رقم: ٥٨٦].

حضرت وایل بن حجر ﷺ فرمائي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چې (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ) يې ولوستلو وروسته يې امين وويلو او مد بها صوته .

(٢) وبه قال حدثنا وكيع حدثنا سفيان عن سلمة بن كهيل عن حجر بن عنبس، عن وايل بن حجر ﷺ قال سمعت النبي ﷺ قرء غير المغضوب عليهم ولاالضالين فقال: آمين، يمد بها صوته. [مسند أحمد رقم١٩٠٤٧ مصنف ابن أبي شيبة رقم ٨٠٤٣] محلى لابن حزم ج٣/ ص١٥٧].

(٣) وبه قال حدثنا عبدالله بن أبي داؤد السجستانى، حدثنا عبدالله بن سعيد الكندي، حدثنا وكيع والمحاربي قالا: حدثنا سفيان عن سلمة بن كهيل عن حجر أبى العنبس وهو ابن عنبس عن وايل بن حجر قال: سمعت النبى ﷺ اذا قال غير المغضوب عليهم ولاالضالين قال: آمين يمد بها صوته، قال ابوبكر: هذه سنة تفربه اهل الكوفة. [دارقطنى رقم١٢٥٢].

(٤) وبه قال حدثنا عبدالله بن ابى داؤد السجستانى، حدثنا عبدالله بن سعيد الكندى، حدثنا وكيع والمحاربي قالا: حدثنا سفيان عن سلمة بن كهيل، عن حجر أبى العنبس وهو ابن عنبس عن وايل بن حجر قال سمعت النبى ﷺ : اذا قال غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين، قال آمين يمد بها صوته. قال ابوبكر: هذه سنة تفرد بها أهل الكوفة.

(٥) وبه قال حدثنا على بن عبدالله بن مبشر، حدثنا احمد بن سنان، ح وحدثنا ابو محمد بن صاعد، حدثنا يعقوب الدورقى، قالا: حدثنا عبدالرحمن حدثنا سفيان، عن سلمة، عن حجر بن عنبس قال سمعت وايل بن حجر- قال سمعت النبى ﷺ قرأ غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين، فقال آمين مدّ بها صوته- قال عبدالرحمن أشد شيء فيه، أن رجلاً كان يسأل سفيان من هذا الحديث فاظن سفيان تكلم ببعضه خالفه شعبة فى اسناده ومتنه. [سنن دارقطني رقم١٢٥٤].

وایل بن حجر ﷺ فرمايي چې رسول الله ﷺ غير المغضوب عليهم ولاالضالين څخه وروسته د مد سره آمين وويلو ، عبد الرحمن بن مهدي فرمايي چې پدې حديث کې سخته غلطي داده چې يو سړي د سفيان ثوري رحمة الله عليه څخه ددې حديث په باره کې پوښتنه وکړه نو زما په گومان سفيان ثوري رحمة الله عليه نيل

الفاظ وويل او پوښتنه کوونکي بيل الفاظ وويل، امام شعبة رحمه الله د دې حديث په سند او په متن کې اختلاف رانقل کړی دی.

(٦) حدثنا ابوعبدالله الحافظ ، حدثني على بن حمشاد، حدثنا يزيد بن الهيثم، حدثنا ابراهيم بن ابى الليث، حدثنا الاشجعى عن سفيان مثله وقال رأيت رسول الله ﷺ لما قال غيرالمغضـوب عليـهم ولاالضالين قال: آمين يمد بها صوته. [سنن كبرى بهيقى ج٢/ ص٥٧].

(٧) د امام بخاري رحمه الله د جزء القراءت دوه نسخې دي: په يوه نسخه کې د امام محمد بن يوسف الفريابي رحمه الله نوم دی او بله کې د عبدالله بن يوسف ذکر دی. [جزء القراءت ص٢۶] دا دواړه د خپل استاذ سفيان رحمه الله څخه د يمد بها صوته الفاظ روايت کوي. [جزء القراءت رقم٢٣۴].

(٨) حدثنا محمود قال حدثنا البخاري، قال حدثنا محمد بن كثير وقبيصة قالاحدثنا سفيان، عن سلمة بن كهيل عن حجر عن وايل عن النبى ﷺ نحوه. وقال ابن كثير رفع بها صوته. [جز القراءت بخاري رقم ٢٣٥].

نو قبيصه د يمد بها صوته لفظ روايت کوي او محمد بن کثير د رفع بها صوته لفظ روايت کوي. لکن محمد بن کثير کثير الخلط وو. [تفصيل به راشي].

(٩) د خلاد بن يحيى په يو موضوعي روايت کې هم د رفع بها صوته لفظ دی: أخبرنـا ابوطـاهر الفقيه من أصله ابو طاهر محمد بن الحسن المحمدابادى حدثنا العباس بن محمـد الدورى، ثنـا ابـو داؤد الحفرى عن سفيان الثوري ح: وحدثنا ابو عبد الرحمن السلمى، انبأنا أحمد بن محمد بن عبدوس الطرايفى، ثنا معاذ بن نجدة، ثنا خلاد بن يحي انبأنا سفيان عن سلمة بن كهيل عن حجر بن عنبس عن وايل بن حجر- قال كان النبى ﷺ اذا قال آمين، رفع بها صوته، لفظ حديث الفقيه. وفى رواية السلمى قال سمعت النبى ﷺ اذا قال ولا الضالين قـال: آمـين، رفـع بهـا صـوته فى الصـلوة. [سـنن الكبرى بهيقى ج٢/ ص٥٧].

دا روايت موضوعي دی، خلاد بن يحيى متكلم فيه راوی دی. [ميزان الاعتدال ج١/ ص٣٠٨] دده شاګرد معاذ بن نجدة هم متكلم فيه راوي دی. [ميزان الاعتدال ج٣/ ص١٧٨]. د امام بهيقى استاذ محمد بن الحسين بن محمد بن موسى ابوعبدالرحمن السلمى المتوفى ۴١٢هـ.

خطيب بغدادي دده په باره کې ليکي چې: وقال لى محمد بن يوسف القطان ، وكان ابو عبد الرحمن السلمى غيرثقة، ولم يكن سمع من الاصم الا شيئاً يسيراً. فلما مات الحاكم ابو عبدالله ابن المسبع، حدث عن الاصم بتاريخ يحي بن معين، وبأشياء كثيرة سواه وكان يضع الصوفيه الاحاديث. [تاريخ بغداد ج۲/ ص٢٤٨]. يعنې دا راوی ثقه نه دی، ده د محمد بن يعقوب الاصم څخه ډېر لږ شيان اوريدلي وو ، کله چې امام حاکم وفات شو نو ده د اصم رحمه الله څخه (په دروغو) د يحيى بن معين تاريخ بيانولو ، او ددې تاريخ څخه ماسوی يې نور هم ډېر شيان بيانول ،او د صوفيه وو لپاره به يې د دروغو حديثونه بيانول. علامه ذهبي فرمايي چې: ضعيف، قلت الف حقايق التفسير فأتى فيه بمصايب، وتأويلات الباطنية نسأل الله العافية. [تذكرة الحفاظ ج٣/ ص٢٣٤].

سلمی د حقايق التفسير په نوم کتاب وليکلو ، چې ډېر مصيبتونه او د باطنيه وو تاويلات يې پکې راوړه، د الله ﷻ څخه غواړو چې د دوی د شر څخه مو وساتئ. علامه محمد طاهر ليکي چې: وتفسير ابى عبد الرحمن السلمى ان كان قد اعتقد انه تفسير فقد كفر. [مجمع البحار ج۳/ ص۵۱۰ بحواله ازالة الريب ص۲۳۴]. د سلمی د تفسير په باره کې که چا په اعتقادي طور وويل چې دا تفسير دی نو دا کافر شو.

د محمد بن کثير په روايت کې هم د رفع بها صوته لفظ دی.

(۱۰) وبه قال حدثنا محمد بن كثير اخبرنا سفيان عن سلمة عن حجر بن العنبس الخضرمى عن وايل بن حجر رضي الله عنه قال كان رسول الله ﷺ اذا قرأ (ولا الضالين) قال: (آمين) ورفع بها صوته [ابو داؤد رقم ۹۳۳].

لکن يحيى بن معين د محمد بن کثير په باره کې فرمايي چې: لاتكتبوا عنه لم يكن بالثقة. [ميزان الاعتدال ج٣/ ص١٢٦]. يعنې دده څخه احاديث مه ليکئ ځکه چې دا ثقه راوي نه دی، په تهذيب ج۹/ ص۴۱۸ کې هم دي چې دا راوي ثقه نه دی، دا راوي كثير الغلط دی. [تقريب ص۵۳۴ تهذيب الكمال ج۹/ ص۲۹]. نو دا په اصل حديث کې د رفع بها صوته لفظ نه دی بلکه د مدّ بها صوته لفظ دی.

## د جوابونو تفصيل

**اول جواب:** دا حديث تاسو په لسو سندونو باندې وکتلو ، پدې يو کې هم د مانځه ذکر صراحةً نه دی راغلی، او د لامذهبانو په نيز باندې قياس د شيطان کار دی، نو ددې احاديثو څخه د مانځه د آمين لپاره

استدلال نه دی صحيح، ځکه چې پدې يو کې هم د مانځه ذکر صراحةً نه شته، صرف په يو موضوعي روايت کې د في الصلوة لفظ راغلی چې په نهم نمبر کې وليکل شو. حافظ ابن حجر رحمه الله د سفيان ثوري رحمه الله له طريقې د وايل بن حجر رضي الله عنه په حديث کې د صليت خلف رسول الله ﷺ الفاظ رانقل کړي دي. [تلخيص الحبير ج۳/ ص۳۴۸]. لکن دا د حافظ ابن حجر رحمه الله زبردست وهم دی، پدې روايت کې دا الفاظ د دنيا د کتابخانو د حديثو په هيڅ کوم کتاب کې ندي راغلي، صحاح ستة خو لا پرځای پريږده.

همدارنګه د لامذهبو شيخ الکل نذير حسين دهلوي هم ليکلی دي چې: و حديث وايل أخرجوه من طريق الثوري بلفظ صليت خلف رسول الله ﷺ فلما قال (ولا الضالين) قال : آمين، ومد بها صوته. [فتاوی نذيريه ج۱/ ص٤٤٦] چې دا دوهم غلا ده، د سفيان ثوري رحمه الله په هيڅ سند باندې هم داسې الفاظ نه دی روايت شوی.

**دوهم جواب :** ددې روايت دارمدار په حضرت سفيان ثوری رحمه الله دی، په دې حديث کې د حضرت سفيان ثوری رحمه الله لس شاګردان شو او هغه شاګردان دا دي.

(۱) حضرت اشجعی رحمه الله [ بيهقی/ ج ۲ / ص ۵۷ ].

(۲) حضرت عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله [ دارقطنی/ رقم: ١٢٥٤ ].

(۳) حضرت عبدالله بن يوسف رحمه الله [ جزءالقرائت/ ٢٣٤ ].

(٤) حضرت محمدبن يوسف رحمه الله [ جزءالقرائت/ ص٢٦ ].

(۵) حضرت قبيصه رحمه الله [ جزءالقرائت / رقم: ٢٣٥ ]

(٦) حضرت وکيع رحمه الله [ مسند احمد/ رقم: ١٩٠٤٧ / محلی / ج ٣ / ص ١٥٧ ]

(۷) حضرت يحيي بن سعيد رحمه الله [ ترمذی / رقم: ٢٤٨ ].

(۸) حضرت محاربی رحمه الله [دارقطنی/ رقم: ١٢٥٢].

دې اتو واړو شاګردانو پخپل روايت کې د (مدبهاصوته) لفظ رانقل کړی دی چې په جهر کې نص ندی بلکې معنی يې داده چې رسول الله ﷺ به د امين الف او يا راکش کوله.

(۱) حضرت ملاعلی قاري فرمايي چې (مد بها) اي بالکلمة يعنی فی آخرها وهو مدٌّ عارضي، ويجوز فيه الطول، والتوسط، والقصر، او مد بألفها فانه يجوز قصرها ومدها، وهو مد البدل، ويجوز فيه الاوجه الثلاثة ايضاً. [مرقات المفاتيح ج۲/ ص٥٢٧ طبع مکتبة عثمانيه کويټه].

(رسول الله ﷺ آمين د مد سره وويلى) يعني د آمين د كلمې په آخر كې چې كوم مد دى هغه يې آداء كړو دا مدعارضي دي، پدې كې طول، توسط، او قصر، درې واړه جايز دي، يارسول الله آمين د الف د مد سره ادا كړو، پدې كې مد او قصر دواړه جايز دي، دا مد دى پدې كې مذكورې دواړه وجې جايزې دي.

(۲) پـه بهيقـي ج۲/ ص۵۷ كې د (وطـول بهـا) لفظ هم مروي دى چې پـه مد كـې صريح دى او همدا معنى متعينه كوي.

(۳) امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چې په آمين كې مد او قصر دواړه جايز دى، او مد افصح دى، ځكه چې پدې كې روايات راغلي دي : السنة في التأمين ان يقول آمين، وقد تقدم بيان لغاتها، وان المختـار آمين بالمد وتخفيف الميم وبه جاءت روايات الاحاديث. [شرح مهذب ج۳/ ص١٧٤].

(۴) حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چې : آمين وهي بالمد والتخفيـف فى جميـع الروايـات وعـن جميع القراء [فتح البـاري شرح صـحيح البخـاري ج۲/ ص٣٣٩ طبـع دار السـلام الريـاض ١٤١٨هـ ].صرف دوو شاگردانو درفع بها صوته الفاظ رانقل كړي دي:

يو محمد بن كثيردى چې د هغه په روايت كې د (رفع بهاصوته) لفظ وو. د محمد بن كثيرپه نوم په تقريب كې پنځه كسان دي يو ثقفى دى چې كثيرالغلط و. بل عبدى دى چې بعضو ورته ضعيف ويلى دى، دريم كوفي، څلورم بصرى، او پنځم شامى دى، داټول ضعيف وو، تقريب ص ۵۳۴ تهذيب الكمال ج ۹ ص۲۹ دوهم روايت د خلاد دى چې موضوعي دى كما سبق تفصيله. خلاصه دا چې: د رفع بهاصوته روايت شاذ، منكر او موضوعي دى.

**فان قيل:** چې د سفيان ثوري رحمة الله عليه دوه متابعه موجود دى، چې د رفع صوته بآمين الفاظ پكې دى، نو معلوميږي چې د مد بها صوته ترجمه مد ندى بلكه جهر دى.

**قلنا:** كه د (مد بها صوته) ترجمه جهر وى، نو امام عبدالرحمن بن مهدي به ورته غلط نه ويلې. [دار قطني رقم ١٢٥۴] همدا رنگه به سفيان ثوري رحمة الله عليه هم د جهر په خلاف عمل نه كولو.

(۲) پدې دوو متابعو كې د علاء بن صالح الاسدى ترمذى رقم ۲۴۹ په روايت كې د نحوه لفظ دى، په ابوداؤد رقم ۹۳۳ مصنف ابن ابى شيبه رقم ۳۰۶۴ كې د فجهر بآمين لفظ دى، په ابوداؤد رقم ۹۳۳ كې اگر چې د علي بن صالح نوم راغلى دى، لكن دا وهم دى، لكه څرنگه چې حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چې: د ابوداؤد پـه روايـت كـې ده تـه علي بن صالح ويـل هم وهم دى. [تهـذيب التهـذيب ج۸/

ص۱۸۴ په څومره کتابونو کې چې دا روايت راغلی دی، راوی علاء بن صالح راغلی دی، وګوره مصنف ابن ابی شيبة ۳۰۶۴ ترمذی رقم ۲۴۹، المعجم الکبير ج۲۲/ ص۴۵ متعصب غير مقلد زبير علی زئی هم ددې اقرار کوي. [القول المتين ص۳۲].

او علاء بن صالح انتهايی ضعيف راوي دی، علامه ذهبی رحمه الله فرمايي چې : اعيان من عين الشيعة. [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۲۱۳]، اثار السنن ص۹۸]. دوهم متابع محمد بن سلمة بن کهيل دی، دده په باره کې علامه ذهبی ذاهب الحديث او واهی الحديث ويلی دی. [اثار السنن ص۹۸]. نو دده متابعت ته هيڅ اعتبار نشته، او همدارنګه دده د مفصل روايت څرک نه لګيږي امام دارقطنی په رقم ۱۲۵۵ کې او امام بهيقی په سنن کبری ج۲/ ص۵۷ کې صرف د محمد بن سلمة بن کهيل د روايت حواله دهٔ او سند يې ندی بيان کړی، ددې څخه معلوميږي چې د محمد بن سلمة بن کهيل د ضعف سره سره په دې روايت کې يو څه نوره کمزوري هم شته دی.

**دريم جواب** : په دې حديث کې د مقتدي لفظ نشته بلکه په دې حديث کې دا دی چې (نبی ﷺ) امين وويلو ( ومدبها صوته).

نولامذهبان مقتديان څرنګه ددې حديث څخه د مقتديانو امين بالجهر ثابتوي؟ د غير مقلدينو په هر کتاب، هره رساله، او هر مسجد، او مدرسه باندې يې ليکلي دي چې (اهلحديث کے دو اصول: اطيعول الله والرسول) نو دلته ولې ددې دوو څخه بيزاره شول او قياس يې شروع کړو؟ يعنې د لمونځ لفظ قياساً ثابتوي، او همدارنګه بيا مقتدي په امام قياسوي.

**څلورم جواب** : دسفيان ثوری رحمه الله روايت په ترک درفع اليدين کې هم شته چې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائي (الا اصلي بکم صلوة رسول الله ﷺ قال فصلي فلم يرفع يديه الا في اول مرة).

کله چې دسفيان ثوری رحمه الله دا روايت غير مقلدين واوري نو په سفيان ثوری رحمه الله دومره بمبارکوي چې د انسانيت د چوکاټ څخه په کې ووځي. وګوره دلامذهبو کتابونه مثلا (جلاء العينين فی اثبات رفع اليدين) او الحق الصريح ج۴ ص۸٦ وغيره نو لامذهبان دترک درفع اليدين حديث ته دده له وجهې ضعيفه وائي او دامين حديث ته يې قوي وائي.

در کفر هم صادق نيستی زينار را رسوا مکن

**پنځم جواب** : لامذهبان دترک درفع اليدين په باره کې چې کله دسفيان ثوری رحمه الله حديث وګوري، نو په چيغو خپل ستوني شکوي چې سفيان مدلس دی . وګوره التحق الصريح ج ۴ ص ۸٦ بحث رفع اليدين مشهور لامذهبه مبارکپوري ليکلي دي چې د مدلس عنعنه نده قبوله .(ابکار المنن ، ص ۲۲۵ ) نو دامين په حديث کې لامذهبان دسفيان رحمه الله عنعنه ولې قبلوي ؟

**شپږم جـواب** :سفيان ثوری رحمه الله کوفي دی، اولامذهبان چې دهداية النحو دلوستلو څخه وروسته دخپل اجتهادپه نشه کې مست شي، نو بياد خپلې معدې غلا ظت په خوله راوباسي، او وائي چې دکوفي دخلکو روايت بې نوره وي، اوچې دکوفيانو څخه درته زراحاديث دررسيدل نونهه سوه نوي په کې وغورزوه اوپه پاتې لسو کې يې هم شک کوه . ( حقيقة الفقه ،ص ۱۰۱). نونده معلومه چې نن ولې دکوفيانوپه څنګ کې دسهوی سجده کوي .

**اووم جواب** : خپله دسفيان ثوری رحمه الله مسلک پټ امين ويل دی . ابن حزم ظاهری رحمه الله فرمايي چې: ( ان سفيان الثوری و اباحنيفة يقولان أن المأموم يقولها سِرّاً . ذهبوا الی تقليد عمر بن الخطاب و ابن مسعود رضی الله تعالی عنهم. [ محلی ابن حزم /ج ۲/ ص ۲۰٦ / ج ۳ / ص ۲٦٤ / بتحشيه احمد شاکر/ شرح المهذب ج ۳ص ۲۷۳ ] .اولامذهبان چې کله دخپل اجتهادرباب ترنګوي، نووائي چې څوک امين په پټه وائي هغه دسنتو څخه منکردي، يهودي دی، وغيره وغيره . ليکن نن دهغه سفيان ثوری چې په پټه امين وائي دروايا تو څخه څرنګه استدلال کوي ؟

**اتم جواب** : خپله حضرت وايل بن حجرؓ هم اخرپه کوفه کې وسيدلو ، او اهل کوفه وو پټ امين ويلونو دوائلؓ مسلک هم په پټه دامين لوستل شو .

**نهم جواب** : خپله حضرت وايل بن حجرؓ د امين په باره کې فرمائي ( رأيت النبی صلی الله عليه وسلم دخل فی الصلوة فلما فرغ من فاتحة الکتاب قال ( امين ) ثلاث مرات ) [ مجمع الزوايد/ ج ۲ / ص ۲۳۸ / رقم : ۲٦٦۷ / باب التامين / و قال رواه الطبرانی فی الکبير و رجاله ثقات/ طبع دارالکتب العلمية/ بيروت ] .يعنی رسول اللهﷺ درې ځلې امين وويل. خو دا يې په درې لمونځو کې ويلې دی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: دا درې آمينه په جهر باندې په دريو لمونځونو کې وو . د حديث معنا دا نه ده چې: ګواکې حضرت نبی کريم صلی الله عليه وسلم په يو رکعت کې درې ځلې آمين

ویلې دی. [بحواله معارف السنن/ج ۲/ص ۴۰۹/العرف الشذی/ج ۱/ص ۱۳۳]. (رواه الطبرانی فی الکبری ورجاله ثقات مجمع الزواید.

راځئ چې خپله د حضرت وایل بن حجر ﷺ څخه پوښتنه وکړو چې رسول الله ﷺ دادرې ځلې امین بالجهر د څه حکمت لپاره ویلې دی؟

حضرت وایل بن حجر ﷺ فرمائي ( ماأراه الا لیعلمنا) یعنی زمونږ د تعلیم لپاره رسول الله ﷺ دادرې ځلې امین بالجهر وویلو.

د روایت الفاظ داسې دي چې: عن ابی سکن حجر بن عنبس الثقفی قـال: سـمعت وایـل بـن حجر الحضرمی یقول: رأیت رسول الله ﷺ حین فرغ من الصلوة حتی رأیت خده من هـذا الجانـب ومن هذا الجانب وقرأ غیرالمغضوب علیهم ولاالضالین فقال آمین یمد بها صوته، ما أراه الا لیعلمنا. (کتاب الاسماء والکنی للدولابی/ رقم: ۱۵۵۸/ ج ۱ص ۱۹۶) والتعلیق الحسن حاشـیه اثارالسـنن ،ج ۱ص ۹۳ ) اوپه بعضو چاپونو کې ص ۱۰۰ باب الجهر بالتامین.

د دې په سند کې یحیی بن سلمه بن کهیل دی، علامه هیثمی ﷺ فرمائي چې جمهورو ده ته ضعیف ویلي دي او ابن حبان ﷺ ورته ثقه ویلي دي، بیا یې وضاحت کړی دی، چې کوم روایات ده څخه دده ځوی روایت کړی دی هغه منکرروایات دي، او دغه روایت دده څخه دده ځوی ندی کړی، لدی وجهې بالکل صحیح دی. [کتاب الثقات لابن حبان/ص ۶۵۵/رقم الترجمة: ۱۱۶۳۰/تاریخ الثقات للعجلی/ص ۴۷۲/رقم الترجمة: ۱۸۰۸/ (په صحیح ابن خزیمه کې د وضع الیدین قبل الرکبتین د نسخې له پاره دده د حدیث استدلال شوی دی) /ج ۱/ص ۳۱۹/رقم: ۶۲۸/باب ذکر الدلیل علی ان الامر بوضع الیدین قبل الرکبتین منسوخ]. نو معلومیږي چې د امام ابن خزیمه په نزد هم دا راوي ثقه دی.

د رسول الله ﷺ په زمانه کې چاپخاني نه وې چې هر سړي ته یې لیکلي مسئلې ورکړې وی، بلکې چې څوک به نوی راغلو رسول الله ﷺ به دد غه نوي مسلمان لپاره لمونځ په زوره لوستلو چې هغه ته یاد شي.

(۱) مثلاپه بخاری او په مسلم کې متفق علیه حدیث دی چې رسول الله ﷺ به کله لمونځ خلاص کړونو په اوچت اواز به یې تکبیر ویلو. (بخاری، ج ۱ص ۱۱۴ /مسلم، ج ۱ص ۲۱۷ / ابوداود، ج ۱ص ۱۴۳)

امام شافعی رحمه الله ددې په باره کې فرمائي چې دایې صرف دتعلیم لپاره په اوچت اوازلوستلی وو. (کتاب الام، ج ۱ص ۱۱۰) سنن کبری للبهیقی، ج ۲ص ۱۸۴/ نووی شرح مسلم، ج ۱ص ۲۱۷/ فتح الباری، ج ۲ص ۴۶۹/ عمدة القاری، ج ٦ص ۱۲٦)

(۲) همدارنګې دبخاری او دمسلم متفق علیه حدیث دی چې رسول الله ﷺ به کله کله دماسپښین اومازیګرپه لمانځه کې کوم ایت په اوچت اوازلوستلو. مسلم ص ۱۸۵ باب القراءة فی الظهروالعصر داهم صرف دتعلیم لپاره وو.

(۳) همدارنګې حضرت حذیفه ﷺ فرمایي چې مادرسول الله ﷺ سره د شپې لمونځ کولوماوریدل چې رسول الله ﷺ لوستل الله اکبر والجبروت. (نسائی، ۱۱۳)

(۴) حضرت براءبن عازب ﷺ فرمائي چې مادرسول الله ﷺ پسې د ماسپښین لمونځ کولواوماترینه دسورة لقمان ایت واوریدلو. (نسائی، ج ۱ص ۱۱۳)

(۵) همدرانګې صحابه وو ﷺ درسول الله ﷺ څخه درکوع اود سجدې تسبحیات، اوتشهد، اودعاګانې اوثنااوریدلې دي، چې په احادیثو کې په کثرة سره راغلي دي. (نسائی، ج ۱ص ۴۲۴، ۳۰۰، ۳۵٦/مسلم اردومترجم، ج ۲ص ۳)

(٦) همدارنګې حضرت عمر ﷺ (سبحنک اللهم) په اوچت اوازلوستلې وه، لکه څرنګه چې په کتاب الاثاراوطحاوی کې ذکرشوي دي.

(۷) نن سباچې ماشومانو ته لمونځ ورښودل کیږي نوهم په زوره ورته لوستلی شي، لکن سنت مؤکده ورته نه وائي، نوکه امین بالجهرثابت هم شي نودنفس ثبوت څخه یې سنت موکد والی نه ثابتیږي مثلا: رسول الله ﷺ په ولاړی متیازې کړي دي. (بخاری، ج ۱ص ۳۵) رسول الله ﷺ دحایضې بی بی سره مباشرت کړی دی. (بخاری، ج ۱ص ۴۴)

رسول الله ﷺ په روژه کې بی بی خکل کړې ده (بخاری، ج ۱ص ۲۵۸) رسول الله ﷺ دلمانځه څخه مخکې بی بی خکل کړی ده. رسول الله ﷺ به ویده کیدوپداسې حال چې جنب به وو. (بخاری، ج ۱ص ۴۲).

رسول الله ﷺ په يوه جامه کې لمونځ کړی دی ،مسلم ج۱ص ۱۹۸ ،ابوداود ج۱ص ۹۲ ،نسـائی ج۱ص ۱۲٤ ،ابن ماجه ص ۷۳ ،طحـاوی ج۱ص ۱۸۵ ،مسـنداحمدج۲ ص ۲۳۰ وص ۲۳۹ وص ۲٦۵ دارمی ص ۱٦۵ دارقطنی ص ۱۰۵ ].

نو دا ټـول افعـال ثابت دي خو سـنت نـدي کـه سـنت وي، نو غير مقلدين ولـې صرف پـه يـوه خـولی، ياصرف په يوبنين اوياصرف په يو قميص کې لمونځ نه کوي؟ ځکه چې په حديث کې خوديوې جامې تعين ندی شوی، همدارنګه صرف د رسول الله ﷺ څخه د امين بالجهر د ثبوت څخه سنتوالې نه ثابتيږي، ترڅو چې دوام پرې ثابت شوې نوي، ياتر اخري وقت پورې د امين ويل ترينه ثابت شوي نوي.

**لسم جواب**: په دې حديث کې د لامذهبانو مکمله دعوه نشته، ځکه روزانه په امام پسې اولس رکعته لمونځ کېږي، غير مقلدين په شپږو رکعتونو کې آمين بالجهر او په يوولسو رکعتونو کې بالسِرّ وايي. نو د شپږو رکعتونو تخصيص اود يوولسو رکعتونو استثناء دوي له کوم ځای څخه ثابتوي ؟

## د سفيان رحمه الله د روايت دوه شاهدان اود هغې ځواب

غير مقلد زبير علی زيی ليکي چې: داسې ويل کېږي چې عبد الجبار بن وايل هم د خپل پلار څخه د آمين بالجهر مفهوم روايت کړی دی. (عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنُ وَآئِلٍ رحمه الله، قَالَ: صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ أَسْفَلَ مِنْ أُذُنَيْـهِ، فَلَمَّـا قَـرَأَ {غَـيْرِ الْمَغْضُـوبِ عَلَـيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّينَ} [الفاتحة: ۷] قَالَ: «آمِينَ». فَسَمِعْتُهُ وَأَنَا خَلْفَهُ) [نسائی / رقم : ۹۳۲ / ابن ماجه / رقم :۸۵۵ ].

په ابن ماجه کې روايت داسې دی چې: (عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَآئِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا قَالَ: "وَلَا الضَّآلِّينَ" قَالَ "آمِينَ" فَسَمِعْنَاهَا)[ ابن ماجـه / رقـم : ۸۵۵ ]. پـه مسند احمد / رقم : ۱۹۸۷ کې الفاظ داسې دي چې: ( قال آمين بالجهر ).

د دې حديث اول راوي عبد الجبار دی، او امام بخاری رحمه الله ابن معين ،ترمذی ،نسـائي وغيره ټول په دې متفق دي چې عبد الجبار د خپل پلار څخه هيڅ روايت ندی اوريدلې. (ترمذی، ص ۲۲۹ ) اخر بـاب ماجاء فـي المـرءة اذا اسـتكرهت علي الزنـا. [نسـائی ،ج ۱ص ۱۴۲ / شرح المهـذب ،ج ۳ص ۱۰۴) نو دا روايت منقطع دی.

**دوهم راوي :** ددې حديث دوهم راوي ابواسحق سبيعى دى چې حافظه يې په اخر کې خرابه شوې وه. (نووى، ص ۱۷) او همدارنګه مدلس هم دى، او د مدلس عنعنې ته لا مذهبان ضعيفه وايي. [تحفة الاحوذى/ج ۱/ص ۱۴۰] او دده مرسلات قابل دقبلولو نه دى. (ترمذى كتاب العلل، ص ۵٦۴) نو دا حديث قابل داستدلال نه دى.

په سنن نسائى کې دوايل بن حجرؓ دا الفاظ دي چې ( فلما قرء،غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَـيْهِمْ وَلَاالضَّآلِّيْنَ) قال امين فسمعته واناخلفه. (نسائى ،ج ۱ص ۱۴۷) قول الماموم اذاعطس خلف الامام . يعنې زه د رسول اللهﷺ پسې وروسته ولاړووم، نو ما د پيغمبر عليه السلام امين واوريدلو.

نو دومرهٔ اواز چې وروسته يې صرف يو يا دوه کسان واوري، جهر ورته نه شي ويلي. مثلا امام په جهرى لمانځه کې قرائت په دومره اواز ووائي چې صرف يو يا دوه کسان يې واوري، يا تکبيرات دانتقال صرف په دومره اواز ووائي چې صرف يو يا دوه کسان يې واوري نو ټول لمونځ کونکي وائي چې ده جهر نه دى کړى، نو دا داسې جهر نه وو لکه نن سبا چې دلامذهبو عادت دى بلکې صرف دتعليم لپاره وو ځکه چې وايل بن حجرؓ نوى اسلام راوړي وو صرف دده د تعليم لپاره نبىﷺ جهر کړى وو.

دوهم شاهد : زبير على زيى ليکي چې: ويل کېږي چې علقمه هم د (يجهر بامين) حديث د خپل پلار حضرت وايل رضى الله عنه څخه روايت کړى دى [مسند احمد /ج ۴/ص ۴۱۸].

۱- ددې روايت په سند کې يو راوي شريک بن عبدالله القاضى دى. حافظ ابن حجر دده په باره کې فرمايي چې: ( صدوق يخطىٔ كثيراً تغير حفظه منذ ولى القضاء بالكوفة ) [ تقريب / ص ۹۷ ].

۲- همدارنګه په دې کې هغه جهر مراد دى چې په اول صف کې نږدې خلک يې واوري او هغه د اخفاء سره منافي نه دى.

۳-دا جهر هم د تعليم له پاره و. كما مرّ.

## دحضرت ابوهريرة ﷺ حديث

قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا تَلَا {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّينَ} [الفاتحة: ۷]، قَالَ: «آمِينَ»، حَتَّى يَسْمَعَ مَنْ يَلِيهِ مِنَ الصَّفِّ الْأَوَّلِ. (ابوداود،ج ۱ص ۱۳۵).

يعني رسول الله ﷺ به په دومره اوازامين ويلوچې په اول صف کې نزدې کسانوبه اوريدلو.

**اول جواب** : ددې حديث په سند کې بشربن رافع دی چې اتفاقا کمزورئي دي، او ابوعبدالله ابن عم ابی هريره ﷺ مجهول دی. (ميزان الاعتدال، ج ١ص ١٤٧) نورتفصيل مخکې تيرشوی دی.

دحضرت ابوهريره ﷺ حديث په دارقطني اوحاکم کې هم شته لکه ابوسلمه اوسعيدچې فرمائي چې حضرت ابوهريره ﷺ فرمايلي دي چې رسول الله ﷺ به په اوچت اوازامين ويلو. (دارقطني، ج اص ١٢٧) حاکم،ج ١ص ٢٢٣).

ددې دسند مدارپه اسحق بن ابراهيم دی چې ابوداوداونسائي ورته ضعيف ويلې دی، او محمدبن عوف چې دحمص محدث وودروغژن يې ورته ويلی دی. (کاشف للذهبي) ميزان الاعتدلال، ج اص ٨٥).

دوهم راوي په کې عبدالله بن سالم دی چې ناصبي وو، اودحضرت علی ﷺ توهين به يې کولواوويل به يې چې دده په مدد عمر او عثمان شهيدان شو. (ميزان الاعتدال)

په دارقطني کې چې دې حديث ته حسن ويلی شوی دی نوصرف دخپل مذهب دحمايت له وجهې دي او اصل حقيقت ددې په خلاف دی لدې وجهې يې په کتاب العلل کې خپله ورته ضعيف ويلي دي دنن سبالامذهبان ددارقطني ځخه ددې روايت حسن والی رانقلوي، اودکتاب العلل ځخه يې ضعيف والی نه رانقلوي، په دې خيانتونو او فريبونودوی مذهب بناء دی په (دارقطني جلداول، ص ١٢٧) کې دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ اودحضرت ابوهريره ﷺ روايت درج دی، چې رسول الله ﷺ په اوچت اوازامين ويلی دی، لکن ددواړو په سندونو کې بحرالسقاء دی، چې خپله دارقطني ورته ضعيف ويلي دي، اوددې سره سره دايو خاصه واقعه ده چې دتعليم لپاره وه، خپله دابوهريره ﷺ قول مخکې تيرشوچې (فترک الناس التامين) ټولو خلکو يعني صحابه وو اوتابعينو امين پريښی دی، ددې ځخه يې هيڅوک ندي مستثنی کړي.

## د اُم حصين حديث

ام حصين ﷺ په يوحديث کې فرمائي چې: ما به د زنانه وو په صف کې د حضرت رسول الله ﷺ آواز اورېده.. (زيلعي ج ١ص ٣٧١)

**اول جواب :** ددې حدیث په سند کې یو راوي اسماعیل بن مسلم مکي دی، چې امام احمد ، امام ابن معین ، امام ابن المدینی ، امام نسآئي ، ابن حبان ، بزار ، او حاکم ټولو ورته ضعیف ویلي دي . د ده د ضعف حال په لاندې کتابونو کې کتلی شئ ! [ مجمع الزوائد/ ج ۱ / ص ۲٦٤ / ۲۱۸/ ۲۸۵ / الترغیب والترهیب/ ج ۳ / ص ۲۰۵ / ترمذی/ ج ۱ / ص : ۳۲/ ۱۰۷/ ۱٦۸/ تهـذیب التهـذیب/ ج ۱ / ص ۳۳۲ / تذکره مقدسی/ ذیل موضوعات کبیر/ ص ۱۷۳/ میزان الاعتدال/ ج ۱ / ص ۱۱۵/ ۱۱٦/ تذکرة الحفاظ/ ج ۲ / ۷۵/ تقریب لابن حجر/ ص ۲٦/ تلخیص الحبیر/ ذیل شرح مهذب/ ج ۱ / ص ۲۵۵ / ۱٦۹/ ۲۲۸ / تهذیب التهذیب ، ج ۱ص ۳۲۲) وتهذیب الکمال ج۱ص ۵۰۸

**دوهم جواب :** ددې حدیث بل راوي هارون الاعور دی، چې رافضی شیعه دي . ( میزان الاعتدال ) تقریب ص ۵۹۸] نو د خلفاء راشدینو په خلاف د روافضو روایت څرنګه حجت شو ؟

**دریم جواب :** ددې حدیث بل راوي ابو اسحق مختلط او مدلس دی، نووي ص ۱۷].

**څلورم جواب :** ددې حدیث بل راوي ابن ام الحصین دی او هغه مجهول دی.

**پنځم جواب :** دا صرف دیو وخت واقعه ده نو که رسول الله ﷺ د زنانه وو د تعلیم لپاره کوم یو وارې امین بالجهر ویلي وي نو د هغې څخه دوام او سنت مؤکد والی نه ثابتیږي .

**شپږم جواب :** حضرت ام حصین ﷺ چې د رسول الله ﷺ امین د ښځو په صف کې اوریـ .نو ددې څخه صفا معلومیږي چې د رسول الله ﷺ مقتدیانو امین بالجهر نه ویلو . که د رسول الله ﷺ مقتدیانو امین بالجهر ویلی وی، نو د رسول الله ﷺ او از به د دوي په او ازونو کې ورک شوی وو ، او د زنانه وو صف ته به نه وورسیدلی .

**اووم جواب :** په دې حدیث هم د لامذهبو دعوه نه ثابتیږي ځکه په دې حدیث کې هم دا تفصیل نشته چې رسول الله ﷺ په شپږو رکعتونو کې په جهر امین ویلی دی، او په پاتې یوولسو رکعتونو کې یې پټ ویلی دي.

**اتم جواب :** په دې حدیث کې هم د مقتدیانو د امین بالجهر ذکر نه دی راغلی.

**نهم جواب :** ددې حدیث د هغو احادیثو سره تعارض دی چې په هغې کې راغلي دي چې: ( حتی یسمعها من یلیه من الصف الاول ).

## دحضرت علي ﷺ حديث

حضرت علي ﷺ فرمائي چې مادرسول الله ﷺ امين اوريدلې دى.

**اول جواب** : ددې حديث په سند کې حجية بن عدي دى دکوم په باره کې چې تقريب ليکلي دي چې (صدوق يخطى) رشتيني دي لکن خطاء کيږي . ص ١٩٢ ، او ابو حاتم فرمائي چې لايحتج بحديثه ،تهذيب الكمال ،ج٢ص ٣٣٨).

**دوهم جواب** : ددې حديث بل راوي ابن ابى ليلى دى چې غير مقلدينو درفع يدين په باب کې دده دضعيف ثابتولو لپاره دخپل دماغ اوبه وچې کړى .

**دريــــم جـــــواب** : پـه دې حـديث کـې دمستقل عـادت اودوام ذکرنشته او همـدارنګې دشپږو رکعتونوتخصيص اوديوولسو رکعتونو استثناء هم په کې نه شته .

**څلورم جواب** : خپله حضرت علي ﷺ امين په زوره نه لوستلو. (مجمع الزوايد ،ج ١ص ١٨٥) الجوهرالنقى ،ج ١ص ١٣٠) نوحضرت علي ﷺ هم ددې حديث څخه سنتوالې نه دى رافهمولى، که نه ددې حديث په خلاف به يې هيڅکله عمل نه وو کړى .

**نومحترمو!** لامذهبان چې شپه اوورځ داډول غږوي چې مونږ په احاديثو عمل کوو، مونږ اهل حديث يو، نورخلک دحديثو څخه منکردي، احناف په قياس عمل کوي، ليکن ددوي داحال دى چې ددوي سره داسې يو حديث هم نه شته چې په هغې کې رسول الله ﷺ حکم کړى وي، چې تاسو امين په زوره ووائي .

(١) لامذهبان دې په يو حديث کې درسول الله ﷺ امرثابت کړى چې نبى ﷺ په امين بالجهر امرکړى وي .

(٢) لامذهبان دى داسې يو حديث پيش کړى چې په هغې کې رسول الله ﷺ په امين بالجهر باندې ترغيب ورکړى وي، اودزيات اجراوثواب وعده يې وربانديې ورکړى وي .

(٣) لامذهبان دى يو داسې حديث پيش کړى چې په هغې کې راغلې وي چې رسول الله ﷺ ټول عمرپه اوچت اوازباندې امين ويلى دى .

(٤) لامذهبان دى داثابته کړي چې نبى کريم ﷺ ياصحابه وو په شپږو رکعتونو کې امين بالجهرويلى دى اوپه پاتې يوولسو رکعتونو کې يې پټ ويلى دى .

(۵) لامذهبان دي په عهد نبوي ﷺ او يا په خلافت راشده کې د يو داسې مسجد حواله پيش کړي، چې على الدوام په کې په شپږو رکعتونو کې په جهرامين ويلى شوى وي، او په يوولسو رکعتونو کې په کې پټ لوستل شوى وي.

لامذهبان چې کوم دوه درې ضعيف روايتونه پيش کوي په هغې کې صرف دومره دي چې رسول الله ﷺ چيرته په کوم وخت کې امين بالجهر ويلى دى، لکن د هغې داسې مثال دى لکه رسول الله ﷺ به چې کله د ماسپښين يا مازيګر په لمانځه کې قرائة په جهر لوستلو. په دې روايا تو کې هيڅکله داسې لفظ نشته چې په دې دلالت وکړي چې رسول الله ﷺ تول عمر امين بالجهر ويلى دي، په دې باره کې د لامذهبو سره صرف قياس دى، چې کله رسول الله ﷺ امين بالجهر ويلي دي، نو کيدې شي چې په همدى به يې دوام کړى وي، لکن د دوي دا قياس د نصوصو څخه مخالف دى.

که لامذهبان وائي چې مونږ په هغو روايا تو عمل کوو چې دوه درې ځلي پکې د امين بالجهر ذکر راغلي دى، نو مهرباني دي وکړي د رسول الله ﷺ په طريقه دي يې ووائي، يعنې صرف دوه يا درې ځلي دي ووائي، هغه هم د نوي مسلمان د تعليم لپاره، کچيرته نوي مسلمان ورته پيدا شي.

## دلامذهبو اخري حربه

دلامذهبانو په پوزو کې چې کله مهاروا چولى شو، او د کبر او د غرور د غوجلې څخه را ووېستل شول، نو بيا يې په کنځلو شروع وکړه، او چيغې يې شروع کړې چې: رسول الله ﷺ بيا بيا فرمايلي دي چې څوک امين بالجهر نه وائي هغه يهودي دي، يهوديان د امين بالجهر سره حسد کوي: الحق الصريح ج ۴ ص ۲۵۵).

**اول جواب**: د حضرت عبد الله ابن عباس رضى الله عنهما د حديث الفاظ داسې دي: (ما حسدتكم اليهود على شيءٍ ما حسدتكم على آمين فاكثروا من قول آمين.) [سنن ابن ماجه/ ص ٦١/ باب الجهر بآمين]. او د حضرت عايشې رضى الله تعالى عنها د حديث مبارک الفاظ داسې دي چې: (لم يحسدونا اليهود بشيءٍ ما حسدونا بثلاثٍ: التسليم والتأمين و اللّٰهُمَّ ربنا لک الحمد.) [سنن الكبرى للبيهقى/ ج ٢ / ص ٥٦/ باب التأمين]. همدارنګه د حضرت عايشې رضى الله تعالى عنها په يو روايت

کې الفاظ داسې دي چې: (ان اليهود قوم حسد وهم لا يحسدون على شئ كما يحسدون على السلام و على آمين. [صحيح ابن خزيمه/ ج ١/ ٢٨٨ / رقم: ٥٧٤/ باب الجهر بآمين عند انقضاء الفاتحة].

نو لکه څرنګه چې دلامذهبو مخکې خبرې دروغ وې نو همدارنګه ددې حديثونو څخه استدلال او امين بالجهر ترېنه مرادول هم بالکل دروغ دی، ځکه چې اول خو د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روايت صحيح نه دی ځکه چې د حضرت ابن عباس ﷺ په روايت کې طلحه بن عمرو دی چې ډير سخت ضعيف دی. محدثين ورڅخه په ( لا شئ، متروک الحديث، ليس بشئ، ضعيف، ليس بالقوى، ليس بالحافظ، و عامة ما يرويه لا يتابعه عليه، و كان يرى عن الثقات ما ليس من حديثهم، لا يحمل كتب حديثه الا على جهة التعجب ) ؛باندې تعبيرونه کوي. وګوره: [ تهذيب التهذيب/ج ٥/ ص ٢٥ ] نيل الاوطار/ج ٢/ ص ٢٢٩ / ميزان الاعتدال/ ج ٢ / ص ٢٦١/ رقم: ٤٣٦٦/ المغنى فى الضعفاء / رقم: ٢٩٥٧ ].

٢ - او د حضرت عايشې رضی الله عنها حديث هم ضعيف دی، ددې په سند کې د سهيل بن ابی صالح په باره کې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (تغير حفظه بآخره ) [ تقريب / ص ١٣٩٩ ] او د ده څخه دده شاګرد عبدالصمد المتوفى ( ٢٠٧ هـ ) قديم السماع نه دی . دا په ابن ماجه کې. او په مسند احمد کې على بن عاصم اتفاقاً ضعيف دی. او په دې کې د امين او سلام سره د ( ربنالک الحمد ) ذکر هم شته . [ بهيقى سنن کبرى ، ج ٢ص ٥٦ ) بلکې د قبلې ذکر هم دی . ( مجمع الزوايد / ج ١/ص ١٤٨/ رقم: ١٩٧٩/ و رقم : ٢٦٦٢ ] او لامذهبان خو سلام او ربنالک الحمد په اوچت اواز نه وائي نو په خپل اقرار په دريو حصو کې دوه حصې يهود شول .

٣ - او کله چې لامذهبان ځان ته لمونځ کوي نو امين، سلام او ربنا لک الحمد درې واړه پټ وايي، نو ددوی په اقرار ددوی په يهوديت کې څه شک پاتې شو؟

٤ - او همدارنګې لامذهبان د ماسپښين او د مازيګر په لمونځونو کې امين بالجهر نه وائي، حالانکه يهوديان په دغه وختونو کې په بازارونو کې وي او د سهار، ماښام او ماخوستن په وختونو کې امين بالجهر وايې او په دغه وختونو کې يهوديان په بازارونو کې نه وي . او دوی يې په دغه وختونو کې په جهر وائي . نو لامذهبانو لکه چې په دې معامله کې د يهودو سره سازش کړی دی

**دوهم جواب:**

په دې روايتونو کې په يو کې هم د جهر لفظ نه شته دا په کې يهودي صفته لامذهبان د خپل ځان څخه ورزياتوي، اصل خبره داده چې د حسد لپاره علم ضروري دی جهر ندی ضروري

(۱) گوره ربنالک الحمد پټ لوستل کيږي بيا هم نبی ﷺ فرمائي چې يهوديان ورباندې حسد کوي.

(۲) مقتديان (السلام عليکم ورحمة الله) پټ وائي بيا هم رسول الله ﷺ فرمائي چې يهوديان ورباندې حسد کوي.

(۳) او مونږ اهل سنت والجماعت احناف امين پټ وايو او لامذهبان ديهودو څخه هم زيات حسد راسره کوي، ځکه يهودو هيڅکله هم دامين ويونکو ته د مناظرې چيلنيج ندی ورکړی، او نه يې د دوي په خلاف کومه رساله ليکلې ده، او نه يې د احنافو په مسجد ونو کې فتنې او فسادونه جوړ کړي دي، او د دې برعکس لامذهبان څومره حسد راسره کوي؟ څومره رسالې او اشتهارونه زمونږ په خلاف چاپوي؟

**دحسد معنی :** د حسد معنی داده چې په محسود کې داسې کمال وي چې په حاسد کې نه وي او حاسد يې زوال غواړي، له دې وجهې د حاسد په برخه کې صرف او صرف سوزيدل وي، او علامه يې داوي چې د محسود پسې پوروپاگند کوي، اوس مونږ لامذهبو ته وايو چې په امين بالجهر کې څه خوبي ده؟ څه کمال دی په کې؟ د څومره زيات ثواب وعده ورباندې ورکړل شوې ده؟ چې هغه ثواب د احنافو په برخه نوي او ستاسو سره ورباندې حسد وکړي، د دې برعکس چې احناف پټ امين ووائي، نو د دوي امين د ملايکو د امين سره موافق شي، او رسول الله ﷺ په داسې آمين باندې د ثواب وعده ورکوي، چې د داسې امين د ويونکي مخکني گناهونه ټول معافيږي، او همدارنگې د قران د اشاراتو څخه معلوميږي چې په پټ امين ويونکي باندې د الله ﷻ رحمتونه نازليږي، نو يهود د احنافو سره ورباندې حسد کوي، چې ځرنگه صرف د خولې په خوزولو يې د ملايکو سره موافقت راغلو، د نبی ﷺ سره يې موافقت راغلو، د گناهونو معافي يې راغله، وغيره لکه په سلام او ربنالک الحمد چې حسد کوي، حالانکه پټ لوستلی شي، دلامذهبو سره به يهوديان ځرنگه حسد کوي؟ دوی خو د زيات ثواب څخه محروم دي، د ملايکو د موافقت څخه محروم دي، د نبی ﷺ پسې د اقتداء څخه محروم دی ...

**الغرض:** (۱) اول خو ددې حسد په باره کې دغه حاسدین ضعیف روایات رانقلوي.

(۲) بیا په دې روایاتو کې د جهر لفظ هم نشته.

(۳) د حسد د معنی څخه هم دا بې چاره ګان ناخبره دي.

## لطیفه

دلامذهبو په کتابونو کې طالبانو داحدیث لیدلی وو، چې نبی کریم ﷺ فرمائي چې: (یهود په دریو شیانو د مسلمانانو سره حسد کوي، په آمین، ربنالک الحمد او سلام) او دا یې هم لیدلي وو، چې لامذهبان د آمین سره د جهر ټکی د خپل ځان څخه ور زیاتوي.

نو شپږ کسان دلامذهبو مسجد ته ورغلل، او چې کله امام ولاالضالین وویلو، نو دوي دلامذهبانو سره په زوره امین وویلو، او چې کله امام سمع الله لمن حمده وویلو، دوی په جهر ربنالک الحمد وویلو، او د لمانځه په اخرکې یې السلام علیکم ورحمة الله هم په جهر وویلو.

نو د لمانځه څخه وروسته ټول لامذهبان پرې راټول شول، او په غوسه یې ورته وویل چې ربنالک الحمد او السلام علیکم مو ولې په زوره وویلې؟ دوي ورته وویل چې مونږ یهود لټول، هغه مو تاسو پیدا کړئ!

ځکه چې تاسو په خپلو کتابونو کې لیکلي دي چې یهود په دریو شیانو حسد کوي، او په دې دریو کې د امین څخه په زوره امین اخلی، نو په همدی حدیث کې دا نورد واړه هم د امین سره یو ځای ذکر شوي دي، نو د هغوی څخه به هم جهر مراد وي.

والسلام

رحیم الله الحقانی

۱۳۹۱/۲/۱۳هـ ش

حضرت حسن ﷺ اوحضرت حسین ﷺ داهل سنت والجماعت دسترگو یخوالی دی [الکامل لابن الاثیر ج۲ ص۶۲]

نبوي فرمان اهل سنت والجماعت د(يَّوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهٌ) مصداق دی.
[تفسیرالدرالمنثور،ج ۲ص ۶۳]

## دلامذهبه نیاز محمد عُرف امین الله البشاوری

## په کتاب (امین الفتاوی) باندې یو نظر

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وحده والصلوة والسّلام علي من لانبي بعده.

امابعدا

په زندان کې راته يو شخص د لامذهبه خنّاس امين الله کونړي چې د دروغو څخه ځان ته پشاوري وايي؛ دوه کتابونه راوړل په نامه د امين الفتاوی او الحق الصريح.

ددې کتابونو د انداز څخه معلوميده چې دادکوم عالم تصنيف ندی، بلکې دبی تحقيقه اوبی ربطه حوالو مجموعه ده، اومؤلف يې دنورو خلکو د بې ربطه حوالو رانقلولو ته خپل تحقيق ويلی دی.

امين الله په دې کتابونو کې مقلدينوپسې ،اودامامانوپسې، او د صحابه وورضی الله عنهم حتی چې دانبياؤپسې يې ډيره زهريله ژبه استعمال کړی ده مثلا: دالحق الصريح ج۱ص ۳۱۷ صفحه کې ليکلي چې زناپه درې قسمه ده اودريم قسم زنادانبيا وو ده ،(معاذالله) دباب الايمان بالقدرداتم نمبرحديث تشريح.

زه په زندان کې يم، اسباب راسره نشته اووخت هم نلرم، خو د مشت نمونه خروار په طريقه يې د آمين بالجهر په مسئله باندې هم ليکلو ته يو څه وخت ورکوم.

## الحق الصريح امين الفتاوی او آمين بالجهر

**اوله وسوسه دخناس**: لامذهبه امين الله ددې مسئلې لپاره باب تړلی دی چې (امين په زوره ويل سنت دي) (امين الفتاوی ،ج ۱ص ۲۵۳) نواول خوته دسنت مؤکده تعريف دقران اودحديث څخه صراحة وښايه دمقلدينو دکتابونو څخه غلامه کوه، بيا يو قراني أيت اويايو حديث صحيحه صريحه پيش کړه چې رسول الله ﷺ په زوره امين ته سنت ويلی وي، په حديث کې دسنت لفظ دامين بالجهرسره وښايه، او که نه يې شي پيش کولی اونه به يې پيش کړې ان شاءالله، نوبيا اقرار وکړه چې زمادا عنوان چې (امين په زوره ويل سنت دي )دقران اودحديث څخه مخالف دی.

## دلامذهبه امین الله څخه پوښتنه

ای لامذهبه ! تاعنوان لګولی دی چې : امین په زوره ویل سنت دي [ج ۱ص ۲۵۳ ].

نو دا مسئله منصوصي ده او که اجتهادي ؟ که منصوصي وي نو په قران یا حدیث صحیحه صریحه مرفوعه کې صراحة دامین بالجهر سره دسنت لفظ وښایه ؟ او که اجتهادي وي نو بیا د قران او حدیث څخه دمجتهد شرائط بیان کړه . او بیا داووایه چې په تاکې هغه شرائط شته او که نه ؟

لامذهبه حقیقت دا دی چې ستاپیروان دهغه احمق په شان دي چې دماهر سپیشلسټ ډاکټر پرځای یې دیونااهله مداري څخه علاج شروع کړی وي، دوی دخیرالقرون دمسلمو مجتهدینو پیروي پرېدي او ستاپه شان دصم بکم عمی جاهل مرکب پسې روانیږي .

لامذهبه امین الله لیکلي دي چې په امین بانديې خو علماوو مستقل کتابونه لیکلي دي چې دهغې کتل پکار دي. ( امین الفتاوی ، ج ۱ص ۲۵۴ ) اقول في دفع هذاالوسواس:

**الاخساء:**

(۱) عنوان دې خاص لګولی دی چې امین بالجهر سنت دی، او خبره دې عامه ذکر کړه ، چې په امین باندې علماوو مستقل کتابونه لیکلي دي . په مطلق امین باندې دکتابونو دلیکلو څخه خو امین بالجهر نه ثابتیږي، ځکه عام خاص لره نه مستلزم کیږي لکه حیوان انسان لره نه مستلزم کیږي .

(۲) تاپه همدې ګرنګ صفته کتاب ، ص ۲٦۷ ) کې لیکلي دي په عموماتو باندې استدلال کول داهل زیغو اومبتدعینو اود منکرینو دحدیث طریقه ده . ( امین الفتاوی ،ج ۱ص ۲٦۷) .

نو الحمد لله چې خپله ثیره دی پخپله راښکاره کړه چې په حقیقت کې ته د زایغینو ، بدعتیانو اود منکرینو د حدیثو څخه یې ، او رنګ داهلحدیث کاروې، لکه ستامشران ورونه منکرین حدیث چې رنګ داهل قرانو استعمالوي، او په حقیقت کې دقران څخه منکردي .

(۳) پاک وهند ته اسلام تقریبًا په سـ ۹۳ ـنه ه کې رسیدلی دی او ستاسو ډلګی په هند کې تقریباً په سـ ۱۲۹۳ ـنه ه کې پیدا شوې ده نو دسـ ۹۳ ـنه ه څخه تر سـ ۱۲۹۳ ـنه ه پورې یعنې په دولس سوه کلونو کې دیوې رسالې ادرس راکړه چې په پدې ملکونو کې په امین بالجهر باندې لیکل شوی وي، صرف

ديو اشتهار ادرس راکړه چې دامين بالجهر په باره کې چهاپ شوی وي د سـ۱۲۸۱ سنه ه څخه مخکې صرف ديو مسجد ادرس راکړه، چې صرف يو کس په کې امين په جهر سره ويلی وي.

زه په چيلنج سره وايم چې په دې ملکونو کې چې په دې موضوع څومره رسالې ليکل شوي دي، ټولې په هندوستان باندې دانگريزي دورې پيداوار دی. دلامذهبو مشهور مؤرخ امام خان په خپل کتاب (هندوستان مين اهلحديث کے علمی خدمات) کې ليکلي دي چې زمونږ اولنی ترجمه دقران نواب وحيد الزمان په سـ ۱۳۳۸ سنه ه کې ليکلي ده اودا دانگريزانو دوره وه، په بل ځای کې يې ليکلي دي چې زمونږ اول تفسير ثناء الله امرتسری ليکلی دی ص ۴۳ .چې داهم دانگريزي دوری پيداوار دی.

همدارنګه يې ليکلي دي (په افغانستان پاکستان او هندوستان کې) اول امين بالجهر مولوی شاه فاخر اله ابادی دډهلې په جامع مسجد کې وويلو، او دتقليد بکارت يې زايل کړو. (نقوش ابو الوفاء، ص ۳۴) نو په دې ملکونو کې اول امين بالجهر دانگريزانو په دوره کې ويلی شوی دی، اود انگريزانو په دوره کې دوهم امين بالجهر حافظ محمد يوسف پنشنر يعنی انگريزي ملازم وويلو. (نقوش ابو الوفا ، ص ۴۲)

داامين بالجهر په سنه ۱۸۶۰ ع ) کې ووييادغه حافظ محمد يوسف مرتد شو، اودقاديانيت په حالت کې مړشو. (اشاعة السنة، ج ۲۱ ص ۱۱۴).

په امرتسر کې دټولو څخه مخکې حافظ محمد يوسف په خپل گمان عمل بالحديث شروع کړو، اوبيادغه حافظ محمد يوسف ډپټي کلکټر پنشنر دغلام احمد قادياني حامي اوموید شو. (اشاعة السنة ،ج ۲۱ ص ۱۱۴ ]. په دې مسئله کې اوله چيلنج بازی مولوی محمد حسين بټالوی وکيل اهلحديث هند شروع کړه دغې لامذهبه دغلام احمد قادياني سره ډيرکومکونه کړي وو، اودهغه څخه يې ډيرې دعاگانې اخستې وې. (اخبار اهلحديث امرتسر ،ص ۹ کالم ،اص ۳۱ جنوری ،سبنه ۱۹۰۸ ع).

(۲) وسـواس: لامذهبه امين الله ليکلي دي: لـيکن زه ستاسـو د سـوال مختصر جواب اودهغه دلايلو مختصره تجزيه ذکر کوم چې دلته دامين بالسرلپاره ليکل شوې ده. (امين الفتاوی، ج اص ۲۵۴)

**الاخساء:**

(۱) لامذهبه په پښتو هم نه پوهيږي ځکه ده ليکلي دي چې (دهغه دلايلو مختصره تجزيه ذکر کوم چې دلته دامين بالسرلپاره ليکل شوى ده) نو (ليکل شوى دى) د ماضي صيغه ده.

ددې څخه معلوميږي چې ده مخکې دامين بالسرلپاره دلايل ليکلي دي، حالانکه ددې څخه مخکې دامين بالسرلپاره ده کوم دليل ندى ليکلې کيدى شي چې د (دلته) دلفظ څخه يې ګنج مرادوي چې دې په کې اوسيږي اود ګنج ددلايلو مختصره جايزه هغه نده چې ده ذکر کړي ده، بلکې تاريخ ثابته کړى ده چې دډالرو هضمول دي .اوددوى دروحاني پلرونو يعنى دانګريزانو دې پاليسى ته عملي جامه وراغوستل دي چې (ډيوائيډ اينډرول) وجنګوه او حکومت وکړه.

**(۲) همدارنګه لامذهبه امين الله ليکلي:** (مختصره تجزيه ذکر کوم) حالانکه صحيح لفظ جايزه ده پکاردى چې ويلى يې وى چې (مختصره جايزه الخ).

تجزيه ټوټه ټوټه کولوته وائي، او جايزه په عرف کې تحقيق کولوته وايي. دا د دوي علمي اندازه ده، چې په پښتو کې هم علمي صحيح اصطلاحات نه شي ذکر کولى، په عربى کې خو بالکل صم بکم عمى دى، مخکې يې په عربي کې يو کتاب ليکلى و په نامه د (فتاوى الدين الخالص) چې د عربيت په لحاظ پکې په هره صفحه کې غلطي وه، اوس اوريدل کيږي چې زوى يې په عربو کې د عربى کورسونه ويلي دي، اوخپل پلار د کتاب تصحيح يې شروع کړى ده. او حقيقت همدادى چې دلامذهبو دفرقې په ټوله دنيا کې نه د اصولو او نه د فروعو داسې کتاب شته چې د ټولو لامذهبو وربانديې اتفاق وي. دوي عوامو ته وايي چې قران او صحاح ستة زمونږ کتابونه دي، يا قران او حديث زمونږ کتاب دى، نو مونږ وايو چې ددې خبرې ستاسو سره څه دليل دى؟

په کوم ځاى کې اصحابو دصحاح ستة وو ستاسو په شان تقليد ته شرک او بدعت ويلى دى؟په صحاح ستة وو کې. په کوم ځاى کې دتقليد درد لپاره باب تړل شوى دى؟

(۳) لامذهبه امين الله دلته فتوى ورکوي او فتاوى الدين الخالص او امين الفتاوى ليکي اودامين دمسئلې جايزه اخلي لکه څرنګه چې وائي (تجزيه ذکر کوم)

نو مونږ وايو چې دامام بخاري رحمه الله داستاذ امام احمد رحمه الله څخه پوښتنه وشوه چې دمفتی کوم شرائط دي ؟

هغه ورته وفرمايل چې اول به مفتی دقران پاک پوره عالم وي، دوهم دا چې کم ازکم څلورلکهه صحيح احاديث به ورته يادوي، دريم داچې دصحابه وو رضی الله تعالی عنهم او تابعينو رحمهم الله تعالي په فتوو باندې به ورته پوره بصيرت وي، که دا شرائط په کې وو فتوی ورکول ورته جايزدی، اوکه نه وو نو بيا ورته دفتوی ورکول ندی جايز. (اعلام الموقعين، شروط الافتاء عند العلماء ج۱ ص ۴۵ /قواعد فی علوم الفقه، ص ۵ )

نولامذهبه امين الله چې ته فتوی ورکوې، نوپه قسم سره ووايه چې څلور لکهه خوپريږده څلوراحاديث دي دسند ونو دتفصيل او د تحقيق سره ياد دي اوکه نه ؟ مړه ته خو په پښتو هم نه پوهيږې چې مورنۍ ژبه دې ده! دقران او حديث خوبالکل نوم مه اخله! جاهله ته خو فرج او پوندۍ هم نه پيژنې! ستا کتاب دی په نامه د (التحقيق السديد) يعني د تقليد حقيقت ذ هغې په (۱۴۱) صفحه (۲۳) مسئله کې دې په هدايه اعتراض کړی دی، په هدايه ص ۸۸ کې د ساق لفظ دی او تا په ترجمه کې فرج ذکر کړی دی.

دامام بخاري رحمه الله استاذالاستاذ امام شافعي رحمه الله فرمائي چې: هيچاته هيڅکله ندی جايز چې ددين په مسئله کې چاته فتوی ورکړي. هغه څوک فتوی ورکولی شي چې په قران پاک پوهيږي ، د قران پاک د ناسخ منسوخ، محکم او متشابه علم ورسره وي ، د تاويل، تفسير، تنزيل، مکي او مدني ايتونو څخه پوره خبر وي او په دې ټولو خبرو د حضرت رسول الله ﷺ داحاديثو په باره کې هم پوهيږي.

اود علم لغت او شعر په باره کې هم بصيرت تامه ولري، اود علماو و په اختلاف اوپه وجوهو د اختلاف ښه پوه وي، نو داسې سړي ته فتوی ورکول جايزدي. اوپه چا کې چې دا شرائط نه وي، نو هغه سړي ته هيڅکله نده جايزه چې فتوی ورکړي. (اعلام الموقعين/ج ۱/ ص ۴۵)

نو امين الله ! په قسم سره ووايه چې په تاکې دا شرائط شته چې فتوی ورکوې؟ اوکه ته وايې چې احناف علماء هم په مدارسو کې دارالافتاء لري او فتوی ورکوي، حالانکه په هغوی کې هم دا شرائط نشته، نو ددې جواب د امام ابو حفص رحمه الله څخه واوره:

امام ابو حفص رحمه الله چې کله په جامعه منصور کې د افتاء په مسند کيناستو، نو محدث ابو اسحق رحمه الله ترينه پوښتنه وکړه چې ايا تاته د څلور لاکهه احاديثو د حفظ خبره ياده ده؟ امام ابو حفص رحمه الله ورته وفرمايل چې: هو! ياده ده راته.

نو امام ابو اسحق ورته وفرمايل چې کله تاته څلور لاکهه احاديث ندي يادنو ته څرنګه فتوی ورکوي؟

امام ابو حفص رحمه الله ورته وفرمايل چې زه په خپل قول فتوی نه ورکوم، بلکې د هغه مجتهد په قول فتوی ورکوم چې د څلور لاکهو څخه د زياتو احاديثو حافظ و. [اعلام الموقعين، ج ۱ ص ۴۵].

ددې څخه معلومه شوه چې د چا څلور لکهه احاديث نه وي ياد، نو هغه دې په خپل قول فتوی نه ورکوي، بلکې د يل مجتهد تقليد دې کوي.

امام بخاری رحمه الله هم داسې سړي ته د تقليد امر کوي لکه څرنګه چې مشهور لامذهبه غير مقلد نواب صديق خان په خپل کتاب (الحطه، ص ۱۴۸، ۱۵۰) کې د محدث د شرائطو په بيانولو کې يوه واقعه نقل کړې ده، چې يو سړی امام بخاری رحمه الله ته راغی او دا اراده يې ظاهره کړه چې زه غواړم چې محدث جوړ شم.

امام بخاری رحمه الله ورته وفرمايل: په دې فن کې قدم مه ږده، تر څو چې دا شرايط درکې نه وي.

د هر څه څخه مخکې ددې څلورو شيانو حصول ضروري دی.

(۱) د رسول الله ﷺ په مبارکو حالاتو او د رسول الله ﷺ د شريعت علم به در سره وي.

(۲) د صحابه وو رضوان الله عليهم حالات او مرتبې به درته معلومې وي.

(۳) په تابعينو او ددوي په حالاتو به پوره عالم وی.

(۴) د دين نامتو علماء او ددوي تاريخي حالات به درته معلوم وي.

او ددې څخه وروسته به ياد ساته چې ددوی ټولونومونه، او ددوی کنيتونه، ددوي ځايونه، او ددوي دژوند د زمانو معلومول، او داسې يې ضروري ګڼل لکه په خطبه کې چې د الله ﷻ ثنا، او په دعاء کې وسيله، او د قران د سورتونو سره بسم الله، او د لمانځه سره چې تکبير تحريمه ده

بيا دا پيژندل چې مسند حديثونه څو مره دي؟ مرسل حديثونه څو مره دي؟ او موقوف څو مره دي؟

اوددې سره سره دخپل عمر څلورواړه زمانې ماشومتوب ،هلکتوب، ځوانى ،اوبوډاوالې پدې فن کې مصرفول، اوپه هرحال کې دحديثو دورکول، فراغت وي اوکه مصروفيت ،اميري وي اوکه غريبي، په غرونو، رغونو، سمندرونو ،ښارونو ،اوځنګلونوکې ددې علم حاصلول.

کلـه چـې کاغذنـه وي، نوپـه تيګو ،لرګيواوپوسـتکوباندې دحـديث ليکـل. دخپـل ځـان څخـه دمشرانو، کشرانو ،اوهمزولوڅخه احاديث اخستل، او بيـا پـدې ټولـوکې دالله ﷻ رضامقصود ګرځول، اوپه هغه حديثونوباندې عمل کول چې دکتاب الله سره موافق وي، اوبيايې طالبانوته وربنودل.

او دا کارتـر هغې پورې نه پوره کيږي ترڅو چې دې په کتابت، لغت ،صرف اونحوکې مهارت نه وي حاصل کړی. اوددې ټولو کوششونو سره دالله ﷻ څخه توفيق ،قدرت ،صحت ،حفظ اوحرص غوښتل، ځکه ترڅوچې دالله ﷻ له طرفه توفيق،قدرت ،صحت ،او حرص درنه کړل شي، نوداټول کوششو نه بيکاره دي .

اوچې کله داټول حاصل شي، نوددغې محدث په نظرکې بياخپل اهل ، مال ،اولاد اود وطن هيڅ اهميت نه وي، نوالله ﷻ په دې محدث په څلورو شيانو امتحان کوي.

(۱) په شماتة الاعداء. (۲) دربنتينو دوستانو په ملامتولو. (۳) په طعن د جُهالو.

(۴) په حسد د علماوو.

يعنـې دڅلوروطرفونوڅخـه بـه پـده بانـدې اعتراضـونه کيـږي چـې دوسـتان ، دشـمنان ،جـاهلان ،اوعالمان دي که محدث په دې صبروکړي نوالله ﷻ به په دنياکې په څلوروشيانودده اکرام کوي.

(۱) په قناعت. (۲) په عزت (۳) په هيبت نفس (۴) پـه شهرت عامه باقيه. اوپه څلوروشيانوپه اخرت کې دده اکرام کوي.

(۱): دخپلوانو اودوستانوپه شفاعت. (۲) د الله ﷻ د عرش د سوري لاندې په ارام. (۳) د رسول الله ﷺ په لاس دحوض کوثرپه اوبو. (۴) د انبياء کراموسره د اعلى عليين د جنتونو په اوسيدلو. بيا امام بخاری رحمه الله ورته وفرمايل چې: بچيه! دمحدث شرائط ما مختصربيان کړل که پـه تـاکې ددې شيانو همت وي نود محدثوالې کوشش وکړه.

هغه سړی سربنکته واچولو، اوپه فکرونوکې ډوب شو. کله چې امام بخاری رحمه الله دهغه حال وليدلونوورته وی فرمايل چې کله دومره تکليف نه شي برداشت کولی، نو بيادفقهي دزده کولو کوشش وکړه ځکه چې داپه کورکې هم زده کولې شئ اودغرونو، سمندرونو، ښارونواوزغونودسفرضرورت ورته نشته اوفقه دحديثوثمره او کوچ دي. په اخرت کې دفقيه ثواب دمحدث څخه يوزره هم کم ندی، اونه دفقيه عزت اوشان دمحدث څخه کم دی.

**هغه سړی فرمائي:** چې کله مې دامام بخاری رحمه الله څخه دا واوريدل، نومادمحدثوالي اراده پرېښودله، اوپه فقه کې مې خواري شروع کړه، اودالله ﷻ په فضل دخپلې زمانې په ښه فقه زده کونکوکې شمارشوم. (الحطه/ص ۱۴۸/ ص ۱۵۰).

نو لامذهبه په ايمان يې ووايه ! چې ددې شرايطوپه تول ته برابريې، چې دحديثوجايزه اخلي، اوپه خپل قول فتوی ورکوي، دمحدث والي دعوه کوي، دأيمه وودتقليد څخه ځان بی پرواحسابوئ، بلکې دا تقاضی کوي چې ايمه مجتهدين دي ستاغوندې د يو حمارګل تقليد وکړي، لکه مريض چې دا تقاضی وکړي چې سپيشلسټ ډاکټر دې دده په نسخه عمل وکړي. همدارنګې ته دخپلې نااهلی او حماقت سره سره ځان ته مجتهد وايې ! اوپه خپل ګومان د لويو لويو مجتهدينو غلطی په ګوته کوې !

**(۳) وسواس الخناس:** لامذهبه ليکلي دي : نو اجمالاپه دې خبره ځان پوه کړي چې :

(۱) په هيڅ صحيح حديث شريف کې دانشته چې رسول الله ﷺ امين بالسرويلی وي.

(۲) اونه يې داويلي دي چې امين په قلاره باندې وائي.

(۳) اونه ديوصحابی څخه په صحيح سندداثابته ده چې هغه امين په پټه باندې ويلی وي. [امين الفتاوی/ج ۱/ص ۲۵۴].

**(الاخساء)**

(۱) لامذهبه اول دادرې واړه خبرې په هندوستان باندې د برطانوي يرغل څخه په کوم مخکني کتاب کې وښايه، دا درې واړه خبرې د انګريزي دورې څخه دکوم مخکني عالم، محدث، فقيه او يا د يوعام مسلمان د خولې څخه ثابتې کړه ! لامذهبه ليکلي دي چې : (په هيڅ صحيح حديث الخ).

نو مونږ وایو چې ستاسو په نیزدلایل دوه دي قران اوحدیث صحیح . او تاسو ( قبول قول الغیرمن غیرحجة) ته تقلید وایي او تقلید ته شرک او حرام وایې نو دواړه مقدمې سره یو ځای کړه چې:

(۱) بې دلیله دبل چاخبره منل تقلید دی (۲) او دلیل صرف قران او حدیث صحیح دی، نو بې د قرانه او بې دحدیثه دبل چاخبره منل شرک شو.

نو دامین الله پشاوری څخه پوښتنه کوم چې دیو حدیث دصحیح والي یاضعیف والي معیار څه شی دی؟ قران دی؟ او که حدیث؟ او که دبل کوم امتي اجتهاد دی؟ که قران وي نو په کوم ایت کې دکوم حدیث په صحت او یاضعف باندې تصریح شوی ده؟ که حدیث وي نو په کوم حدیث کې دبل حدیث په صحت او یاضعف باندې تصریح شوی ده؟ او که دبل امتي اجتهادوي او ته ورپسې روان یې نو داخو بیاستا تقلید شو او په کوم ایت یاحدیث کې راغلي دي چې نورتقلید ته شرک او حرام ووائي لکن دحدیث دصحت او دضعف په معامله کې تقلید وکړئ؟

هغه مشهور متل دی چې کارغه مُرداره خوري او مېنو که څنډي، د لامذهبه دا خیال دی چې کوم حدیث زمادرائی سره موافق وي هغه صحیح دی او چې زمادرائ څخه مخالف وي هغه ضعیف دی.

لکه دهمدې بحث په مسئله کې چې حضرت سفیان ثوری دامین بالجهر په حدیث کې راغلو نو احفظ الناس ورته وائي. (امین الفتاوی ،ج ۱ص ۲۷۸ ) الحق الصریح ج ۴ص ۲٦۳ ].

او چې دترک درفع الیدین په مسئله کې راشي نو بیا ورته انسی الناس وائي لکه په ( فتاوي الدین الخالص مسئله رفع الیدین جلاء العنین قرة العینین .کې چې ستاسو له خوا ورته دعبدالله بن مسعود ﷺ دحدیث لاندې انسی الناس ویلی شوی دی الحق الصریح ج ۴ص ۸٦).

(۲) په قرانکریم کې دامین بالسر طرف ته اشاره ده الله تعالی جل جلاله فرمائي چې:(قَدْ أُجِيبَتْ دَّعْوَتُكُمَا) ما ستاسو دواړو دعا قبوله کړه.

په تفسیر درمنثور کې دحضرت ابوهریره ﷺ، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ حضرت عکرمه ﷺ حضرت ابوصالح رحمه الله حضرت ابو العالیه رحمه الله حضرت ربیع رحمه الله او حضرت زید بن سلم رحمه الله روایت داسې دی چې موسی علیه السلام دعا کوله او هارون علیه السلام امین ویلو او بخاری شریف، ص ۱۰۷ باندې لیکلي دي ( قال عطاء امین دعاء) نو ثابته شوه چې امین دعاده . او دعا په پټه بهتره ده.

[سورة مريم ،سورة اعراف . [ مسنداحمد / ج ۱/ص ۱۷۲/ الجامع الصغير/ج ۲/ص ۸ ] السراج المنير، ج ۲ص ۲۶۲ مجمع الزوايد ،ج ۱۰ ص ۸۱ )

نو امين دعاده او بهتره دعا هغه ده چې په پټه وي، نو بهترامين هغه دى چې په پټه وي، ددې دليل په مقابله کې لوى شافعي امام رازى رحمه الله خپله اسلحه په زمکه ايښې ده او دامين بالسر قايل شوى دى .(تفسير کبير، ج ۱۴ ص ۱۳۱ )

**اوله فائده**: اصل په دعا کې اخفاء ده له همدې کبله دلمانځه ټولې دعاګانې او ذکرونه په پټه لوستلې شي لکه ثناء، تعوذ، تسميه، تکبيرات انتقالات ، تسبيحات رکوع وسجده تشهد ، درود شريف وغيره .

**دوهمــه فائــده** : اصـل پـه دعـا او ذکرونو کې دادى چـې پـټ وويـل شي، لکـن کلـه کلـه پـه دعاګـانو او ذکرونو کې دالله ﷻ ديادولو سـره دخلکـو اطـلاع هـم مقصـود وي، نو هلتـه خلکوتـه دوراورولو لپاره په زوره لوستلې شي، لکن هغه په زوره لوستل دضرورت له وجهې وي او خلاف الاصل وي، نو تر خپل مورد پورې به خاص وي .

لکه اذان ،اقامت ،دامام لپاره تکبيرات دانتقال، دامام لپاره تسميع ،او دامام قرائت لامذهبه امين الله ليکلي دي (چې امين دعانده بلکه تابع ددعادى الحق الصريح ص ۲۶۰ .

**الاخساء** :لامذهبه! الله ﷻ فرمايلي :چې امين تابع ددعادى ؟ا ٍ که رسول الله ﷺ فرمايلي دي ؟او که ستااجتهاد درباب ترنګ دى ؟ که الله ويلي وي نو صراحة ي ٍ په کوم ايت کې وښايه ،که رسول الله ﷺ ويلي وي نو صراحة يې په کوم حديث کې وښايه ،ا ، د ‹ ستا اجتهاد وي نو بيا تـه پخپل ځان کې داجتهاد شرايط وښايه، او علاوه دا چې ستا دا اجتهاد ستا په خلاف دى، ځکه چې امين تابع شو، نو که الحمد لله په پټه لوستلى شي امين به پټ لوستلى شي حالانکه ستاسو مقتديان الحمد لله په پټه وائي او امين په زوره وائي .

(۳) دابو هريره ﷺ دوه حديثه دي په يو کې داسې ذکرشوى دى چې رسول الله ﷺ فرمائي چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو تاسو امين ووائې ځکه چې دچا امين دملايکو دامين سره موافق شي نو دده مخکني ټول ګ‍ ـ هونه به معاف شي.(بخارى ،ج ۱ص ۱۰۸) نسائى ،ج ۱ص ۹۴) ابوداود ،ج۱ص ۹۴)

اوپه بل کې داسې راغلي دي چې رسول الله ﷺ فرمائي چې کله قاري (يعنې امام) غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين ووائي اوشاته خلک امين ووائي .نودده قول داسمان دخلکوسره موافق شي، دده مخکني ټول گناهونه به معاف شي . (صحيح مسلم ،ج ۱ص ۱۷۶)

## دملايكو په امين كې درې شيان دي چې احناف ورسره موافق دي

**اول** : دملايکوامين هيچاندى اوريدلي، نوظاهره ده چې ملايکې امين په پټه وائي اواحناف يې هم په پټه وائي، نوداپه وصف کې دملايکودامين سره موافقت شو.

**دوهم** : د ملايکو د آمين له پاره خاص وخت دی، اوهغه داچې کله امام ولاالضالين ووائي نوملايکي آمين وايي، اواحناف هم دامام دولاالضالين څخه وروسته امين وائي، نوداپه وخت کې موافقت شو، اوبالعکس غيرمقلدين داسې نه کوي، ځکه چې غيرمقلد مقتدي چې پداسې وخت کې دامام پسې اقتداء وکړي، چې امام ولاالضالين ته رسيدلی وي، نوکه دی اول امين وائي اوبياقرائت خلف الامام کوي نوده اول امين وويلواووروسته يې سورة فاتحه ولوستله، نوتحريف راغلواوکه امين نه وائي، بلکې اول فاتحه لولي اودخپلې فاتحې په اخرکې امين وائي، نودده امين دملايکودامين سره په وخت کې مخالف شو.

**دريم** : ملايکې دامام دفاتحې په اخرکې امين وائي خپله دامام پسې فاتحه نه لولي، ځکه چې په دې حديث کې رسول الله ﷺ فاتحه لوستل دامام وظيفه گرځولي ده داسې يې ويلي دي چې:(اذاقال الامام) چې کله امام غيرالمغضوب الخ ووائي، داسې يې ندي ويلي چې (اذاقلتم غيرالمغضوب) چې کله تاسوټول غيرالمغضوب ووائي اوبالعکس غيرمقلدين په امام پسې په لمانځه کې فاتحه لولي .

خلاصه داچې زمونږامين دملايکودامين سره په وخت اووصف دواړوکښې موافق دی اودغيرمقلدينوامين دملايکو دامين سره په وخت اووصف دواړوکې مخالف دی .

(۴) دابوموسى اشعرى رضي الله عنه لوى حديث دى چې داجمله هم په کې ده. واذاقال غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين . فقولواامين يجببكم الله ( الي ان قال ) واذاقال سمع الله لمن حمده فقولوا ربنالك الحمد) (مسلم ،ج ۱ص ۱۷۶ )

چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو تاسو امين ووائي الله ﷻ به درسره محبت وکړي ( اخر د حديث کې داسې دی ) او چې کله امام سمع الله لمن حمده ووائي نو تاسو ( ربنالک الحمد ووايئ، نو د آمين لپاره رسول الله ﷺ داسې لفظ استعمال کړی دی چې: ( فقولوا امين )

او دا جُمله د (ربنالک الحمد) په باره کې اتفاقا په معنی د پټو لوستلو دی، نو د آمين په باره کې به هم خامخا په معنی د پټو لوستلو وي ځکه چې دواړه د ( قولو ) لفظونه په يو حديث کې راغلي دي او همدارنګې رسول الله ﷺ مقتديانو ته حکم کړی چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو تاسو امين ووائي، يعنې د مقتديانو امين يې د امام د ولا الضالين پورې معلق کړی دی، ځکه چې مقتديان د امام ولا الضالين اوری ځکه چې په زوره يې وائي.

او د امام د امين پورې يې ندي معلق کړی، او داسې يې ندي ويلي چې کله امام امين ووائي نو تاسو امين ووائي، ځکه چې مقتديان د امام امين نه اوري. که امام امين په زوره ويلی نو رسول الله ﷺ به داسې ويلی وچې: (اذا قال امين فقولوا امين).

(٦) د حضرت ابو هريرة ؓ بل حديث دی چې حضرت رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو تاسو امين ووائي بې شکه چې ملايکی هم امين وائي او امام هم امين وايي، نو د چا امين چې د ملايکو د امين سره موافق شي د ده مخکني ګناهونه به معاف شي .(اثار السنن. ج ١ص ٩١ ) صحيح ابن حبان ،ج ١ص ١٩۴).

الف: په دې حديث کې يې هم د مقتدي امين د امام د ولا الضالين پورې معلق کړی دی، که امام امين بالجهر ويلي نو د امام د امين پورې به يې معلق کړی وو.

باء: رسول الله ﷺ مقتديان په دې خبروي چې ملايکی امين وائي او د الدی وجهې چې مقتديان د ملايکو امين نه اوری، نو همدارنګې يې د امام د امين څخه هم خبروي. (وان الامام يقول امين) او بې شکه امام امين وائي او دا ځکه چې مقتديان د امام امين نه اوري ولې که مقتديانو د امام امين اوريدلي نو بيا رسول الله ﷺ د کومې فايدې لپاره اطلاع ور کوله؟

(٧) حضرت وايل ؓ فرمائي چې حضرت رسول الله ﷺ په پټه امين وويلو. -واخفى بها صوته [زيلعي، ج ١ص ١٩٤) رواه احمد وابو داود الطيالسي وابويعلى والدار قطني والحاكم وقال صحيح الاسناد].

(۸) حضرت وايل بن حجرؓ فرمائي چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چې کله يې ولاالضالين وويلو وروسته يې امين وويلو. (وخفض بهاصوته) او اواز يې ورباندې ټيټ کړو. (سنن ابوداود، ج ١ص ١٣٤/ ١٣٥) باب التامين [موارالظمان ص ١٢۴ /حديث نمبر ۴۴٧) دارقطنى ،ج ١ص ٣٣٣/باب التامين في الصلوة بعد الفاتحة ].

(۹) حضرت سمرة بن جندب فرمائي چې رسول الله ﷺ به کله الله اکبر کړو د تکبير تحريمه لپاره نو لږ به چپ شو يعنې د سبحنک اللهم لپاره او چې کله به يې غير المغضوب عليهم ولاالضالين وويلو نو بيا به لږ چپ شو يعنې د امين د ويلو لپاره. (ابوداود، ج ١ص ٧٩ طبع نور محمد اصح المطابع) حضرت أبى بن کعبؓ هم د دې سکتو تائيد وکړو. (ابوداود، ج ١ص ٧٩) اثار السنن، ج ١ص ٩٦)

(۱۰) حضرت على او عبدالله بن مسعودؓ به امين په پټه ويلو. (مجمع الزوايد/ ج٢ /ص ١٠٨)

(۱۱) حضرت عمر او على ؓ به امين په پټه ويلو. (الجوهر النقى ،ج ١ص ١٣٠)

(۱۲) ابراهيم نخعى رحمه الله فرمائي چې امين به پټ لوستلى شي. (اثار السنن، ج ١ص ٩٦).

دا يو څه احاديث او اثار مې اجمالاً رانقل کړل. تفصيلي بحث مخکې شوى دى او لږ وروسته به هم بحث ورباندې وکړو، او س به تاسو ته معلومه شوي وي چې دې لامذهبه پنځپلو دريو جملو کې په څومره حقيقت باندې د پردې اچولو کوشش کړى دى.

**(٤) وسواس الخناس: لامذهبه ليکي** :لکه علامه عبدالرحمن مبارکپوري په تحفة الاحوذى ( ج ١ص ٢٠٩) کې ليکي د هيڅ يو صحابي نه په پټه امين په صحيح سند ندى نقل او نه د هيڅ يو صحابي نه په امين بالجهر کو نکو باندې رد ثابت دى.

**الاخساء:**

(۱) ته خو وائي چې زمونږ مذهب قران او حديث دى. (امين الفتاوى ،ج ١ص ٣٥) او قبول قول الغير ته تقليد وائي نو دلته ولې د مبارکپوري د....... پورې ځانګې؟ د مبارکپورى قول قرآن دى او که حديث صحيح؟ وائي چې کارغه غول خوري او مښو که څنډي، بې چاره امين الله يو ځلې په تقليد رد کوي او چې کله مجبور شي نو بيا د شر القرون د زمانې د خلکو تقليد کوي.

مبارکپوري خوهم ستا په شان لامذهبه دروغژن او دانګريزي دوري پيدا واردی لکه چې وروسته به درته ظاهره شي ان شاء الله دلامذهبه امين الله سره داسلافوکوم قول نشته، نو بې چاره دانګريزي دورې په پيداوارحواله ورکوي.

(۲) دمبارکپوري داخبره چې (دهيڅ صحابي څخه په امين بالجهر کونکوردندی ثابت) غلطه ده ځکه چې دصحابه وو په مخکې هيڅ امين بالجهرندی ويلی، نوردته وربانديې څه ضرورت وو؟ اوکه ته وائی چې عبدالله بن زبير ﷺ اوورسره صحابه وو ويلي وو، نو لږوروسته به راشي چې داخبره بالکل نده ثابته.

**(۵) وسواس الخناس** : لامذهبه ليکي چې: په جهرسره امين ويلو دلايل.

**الاخساء:** په اسلام کې ډيرې فرقې ذي چې اختلافات لري او په اختلافي مسائلو باندې بحثونه کوي. په بحث کې اول دمسئلې اودعوی وضاحت کيږي.

اوبيا په هغې باندې دلايل اوشواهدپيش کولی شي، ترڅوچې د اصلی مسئلې اودعوی وضاحت نه وي شوي، دلايل اوشواهدپرې پيش کول بی فايدې کاردی، د لامذهبانو بيخ چونکه دشيعه ګانو څخه دی. لکه څرنګه چې دغيرمقلدينو مفسراعظم او مصنف اعظم مولوی وحيد الزمان په خپل کتاب (نزل الابرارمن فقه النبي المختار) کې ليکلي دي چې. (اهلحديث شيعان دعلی ﷺ دی) (نزل الابرار، ج ۱ص ۷).

مولاناقاری عبدالرحمن صاحب پاني پتي چې دشاه محمد اسحق صاحب شاګرداودشاه محمداسماعيل شهيدرحمه الله خليفه دی، د لامذهبو دشيخ الکل فی الکل نذيرحسين دهلوي باني فرقه غير مقلدين په باره کې ليکلي دي چې مولوي نذيرحسين دسيد محمد مجتهدشيعه څخه دخطونو په ذريعه باندې مطاعن امام ابو حنيفه رحمه الله راوغوښتل، اوخپل ټول همت يې په فقهاء وو باندې په طعن اودصحابه ﷺ په تجهيلاتو کې مصرف کړو، او په فقهاء وو او په صحابه وو باندې طعن لګولو ته يې جهاد ويلو، دمسلمانانو جنګولو ته يې عبادت عظمي ويلو...

(حاشيه کشف الحجاب، ص ۸)

دمولوی نذيرحسين په شيعه والي کې هيڅ شک اوشبه نه شته. (چې حضرت دلامذهبو دفرقې يوبل باني مولوي عبدالحق بنارسي به په ښکاره اعلان کولو. (چې حضرت عايشه رضی الله عنهادحضرت علي ﷺ سره جنګيدلې ده، که توبه يې نه وي ايستلې نو مرتده مړه شوې ده. (معاذالله) او په بل مجلس کې يې داهم ويلي دي چې: د صحابه وو رضی الله تعالی عنهم علم

زماڅخه کم و، په دوی کې هریو ته پنځه پنځه حدیثونه یادوو او ماته ددوی ټولو حدیثونه یاددي.
[کشف الحجاب / ص ۴۲]

امین الله پشاوري چې ددې کتاب مولف دی په یو تقریر کې یې داسې ویلي دي (ګوره حضرت عمر ﷛ پنځوس فتوا ګانې د قرآن او سنت څخه خلاف ورکړي دي.

داخبرې که څوک اوریدل غواړي نو اوس هم په کیسټو کې شته دکیسټي نوم دی. (دامین الله پشاوری ګستاخي) داهل سنت والجماعت میوزک سنټر پشاور قصه خواني څخه یې همیشه ترلاسه کولی شي.

دمشکوة په شرح الحق الصریح اول جلد دباب الایمان بالقدر داتم نمبر حدیث لاندې یې لیکلي دي چې دپیغمبرانو څخه هم کیږي او هم یوه نوع دزناده. نو دپیغمبرانو څخه زنا کیږي.

خلاصه دا چې لامذهبان څه په شعوري او څه په غیرشعوري طریقه باندې شیعه ګان دی. اودشیعه ګانو یو اصل تقیه ده. لامذهبان هم په ډیرو مسایلو کې تقیه کوي. په زیربحث مسئله کې هم ددوی هر نام نهاد مجتهد، هرمصنف، او هر مناظر خپله دعوی او مسئله تقریباً اتیا فیصده دتقیې په صندوق کې داسې بندوي چې په خوب کې هم چاته معلومات ونه شي، له دې وجهې ضروري ده چې دلامذهبه امین الله او دده دپیروانو د اصلي مسئلې ټول اړخونه رابنکاره کړو او بیابه وګورو چې دلامذهبه پشاوري سره پدې مسئله باندې څومره دلایل دي؟

## دلامذهبو غیر مقلدینو مسلک

دغیرمقلدینو دمسلک په دې مسئله کې اجمالاً درې اړخه دي.

**اول** لامذهبان چې کله یو اځې لمونځ کوي نو په ټولو فرایضو، سنتونو، او نفلونو کې په پټه امین وائي. په دې ټولو ځایونو کې دپټ امین ویلو لپاره ددوی سرد دقرآن او صحیح حدیث څخه څه دلیل دی؟

په کوم ایت کې الله ﷻ او په کوم حدیث کې رسول الله ﷺ امر کړی دی چې یو اځې لمونځ کونکي دې په ټولو فرایضو، سننو، اونوافلو کې امین په پټه وائي؟

په دې مسئله کې ترننه پورې لامذهبانو نه کومه رساله ولیکله، نه یې ورباندې مناظره وکړه، اونه یې ورته په امین الفتاوی په فتاوی الدین الخالص، الحق الصریح وغیره ګرنګ صفته کتابونو کې ادنی اشاره وکړه. په هیڅ کوم مجلس کې یې دا یاده هم نه کړه چې په اکثره ځایونو کې مونږ په پټه امین وایو.

لامذهبه امین الله چې دلته کوم عنوان تړلی دی (امین په زوره ویل سنت) ج اص ۲۵۳) نو په دې کې یې داتخصیص ندی ذکر کړی چې یوائې لمونځ کونکی ددې څخه مستثنی دی، دهغه لپاره په ټولو فرایضو سننو او نوافلو کې داحکم ندی، او بیایې لیکلي دي چې (په جهردامین ویلو دلایل) (ج ،اص ۲۵۵) دلته یې هم داندی ویلي چې یوائې لمونځ کونکی ددې څخه مستثنی دي ،داټول ددې لپاره چې هیڅاته معلومات ونه شي چې ددوی دلایل ددوي ټوله مسئله نه شي ثابتولی، ځکه چې دوی چې څومره دلایل ذکر کړي دي هغه عام دی، هیڅ کوم لمونځ کونکي ترینه مستثنی ندی، نو لامذهبان دکوم ایت او کوم حدیث له وجهې ترینه یوائې لمونځ کونکي مستثنی کوي. که په لامذهبانو کې دذرې په اندازه علم وي نو دکتاب او د سنت څخه دې صراحة داتخصیص وښائي. (دیده باید)

**دوهم اړخ :** لامذهبان دلمانځه ټول ذکرونه او دعاګانې لکه: ثناء، تعوذ، تسبیحات، درکوع او دسجدی، تشهد ،درود، دمنفرد او دمقتدي تکبیرات دانتقال داټول په پټه وائي، صرف امام او مقتدیان یې امین په زوره وائي ددې تخصیص څه دلیل دی ؟

ایا په قران مجید کې په کوم ایت کې داشته چې دلمانځه مذکور ذکرونه او دعاګانې په پټه کوئ او صرف امام او مقتدیان امین په زوره وائي ؟

که قراني ایت نه وي نو ددنیاد کومې کتابخانې په کوم حدیث کې صراحة راغلي دي، چې دلمانځه نور ټول ذکرونه او دعاګانې په پټه وائي او صرف امین په زوره ووائي. ؟

**دریم اړخ :** په یوه شپه او ورځ کې دامام پسې (اوه لس) رکعته لمونځ په جماعت سره اداکیږي. چې هغه دوه رکعته فرض دسهار، څلور رکعته فرض دماسپښین، څلور رکعته فرض دمازیګر، درې رکعته فرض دماښام او څلور رکعته فرض د ماخوستن دی.

په دې اولسو رکعتونو کې لامذهبان صرف په شپږو رکعتونو کې امین په زوره وائي یعنې په دوو رکعتو دسهار، په اولو دوو رکعتونو دماښام ،او په اولو دوو رکعتونو دماخوستن کې او په پاتې یوولسو رکعتونو کې یې په پټه وائي.

لامذهبان داهم نه بیانوي چې مونږ صرف او صرف په شپږو رکعتونو کې امین په زوره وایو.

لامذهبانو دعوه عامه لګولي ده چې (امین په زوره ویل سنت دي) (امین الفتاوی، ج ا ص ۲۵۳)
او دانه وائي چې ددې څخه یو ولس رکعته مستثنی دي، او دا ځکه چې دوي څومره دلایل ذکر کوي هغه
عام دي دیو لسو رکعتونو هیڅ استثناء په کې نده شوې.

**نو لامذهبانو!** په کوم ایت او په کوم صحیح حدیث کې راغلي دي چې ددې احادیثو څخه یو ولس
رکعته مستثنی دي او دا امین بالجهر دا احادیث صرف دشپږو رکعتونو په باره کې دي؟

(۱) په قران کې هیڅکله او هیڅکله دا خبره نشته چې مقتدي دی صرف په شپږو رکعتونو کې امین
په زوره وائي او په پاتې یو ولسو رکعتونو کې دي یې په پټه وائي.

(۲) درسول الله ﷺ په هیڅ قولي حدیث کې نه شته چې امام دی صرف په شپږو رکعتونو کې امین په
زوره وائي او په پاتې یو ولسو کې دی یې په پټه وائي.

(۳) په بخاری، مسلم، ترمذی، ابوداود، ابن ماجه، نسائی بلکې دحدیثو په هیڅ کتاب کې
یو صحیح، یا حسن حدیث نه شته چې مقتدیان دی صرف په شپږو رکعتونو کې امین په زوره وائي او په
پاتې یو ولسو رکعنونو کې دې یې په پټه وائي.

(۴) دخلفاء راشدینو څخه هیڅکله دانده ثابته چې هغوی دې په شپږو ورکعتونو کې په زوره او په
پاتې یو ولسو رکعتونو کې په پټه امین ویلی وي.

(۵) دخلافت په ټوله دوره کې دیو مقتدي څخه هم دانده ثابته چې په شپږو رکعتونو کې دې یې په
زوره او په پاتې یو ولسو رکعتونو کې دې یې په پټه امین ویلی وي.

**نومسلمانانو!** اوس به درته معلومه شوي وي چې ټول لامذهبان او امین الله پشاوری ولې تقیه
کوي؟ خپله مسئله پوره ولې نه واضحه کوي؟ جواب ظاهر دی او هغه دا چې ددوي سره په خپله ټوله
مسئله باندې هیڅ دلیل دقرآن او دحدیث څخه نه شته؟ تر دې ځای پورې دلامذهب امین الله
دټولو دلایلو څخه اجمالي جواب شو لکن دزیاتې افادی لپاره به یې په هر دلیل ځانته ځانته تفصیلي بحث
هم وکړو ان شاء الله تعالی.

## (٦) وسواس الخناس لامذهبه امين الله ليکي :

**اول دليـل** : دحضرت وايـل بن حجر﷛ څخه روايت چې رسول الله ﷺ به چې کله ولاالضالين و ويلونو امين به يې ويلو او اوازبه يې ورباندې اوچت کړو الخ ... (امين الفتاوی ، ج ١ص ٢۵۵ )الحق الصريح ج ۴ص ٢۵۴ ].

**اول جواب** : په دې حديث کې خود امام د امين ذکر دی دمقتدي دامين لپاره ددې حديث څخه استدلال کول په قياس باندې بناء دی او قياس ته غير مقلدين دشيطان کار وايي، نو په خپله فتوی باندې شيطانان شول .

او همدارنګه دا روايت ضعيف هم دی، ځکه چې ددې روايت مدار په سفيان ثوری دی .دسفيان ثوری رحمه الله لس شاګردان دي په دوې کې اتو شاګردانو.

(١) : يحيی بن سعيد (٢) : عبدالرحمن بن مهدی (٣) : عبدالله بن يوسف (۴) : محمد بن يوسف (۵) : قبيصه (٦) : وکيع (٧) : محاربی (٨) : اشجعي . دوی په دی حديث کې د( مدبهاصوته ) يعنې (اوازبه يې ورباندې راکاږل ) الفاظ رانقل کړي دي .

صرف يو شاګرد محمد بن کثيرد (رفع بهاصوته ) يعنی (اوازبه يې ورباندې اوچت کړو) الفاظ رانقل کړي دي . [ابوداود، ج ١ص ٩۴ دارمی ص ١۴٨].

محدثين فرمائي چې محمد بن کثير کثير الغلط دی [تهذيب الکمال / ج ٩/ ص ٢٩٠/ تقريب /ص ۵٣۴ ] نو صحيح روايت دمد بهاصوته دی . او درفع بهاصوته روايت غلط او شاذ دی او دمد بهاصوته معنی داده چې الف او يا به يې راکاږله ، جهر مراد نه دی، ځکه چې په صحيحو رواياتو کې دوايل﷛ څخه د(خفض بهاصوته او اخفي بهاصوته ) الفاظ راغلي دي او همدارنګه دمحمد بن کثير په دې روايت کې حجر ابو العنبس دی چې غير مقلدين دشعبه﷛ په روايت کې ورته دوهم او غلطی نسبت کوي. (ابوداود، ج ١ص ١٣۴ ) ١٣۵ ، باب التامين ) . لسم د خلاد بن رافع موضوعي روايت دی.

درتـه زر احاديث ورسيدل نو نهـه سوه اونـوي يې بالكل وغـورزوه او پـه پاتې لسـو كې يې هم شك كوه .(حقيقة الفقه، ۱۰۱)

**دريم جـواب** : خپله دسفيان رحمه الله مذهب په پټه امين ويـل دي محلى ابن حزم ج۲ص ۲۰۶ والمجموع شرح المهذب ج ۳ص ۳۷۳ نـو چې غير مقلدين امين بالجهرتـه سنت وائـي نو بيا خو سفيان دامين بالسرپه وجه تارك دسنتو او فاسق شو ( معاذالله )اودحديث راوی چې تـارک دسنتوشي نو دهغه روايت ته بيا څه اعتباردی؟

**څلورم جواب**: د اروايت په طريقې دعبدالجبارعن وايل هم روايت شوی دی. (نسائی، ج اص ۸۱ . ۹۴ ) ابن ماجه، ص ۹۲ دارقطنی، ج اص ۱۲۷ ) او امام بخاری ،ابن معين ،ترمذی ، نسـائی وغيره محـدثين پـه دې متفـق دي چـې عبـد الجبار دخپل پـلار حضـرت وايـل ﷺ څخـه هـيڅ حـديث نـدی اوريدلی .(ترمذی، ج اص ۲۲۹ ) نسائی ج اص ۱۴۲ ) شرح المهذب ، ج اص ۱۴۲ ) نو دا روايت مرسل دی او مرسل روايت ته لامذهبان حجت نه وائي .

**پنځم جواب** : په دې روايت كې يو راوی ابو اسحق سبيعي دی او دده حافظه په اخره زمانه كې صحيح نه وه پاتې . ( نووی، ص ۱۷ ) نو دده مرسلات بالكل قابل دقبول ندي لكه څرنګه چې ابن معين فرمائي . شبه لاشي . ( ترمذی كتاب العلل، ص ۵۶۴ )

**شپږم جواب** : ددې حديث دپرسندونه دي او دهرسند لفظ عليحده دی وروسته لامذهبه په ص ۲۷۶ كې ليكي دد ريمې وجهې لاندې چې دامين بالسرپه باره كې دوايل ﷺ حديث مضطرب دی ځكه په دوه قسمه لفظونو روايت شوی دی او دلته چې په شپږ قسمه لفظونو روايت شوی دی مضطرب ورته نه وائي .

(۱) ( يرفع بهاصوته ) او ازبه يې وربانده اوچت كړو. (نسائی، ج اص ۸۹ )

(۲) ( فسمعته وانا خلفه ) ما واوريدو اوزه وريسې وروسته ولاړ وم. (نسائی، ج اص ۹۴ )

(۳) ( فسمعنا هامنه ) مونږ د نبی ﷺ امين واوريدلو. (ابن ماجه، ص ۹۲ )

(۴) ( قال امين مد بهاصوته ) او ازيې وربانده راكاږلو. ( دارقطنی، ج اص ۱۲۷ )

(۵) (انه سمع يقول امين ) ده امين واوريدلو. مسند احمد.

(٦) (فقال امين يجهر) امين يې په اوچت اوازوويلو. [مسند] نو معلومه شوه چې رسول الله ﷺ په ځومره اوچت اوازباندې امين ويلى ده. په دې حديث کې دي چې حضرت وايل ﷺ فرمائي چې زه درسول الله ﷺ پسې وروسته ولاړووم اوماامين واوريدلو (فسمعته واناخلفه) نسائى، ج ١ص ٩٤ قول الماموم اذاعطس خلف الامام، ماواوريدواوزه درسول الله ﷺ شاته ولاړووم په بعضې چاپونوکي داد نسائى په، (ص ١٤٧) ده.

نودومره په زوره چې شاته يې صرف يوياد وه کسان واوري دغير مقلدينو عادتي جهرنه دی ځکه چې امين ګنجی وايې چې مساجد په امينونو وکړنګوئ. بلکې داجهربه کله نبى ﷺ دتعليم لپاره کولو.

**اووم جواب :**

**دحضرت وايل حجر ﷺ خپله فيصله :** دحضرت وايل بن حجر ﷺ داحديث سره ددې نه چې په ضعيف سند باندې روايت شوى دى وايل بن حجر ﷺ خپله دپه زوره امين په باره کې فرمائي (قال امين ثلاث مرات) يعنى رسول الله ﷺ (په خپل ټول عمر کې) درې وارې امين ويلى دى. (رواه الطبرانى فى الكبيرورجاله ثقات مجمع الزوايد، ج ١ص ١٨٧).

دحضرت وايل ﷺ ځخه پوښتنه وشوه چې دادرې ځلې يې ولې په زوره وويلو حضرت وايل ﷺ فرمائي چې (ماأراه الاليعلمنا) يعنې صرف مونږته دلمونځ دراښودلو لپاره يې په زوره وويلو. (کتاب الاسماء والكنى، ج ١ص ١٩٦) التعليق الحسن حاشيه اثارالسنن، ج ١ص ١٠٠) ددې حديث په سند کې يحيى سلمه دى علامه هيثمى فرمائي چې جمهورو ده ته ضعيف ويلى دى اوابن حبان ورته ثقه ويلى دى اووضاحت يې کړى دى چې کوم روايتونه دده ځخه دده ځوى روايت کړى دى هغه منکردى او دا روايت دده ځخه دده ځوى ندى کړى. (مجمع الزوايد، ج ٧ص ١٦١) دابن خزيمه ځخه هم دده قوة اوثقه والې رابعلوميږي. (عرف الشذى، ص ١٢٨).

نوحضرت وايل ﷺ فرمائى چې رسول الله ﷺ زمونږ دتعليم لپاره په زوره امين وويلو. لکه زمونږ په مدارسوکې چې ماشومانوته د لمانځه دوړښودلو لپاره ټول لمونځ په زوره ويلى شي اوپدغه وخت کې يې ماشومان هم په زوره وائي.

**اتم جواب :**

غیر مقلد لا مذهبه دا ضعیف حدیث پخپل گمان دخپلې مسئلې دثابتولو لپاره پیش کړی دی لکن دده مسئله ددې حدیث څخه نه ثابتیږي .

(۱) ځکه چې ده ویلي دي چې امین په زوره ویل سنت دي او په ددې حدیث کې د سنت لفظ نه شته.

(۲) دلامذهبو دعوه داده چې امین به همیشه په زوره وائي او ددې حدیث کې ددوام او همیشوالي لفظ نه شته .

(۳) رسول الله ﷺ د وایل بن حجر ؓ د تعلیم لپاره صرف درې ځلې امین په زوره ویلی وو او لامذهبان یې همیشه په زوره وائي او د تعلیم لپاره نه بلکې دایې عادت دی چې په زوره یې وائي .

(۴) په ددې حدیث کې د مقتدي لفظ نه شته یعنی دا په کې نه شته چې مقتدیانو هم په زوره ویلی وو .

نو لامذهبان مقتدیان یې څرنګه په زوره وائي ؟ او دا حدیث څرنګه دځان لپاره دلیل ګرځوي ؟

(۵) دی ضعیفه حدیث کې خو صرف دومره دي چې درسول الله ﷺ امین حضرت وایل صاحب واوریدو چې درسول الله ﷺ شاته ولاړوو او لامذهبه وائي چې دومره په زوره یې ووائي چې مسجد وکړنګیږي (امین الفتاوی ، ج ۱ص ۲٦۰ ).

(٦) که لامذهبان وائي چې په ددې حدیث کې اګرچې د مقتدي امین ندی ذکر شوی لکن رسول الله ﷺ فرمائي (صلوا کما رایتموني اصلي ) ای امته داسې لمونځ کوئ څرنګه چې ما په لمونځ کولو ویني. نو بیا مونږ وایو چې: په تاسو کې کوم لا مذهبه جناب حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلی دی ؟ دلته خو (رأیتمونی ) ذکر شوی دی. دوهم دا چې: په امت کې خو منفرد یعنې یواځې لمونځ کوونکي هم داخل دي نو هغه یې ولې په ټولو فرضونو ، سنتونو ، او نفلونو کې په پټه وائي په کوم ایت او یا صحیح صریح حدیث کې دیواځې لمونځ کونکي استثناء راغلې ده ؟ قیاس به نه پیش کوئ .

(۷) په ددې حدیث کې خو دیوولسو رکعتونو استثناء نه شته نو په کوم ایت او یا په کوم صحیح حدیث کې راغلې دي چې: په زوره امین صرف په شپږو رکعتونو کې دی او پاتې یوولس رکعته ددې څخه مستثنی دی.

(۸) ددې حدیث چې حضرت وایل ؓ په کې فرمایلي چې ما واوریدل او زه وریسې ولاړوم او دعطاء دروایت چې د مسجد کړنګیدل په کې راغلي دي او تاورته پنځم دلیل ویلی دی ظاهر تعارض

دی ته ددې تعارض ددفع کولو لپاره دالله ﷻ یاد رسول الله ﷺ فیصله پیش کړه ! که ته یې په خپل فکر دفعه کوې، نو بیا د اجتهاد تعریف وکړه او د مجتهد شرائط بیان کړه او بیا وښایه چې ته د مجتهد په تول برابرېږې او که نه؟.

**(۷) وسواس الخناس** : لامذهبه لیکي . (دوایل بن حجر دی روایت ته ګڼرو محدثینو صحیح ویلي دي لکه دهغوی نومونه دادی . [ج ۱ ص ۲۵۵].

**الاخساء :** که داسې دې ویلي وی چې دې حدیث ته لامذهبو صحیح ویلي دي ، نو لږ به صدق ته ورنږدې وو او لامذهبه پښتون یې او په پښتو کې هم غلطي کوي ځکه تالیکلي دي چې (لکه دهغوی نومونه دادي ) حالانکه د ( لکه ) کلمه دتشبیه لپاره راځي خلک وائي زید لکه زمرې دی . اودلته تشبیه نه شته پکار وه چې داسې دی ویلي وي . (چې دهغوی نومونه دادي )

**وسواس الخناس** : لامذهبه لیکي چې ( ۱ : امام بخاری (۲) : امام ابو زرعه رازی رحمه الله دواړو ویلي دي چې دامین بالجهر دا حدیث دشعبه د حدیث نه چې داخفاء دامین په باره کې راغلي دي زیات صحیح دی ) ج ۱ص ۲۵۵).

**الاخساء:**

**(۱) لامذهبه امین الله!** دامام بخاری رحمه الله او دامام ابوزرعه رحمه الله ددې خبرې لپاره دقرآن او دحدیث څخه څه دلیل دی ؟ دلایل خو ستا په نیز صرف قرآن او حدیث دی، نو دلته ددې دواړو څخه ددې خبرې لپاره دقرآن او حدیث څخه دلیل وښایه یعنی ایت کې وښایه چې دسفیان روایت دشعبه دروایت څخه زیات صحیح دی یا صحیح حدیث کې وښایه چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې دسفیان روایت دشعبه دروایت څخه زیات صَحیح دی .

او که ته وائې چې دامام بخاری او دامام ابوذرعه رحمهما الله ددې خبرې لپاره اګرچې دقرآن اوحدیث څخه څه دلیل نه شته، لکن زمونږه ددې دواړو په علمي مهارت باندې اعتماد دی .

نو بيا مونږ وايو چې دغه اعتماد ته خو تقليد وائي، نو معلوميږي چې ستا يو اځي دا يمه اربعه و و خصوصا دا امام ابو حنيفه رحمه الله د تقليد سره د شمني ده چې د دوی د تقليد په خلاف رسالې ليکي او په دې ځای کې ستا ليپاره تقليد بيرته جايز ګرزيدلی دی.

در کفر هم صادق نه يی زينار را رسوا مکن

(۲) د دې لا مذهبه د خبرو څخه دا د لمر په شان ځليږي چې دا هسې جاهل مرکب دی. او د علم څخه داسې خالي دی لکه د خره سر چې د ښکرو نو څخه خالي دی. ځکه دی وائي چې د وايل بن حجر ﷺ څخه چې په پټه د امين ويلو کوم روايت راغلی يعنې د شعبه روايت ضعيف دی. (ص ۲۵۵ سطر ۱۵) او لږ وروسته وائي چې دی د واړو امامانو د سفيان روايت ته زيات صحيح ويلي دي. (ص ۲۵۵ سطر ۲۰).

**جاهله!** تا زيات صحيح (اصح) د ضعيف مقابل کړو حالانکه زيات صحيح د نفس صحيح مقابل دی. که د سفيان روايت اصح شي په نظر سره د شعبه روايت ته نو د شعبه روايت صحيح ګرځيږي ضعيف نه ګرځي.

**(۸) وسواس الخناس:** لا مذهبه بيا ليکي : امام ترمذی وائي دا حديث حسن دی. (ترمذی، ج ۱ ص ۵۷)

حافظ ابن حجر فرمائي چې د دې حديث سند صحيح دی. (التلخيص الحبير، ج ۱ ص ۲۳٦) محدث العصر علامه الباني دې حديث ته صحيح ويلي دي. (ج ۱ ص ۲۵۵)

**الاخساء :**

(۱) د دې درې واړو سره په دې فيصلو د قران او حديث څخه دليل شته او که نه؟ که دليل ورسره وي نو يو ايت او يا يو حديث پيش کړه چې الله ﷻ او يا رسول الله ﷺ فرمايلي وي چې دا حديث صحيح او يا حسن دی او که دليل ورسره د قرآن او حديث صحيحه څخه نه وي. نو بيا ته د دې درې واړو خبره بې دليله ولې منې؟

تا خو ځان و شکولو چې د امتي د بې دليله خبرې منلو ته تقليد وائي او دليل صرف قرآن او حديث دی او تقليد د ړندو کار دی او امين ګنجي ورته ضرورت نه لري دلته ولې ورته محتاجه شوې؟

(۲) د صحيح او حسن تعريفونه د قرآن او حديث څخه و ښايه د امتي په قول باندې حواله ورکول بيا تقليد دی.

(۳) دعلم حديث له مخې په حسن او صحيح کې تبائين دى ځکه چې دصحيح تعريف دادى چې (مارواه العادل التام الضبط من غيرانقطاع في الاسنادولاعلة ولاشذوذ) اوحسن حديث هغې ته وائي چې دصحيح نورټول شرايط په کې وي لکن دهغه کوم راوى تام الضبط نوى نويو حديث دى ترمذى ورته حسن وائي او الباني ورته صحيح وائي.

نو ته خو دليل صرف قرآن او حديث ته وائي، نو دقرآن او حديث په رڼا کې په دې دواړو کې کوم قول صحيح دى؟ که دواړو ته صحيح وائي هم په دليل کې قران او حديث پيش کړه چې الله جل جلاله او يا رسول الله صلى الله عليه وسلم دواړو خبرو ته صحيح ويلي دي.

که دواړو خبرو ته غلط وائي! نو هم ايت او يا حديث پيش کړه او که يوه خبره صحيح او بله غلطه وي نو هم په قران او حديث حواله ورکړه چې الله ﷻ او يا رسول الله ﷺ ويلي وي چې دفلاني خبره صحيح او دفلاني خبره غلطه ده. په جواب کې به صرف قرآن او يا حديث پيش کوي، ځکه دقرآن او د مرفوع حديث څخه بغير نورې ټولې دامتيانو خبرې دي او د امتيانو دخبرو منل تقليد دى.

(۴) لامذهبه امين الله چې کومې حوالې ذکر کړي دي، چونکه ماسره په زندان کې ټول کتابونه نشته چې وې ګورم او معلومه يې کړم چې دده داحوالې رشتيا دي او که دروغ؟ لکن دروغ ويل دلامذهبانو شعار دى، نو محترم لوستونکي دې يې په اصل کتابونو کې وګوري. غالبا چې دروغې به وي او قطع او بريد به يې پکې کړى وي.

(۵) لامذهبه! تا خو د الحق الصريح د همدې ج ۴/ص ۸۶ کې ليکلي دي چې (هرچې تحسين دترمذى دى، نو په هغې اعتماد نشته) دلته دى څرنګه ورباندې اعتماد وکړو؟

**(۹) وسواس الخناس: لامذهبه ليکي:**

## دوهم دليل

**ترجمه**: د حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دى چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي، کله چې امام امين ووائي نو تاسو هم امين وائي ځکه چې دچا امين دملايکو دامين سره برابرشي نو ده ته مخکني ټول ګناهونه بخښلى کيږي. (امين الفتاوي، ج ۱ص ۵٦).

په دې حديث کې نه د جهر لفظ ذکر شوی دی او نه د سِر، يعنې نه دا پکې شته چې امين په زوره ووائي او نه دا په کې شته چې امين په پټه وائي، البته د تحقيق څخه معلوميږي چې په دې حديث کې په پټه د امين ويلو امر دی د دوو وجهو څخه.

**اوله وجه** : اوله وجه دا ده چې په دې حديث کې دا ترغيب دی چې د چا امين د ملايکو د امين سره موافق شي، نو دده ټول مخکني گناهونه به وبخلې شي او د ملايکو امين چاندی او ريدلې دی، نو خامخا يې په پټه وائي او د احنافو امين هم په پټه دی، نو د احنافو امين د ملايکو د امين سره موافق دی.

**دوهمه وجه:** دوهمه وجه دا ده چې په حديث کې د (اذا امن فامنوا) چې کله امام امين ووائي تاسو هم امين ووائي جمله بعينه داسې ده لکه په بل

حديث کې چې د (اذا کبر فکبرا) جمله ده. يعنې چې کله امام الله اکبر ووائي نو تاسو هم الله اکبر ووائي ! د دوهمې جملې له وجهې امام په زوره الله اکبر وائي لکن مقتديان چې کله د امام الله اکبر واوري نو دوی ورپسې په پټه الله اکبر وائي. نو (امنوا) د کبروا) په شان دی نو مقتديان لکه چې په پټه الله اکبر وائي، نو همدا رنگه به په پټه امين وائي نو د مقتديانو امين د دوی د تکبير په شان دی نو دواړه به په پټه وائي.

پاتې شو د امام امين نو هغه د امام په تکبير باندې قياس ول غلط دی، ځکه د امام او د مقتدي تکبير بالکل په يو وقت کې کولو باندې په احاديثو کې هيڅ ترغيب نه شته او د امين په باره کې ډير روايات راغلي دی، چې د مقتديانو، امام، او د ملايکو امين بالکل په يو وقت کې کول پکار دی، او همدا رنگې د امام تکبير ځکه په زوره وي چې د الله ﷺ د ذکر سره مقتد يا نو ته اطلاع ور کول مقصود دي او په امين کې مقتديانو ته اطلاع نده مقصود.

(۲) د لامذهبانو په دې حديث عمل نه شته ځکه زه امين الله پشاوری ته وايم چې کله ته د امام پسې په داسې وخت کې اقتداء وکړي چې هغه ولا الضالين ته رسيدلی وي. نو آيا ته په دغه وخت کې اول د امام سره امين وائي او بيا وروسته قرائت خلف الامام کوي؟ يعنې الحمد لله وروسته وائي او که نه اول الحمد لله وائي او د خپلې الحمد لله په اخر کې امين وائي؟ که چرته اول د امام او د ملايکو سره يو ځای امين وايي او بيا وروسته الحمد لله وائي نو تحريف د قران راغلو او د (يحرفون الکلم عن مواضعه)

مصداق شوې او که اول الحمد لله وائي او د خپلې الحمد لله په اخر کې امين وائي نو ستا امين د امام او د ملايکو د امين سره موافق نه شو .

او د حديث په دواړو جملو عمل رانغلو ځکه ( اذا امـن الامـام فـامنو ) کې ظرف د امام او د مقتديانو د امين لپاره يو دی يعنې هغه وخت کې به امين وائي چې کله يې امام ووائي او ( فانـه مـن وافق تامينه تامين الملايکة ) هم په هغه وخت کې امين کولو ته ترغيب دی چې کله يې امام وائي او ستا امين د ير وروسته شو

**(۱۰) وسواس الخناس: لامذهبه ليکي : دا حديث دليل دی چې امين په جهر سره دی ځکه که چيرې د امام امين په جهر سره نه وي نو مقتدي به د امام امين څنګه واوري او هغه سره څنګه موافقت وکړي ) ج ۱/۲۵۶ ) .**

**الاخساء : (۱) الزامي جواب دادی چې په دې حديث کې خو دا ترغيب هم شته چې خپل امين د ملايکو د امين سره موافق کړئ نو زه د لامذهبه امين الله څخه پوښتنه کوم چې ته د ملايکو امين څرنګه اوري ؟ او د هغوی د امين سره څرنګه موافقت کوئ ؟ د هغوی امين تا کله واوريدو ؟**

(۲) په يو حديث کې راځي حضرت حذيفه فرمائي چې : (انـه صـلى مـع النـبى ﷺ وكان يقـول فى ركوعه سبحان ربى العظـيم وفى سـجودة سـبحان ربى الاعلى ... آهــ ) [مشـكوة ج۱ص ۸۳ ]. نو ده د رسول الله ﷺ تسبحيات څرنګه واوريدل .

(۳) په بل حديث کې راځي چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو تاسو امين ووائي ، بخاری ، ج ۱ص ۱۰۸ ) نو چې امام ولا الضالين ووائي ورپسې سکته کوي هم دغه وخت کې امام امين وائي او مقتديان يې هم وائي .

**(۱۱): وسواس الخناس**: لامذهبه امين الله د دې څخه وروسته په علامه سندی ، علامه خطابی ، حافظ ابن قيم او په علامه عبد الروف مناوی حوالې ورکړي دي . ( ج ۱/۲۵۶/۲۵۷ ) .

**الاخســاء :** (۱) لامذهبه بيا ځان په خپل ګمان په شرک تقليدي کې وغورزولو ، ځکه چې داخلو رواړه امتيان دي .

**نولامذهبه!** دامتی خبره قرآن دی اوکه حدیث ؟

(۲) محترم لوستونکي دې داحوالې هم په اصل کتابونو کې وګوري څکه کذب او تحریف، قطع او برید د لامذهبانو خصوصاً ددې لامذهبه پلرنی کسب دی.

**(۱۲) : وسواس الخناس لامذهبه لیکي :**

## دریم دلیل

**ترجمه** : دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ به چې کله دسورة فاتحې ویلونه فارغ شونو اوازبه یې اوچت کړو أو امین به یې وویلو. (امین الفتاوی، (ج ۱،ص ۲۵۸).

**الاخساء :** (۱) حضرت ابوهریرهٔ ﷺ متاخرالاسلام راوی دی، کله چې ده اسلام راوړو نو رسول الله ﷺ دده دتعلیم لپاره په زوره امین وویلو.

(۲) ددې حدیث دسند مدار په اسحق بن ابراهیم دی او ده ته ابوداود اونسائي ضعیف ویلی دی او دحمص محدث محمد بن عوف ورته دروغژن ویلي دي (میزان الاعتدال، ج ۱ ص ۸۵)

(۳) ددې حدیث بل راوي عبدالله بن سالم دی او داناصبی و، د حضرت علی ﷺ توهین به یې کاوه او ویل به یې چې د حضرت علی ﷺ په کومک حضرت ابوبکر ﷺ او عمر ﷺ شهیدان شول. (میزان الاعتدال ،ص ۸۵).

(۴) حضرت علی ﷺ امین بالجهر نه ویلو. (مجمع الزواید، ج ۱ص ۸۵) الجوهر النقی، ج ۱ص ۱۳۰) نو څکه لامذهبان د حضرت علی ﷺ پر خلاف د دروغژن اسحاق او دبې دینه ناصبی سالم روایتونه پیش کوي. دا دهغه مجتهدینو کار دی چې انګریزانو داجتهاد په ګدی کینولې دي او د اهلحدیث په لقب یې نازولې دي. (الحیات بعد الممات، ص ۲۲۸ / الارشاد الی سبیل الرشاد، ص ۱۳/ دغیرمقلدینو کتاب ].

(۵) په دې حدیث کې هم دسنت لفظ نه شته، نو دامین الله دادعوه به څرنګه ثابته شي چې (امین په زوره ویل سنت دی) ج ۱/ ۲۵۳)

(٦) دې حديث كې ددوام اود هميشوالي لفظ هم نه شته نو لامذهبان د هميشوالي دعوه په كوم حديث ثابتوي ؟

(٧) دې حديث كې دمقتدي لفظ نه شته، نولامذهبان مقتديان څرنګه امين په زوره وائي ؟ او څرنګه دا حديث دځان لپاره دليل ګرځوي ؟

(٨) په دې حديث كې خود منفرد يعنې يواځې لمونځ كونكي ذكر نه شته د هغه لپاره. دكوم ايت ياحديث له وجهې په ټولو فرايضو سننو او نوافلو كې دپټ امين ويلو امر كوي ؟

(٩) په دې حديث كې خو ديو ولسوا و شپږو ركعتونو تفصيل نشته نو تاسو يو ولس ركعته دكوم ايت ياكوم حديث له وجهې مستثنى كوئ او په هغې كې امين ولې په پټه وائي ؟

**يولامذهبه مجتهد :**

يولامذهبه چې ځان ته يې مجتهد ويلو، ځكه چې د لشكر خبيثه (لشكر طيبه) سره يې په ټرننګ كې صرف درې چلې لګولې وې، د هغو دريو چلو په بركت مجتهد شوى و. هغه راته وويل چې مونږ شپږو ركعتونو كې امين په زوره وايو، ځكه هلته قرائت په زوره دى او په پاتې يو ولسو ركعتونو كې يې په پټه وايو ځكه چې هلته قرائت په پټه دى، يعنې امين د قرائت تابع دى او تابع په حكم د متبوع كې وي.

**ما ورته وويل :** (١) چې اول خو ستا دا خبره نه قرآني ايت دى او نه د رسول الله ﷺ حديث دى. الله ﷻ يا رسول الله ﷺ په كوم ايت او په كوم حديث كې ويلي دي چې په كوم لمونځ كې چې قرائت په زوره ويل كيږي هلته امين په زوره ويل پكار دي او په كوم لمونځ كې چې قرائت په پټه ويل كيږي هلته امين په پټه ويل پكار دي؟ هغه راته وويل چې ايات او حديث نه شته، لكن دا زمونږ قياس او اجتهاد دى.

ما ورته وويل چې: ستاسو كتابونه خو ددې څخه ډك دي چې دلايل صرف دوه دي قرآن او حديث او قياس د شيطان كار دى نو دلته مو د شيطان دا كار ولې شروع كړو ؟ او همدا رنګې د مجتهد شرائط څو دي ؟ او په تاسو كې هغه شرائط شته او كه نه ؟ نو فبهت شو.

(٢) : بيا مې ورته وويل چې تاسو خو په دې خپل قياس هم نه پوهيږئ ځكه په كوم لمانځه كې چې قرائت په زوره وي هلته صرف امين ولې په زوره وايئ؟ نور ذكرونه او دعاګانې ورسره ولې په زوره نه وايئ؟ مثلاً ثناء، تعوذ، تكبيرات انتقالات، تسبيحات دركوع او دسجدى، تشهد، درود، او اخرنى دعا.

په کوم ایت یاحدیث کې راغلي دي چې داټولې دعاګانې اوذکرونه په پټه کوئ بغیرد امین څخه.

(۳) بیامې ورته وویل چې ستاسو په دې خپل قیاس هم عمل نه شته ځکه چې تاوویل چې امین د قرائت تابع دی، نوستاسو مقتدیان خو همیشه قرائت په پټه کوي او امین بیا په زوره وایې، نو پکار دي چې د قرات په شان امین هم په پټه ووایې.

(۴) همدارنګه مونږ وایو چې امام متبوع دی او مقتدیان تابع دي امام ټول تکبیرونه په زوره وایې مقتدي تابع دی، پکار دی چې دی هم ټول تکبیرونه په زوره ووایې، امام سورة او فاتحه په زوره وایې اومقتدي دده تابع دی، پکار دی چې مقتدي یې هم په زوره ووایې، امام سمع الله لمن حمده په زوره وایې او مقتدي د ده تابع دی پکار دی چې مقتدي یې هم په زوره ووایې، امام السلام علیکم په جهر سره وایې او مقتدي دده تابع دی پکار دی چې هغه یې هم په زوره ووایې.

**(۱۳) وسواس الخناس لامذهبه لیکي:**

(اخرجه الدارقطنی ۱، ۳۲۹ وقال هذا اسناد حسن / ج ا ص ۲۵۸)

**الاخساء**: دارقطنی په سنن کې دې حدیث ته حسن ویلی دی، لکن دا صرف د حمایت د مذهب له وجهې دی، اصل حقیقت دادی چې ددې حدیث په سند کې کذاب اوبې دینه راویان دي. له همدې وجهې دارقطنی خپله په کتاب العلل کې دې حدیث ته ضعیف ویلي دي.

دسنن څخه ددې روایت حسن والی رانقلول اود کتاب العلل څخه یې ضعیفوالی نه رانقلول کتمان اوسبیل الیهود دی او په همدې باندې دغیر مقلدینو مذهب قایم دی.

**(١٤) وسواس الخناس لامذهبه لیکي :**

## څلورم دلیل

ترجمه: رسول الله ﷺ فرمائي چې یهودیان په هیڅ یو څیز مونږ سره د. مره زیات حسد نه کوي لکه څومره یې چې د جمعې په ورځ، بیت الله ته مخامخ کیدلو او په امام پسې وروستو په امین ویلو باندې مونږ سره حسد کوي. [امین الفتاوی (ج ، ا ص ۲۵۸ ) الحق الصریح ج ۴ ص ۲۵۵].

**الاحساء :** په دې کې د عبد الله بن عباس ﷺ روایت ضعیف دی، ځکه د عبد الله بن عباس په روایت کې طلحه بن عمر دی چې ډیر سخت ضعیف دی. (میزان الاعتدال، ج ۲ص ۳۴۰ (تهذیب التهذیب، ج ۵ ص ۲۵/حاشیه صلوة الرسول ص ۲۴۱ دا د غیر مقلدینو کتاب دی (نیل الاوطار، ج ۲ص ۲۲۹).

او حضرت عایشی رضی الله عنها روایت سره د دینه چې ضعیف دی د ربنالک الحمد، او د سلام ذکر هم په کې دی وګوره. (بهیقی ،ج ۲ص ۵۶) مجمع الزوایـد ،ج ۱ص ۱۴۸) نولامذهبان مقتدیان خپله هم ربنالک الحمد او سلام په زوره نه وائي او چې بل څوک یې په زوره وائي هغه ته هم په غوصه کیږي او حسد ورسره کوي.

نولامذهبان په دریو کې د وه حصې یهودیان شول، بلکې چې کله یو ائې لمونځ کوي، نو امین هم په پټه وائي، نو په خپله فتوی یې په یهودیت کې څه شک پاتې شو.

(۲) په دې حدیث کې خو رسول الله ﷺ د جهر لفظ ندی ذکر کړی، یعنې دایې ندي ویلي چې یهودیان په زوره امین باندې زمونږ سره حسد کوي بلکې داسې یې ویلي دي چې یهودیان د امین په وجه زمونږ سره حسد کوي نو لامذهبه خناس د جهر په ورزیاتولو کې د خپل یهودي عادت څخه مجبور دی.

(۳) اصل خبره داده چې د حسد لپاره صرف علم ضروري دی، جهر نه دی ضروري ګوره مقتدیان ربنالک الحمد او السلام علیکم ورحمة الله په پټه وائي او په همدې حدیث کې دي چې یهودیان زمونږ سره د دې دواړو په وجه هم حسد کوي، دا ځکه چې یهودیانو ته په دې دواړو علم دی ځکه حسد کوي. ګوره مونږ اهل سنت والجماعت احناف امین په پټه وایو نو لامذهبه د یهود و څخه هم زیات حسد راسره کوي ځکه چې تر ننه پورې یهودیانو په دې مسئله کې زمونږ پر خلاف رسالې ندي لیکلي، زمونږ پر خلاف یې چیلنج بازی ندي کړي او بالعکس لامذهبانو ځانونه زمونږ سره مخالفت ته وقف کړی دی.

(۴) پوره دیرش کاله دوره د خلافت کې هیچا په حرمینو کې امین بالجهر نه دی ویلې، نو ایا معاذ الله په دې ټوله دوره د خلافت کې په حرمینو یهود مسلط وو؟ په دې دوره کې په پټه د امین روایات په (طحاوی ج ۱ص ۱۴۰) کې موجود دی.

(۵) یهودیان د ورځې په بازارونو کې وي، لامذهبان د ورځې امین په زوره نه وایي، نو کیدی شي چې د یهودیانو سره یې سازش کړی وي کله چې د شپې یهودیان نه وي بیا یې په زوره وائي.

(٦) ديوسلواويايمې (۱۷۰هـ) هجرى څخه ترديارلس سوه شپږشپتيمى (۱۳٦٦) هجرى پورې احناف دحرمينو خادمان وو. نومعاذالله ايا په دې ټوله دوره کې حرمين ديهودوپه قضبه کې وو.

(۷) - اصل خبره دا ده چې په افغانستان، پاکستان او هندوستان او په نوره اکثره اسلامي نړۍ کې ددې ملکونو خلک احنافو مسلمانان کړي دي، داحنافو مجاهدينو په لاس ورته نبوى لمونځ ورښودل شوى دى نودوى غواړي چې داحنافو په لاس مسلمانان شوي خلک په قسما قسم بهانو باندې بيرته يهوديان او کافران کړي.

## (۱۵) وسواس الخناس لامذهبه ليکلي دي.

**پنځم دليل:** أَمَّنَ ابْنُ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: وَمَنْ وَرَآءَهُ حَتَّى إِنَّ لِلْمَسْجِدِ لَلَجَّةً.

**ترجمه** : امام عطانه روايت دى چې عبدالله بن زبير رضي الله عنه او هغه نه وروسته مقتديانو امين دومره په زوره سره وويلو چې مسجد وکړنګيدو. بخارى، ج ۱ص ۱۰۷).

**الاخساء** : لامذهبانو چې کله په شپږورکعتونو کې په زوره دامين لپاره دالله ﷻ حکم پيدانکړو، اونه يې درسول الله ﷺ حکم پيدا کړو، اونه يې دخلفاء راشدينو ددورې څخه کوم ثبوت پيدا کړونو اخر دحجاج بن يوسف زمانې ته راورسيدل، اودحجاج بن يوسف دزمانې ديوى واقعې ذکريې وکړو، چې دحجاج بن يوسف په زمانه کې عبدالله بن زبير رضي الله عنه په زوره امين ويلى دى په بخارى شريف کې الفاظ داسې دي چې «أَمَّنَ ابْنُ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: وَمَنْ وَرَآءَهُ حَتَّى إِنَّ لِلْمَسْجِدِ لَلَجَّةً. [بخارى، ج ۱ص ۱۰۷) په ترجمه کې دمقتدي کلمه امين الله پشاورى دځان څخه ورزياته کړې ده . اود خپل يهودي صفته عادت څخه مجبور شوى دى.

(۱) لامذهبه امين الله ته مونږ وايو چې په بخارى کې ددې روايت لپاره سندندى ذکرشوى اوعبدالله بن زبير رضي الله عنه صحابى دى او امام بخارى دتبع تابعينو څخه هم دوروسته زمانې دى يعنې دعبدالله بن زبير په زمانه کې نه وواوتادهمدې کتاب په (ص ۲۸۵) سطر (۱۷) کې ليکلي دي چې (اودامسئله زمونږاوداحنافو په مينځ کې منلى شوى قاعده ده چې بلاسنده روايت لره هيڅ اعتبارنشته. [امين الفتاوى، ج ۱ص ۲۸۵ )

نو دا دین لکه چې ستا د پلار دی چې ستا د خوښې تابع دی، په یو ځای کې بې سنده روایت دېتر ګوتو کړځوي او په بل ځای کې یې شاته غورزوي او ردو نه وربانديې کوي.

(۲) که ته وائې چې د امام بخاري بې سنده روایتو نه هم مونږ ته حجت دي ځکه چې زمونږ د هغه په علمي مهارت باندې اعتماد دی نو بیا خو دا تقلید شو او تاخو ځان وشکولو چې تقلید شرک دی افسوس چې د شرک په تهمې کې غورځېدلی ګونګټ یې او بیا هم ځان ته موحد وایې.

(۳) په دې روایت کې د سنت لفظ کوم دی؟ چې ستا د دعوې لپاره دلیل شي.

(۴) دا خو صرف دیو وخت واقعه وه د دې څخه دوام او همیشوالي د کوم ځای څخه ثابتوې؟

(۵) په دې روایت کې دا هم ندي ذکر شوي چې دا امین د لمانځه په داخل کې وو او که د لمانځه څخه په وروسته دعا کې وو؟ او بیا که د لمانځه په داخل کې وو، نو بیا دا نده معلومه چې د سورة فاتحې څخه وروسته وو او که د قنوت نازله په وخت کې وو؟ دغه وخت کې خو عبد الله بن زبیر ﷺ د حجاج لخوا محاصره و، نو دا قوی احتمال دی چې په قنوت نازله کې به یې ویلي وي نو چې دومره احتمالات په کې راغلل ستا لپاره څرنګه دلیل شو؟

(۶) لامذهبه امین الله! قران دې پریښودو، احادیث دې پریښودل، د خلفاء راشدینو تعامل دې پریښودو. د خلفاء و د دورې څخه وروسته د حجاج زمانی ته لاړلې او د عبد الله بن زبیر ﷺ تقلید شخصي دې شروع کړو نو تا ته دا تقلید جایز دی او که شرک؟ ستا په فتوی خود نورو خلکو لپاره شرک دی او بیا هم که تا د ځان لپاره جایز کړی وی نو بیا چې ته د عبد الله بن زبیر ﷺ تقلید شخصی کوي نو هغه خو په لمانځه کې په زوره ولاسونو لمونځ کولو. د اخترونو لپاره به یې اذان او اقامت هم کولو. (معارف السنن، ص ۴۶۰). بلکې هغه به بالکل امین نه ویلو نه په پټه او نه په زوره. (طحاوی، ج۱ص ۱۴۷ / ابن ابی شیبه، ج۱/۹۸/ معارف السنن، ج ۱/ ۱۲۰) نو په دې مسائلو کې یې ولې تقلید نه کوي؟ او همدا رنګې په دې روایت یې ولې عمل نه کوي؟

(۷) لامذهبه په بهیقی هم حواله ور کړیده حالانکه په بیهقی کې د عطاء روایت په دې طریقه باندې نه دی ذکر شوی.

(٨) پـه دې روايـت كـې دمـسـجـد كړنګيد لو ذكر دى او كړنګيـدل پـه پـوخ او ګمبتدار مـسـجد كې پيداكيږي او پـه هغـه وختونو كې مسجد پـوخ او ګمبدار نـه وو، بلكې دكجوروڅانګونه يې ورتـه په چت اچولې وو چې په باران كې به راڅڅيدلو.

(٩) امـين بالجهر داسـې شـى دى چـې هرڅـوک يـې اوري او د لامـذهبو سـره دوايـل بـن حجرﷺ او دعبد الله بن زبيرﷺ څخه علاوه دبل هيڅ صحابى قول او عمل په دې باره كې نه شته او د دې دواړو حضراتو روايات هم ددوى لپاره قابل داستدلال ندي، نو دومره په زوره امين چې مسجد ورباندې كړنګيږي څنګه صرف ددوو دريو صحابه وو څخه رانقليږي؟ هغه هم په صحيح سند سره نه او بالعكس په پټه امين د حضرت عمرﷺ، حضرت علىﷺ، حضرت عبد الله بن مسعودﷺ څخه په صحيح سند سره ثابت. (مجمع الزوايد، ج ٢ ص ١٠٨) كنزالعمال، ج ۴ ص ٢۴٩ /طحاوى، ج ١ص ١۴٠).

(١) ددې روايت او د حضرت وايل بن حجر د روايت چې تاورته اول دليل ويلى دى تعارض دى ځكه چې دلته د مسجد د كړنګيدو ذكر دى او هلته صرف دومره دى چې (فسمعته وانا خلفه) ما واوريد و اوزه ورپسې ولاړوم.

**وسواس الخناس: لامذهبه خناس ليكي:**

## شپږم دليل

**ترجمه :** عطاء بن ابى رباح فرمائي چې ما دوه سوه صحابه كرام په دې مسجد حرام كې موندلي دي چې كله به امام ولاالضالين وويلو نو دوى به په اوچت اواز امين وويلو. (ج ١ _ ٢٦٠)

**الاخساء:** (١) دا دسره ثابته نده چې دعطاء ددوه سوه صحابه وو سره ملاقات شوى دى حسن بصرى رحمه الله دده څخه په عمر كې مشر وو بيا هم د هغه ملاقات دشپږو شلو (١٢٠) اصحابو كرامو سره شوى دى.

(٢) شاه صاحب ليكي چې د حضرت عطاء مراسيل اضعف المراسيل دى (كما صرح به السيوطى في تدريب الراوى).

(۳) ددې راویت په سند کې خالدبن ابی نوف، ابوبکر محمد بن حسین القطان، او ابویعلی حمزه ابن عبدالعزیزدی چې دی چې د درې واړو نوم او نسب ندی معلوم او داهم بالکل ثابته نده چې د حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ په وخت کې په کوم ښار کې دوه سوه صحابه موجود وو.

(۴) په دې کې داهم نه شته چې ستاسو په شان یې صرف په شپږو رکعتونو کې امین په زوره ویلی دی او په پاتې یو لسو رکعتونو کې یې په پټه ویلې دی.

(۵) په زمانه د خلافت راشده کې چې شل رکعته تراویح په جماعت سره اداء شوی دي نو ته هغې ته شرک او بدعت وائی او بیاد خلافت راشده د زمانې څخه ډیر وروسته د حجاج بن یوسف په زمانه کې چې د عبدالله بن زبیر ﷺ فعل په ضعیف محتمل التاویل سند باندې روایت شوی دی، نو د هغه تقلید شخصي کوې نو ته څرنگه په دې تقلید شخصي باندې مشرک او بدعتي نه شوی؟ لکه چې هغه گیدړ حلال وي چې حلال کړی امین الله وي.

## (۱۶) : وسواس الخناس :

لامذهبه خناس په همدې صفحه کې لیکلي دي چې: امام عطاء دامام ابو حنیفه رحمه الله استاذ دی .امام ابو حنیفه رحمه الله د خپل استاذ عطاء بن ابی رباح په باره کې داسې فرمائي (ما رایت مثله (میزان الاعتدال، ۳/ ۷۰) مادده په ښان کس ندی لیدلې [ج ۱/ ۲٦۰].

**الاخساء:** لامذهبه خناس دامام اعظم رحمه الله خبره ددې وجهې څخه متصل وړیسې رانقلوي چې ساده عوام داگمان وکړي چې دا د دوه سوه صحابه وو خبره امام اعظم رحمه الله دامام عطاء څخه روایت کړې ده.

## (۱۷) : وسواس الخناس: لامذهبه خناس لیکلي دي :

**فائده:** د رسول الله نه د دغه دورنه راواخله تراوسه پورې مسجد حرام او مسجد نبوی په امین بالجهر باندې کړنکیږي، د حاجیانو نه تپوس وکړئ نو چې مسجد حرام او مسجد نبوی د څوارلس سوو کالونه راپدې خوا په امین بالجهر باندې کړنکیږي نو بیا د احنافو مسجد ونه ولې د امین ددې خوږ اوازنه چپ او خاموشه دي؟ (ج ۱/ ۲٦۰)

**الاخساء:** لامذهبه خناسه رسول اللهﷺ دروغ دمنافق علامه ګرځولې ده او د دوهکي په باره کې فرمائي (من غش فلیس منا )

نوتاته يې ددې دروغو او خیانتونو اجازه په کوم ځای کې درکړه ؟ ځکه په پوره دیرش کاله دوره دخلافت او په درویش کاله دوره دنبوت کې په هیڅ یو صحیح سند سره نده ثابته چې دکجورو د ډډونو څخه جوړشوی، په باران کې راڅځیدونکی، مسجدنبوي دی د امینونو څخه کړنګیدلې وي، د خلافت راشده څخه وروسته خلافت اموي، خلافت عبا ،خلافت خوارزمي، خلافت سلجوقي، خلافت ترکي، په دې ټولو خلافتونو کې هلته په سوونو زر میز ریل کیدلو ،دیوسلو او یایمی (۱۷۰) هـ څخه تر شپږسوه شپږ شپیتمی هـ دمکې معظمې او د مدینې منورې دامامت او خطابت ټول خدمت احنافو کړی دی

که رشتیا هم دزړې په اندازه علم درسره وي، نو را میدان ته شه ده خلافت راشده څخه وروسته دحرمینو شریفینو د هر امام او خطیب نوم ، ولد ، او مذهب ذکر کړه، چې معلومات دې وشي . او س هم هلته مقلدین امامان او خطیبان دي، او په ټولو حاجیانو کې دوه فیصده هم په زوره امین نه وائي ، دحجاج بن یوسف د دورې په یو ضعیف سند باندې روایت شوي واقعه تر څوارلس سوو کلونو پورې را کاږل د دروغو او د دهوکې انتهاده .

**(۱۸) وسواس الخناس : لامذهبه خناس لیکي:** زمامسلمانانو ورونو! داسنت ژوندي کړئ او د خپلو مسجدونو نه د حرمینو شریفینو په شان مسجد ونه جوړ کړئ (صلوة الرسول ، ص ۲۱۰ سیالکوټی امین الفتاوی ، ج ۲٦۰/۱ ).

**الاخساء:** لامذهبه خناس ددې عبارت حواله په صلوة الرسول ورکړه، او دا دې لپاره چې خلک ګمان وکړي چې دصلوة الرسول مولف به د متقدمینو علماء څخه وي، او خبره به يې داعتماد وړ وي، او په دې پرده اچوي چې دا دانګریزي دورې پیدا وار دی . حالانکه مناظر اهل سنت والجماعت علامه محمد امین صفدر اوکاړوي رحمه الله دده او دده دکتاب په باره کې لیکلي دي، چې دا د کوم عالم تصنیف ندی، بلکې یو طبیب د اصل کتابونو څخه بی ربطه او غیر متعلقه حوالې رااخسیتی دي . (مجموعه رسایل ، ج ۲ ص ۱۸ )

حکیم صاحب د سیالکوټ او سید ونکی دی، د سیالکوټ ښارته لامذهبیت د حکیم صاحب استاذ مولوی محمد ابراهیم سیالکوټي رارسولې دی، د ه ته د خپل استاذ د حالاتو پوره معلومات و، په یو خطاب کې ورته وائی ۰

ای حضرت اگرمین اپ کې روحانی داستانون کې هزارون میل لمبی فلم شهرکې لوگون کودکهادون توساراشهرلیلائی امارت کې عشق مین دیوانه هوجائے اورحضرت علی ﷺ کی گدی کے جانشین کی زیارت کرنے پنجاب دورائے جس شخص کی زندگی کاپس منظراتناتاریک اوربهیانک هواسے چاهے که منه چهپاکرگوشهٔ مسجدمین خاموشی کی زندگی گزارتا اور رو روکرتلافیٔ مافات کرتا لیکن حضوراسی سال کی عمرمین نئ جوانی چرهے هین . ( مدعی امارت سے شرعی استفتاء ، ص ۲۷) [بحواله: مجموعه رسائل لمحمدامین صفدراوکاروی رحمه الله ]

**او محترمه!** که چیرته زه ستاد روحاني قیصوپه زرگونو میله اوگدفلم دښار خلکو ته ښکاره کړم، نودښارټول خلک به دلیلی صفته امارت په عشق کې لیونیان شي . اود حضرت علی دگدی دجانشینانو دزیارت لپاره به دپنجاب په طرف په رامنډوشي . دکوم سړي دژوند تیرشوی تاریخ چې دومره تیاره اوویرونکي وي ، هغه ته پکار دا وي چې خوله بنده کړي، دمسجد په کونج کې د خاموشۍ ژوند تیر کړی، اوپه ژړاژړا دتیرو کارونو تلافی وکړي. لکن محترم په دې عمرکې هم نوی ځوانیدونکی دی. ( دمدعی د امارت څخه شرعی استفتاء ص ، ۲۷ ) نو حکیم صاحب چې په دې فلم کې شریک نه وي څرنگه به یې تیارکړي ؟. اوبیا لیکي چې حکیم صاحب د حافظ عبدالله روپړي څخه هم اخذکړی دی ۰

دده په باره کې غیرمقلد مولوی محمد جوناگړهي لیکلي ( روپړی نے معارف قراني بیان کرتے هوے رنډیون اوربهړوون کاارمان پو راکیا او رتماش بینون کے تمام هتهکنډی اداکے ) روپړی معارف قرآنی بیان کړي دي اودزنا کارو ښځو او اجړاکانو ارمان یې پوره کړی دی اود فلمیانو هرچل یې اداکړی دی .(اخبارمحمدی ډهلی ص ۱۳ ، ۱۰/۱ ) اپرئل ، سنه ۱۹۳۹ )

اودایې هم لیکلي چې عبدالله روپړی په طالبۍ کې په مفعولیت کې مبتلاوو. خلاصه دا چې ده دین دداسې خلکو څخه زده کړی وو چې اوس یې په زرگونو میلو اوگدروحانی فلم تیاروي ۰

او ظاهره ده چې پخپله په کې شريک نه وي نو قلم به څرنګه تيار کړي حکيم صاحب ته پخپلو علماو او مشايخو کې هغه خبرې په نظر ورغلي دي، چې ديهودو او دنصاراوو دعلماء او مشايخو ريکارډ ورته سلامي شوي دی، نو له دې وجهې ائمه مجتهدين هم پخپلو علماو او مشايخو قياسوي.

**(١٩) وسواس الخناس:**

لامذهبه خناس په مبارکپوری حواله ورکوي اوليکي چې دهيڅ يو صحابي نه په پټه امين په صحيح سندسره ندی نقل شوی الخ .... (تحفة الاحوذی، ج ١ص ٢٠٩) امين الفتاوی، ج ١/٢٦٠)

**الاخساء:** مبارکپوری هم ستا په شان يو دروغژن، دانګريزي دوری پيداوار، او لامذهبه دی (خفته راخفته کئ کند بيدار).

(اذاکان الغراب دليل قوم فسيهديهم سبيل الهالکين) دکارغه پسې چې روان شي په مرداروبه دی اړوی، دمشت نمونه يې خروار په طريقه دده يو داسې دروغ درته رانقلوم چې هغسې دروغ ديهودو په کتابونو کې هم نه پيدا کيږي.

په ابن خزيمه کې يو سند دی په دې طريقه (اخبرنا ابو طاهرنا ابوبکر نا ابو موسي نامومل ناسفيان عن عاصم بن کليب عن ابيه عن وايل بن حجر ﷺ الحديث. ابن خزيمه، ج١ص ٢٤٣) خو چونکه داسند ضعيف و، نو لامذهبه مولوی عبدالرحمن مبارکپوري او لامذهبه مولوی ثناء الله او لامذهبه علی محمد سعيد داسندلرې کړو او دمسلم شريف داسنديې ورولګولو: عن محمد بن يحي عن عفان عن همام عن محمد بن حجاده عن عبدالجبار بن وايل عن علقمه بن وايل ومولي لهم عن ابيه. (فتاوی ثنائيه، ج١/٤٢٤ /فتاوی اهلحديث، ج ٣ص ٩١)

**(٢٠) وسواس الخناس : لامذهبه خناس ليکي:** دامين بالجهر په باره کې دعلماوو اقوال (ج ١/٢٦١)

**الاخساء:** لامذهبه دعلماء اقوال لکه چې ستا په نزد دقرآن او دحديث څخه ماسوی دريم دليل شو، لکه چې دخپلو مخکينو خبرو څخه دې روجوع وکړه چې دلايل صرف دوه دي قرآن او حديث، اوس لکه چې ستا په نيز دلايل درې شو: قرآن، حديث او دعلماوو اقوال. بعضې لامذهبان وائي چې دعلماوو اقوال

دتائیدلپاره پیش کوو، نومونږوایوچې داپه کوم ایت او حدیث کې راغلي دي چې که په قران او حدیث دې تسلي ونشوه نوبیا د علماوو اقوال دتائیدلپاره پیش کوه؟.

(۲) په دی علماؤ کې چې ده ورباندې حوالې ورکړي دي، اکثر ده په شان لامذهبه اوپه هند باندې دانګریزي دورې پیداوار دي.

لکه محمدیحی ګونـدلوي ،ابوعمرعبدالعزیزنورسـتاني، سـیدنذیر حسـین محـدث دهلـوی ،محمدصادق سیالکوتي، عبدالسلام رستمي ، حبیب الله السلفی، ثناء الله امرتسري ،شوکاني په کې زیدي شیعه دی، صدیق حسن خان، زبیرعلی زئی ، محمدلقمان السلفی، که ددوي په فلسفه وغیرو نوخبره به ډیره لرې لاړه شي ، لکن اجمالاً به دومره ووایوچې ددوي سره بل هیڅ دلیل نه شته، هر څه چې ددوی سره وو هغه تا مخکې رانقل کړي دي او جوابونه دی یې واوریدل.

(۳) داحنافو او اسلافو په کتابونویې چې کومې حوالې ورکړي دي هغه اکثره دروغ دي او امین الله په کې قطع اوبرید کړی دی، محترم لوستونکي دي ئې په اصل کتابونوکې وګوري چې ددې لامذهبه دروغ اورشتیامعلوم شي، دنمونې په طریقه داچې ده په ابن الهمام کومه حواله ورکړی ده هغه دروغ ده لوستونکي یې په اصل کتاب کتلي شي.

دادروغ نورحسـین ګرجـاکهی پـه خپلـه رسـاله امـین بـالجهر/ ص ۲۲ او ص ۲۱ کـې ذکرکـړي دي اولامذهبه امین الله دهغه څخه رانقل کړي دي، نو لا مذهبه امین الله په دروغوکې هم دلامذهبه نورحسین په غولو تیزونه اچوی اونوم ورته دخپل تحقیق ورکوي.

**(۲۱) وسواس الخناس:** لامذهبه خناس لیکي: په پټه دامین ویلو دلایل او دهغې تجزیه. (امین الفتاوی، ج ۱ص ۲٦٦).

**الاخساء:** (۱) لامذهبه دتجزئي لفظ لیکلي دي، حالانکه صحیح جایزه ده دایې په پښتوکې دعلمي اصطلاحاتو اندازه ده.

(۲) مخکې تیره شوه چې دمفتي محدث او جایزه اخستونکي شرایط امام احمد ،امام شافعي ،اوامام بخاری ذکرکړي دي او لامذهبه امین الله په هغې تـول هیڅکله ندی برابر. دا شرایط ابن القیم رحمه الله په اعلام الموقعین ، ج۱ ص ۴۵ شرائط الافتاء ) کې ذکر کړي چې مخکې مونږ رانقل کړل اوکله

چې په لامذهبه امين الله کې داشرايط نه شته اوبيا هم دمجتهدينو سره لانجې کوي او حتی چې پخپل گمان دمجتهدينو غلطی نيسي، نو دادده خپل حماقت دی او د رسول الله ﷺ د دې فرمان مخالفت دی چې: ان لاننازع الامر اهله. [نسائی، ج ۲/ ۱۵۹).

يعني مونږ به د اهل فن سره جگړه نه کوو، د رسول الله ﷺ دا اصل ټولې دنيا منلې دی، د ټولې دنيا اتفاق دی، چې د ډاکټر سره اختلاف رايه صرف دډاکټر حق دی، نااهله مريض يې ور سره هيڅکله نه شي کولی، دقانون پوه سره اختلاف رايه صرف قانون پوه کولی شي، نااهله مجرم ته هيڅکله دا حق نه شته چې په قانون پوه باندې اعتراض وکړي، دمحدث سره اختلاف رايه صرف محدث کولی شي دحديثو دکوم کتاب د اردو يا د پښتو ترجمې کتونکي ته هيڅکله دا حق نه شته چې دمحدث سره اختلاف وکړي، همدا رنگې د مجتهد سره اختلاف رايه صرف دمجتهد حق دی، دکوم دوکاندار، د ټيکسي د ډريور، او د انگريـزي دورې د اردو کتابونو لوستونکي ته هيڅکله دا حق نه شته چې هغه دمجتهدينو سره اختلاف وکړي.

لامذهبه امين الله په تاخود اجتهاد هو اخر خنده هم نده لگيدلې، او ستاسو ټول جماعت چې سره يو ځای شي، نو دقران کريم د يو صريح ايت اويا د رسول الله ﷺ د يو صحيح، صريح، مرفوع او غير معارض حديث څخه د اجتهاد جامع او مانع تعريف، او د مجتهد شرائط نه شي ښودلې. که ښکر دې خار ښ کوي نو راميدان ته شه او يوا ځې ته نه، بلکې ستاسو ټول لامذهبان دې د قرآن او د حديث څخه د اجتهاد جامع او مانع تعريف صراحة وښائي، او همدا رنگې دې دمجتهد شرائط بيان کړي، ان شاء الله تعالی چې ترقيامته پورې به عاجزئي :

مونږ اهل سنت والجماعت دادله يې اربعه وومنونکي يو، زمونږ څخه يې وغواړه ان شاء الله تعالی چې دادله يې اربعه وڅخه به يې په لسو دقيقو کې جواب درکړو.

او کله چې يوا ځې تـه نه، بلکې ستاسو ټول جماعت د اجتهاد د تعريف او د مجتهد د شرايطو څخه جاهلان يې او د نااهلی او د جهالت سره سره د مجتهد اعظم امام ابوحنيفه رحمه الله سره منازعت کوئ، نو دا د رسول الله ﷺ د دې حديث صريح مخالفت دی چې: ( ان لا ننازع الامر أهله ).

**چيلنج :** لامذهبه تا په صفحه يوسلو او شپيتمه کې ليکلي دي چې اهل حديث په ايمه يې اربعه وو کې چې د چا خبره اقرب الی السنة وي هغه اخلي. ( امين الفتاوی، ج ۱ _ ۱۶۷ سطر ۱۹ )

زه وايم چې دا برګ دروغ دي. ته يو مجلس مقرر کړه، مونږ به د فقهې د هر باب څخه سل سل مسئلې راواخلو او د مصري چاپ والا د حديثو کتابونه به راوړو، چې حاشيې نه لري او غير مترجم قران به هم راواخلو، او دا ځکه چې د اصحاب الحواشي او د مترجمينو تقليد رانه شي. نو بيا که ته رشتيا د هيڅ امام مقلد نه يې او ذره علم درسره وي، نو اول به ته په هره مسئله کې د څلورو امامانو مذهبونه بيان کړې، بيا به د هر امام دلايل بيا کړې، او بيا به د قران د ايت او يا د حديث صحيحه، مرفوعه، غير معارضه لوجې د يو امام قول صحيح او د دريو امامانو قول غلط ثابت کړې.

لامذهبه امين الله ته د کوم باغ مولې يې؟ ستا غټ غټ لامذهبه مشران د حنفيت د سيلاب په مخکې څوڅو ځايه شکيدلې دي او د خنزير د څرمنې په شان ټوټه ټوټه شوي دي.

خو خير او س به د دې خناس يو څو وسوسې ذکر کړو چې د قران او د سُنّت په خلاف يې د خلکو په زړونو کې اچوي او په دې ګرنګ صفته کتاب کې يې رانقل کړي دي، اول د احنافو د دليل تفصيل کووم او بيا به و ګورو چې د ده اعتراضونه څومره او هن من بيت العنکبوت دي.

## د احنافو دليل

د قران کريم او د حديث څخه دوه مقدمې ثابتيږي.

**اوله مقدمه :** امين دعا ده. **دوهمه مقدمه :** اصل په دعا کې اخفاء يعنې پټ لوستل دي.

### داولى مقدمې دلايل دادي:

(۱) الله فرمائي (قَدْ أُجِيبَتْ دَّعْوَتُكُمَا) په تحقيق سره قبوله کړی شوه دعا ستاسو دواړو، په تفسير درمنثور کې د حضرت ابو هريره ﷺ حضرت عبدالله بن عباس ﷺ حضرت عکرمه ﷺ حضرت ابو صالح حضرت ابو العاليه حضرت ربيع او د حضرت زيد بن اسلم رحمهم الله بيان رانقل شوی دی چې حضرت موسى عليه السلام دعا کوله او حضرت هارون عليه السلام امين ويلو، حالانکه الله ﷻ دواړو ته دعا ويلې ده، نو امين هم دعا شوه.

(۲) امام عطاء رحمه الله فرمائي ( الأمين دعاء ) امين دعا ده. (بخاری، ج ۱ _ ۱۰۷)

### دوهمې مقدمې ډيردلايل دي يو څو يې دادي.

(۱) الله ﷻ فرمائي : (اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً) دعا کوئ الله ﷻ ته په عاجزی او په پټه.

(۲) بـل ځـای کې الله ﷻ فرمـائي : (اِنَّــه لَا يُحِــبُّ الْمُعْتَــدِيْنَ) بې شـکه چې الله ﷻ دحد ځخه تجاوزکونکي نه خوښوي.

(۳) الله ﷻ فرمائي (وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ) خپل رب پخپل زړه کې یادوه.

(۴) حضـرت زیـد بن اسـلم رحمـه الله فرمـائي چې: (الاعتــداء الجهــر) دحد ځخه تجاوز پـه زوره دعا کول دي.

(۵) حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ فرمائي (خَيْرُالذِّكْرِالْخَفِيُّ) بهترین ذکر هغه دی چې په پټه وي. (مسند احمد، ج ۱۷۲/۱)

خلاصه دا چې دواړه مقدمې په قران او حدیث ثـابتې شـوې، چې امین د عـاده او اصـل پـه دعـاکې اخفاء یعنې پټ لوستل دي، نو اصل په امین کې اخفاء یعنې پټ لوستل شو.

**اوله فائده :** اصـل پـه دعـاکې اخفاء ده لـه همدی وجهې دلمانځـه ټول ذکرونه او دعاګانې پـه پټه لوستلې شي لکه سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ، أَعُوْذُ بِاللّٰهِ رَبَّنَالَکَ الْحَمْد، اللّٰهُ اَکْبَرْ د انتقالاتو، اَلتَّحِيَّاتُ، اللّٰهُمَّ صَلِّ، سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْم ، سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰي وغـيره... ځکه چې پـه دې کې یـوائې دا الله ﷻ یـادول مقصود دي، دانسانانو اطلاع او خبرول پکې ندي مقصود.

**دوهمه فائـده** :اصـل خو دا ده چې دعاګانې او ذکرونه په پټه ولوستل شـي، ځکـه چې الله ﷻ پـه ښکاره او پـه پټه خبردار دی. لکن پـه بعضې ذکرونو او دعاګانو کې دا الله ﷻ د یادولو او دا الله ﷻ ځخه د غوښتلو سره د انسانانو اطلاع او خبرول هم مقصود وي، یا د هغوی تعلیم مقصـود وي، او انسـانان پټ اواز نه اوري، لدې وجهې انسانانو ته دور اور لو لپاره بعضې ذکرونه او دعاګانې خلاف الاصل پـه زوره لوستلې شي لکـه : اذان، اقامت، د امـام تکبیـرات د انتقالاتو، اوسلام ، او کله دلمانځـه ځخـه وروسته دعاګانې چې مقتدیان پوه شي چې امام څه غواړي.

ددینه وروسته دې لامذهبه خناس یا په اوله مقدمه رد وکړي، یعنې دا دې ثابته کړي چې امین دعا نده او یا دې په دوهمه مقدمه رد وکړي، یعنې دا دې ثابته کړي چې اصل پـه دعـاکې اخفـاء نده ، او که پـه دواړو

مقدمو ردنه شي کولى، بلکې دواړه مقدمې مني او بيا هم د نتيجې څخه منکر دى. نو دا بيا د ده د اسې جهالت دى، لکه يو جاهل چې، څکو قرآن وائي، نو په ټکو يې يو قسم ووائي او په رواني يې بل قسم مثلاً ووائي: ( الف ولام زبر الْ ح ميم زبر حَم دال پيش دو ) او تلفظ وکړي قاديان، اوس به وګورو چې لامذهبه امين الله چې کومې څلورو ته چې دردذکر کړي دي نو ده په اوله مقدمه رد کړى دى او که په دوهمه مقدمه.

**(۲۲) : وسواس الخناس** : لامذهبه ليکي: دغه ايتونه حق دي، خو د دې نه د امين په قلاره ويلو باندې استدلال کول باطل او غلط دي. او د دې ډير وجوه دي. اوله وجه داده چې د امين بالجهر په باره کې صحيح، محکم او غير منسوخ احاديث موجود دي، نو د دې په مقابل کې په دغه ذکر شوو ايتونو باندې استدلال کول جهالت حماقت او په دين کې تناقض راوخکل دي، ځکه که دا او منلې شي چې امين په امين دعاده نو په کوم پيغمبر چې دا ايتونه نازل شوي دي، همدغه پيغمبر مونږ ته داويلي دي چې امين په جهر او زوره سره وائى او هغه هم امين په جهر او زوره سره ويلو، او د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته صحابه وو هم په جهر او زور سره ويلى دى، لکه مخکې د صحيح بخاري، ج ۱۰۷/۱) روايت او د امام عطاء په قول کې تير شو. ( امين الفتاوى، ج ١ص ٢٦٦)

**الاخساء:**

**محترموورونو!** تاسو وليدل چې دا لامذهبه د کوڅه د ب سپي په شان د لرې لرې څخه غاپي، دى لامذهبه نه په اوله مقدمه رد وکړى شو، او نه يې په دوهمه مقدمه رد وکړى، شو بلکې اوله مقدمه يې ومنله، ځکه وى ويلې چې (که ومنلې شي چې امين دعاده) او چې رديې ونکړى شو، نو دده دى ترجيه ته جوابونه کول عبث دى، لکن دده د منافقت د راښکاره کولو لپاره به لږه خبره پرې وکړو.

(۱) ده ليکلي دي چې (دامين بالجهر په باره کې صحيح محکم او غير منسوخ احاديث موجود دي ( ج ٢٦٦/١) نو زه وايم چې تا اول حديث د وايل بن حجر ﷺ پيش کړى دى او تا او ريدل چې هغه د شپږو وجهو څخه ضعيف دى، چې ترشپږم جواب پورې يې تفصيل مخکې وليکل شو او د اتو وجهو څخه ستا لپاره دليل ندى، چې داوم او اتم جواب لاندې يې تفصيل تيرشو.

دوهم او دريم دي دابوهريره ﷺ حديث ذكركړى دى، دهغې جواب مخكې تير شو، چې په دوهم حديث كې خو دسره دجهرذكرنشته، بلكې هغه خو داحنافو لپاره دليل دى، او دريم حديث سخت ضعيف دى او دلسو وجهو څخه ستالپاره دليل نه دى. كما مرّ.

څلورم دى دحسد والاضعيفه حديث ذكركړو او جواب دى هم واوريدلو چې په هغې كې هم دجهر ذكرنشته بلكې دهغه څخه هم په پټه امين ثابتيږي، پنځم او شپږم دى دحضرت عطاء روايت پيش كړو، چې اول يې بلاسنده وو او دوهم ډير ضعيف وو او په دواړو كې دحجاج بن يوسف دزمانې ديو واقعې ذكر وو او سره ددينه دلمانځه په داخل كې په امين باندې په كې تصريح نه وه، بلكې ډيرا حتمالات په كې وو، نو ستا داخبره چې (دامين بالجهرپه باره كې صحيح محكم غيرمنسوخ اجاديث موجود دي) داسې دروغ دي، لكه قاديانى به چې ويل چې په بخارى كې حديث دى چې د (هذا خليفة الله المهدي) اوازونه به داسمان څخه اوريدل كيږي، ځكه چې ددې لامذهبه په مكمله دعوه باندې هيڅ دليل نشته، بلكه دده په مكمله دعوه باندې دعربى يوه مقوله هم نشته، داسې مقوله چې په هندوستان باندې دانگريزي دورې څخه مخكنى وي.

(٢) لامذهبه چې ليكلي دي (نوپه كوم پيغمبرچې داايتونه نازل شوي دي همدغه پيغمبرمونږته داامركړى دى چې امين په زوره باندې وائي (ج، ١_ ٢٦٦)

نومحترمو وروڼو! دده شپږواړه دلايل تاسو وكتل، په دې كې په كوم يو كې درسول الله ﷺ امرموجود وو؟

دده دلايل ټول ضعيف او غيرقابل داستدلال وو، او ددې سره سره په كې صيغه دامر دجهرسره بالكل موجوده نه وه، نه د وايل ﷺ په حديث كې صيغه دامروه، او نه دابوهريره ﷺ، او نه دعطاء ﷺ، نو قسم په الله ﷻ چې دومره په رڼو سترگو دروغ عبدالله بن ابى بن سلول منافق هم نه وو ويلي.

(٣) لامذهبه ليكلي دي: او درسول الله ﷺ دوفات نه پس صحابه كرامو هم امين په جهرسره ويلى دى لكه مخكې دبخارى، ج ١٠٧/١) روايت دامام عطاء په قول كې تيرشو)

حالانكه تاسو ددې روايت په باره كې دده خپله فيصله واوريدله چې بلاسنده روايت لره هيڅ اعتبارنشته (امين الفتاوى ج ٢٨٥/١)

او نور تفصیل هم مخکې تیر شوا و د دې سره سره په کې دا نشته چې د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په ټوله دوره د خلافت کې ابوبکر صدیق ﷺ یا دده مقتدیانو امین په زوره ویلی دی، او نه په کې داشته چې د حضرت عمر ﷺ د حضرت عثمان ﷺ د حضرت علی ﷺ د حضرت معاویه ﷺ په ټولو دورو د خلافتونو کې دوي یا د دوي مقتدیانو امین په زوره ویلی دی. او نه په بل هیڅ روایت کې شته، بلکې په روایاتو کې دا راغلي دي چې دوی، او د دوي مقتدیانو امین په پټه ویلی دی. (مجمع الزواید، ج ۲_ ۱۰۸) کنزالعمال، ج ۴_ ۲۴۹/طحاوی، ج ۱/ ۱۴۰).

په دې بلا سنده روایت کې د حجاج د دورې دیوې واقعي ذکر دی، نو لامذهبه په کوم روایت کې راغلي دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له رحلت څخه وروسته حضرت ابوبکر صدیق ﷺ یا دده مقتدیانو صرف یو ځلې امین په زوره ویلی دی؟ یا حضرت عمر ﷺ او دده مقتدیانو صرف یو ځلې امین په زوره ویلی دی؟

یا حضرت عثمان ﷺ او دده مقتدیانو صرف یو ځلې امین په زوره ویلی دی؟ یا حضرت علی ﷺ او دده مقتدیانو صرف یو ځلې امین په زوره ویلی دی؟ هیڅکله نه شته. نو جاهله! او کاذبه! د دې خبرې لپاره څه دلیل لرې چې د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته خلفاء راشدینو یا د دوی مقتدیانو امین په جهر سره ویلی دی. لعنة الله علي الکاذبین.

(۴) لامذهبه لیکي چې د احادیثو په مقابل کې په ایتونو باندې استدلال کول حماقت دی، ج ۱/ ۲٦٦).

د دې لامذهبه سر د علم څخه داسې خالي دی، لکه د خر سر چې د ښکرونو څخه خالي دی، ځکه اول خو د اټول روایتونه ضعیف دی، دوهم دا چې ستا لپاره یو هم دلیل ندی، او که صحیح هم شي نو چې د قرآن او د حدیث سره صورة معارضه راشي نو که تبطیق ممکن نه وو عمل په کتاب الله پکار دی، نو زه وایم چې په ایتونو استدلال نه کول د ستا په شان د احمقانو قادیانیانو، چکړالویانو، او یهودو کار دی.

**(۲۳): وسواس الخناس: لامذهبه خناس لیکي :**

**دویمـه وجـه** : دصحیح احادیثو په مقابله کې دقران کریم په عموماتو باندې استدلال کول اوصحیح احادیث په دې ایتونو باندې ردکول داهل زیغو او مبتدغینو او دمنکرینو دجدیث طریقه ده.

[امین الفتاوی، ج ۱ص ۲٦۷].

**الاخساء:** دلته هم لامذهبه نه په اوله مقدمه اعتراض وکړی شو، اونه په دوهمه مقدمه، یعنې نه یې داثابته کړی شوه چې امین دعانده، اونه یې داثابته کړی شوه چې اصل په دعاکې اخفاء نه ده، بلکې لکه دکوڅه ډب سپي په شان دلرې څخه غاپي، ددلیل مقدموته رانږدې کیدلې نه شي. پاتې شوه داخبره چې ایات عام وي نو تخصیص به یې په څه شي سره جایز وي؟ دامسئله په اصولو کې واضحه شوی ده.

**(۲٤) وسواس الخناس: لامذهبه لیکي:**

**دریمه وجه:** کله چې ددې ایتونو معنی داحنافو دخیال مطابق داشوه چې هرقسم دعاپه پټه باندې کول پکاردي نواوس سوال دادی چې بیاولې رسول الله ﷺ په جهرباندې دعاگانې کولې؟ دغه شان ولې صحابه کرامو او تابعینو په جهرسره دعاکوله؟ (امین الفتاوی، ج ۱/ ۲٦۸) ددې څخه وروسته لامذهبه یوڅودعاگانې دنمونې په طریقه پیش کړی دی چې رسول الله ﷺ په جهر کړی دی. (امین الفتاوی، ج اص ۲٦۸) الی ص ۲۷۱)

**الاخساء:** لامذهبه اوس لږلږ دویمې مقدمې ته راوراندې شو، زمونږ ددلیل دوهمه مقدمه داوه چې اصل په دعاکې په پټه لوستل دی.

اوبیاپه دوهمه فایده کې مونږوضاحت وکړوچې اصل خوداده چې په پټه ولوستل شي لکن په بعضې ذکرونواودعاگانو کې دالله ﷻ د یادولواودالله ﷻ څخه دغوښتلوسره دانسانانواطلاع هم مقصود وي یادهغوی تعلیم مقصودوي. نوله دې وجهې انسانانوته د وراورلولپاره خلاف الاصل په جهرلوستلی شي اورسول الله ﷺ یاصحابه وواوتابعینوچې کله په جهر دعاگانې کړي دي نو هغه دهمدغې ضرورت له وجهې وي. لکه رسول الله ﷺ به چې کله دضرورت دتعلیم له وجهې دماسپښین په لمونځ کې ایت په زوره لوستلو په بخاری او مسلم دواړو کې متفق علیه حدیث دی چې نبی ﷺ کله لمونځ

ختم کړونو په اوچت اوازيې تکبيرو ويلو. (بخاري، ج ۱/ ۱۱۴) مسلم ج ۱/ ۲۱۷) ابوداود ج ۱/ ۱۴۳) ددې په باره کې امام شافعي رحمه الله فرمائي چې دا صرف دتعليم لپاره وو. (کتاب الام، ج ۱ ص ۱۱۰) نووی، ج ۱/ ۲۱۷) فتح الباری، ج ۲/ ۴۶۹) عمدة القاری. ج ۱۲۶/۶) بهيقی، ج ۲/ ۱۸۴).

حضرت براء بن عازب ﷺ فرمائي چې د ماسپښين په لمانځه کې ما درسول الله ﷺ څخه دسورة لقمان ايت واوريدلو. (نسائی، ج ۱/ ۱۱۳)

## (۲۵) وسواس الخناس : لامذهبه ليکي:

**څلورمه وجه**: په دې ايت کريمه باندې دامين بالاخفاء لپاره استدلال کول ځکه غلط او خطاء دی چې مخالفين هم بعضې دعاګانې په جهر سره کوي. (امين الفتاوی، ج ۱ _ ۲۷۱).

**الاحساء**: دا هم ددريمې وجهې په شان ده. لامذهبه دې داسې دعاوښايي چې په هغې کې دانسانانو اطلاع يعنې انسانانو ته په کې وراورل ياد انسانانو تعليم په کې مقصودنه وي او بيا هم په زوره لوستل شوي وي.

(۲) لامذهبه ليکي بلکې عجيبه خولاداده چې بعضې مبتدعينو کې خوديهود وصفت دی امين بالجهر وباندې ډيرزيات بی اندازې بدلګي) ج ۲۷۱/۱).

زه وايم چې ديهود وصفت دادی چې امين بالسر وباندې بدلګي ځکه رسول الله ﷺ فرمائي چې يهود د مسلمانانو سره په دريو شيانو حسد کوي. په امين په ربنالک الحمد او په سلام. (بهيقی، ج ۲ _ ۵۶)

په دې حديث کې ديو سره هم نه دجهر لفظ شته او نه د سر، لکن ربنا لک الحمد او سلام خو پټ لوستلې شي او يهود و ته وباندې حسد ورځي، نو امين هم په هم دې حديث کې ددې دواړو سره يو ځای راغلی دی، نو دا هم پټ لوستلې شي او يهود و ته وباندې حسد ورځي. او د يهود و څخه وباندې زيات ديهود و پاپې لامذهبه امين الله ته زيات حسد ورځي، ځکه چې شپه او ورځ په دې مسئلو کې په احنافو پسې غاپي، خو مشهور متل دی چې (عواء الکلب لايضر الشمس) دسپي غبيدل لمرته نقصان نه رسوي.

(۳) لامذهبه بيا ليکي چې امين بالجهر پسې توقې کوي ديته رمباړې وائي او دا امين بالجهر ښکاره دښمنان دي. (امين الفتاوی، ج ۲۷۱/۱)

اقول: چې د قاري محمد طيب رحمه الله دخطباتو په مجموعه کې راغلی دی چې امين په درې قسمه دی.

**اول** : امين بالجهر .

**دوهم** : امين بالسّر .

**دريم** : امين بالشّر .

امين بـالجهر يـو امـام غـوره كړى دى. او امـين بالسِـر نـورو امامـانو غـوره كړى دى، لكن دغير مقلدينو امين نه امين بالجهر دى او نه امين بالسر دى بلكې ددوي امين آمين بالشر دى . (خطبات اسلام ج ۳ ص ۲۸۵ )

زمـونږ كتابونـه دشروط الصلوة څخه نيـولې تر شروحو ذحديثو او تفاسيرو پورې ددنيا پـه هره كتابخانه كې شته ، نو كه چيرته كوم لامذهبه ددې كتابونو په متن ، حاشيه او يانكته كې داثابته كړه چې امين بالجهر ته يې رمباړې ويلي وي نو يو لک روپۍ بـه ورتـه انعام وركړم، زه وايم چې امين دايمه وو مجتهـدينو پـه مينځ كې اجتهـادى، اختلافي مسئله ده او ددوى ټولو پـه نيزدواړه قسمه امين جايز دى او اختلاف يې په افضليت كې دى.

**احناف** : ددوى په نيز بهتر اخفاء ه كتاب الاثار ص ۲۳ محلى ابن حزم ج ۲ ص ۲۰٦ .

**مالكيان** : ددوى په نيز دامام لپاره بالكل امين نشته او دمقتديانو لپـاره بهتر اخفاده . [المجموع شرح المهذب ج ۳ص ۳۷۳)

**امام شافعي** : دده په نيز دامام لپاره جهر بهتر دى او دمقتديانو لپاره اخفاء بهتره ده . [كتاب الام ج ا ص ۱۰۹).

**امام احمد**: دده په نيز جهر بهتر دى .

اوس هم مونږ وايو چې دحنابله وو امين بـالجهر جايز دى، لكن اخفـاء افضـله ده، دهغـوى امين تـه څوک رمباړې نه وائي ځكه خپله امام احمد رحمه الله مجتهـد دي، په اجتهاد ورتـه جهر افضـل ښكاره شـوى دى او پيـروان يـې مقلـدين دي، دخپـل امـام داجتهـاد پسـې روان دي، لكـن تاسـو لامذهبان خو مجتهدين نه يې چې په دې اجتهادې مسئله كې داجتهاد په وجه په زوره امين تـه افضل و وائيځ او دبل مجتهد پيروان هم نه يې يعنې نه پوهيږې او نه دبل پوه پسې روان يې ، نو ښكاره ده چې داجتهاد له وجه ستاسو امين بالجهر نه شو، نو دڅه لـه وجهې شو؟ او ولې يې وائي ؟ داتـاريخ ثابتـه كړي ده چې پـه

مسلمانانو کې دانتشار لپاره يې وائي او دانګريزانو دی پالیسی ته دعملي جامې دوراغستلو لپاره يې وائي چې (لړاو اورحکومت کرو).

رسول الله ﷺ دستا په شان خلکو په باره کې فرمايي چې («إِنَّهُ سَتَكُونُ هَنَاتٌ وَهَنَاتٌ، فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يُفَرِّقَ أَمْرَ هَذِهِ الْأُمَّةِ وَهِيَ جَمِيعٌ، فَاضْرِبُوهُ بِالسَّيْفِ كَائِنًا مَنْ كَانَ. (مسلم ج ۲/ ۱۲۸)

«مَنْ أَتَاكُمْ وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ عَلَى رَجُلٍ وَاحِدٍ، يُرِيدُ أَنْ يَشُقَّ عَصَاكُمْ، أَوْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَكُمْ، فَاقْتُلُوهُ». (مسلم، ج ۲/ ۱۲۸). نو دخپل ځان په باره کې د رسول الله ﷺ فيصله واوره چې بيايې دامت څخه ګيله در ته نه وي.

(۴) لامذهبه بيا دخپل علم براس راوباسي او ليکي چې (مونږ د دې قسم احنافو نه تپوس کوو چې اياسورة فاتحه دعاده که خيرې؟ که دعاوي نو بيايې په جهري لمونځونو کې ولې په جهروائی؟ ايادادعانده؟ (امين الفتاوی، ج ۱/ ۲۷۱).

افرين حمار ګله! ښه مجتهد يې! شاباس په دې تحقيق! کوردې وران شه! تا خو ښيرې او دعا نقيضين کړل، چې سورة فاتحه به خامخا يا دعاوي يا ښيرې. او ارتفاع دنقيضينو ناجايزه ده. لکه: انسان او لاانسان. حالانکه دعا او ښيرې متضادين دي لکه سواد او بياض. رفعه يې جايزه ده چې نه دعاوي او نه ښيرې، ځکه سورة فاتحه هم دقرآن سورة دی او قرآن ډير قسمونه دي او امر، نواهي، وعد، وعيد، قصص، امثال، حمد، ثناء، وغيره. او حمار ګله بيا دمعدی غلاظت په خوله راوباسې چې (که دعاوي نو بيايې په جهري لمونځونو کې ولې په جهروائي؟)

په جهري لمونځونو کې وي او که په سري لمونځونو کې، زمونږ مقتديان فاتحه نه په جهروائي او نه په پټه، مونږ خو قرائت خلف الامام نه کوو. دا سوال خو تا سو ته متوجه دی چې دامام پسې په جهري لمونځونو کې يو ائې امين ولې په جهر وائی؟ سورة فاتحه ورپسې ولې په جهرنه وائی؟

او همدارنګې نور اذکار او دعاګانې ولې په جهرنه وائي؟ په کوم ايت او يا حديث کې راغلي دي چې سبحنک اللهم په پټه ووائي، اعوذ بالله په پټه ووائي. تکبيرات دانتقالاتو په پټه ووائی، سبحن ربی العظيم او سبحن ربی الاعلی، تشهد او درود په پټه ووائی لکن صرف او صرف امين ترينه مستثنی کړئ.

**(۲۶) وسواس الخناس: لامذهبه ليکي:**

## داحنافو دويم دليل

ترجمه : يادوه خپل رب په عاجزى اوپټه سره ) . ( ج ۱ /۲۷۲ ) سطر اول )

**الاخساء :** (۱) تامخکې واوريدل چې دا ددوهمې مقدمې لپاره دليل دى يعنې دليل دکبرى دى خودالامذهبه جاهل هم دي او تجاهل هم کوي ، له دې وجهې دى اعتراض ته يې جواب ندى ضروري، لکن د زيادتِ افادى لپاره به يې بعضې حماقتونوته اشاره وکړم .

**(۲۷) لامذهبه بيا ليکي: کله چې د امين بالجهر په باره کې صحيح احاديث راغلى دي. (ج ۲۷۲/۱ سطر۷).**

تـامخکې واوريـدل چې دې شيعه تقيـه کړى ده، ددوى دمسئلې درې اړخه دي اول داچې ددوى يواځې لمونځ کونکي په ټولو فرايضو ، سنتونو او نفلونوکې امين په پټه وائي، نوچې ستاپه ګومان دامين بالجهرپه باره کې صحيح احاديث راغلل نويواځې لمونځ کونکي يې دکوم ايت اودکوم حديث له وجهې په پټه وائي ؟ ستاسويواځې لمونځ کونکي ولې په دې صحيحو احاديثو عمل نه کوي ؟

مهربـانى وکـړه يوايـت يايوحـديث پـيش کـړه چـې يـواځې لمـونځ کـونکې يـې ددې صحيحو احاديثو څخه مستثنى کړي وي، چې ستا په ګومان دامين بالجهرپه باره کې راغلي دي .

دوهم داچې ددوى يواځې لمونځ کونکي او مقتدي اوامام ثناء ، تعوذ ،تشهد ،تسبيحات درکوع اودسجدې په پټه وائي، صرف امين په زوره وائي، نوپه کوم ايت اوحديث کې راغلي دي چې داټول ذکرونه اودعاګانې پټې وائي صرف امين په زوره وائي ؟

، دريـم داچـې ددوى مقتـديان صـرف پـه شـپږورکعتونوکې امـين بـالجهر وائـي اوپـه پـاتې يوولسـورکعتونوکې يـې پـه پټـه وائـي، نوپـه دى پـاتې يـولسـور کعتـو نـو کـې ولـې پـه دغـه صحيحو احاديثو عمل نه کوى ؟

په کوم ايت اوپه کوم حديث کې راغلي دي چې يوولس رکعته ددغه احاديثو څخه مستثنى دي چې ستاپه ګومان صحيح دي اودامين بالجهرپه باره کې راغلي دي ؟

ستاپه مذکورو دلایلو خو ستا د مسئلې يو اړخ هم نه ثابتيږي، نو زه په چيلنج سره وايم چې ستا په مکمله مسئله باندې صحيح حديث خو لا پريږده چې ضعيف بلکې اضعف حديث هم نه شته او حديث خو لا پريږده چې ستا سره د مکملې دعوی د ثابتولو لپاره د عربی یوه مقوله هم نه شته، داسې مقوله چې په هندوستان باندې د برطانوي دورې څخه مخکني تاريخ ولري. (ديده بايد)

**لامذهبه ليکي** :بيا د دې (احاديثو) په مقابله کې په عموماتو (عامو ايتونو) باندې استدلال کول د تعصب او جهالت نه سوا بل څه ندی. (ج ۱/۲۷۲، سطر ۷)

لامذهبه په حديث کې خوراغلي دي .حضرت ابو هريره ﷺ د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چې (سياتيکم مني احاديث مختلفة فما جاءكم موافقالكتاب الله وسنتي فهومني وماجاء كم مخالفالكتاب الله وسنتي فهوليس مني. (الکنايه، ص۴۳۰).

د دې حديث څخه خو معلوميږي چې زيادة د خبر واحد په کتاب الله ناجايز دي او تخصيص د کتاب الله چې په څه شي باندې راځي هغه په اصولو کې د عام مخصوص البعض لاندې تفصيلاً ذکر شوي دي.

نو ستا څخه پوښتنه کوم چې ستا د اخبره په کوم ايت او په کوم حديث ثابته ده؟ مهرباني وکړه دا خپله خبره په کوم ايت او يا په کوم حديث کې صراحة وښايه؟ او که نه يې شي خو د لې نو بيا د خدای ﷻ نه ووېرېږه او د خپلې ګيډې د غليظو موادو په خوله باندې را ايستلو ته د قرآن او د حديث نوم مه ورکوه.

لامذهبه ليکي : ډير داسې اذکار شته چې هغه په جهر سره کول بالاتفاق ضروري دي. (ج ۱/ ۲۷۲ سطر ۹)

**اول سوال** : مهرباني وکړه يو مثال پيش کړه؟ يو داسې ذکر او ياد غاو ښايه چې د انسانانو اطلاع او تعليم په کې مقصود نه وي او بيا يې هم په جهر کول ضروري وي؟ او دا هم په قران او حديث کې وښايه چې د ضروري څه معنی ده، جامع او مانع تعريف يې په قران او حديث کې وښايه.

**دوهم سوال** :تاليکلي دي چې (بالاتفاق ضروري دي) نو د چا اتفاق يادوي؟ مهرباني وکړه يادهغې ذکر په باره کې د ټولو مجتهدينو نظرونه پيش کړه چې د جهر په ضروري والي يې اتفاق کړی دی؟

**دريم سوال** : ايا دلته دې خپلې خبرې ديا ده وو تې چې دلايل صرف دوه دي قرآن او حديث؟ آيا او س ستا په نيز دلايل درې شو قرآن حديث او اتفاق؟

در کفر هم صادق نه يې زينار رارسوا مکن.

اوکه دی درې واړوسوالونوته جواب نه شې راکولې نوبیااقراروکړه چې دخپلې ګېډې موادغلیظه دې پـه خولـه راایسـتلي دي، اونـوم دی ورتـه د قـران اودحـدیث ورکـړی دی. بیـا لیکـي: اوډیرداسې ذکرونه شته چې په هغې باندې جهرکول بالاتفاق جایزدي. (ج ۱/۲۷۲ سطر۱۰)

**اول سوال:** دجایز اودضروري په مینځ کې څه فرق دی؟ جواب په ایت اویاحدیث راکړه، دامتي قول ستاپه نیزحجت نه دی، له دې وجهې دامتي په قول باندې جواب به قابل دقبول نه وي.

**دوهم سوال:** داسې یو مثال پیش کړه چې دانسانانو اطلاع او تعلیم په کې مقصود نه وي، یعنې بلاضرورته په خیرالقرون کې په جهرلوستل شوی وي اوجهرپه کې اصل اوافضل وي.

**(۲۷) وسواس الخناس : لامذهبه خناس لیکي:** دامین بالاخفاء دقایلینودریم دلیل احناف په دلیل کې دامام عطاء داقول هم پیش کوي چې: **قال عطاء امین دعاء.** (صحیح بخاری ج ۱/ ۱۰۷ /امین الفتاوی، ج ۱/۲۷۲ سطر۲۱).

**الاخساء: جاهله خناسه! دادا احنافوپه نیزدامین بالسر لپاره دلیل نه دی، بلکې د امین بالسر دوه مقدمې وي.**

**اوله مقدمه : امین دعاده.**

**دوهمـه مقدمـه:** اصل پـه دعـاء کې اخفاء یعنې پټ لوستل دي، نود امام بخاری روایت صرف داولـې مقـدمې لپـاره دلیـل دی یعنـې دلیـل دصـغری دی. امـین بالسـربیاددواړو مقدمونتیجه ده، دده دنوروخبروجواب مخکې بیا بیا تیرشوی دی.

**(۲۸): وسواس الخناس** لامذهبه خناس لیکلي دي چې :

## د احنافو څلورم دلیل

**ترجمه** دحضرت علقمه بن وایل رضی الله عنه څخه روایت دی هغه یې دخپل پلار وایل رضی الله عنه څخه کوي چې کله رسول الله ﷺ غیرالمغضوب علیهم ولاالضالین ولوستلو، نوامین یې وویـل، اوازیې وربانـدې ښکته کړو. ترمذی ۱/ ۵۸).

**سوال** : احناف وائي داحديث دليل دی په دې چې امين په پټه ويل پكار دي، دغه شان دوی وائي چې دوايل بن حجر ؓ حديث مسند احمد، حاكم، مسندابويعلى وغيره كې هم راغلى دي او هلته هم دادی چې رسول الله ﷺ امين په پټه وويلو. (مسنداحمد ۱۱۱/۳، حاكم : ۲۳۲/۲) مسندابويعلى /دارقطنى ۳۲۸/۱ نصب الرايه، ۲۸۹/۱) بهيقى : ۵۷/۲).

**الاخساء:** لامذهبه خناسه ! سوال خوپوښتنې كولوته وائي تادلته څه پوښتنه وكړه ؟ افسوس چې جاهل مركب يې او ځان ته بيا هم مجتهد وائې .

انكس كه نداندونداندكه نداند در جهل مركب ابدالد هربماند

**(۲) لامذهبه ليكي :** نو اول مونږ د دې روايت په سند بحث كووالخ... دويم د روايت په معنى باندې بحث كوو. [ج ۱_ ۲۷۴ سطر ۱۲].

زه وايم چې بحث كول خو د مجتهد او محدث كار دی، او ته اول د اجتهاد تعريف د قرآن او د حديث څخه پيش كړه، او بيا دعوه وكړه چې بحث كوو، لكن ته خو د اجتهاد د تعريف او د مجتهد د شرائطو څخه جاهل يې، او بيا هم وايې چې بحث كوو، نو د ځان په باره كې دې دا هير دي چې (من افتي بغير علم فقد كفر)

او دا هم واوره چې د بل چا د خبرې رانقلولو او بيا هغې ته خپل تحقيق ويلو ته مونږ تحقيق نه بلكې په پرديو غولو تيزونه اچول وايو، خو بيا هم راميدان ته شه.

**(۲۹) وسواس الخناس** : لامذهبه ليكلي دي چې د دې روايت چې څومره طرق د اسناد دي... د دې ټولو دارومدار او انحصار صرف په امام شعبه دی سطر ۱۶) (افرين په دې پښتو) (او افرين په دې محدثانه انداز) بيا ليكي او د امام شعبه نه لكه چې په پټه د امين ويلو روايت نقل دی نو دغه شان د همدی امام شعبه نه امين بالجهر روايت هم نقل دی لكه ابن حبان په خپل صحيح (۴_ ۱۴۶) كې او امام بهيقى په خپل سنن، ۲_ ۵۸ كې روايت كړی دی چې (رافعابهاصوته) چې په امين به يې اواز اوچتولو. (فتاوی، ج ۲۷۴/۱) سطر ۱۸ الى ۲۰).

الاخساء: لامذهبه دا اعتراض دی د حنابله وو څخه رانقل كړي دي، ما مخكې وويل چې ته په پرديو غولو تيزونو اچولو ته خپل تحقيق وائې، لكن بيائې هم جواب واوره.

علامـه نيمـوى رحمـه الله پـه اثار السـنن كې دى اعتـراض تـه داجـواب وركـړى دى، چې دبهيقى
داروايت شاذ دى، ځكه چې داروايت د شعبه ﷺ څخه په بې شميره طرقو مروي دى، لكن صرف دبهيقى
په روايت كې (رافعابهاصوته) الفاظ راغلي دي او باقي تمام ايمه او حفاظ د حديثو دهغه څخه د (
خفض بها) صوته الفاظ رانقلوي. په صحيح ابن حبان باندې دلامذهبه حواله د ځان څخه ده. (لعنة الله
علي الكاذبين)

**(۳۰) وسـواس الخنـاس:** لامذهبه خناس دحنابله وو اعتراض رانقلوي اوليكي چې دخفض
او اخفاء دروايت تائيديو محدث هم ندى كړى او دغه شان نه دامين بالسر ويلو روايت تاييد پـه بل
موقوف يامرفوع روايت باندې شوى. (فتاوى ،ج ۱( ۲۷۲ سطر ۲۲ _ ۲۳) .

**الاخســاء :** (لعنة الله علي الكاذبين) ددې روايت تائيد ډيرو احاديثو څخه كيږي .مثلاً : (۱)
دحضـرت ابـو هريره ﷺ دروايـت څخـه . (بخـارى ،ج ۱/ ۱۰۸) مسـلم ،ج ۱ _ ۱۷٦) ابـوداود ،ج ۱ _
۹۴/نسائى ،ج ۱/ ۹۴)

طريقـه داسـتدلال بيابيـا مخكې تيرشـوه چې دملايكـو دامين سـره موافـق پـه وصـف او وقـت كې
داحنافو امين دى، اوهمدارنګې دامام ولاالضالين ويـل دامين ويلو لپاره مقرردى، كه جهر بهتـروي
نو امام امين ويل به مقررشوى وو. مخكې چې دامين لپاره مونږ كومه مستقله رساله ليكلې ده پـه هغې
كې تفصيلي طريقه داستدلال كتلى شئ.

(۲) دحضـرت ابو موسـى اشـعرى ﷺ دروايـت څخـه . (مسـلم ،ج ۱ص ۱۷٦) . طريقـه داسـتدلال
مخكې تيره شوه .

(۳) دحضرت سمرة ﷺ دروايت څخه باب ماجاء فى السكتتين . (ابوداودج ۹۷/۱)

**(۳۱) وسواس الخناس:** لامذهبه خناس دحنابله وو اعتراض رانقلوي چې امام ترمذى پـه خپل
جامع كې (ج ۵۸/۱) كې ويلي دي چې امام شعبه دامين په پټ ويلو روايت كې درې ځايه خطاء شوى دى
الخ. (فتاوى ،ج ۲۷۲/۱) .

**الاخساء:** لامذهبه خناس دامام ترمذى تقليد شخصي شروع كړو، لكن بياهم دامام ترمذى اعتراضونه اوبياد عمدة القاري شرح بخاري او اثار السنن لعلامه نيموى رحمه الله جوابونه واوره.

**اول اعتراض** : شعبه دسلمه بن كهيل داستاذ دنوم په ذكر كولو كې غلط شوى دى، دهغه نوم حجر ابن العنبس دى او شعبه رحمه الله حضرت حجر ابو العنبس ذكر كړى دى، حال داچې دهغه كنيت ابو العنبس ندى بلكې ابو السكن دى، علامه عينى په عمدة القاري شرح بخارى كې جواب وركړى دى چې دحجر دپلار او ځوى دواړو نوم عنبس وو، له دې وجهې هغه ته حجر ابو العنبس او حجر ابن العنبس دواړه ويلى شي لكه امام دارقطنى چې فرمايي : عن حجر ابى العنبس وهو ابن عنبس رحمه الله. (سنن دارقطنى، ج ۱/ ۳۳۳).

**دوهم اعتراض** : شعبه دحجر او دوايل ﷺ په مينځ كې دعلقمه واسطه زياته كړېده، حال داچې ددوى په مينځ كې واسطه نشته.

علامه عيني فرمائي چې داهيڅ اعتراض ندى ځكه ډيرځلې داسې كيږي چې يوراوي يو روايت بالواسطه هم واوري او بلا واسطه يې هم واوري نوبيايې په دواړو طريقوسره روايت كوي او دليل يې دادى چې ابوداود طيالسى ددې روايت تخريج په دواړو طريقو كړى دى چې سلمه بن كهيل فرمائى : سمعت حجرا ابا العنبس قال سمعت علقمة بن وايل يحدث عن وايل وسمعت من وايل.(مسند ابوداود الطيالسى، ص ۱۳۸ نمبر ۱۰۲٤) همدارنګې په مسند احمد او سنن ابومسلم كې په دواړو طريقو د اوريدلو تصريح شوى ده. (اثار السنن، ص ۹۷/۹۸).

**دريم اعتراض** : شعبه دمد بهاصوته پرځاى خفض بهاصوته ذكر كړي دي حالانكه صحيح روايت دمد بهاصوته دى.

**جواب** : دادى چې محدثين شعبه ته امير المومنين فى الحديث وايي ابن حجر رحمه الله فرمائي چې ثقة، حافظ، متقن، كان الثوري يقول هو امير المؤمنين في الحديث واول من فتش عن الرجال وذب عن السنة وكان عابداً [ تقريب ص ۳۱۰ تهذيب الكمال ج ٤ص ۵۹۰ ) اودهغه امامت اوفقاهت مسلم دى نوپه هغه ددې بدګمانى هيڅ دليل نه شته. (راجع للتفصيل اثار السنن، ص ۹۸).

**څلورم اعتراض** : دعلقمه سماع دخپل پلار وايل څخه نده ثابته كما قال البخارى.

**جواب:** د امام بخاری دا خبره د عبدالجبار بن وایل په باره کښې ده امام ترمذی په ابواب الحدود کښې فرمائي: (سمعت محمدا يقول عبدالجبار لم يسمع من ابيه وعلقمه سمع من ابيه وهو اكبر من عبدالجبار) په نسائي کښې هم په سماع باندې تصریح ده. (نسائی، ج ۱٦۱/۱).

لهذا لامذهبه چې کوم اعتراضونو ته اشاره کړې ده ټول رفع شو حنابله وو دا اعتراضونه په دغه ترتیب رانقل کړي دي، په کوم ترتیب چې ما وليکل. لامذهبه خناس د ټولو اعتراضونو څخه یو اعتراض جوړ کړی او په نقلولو کښې یې هم خپل علمي مهارت را ښکاره کړی دی.

**نوټ:** محترم مولوستونکو د لامذهبه امین الله دا کتاب ما ته په زندان کښې یو شخص پټ را کړی و او اصلي مالک یې چې لامذهبان وو وربانديې نه وو خبر، کله چې ما تردی ځایه لیکل پرې وکړل، نو اصلي مالک یې خبر شو او کتاب یې رانه وغوښت، لکن دیوی شپې لپاره مې په ډیر تکلیف ترینه حصار کړو، نو په پاتې حصه د ضرورت له وجهې اجمالي لیکل کوم. هیله ده چې عذر مې ومنئ.

**(۳۲) وسواس الخناس:** لامذهبه خناس د حنابله وو خبره رانقلوي چې د سفیان روایت چې ده په زوره امین په باره کښې ځکه راجح دی چې د هغه دوه متابعه موجود دي. (فتاوی، ج ۲۷۵/۱) سطر اخر)

**الاخساء:** د ده اول متابع علاء بن الصلاح الاسدی دی او هغه اتفاقا کمزوری دی د هغه متابعت ته هیڅ اعتبار نشته. ابو حاتم هغه ته شیعه ویلي دي. (اثار السنن، ص ۹۸) او دوهم متابع یې محمد بن سلمه بن کهیل او علی بن صالح دی. (کمافی دارقطنی، ج ۱/ ۳۳۳/ ۱۳۵)

لکن علامه ذهبی محمد بن سلمه ته واهی الحدیث ویلي دي. (اثار السنن، ص ۹۸) نو دده متابعت ته هم هیڅ اعتبار نه شته او علی بن صالح ثقه دی لکن حافظ ابن حجر په التلخیص الحبیر کښې لیکلي چې دا په اصل کښې علاء بن صالح دی کوم کاتب په غلطۍ ترینه علی بن صالح جوړ کړی دی. (اثار السنن، ص ۹۸/ ۹۹) او علاء بن صالح اتفاقا کمزوری دی د هغه متابعت ته هیڅ اعتبار نه شته.

**(۳۳) وسواس الخناس:** لامذهب لیکي: محدثینو د سفیان روایت ته ترجیح ورکړې ده... د محدثینو په دې فیصله ډیر دلایل موجود دي. (فتاوی، ج ۲۷٦/۱).

بیا لیکي: د ترجیح غټ ذلیل دا دی چې د سفیان متابع موجود دی. (فتاوی، ج ۱/ ۲۷٦)

**الاخساء:** جواب یې اوس تاواورېدوچې دده دوه متابعه وو علاء بن صالح او محمد بن سلمه اودادواړه دومره ضعیف وو چې متابعت ته یې هیڅ اعتبار نه شته. لامذهبه امین الله ددې دوو متابعینو نوم ذکرنه کړل وجهې څخه اخستلی نه شي چې چاته معلومات ونه شي چې دادواړه انتهائي کمزوري دي.

**(۳٤) وسواس الخناس : لامذهبه لیکي:** دویمه وجه چې دامام شعبه نه دامین بالجهرروایت نقل دی.

**الاخساء :** ددې جواب هم تاواورېدوچې دبیهقی روایت شاذ دی.

**(۳۵): وسواس الخناس: لامذهبه خناس لیکي چې :** دریمه وجه دامام شعبه وهم او هغه دده ته په خپل روایت کې شک پرېوتلو کله خفض روایت کوي او کله اخفی روایت کوي لهذا دشعبه روایت مضطرب شو.

**الاخساء :** د اخفا اود خفض هیڅ فرق نشته، دواړه مترادفین دي. لامذ هبه ! ته دقرآن اود حدیث څخه داضطراب تعریف پیش کړه! جاهله ! ته خو اضطراب پېژنې هم نه . ایا دمترادفو الفاظو په مابین کې هم اضطراب وي؟ اوبالعکس دحضرت وایل بن حجر رضی الله عنه دجهرروایت چې دعبدالجبار په طریقه دې په لاندې لفظونوروایت دی .

(۱) یرفع بهاصوته : اوازبه یې وربانديې پورته کولو. (نسائی ،ج ۱_۸۹)

(۲) (فسمعته وانا خلفه) ماواورېد واوزه یې شاته ووم. ( نسائی ج ۱/۹۴)

(۳) (فسمعناهامنه ) مونږواورېدوترېنه .( ابن ماجه ص ۹۸)

(۴) (قال امین مدبهاصوته ) امین یې وویلو اوازیې راکاږلو . (دارقطنی ،ج ۱/ ۱۲۷)

(۵) (انه سمع یقول امین ) ده واورېده چې امین یې ویلو . (مسند احمد)

(٦) ( فقال امین یجهر) ویی ویلو امین په زوره .(مسند احمد) اواولني روایت کې دسفیان نهه شاگردان دمد بهاصوته الفاظ رانقلوي . (ترمذی ج ۱/٦۳ ) دارقطني ، ص ۱۲۷) اویوشاگرد رفع بهاصوته لفظ رانقلوي. (ابوداود، ج ۱_ ۹۴) دارمی ص ۱۴۸) اودا روایتونه ددومره اختلاف سره ستادسترگوتوردي دا اختلاف ډېر دی اوکه هغه اختلاف ؟.

**(۳٦) وسواس الخناس :** لامذهبه خناس ليكلي دي چې : په دې باندې د علماء و اتفاق دى چې كله د امام سفيان او شعبه ترمينځ اختلاف راشي نو د امام سفيان روايت ته به ترجيح وركولې شي او صرف د هغه روايت به قابل د قبول وي ...چې د دې تفصيل په دى طور دى .

(۱) امام ابن عيينه فرمائي (ماباالعراق احد يحفظ الحديث الاسفيان).

**ترجمـه :** پـه عـراق كې د سفيان نـه عـلاوه بـل هيڅوک هم د احـاديثو حـافظ نـه شـته . ( شـرح علل الترمذى ،ص ۱۲۵)

(۲) امـام احمد بن حنبـل فرمـائي : ( سـفيان احفـظ للاسناد و اسمـاء الرجـال مـن شعبه و بقـول سفيان اخذ ) . **ترجمه :** سفيان د يرزيات بنه يادونكى دى دسند ونو دسفيان خبره اخلم .

( ۳) اسحق بن هانى فرمائي : ماد امام احمد نه تپوس وكړو چې كه چيرې پـه يو حديث كې د سفيان او شعبه اختلاف راشي نو د چا په حديث به عمل كولې شي ؟ نو امام احمد جواب وركړو د سفيان پـه حديث به عمل كوم . (شرح علل الترمذى ، ص ۱۲۵)

( ۴) - امام يحيى بن سعيد فرمائى : مارايت احدا احفظ من سفيان ثم شعبه ثم هشيم و ذكر شعبه و سفيان ،فقال سفيان اقل خطاء لانه يرجع الي كتاب و قال سفيان اثبت من شعبة و اعلم بالرجال .

**ترجمه :** ماد سفيان نه غټ حافظ بـل څوک نه دى ليدلې د هغه وروسته بيا شعبه د هغـه نه وروسته د هشيم درجه ده . سفيان ډيره كمه غلطي كوي ځكه هغه بـه خپـل كتـاب تـه رجوع كولـه د غـه شـان سفيان د شعبه نه زيات قوي او عالم الرجال وو . [شرح علل الترمذى ،ص ۱۲۵)

(۵) امام ابن معين رحمه الله فرمائى : اذاخالف شعبه وسفيان فالقول قول سفيان . ترجمه : كله چې شعبه د سفيان خلاف وكړي نو خبره به د سفيان معتبره وي . ( نصب الرايه ، ۱)۳٦۹ )

(٦) د امام صالح جزره تحقيق : (سفيان احفظ من شعبه)

**ترجمه :** سفيان د شعبه نه زيات حافظ دى . (تذكرة الحفاظ ، ص ۲۰٦ )

(۷ ) دامـام ابوداود رحمه الله رايه : ولـيس يختلـف سـفيان وشـعبه في شي الا ينظربـه سـفيان وخالفه في اكثر من خمسين حديثا القول فيها قول سفيان .

**ترجمه**: په هيڅ ځيزکې د سفيان او شعبه اختلاف ندې راغلى مګر چې سفيان وربانديې کامياب شوى دى او امام شعبه په پنځوسو حديثونو کې د سفيان نه خلاف کړى دى چې په هغې کې خبره د سفيان معتبره ده. (سير اعلام النبلاء، ج ۲۴۰/۷) وشرح علل الترمذى ص ۱۲۵)

(۸) امام ابو زرعه فرمائى: كان الثوري احفظ من شعبه في اسناد الحديث ومتنه. (مقدمة الجرح والتعديل، ص ٦٦)

(۹) د امام ابو حاتم رحمه الله فيصله: هو احفظ من شعبه واذا اختلف شعبه والثوري فالثوري. (مقدمة الجرح والتعديل، ص ٦٦)

(۱۰) د امام ابن حجر محققانه تبصره: هو اتقن واحفظ من شعبه. (فتح البارى، ج ۴۶۸/۹)

(۱۱) د امام شعبه خپله فيصله د سفيان په حق کې سفيان مانه زيات حافظ او ياد ونكى د حديثو دى. (تذكرة الحفاظ)

(۱۲) د امام ابو حنيفه رحمه الله فيصله: لو كان سفيان الثوري في التابعين لكان فيهم له شان فقال ياابا حنيفه مايقول في الاخذ عن الثوري؟ فقال اكتب عنه فانه ثقة ما خلا احاديث ابي اسحاق عن الحارث وحديث جابر الجعفي. ترجمه: که چيرې سفيان ثورى په تابعينو کې وي نو دده به په هغوى کې ډيرغټ مقام وو. بيا د امام ابو حنيفه نه تپوس وشو چې د سفيان ثورى نه روايت نقل کول څنګه دي؟

نو امام ابو حنيفه ورته وفرمايل: د سفيان نه احاديث ليکه ځکه هغه ثقه دى البته کله چې هغه د اسحق روايت د حارث نه نقل کوي يا د جابر جعفي نه نقل کوي نو هغه مه ليکه. [دلايل النبوه للامام لبهيقى، ج ۴۵/۱) (ددې دواړو نه د روايت نه ليکلو وجه داده چې دا دواړه رافضي او کذاب وو) (امين الفتاوى، ج ۲۷۸/۱).

**الاخفاء**: (۱) چې کله تا پخپله وليکل چې سفيان الثوري رحمه الله د ومره لوى امام دى نو د هغه خپله فيصله د امين په باره کې څه ده؟ هغه خو په خپله په دې قايل دى چې امين په پټه ويل بهتر دي. او هغه خو په خپله د شعبه په روايت عمل کوي، المجموع شرح المهذب، ج ۳ ص ۳۷۳. (درس ترمذى، ج ۵۰۱/۱) بحث جهر التامين والاخفاء به) نو سفيان ثوري چې پخپل دى روايت د جهر بانديې عمل نه کوي، نو دوه احتماله لري، اول دا چې دى به تارک د سنتو وي، نو بيائې عدالت ساقط شو، نو روايت ته

يې څرنګه اعتبار ورکوئ؟ دوهم دا چې ده ته معلومه وه چې دا دنبي ﷺ دائمي عمل نه وو صرف دضرورت دتعليم لپاره يې ويلی وو.

مونږ دوهم احتمال اخلو :او ته به يې هم اخلې، ځکه اګر چې ته ډير دروغژن يې ډيرزر دخپلې خبرې ښخه اوړې، خواوس دې دسفيان ثوري رحمه الله پوره دوه نيم مخه صفت وکړو، نو اوس کلک نختی يې، دخپلې خبرې ښخه او ختل درته ډير سخت دي.

(۲) تـا چې مخکـې دعلمـاء دولـس قولـه نقـل کـړل، دا قـران وو او کـه حديث وو او کـه د دې علماء وو تقليد و؟ دلته ولې تقليد کوئ؟.

(۳) حاکم دشعبه دحديث په باره کې فرمائې صحيح الاسناد. (زيعلی ج ۱۹۴/۱).

(۴) دترک درفع اليدين په روايت کې چې سفيان ثوري راغلو نويـو دم دی رنګ بدل کړو اولاندې اعتراضونه دی پرې وکړل: سفيان ثوري مدلس دی اولاندې علماء وورته مدلس ويلي دي (عبدالله بن مبارک تهذيب السنن، ۱۰۲/٤/ يحي بن سعيدالقطان تهذيب السنن، ۱۱_ ۱۹۲) الامـام البخـاری العلـل الکبير للترمـذ ی ۲ /۹٦٦) والتمهيـد، ۱/ ۳٤) يحـي بـن معـين الکفايـة الخطيـب، (۳٦۱) ابومحمود المقـدسی قصـيدة فی المدلسـين دويـم شـعر،ص ٤۷ / ابـن الترکمـانی الجـوهرالنقی، ۸_ ۲٦۲/ماهنامه اهلحديث شماره ۱۲ ص ۳۸ ابن حجرطبقات المدلسين، ص ۳۲ تقريب ص ۱۹۷ )

امام ذهبی فرمائي انه کان يدلس عن الضعفاء ميزان الاعتدال، ص ۱٦۹ _ ج ۲ کان يحدث عن الضعفاء سيراعلام النبلاء، ۷ _ ۲۷٤) وربمايدلس عن الضعفاء سيراعلام النبلاء، ۷ _ ۲٤۲) الحق الصريح، ج ٤ص ۸٦) بحث رفع اليدين دامين الله کتاب او همدغه معتوه بيا دهمدې کتاب په ص ۲٦۲ کې دامين بالجهر په مسئله کې بيرته دسفيان مدحه کوي.

(۵) لامذهبه درعب دا چولو لپاره دومره صفحې په دې تورې کړي چې دسفيان روايت ته دشعبه په روايت ترجيح ده، دده دکبر او د غرور دخاورې کولو لپاره لاندې حوالې وګوره، چې دشعبه روايت ته ترجيح ورکوي.

(۱) امام احمدبن حنبل فرمائي چې وشعبة احسن حديثامن الثوري ولم يکن فی زمـن شعبه مثله في الحديث ،ولا احسن حديثامنه.

(۲) محمدبن العباس النسائی فرمائي چې (سالت اباعبدالله يعني احمدبن حنبـل: مـن اثبت شعبه اوسفيان ؟ فقال کان سفيان رجلاحافظا،وکان رجلاصالحا،وکان شعبه اثبت منه.

(۳) نضل بن زياد فرمائي چې (سئل احمدبن حنبل : شعبه احب اليک حديثا وسفيان ؟ فقال شعبة انبل رجالا وانسق حديثا.

(٤) وقال عبدالله بن احمدبن حنبل عن ابيه : قال كان شعبة امة واحدة في هذالشان .

(٥) وقال عبدالله بن المبارک : حدثنامعمران قتادة كان يسئال شعبه عن حديثه .

(٦) وقال حمادابن زيد: قال لناايوب : الان يقدم عليكم رجل من اهل واسط هوفارس فى الحديث فخذواعنه ،قال حماد: فلماقدم شعبة اخذت عنه .

(۷) ابوالوليدالطيالسى فرمائي : چې قال لي حماد: اذااردت الحديث فالزم شعبة

(۸) خپله سفيان ثورى رحمه الله فرمايل چې : شعبة اميرالمؤمنين في الحديث .

(۹) شعبه دسفيان ثورى رحمه الله استاذوو. (۱۰) امام شافعى فرمائي چې لولا شعبة ماعرف الحديث بالعراق .

(۱۱) قال ابوزيدالهدوى : قال رجل لشعبة :ياباسطام سمعت ؟ فقال : والله لان اتقطع احب الي من ان اقول لمالم اسمع : سمعت.

(۱۲) قال محمدبن منهال : سمعت يزيدبن زريع غيرمرة يقول : كان شعبة من اصدق الناس في الحديث . (۱۳) وقال عمروبن على: سمعت ابابحرالبكراوى يقول مارايت اعبدالله من شعبة لقدعبدالله حتى جف جلده على ظهره ليس بينهماالحم . (۱٤) على بن المدينى فرمائي : سئالت يحيي بن سعيد:ايهماكان احفظ للاحاديث الطولات سفيان اوشعبة ؟ فقال كان شعبه امرفيها (۱٥)_على بن المدينى فرمائي :وسمعت يحيي يقول :كان شعبة اعلم بالرجال فلان عن فلان كذاوكذاوكان سفيان صاحب ابواب (۱٦)_ ولمامات شعبة : قال سفيان: مات الحديث (۱۷)_ قيل لابى داوداشعبة احسن حديثامن سفيان ؟ فقال : ليس في الدنيااحسن حديثامن شعبة ومالک على القلة .تهذيب الكمال ج ٤ص ٥٩٠ / ترمذى / كتاب العلل/ ج ۲/ ص ۲۳۸ / اعلام الموقعين/ ج ۱ / ص ۷۳ / فتاوى ابن تيميه/ ج/۱ / ص ۸۲].

**(٤) دشعبه ﷺ د روايت يو څو دترجيح وجوه :**

(۱) سفيان رحمه الله دد ومره جلالت قدربا وجود كله كله تدليس هم كوي ددې په خلاف شعبه تدليس اشد من الزنا گڼي، دهغه دا خبره هم مشهوره ده چې: (لان اخرّ من السماء احب الیّ من ان ادلس) ددې نه د هغه غاية احتياط معلوميږي .

(٢) سفيان ثوري اګرچې د جهر تامين راوي دى، ليکن خپله د هغه مسلک اخفاء تامين دى، کوم چې د شعبه د روايت مطابق دى.

(٣) - د شعبه روايت اوفق بالقران دى الله فرمائي: (اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً) او امين هم دعاده. دليل يې دادى چې قران کې (قد اجيبت دعوتکما) راغلى دى حال دا چې حضرت هارون صرف امين ويلى دى.

(۴) د بعضو نورو صحيح رواياتو نه هم د حضرت شعبه رحمه الله د روايت تائيد کيږي لکه د حضرت ابو هريره ﷺ مشهور حديث دى: (ان رسول الله ﷺ قال اذقال الامام غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين فقولواامين الخ.

په دې کې د امام د ولاالضالين ويل د امين د ويلو د پاره مقرر دى، که جهراً امين بهتروي. نو د امام امين ويل به ذکر شوى وي نو دا روايت ښکاره د امين په اخفاء دال دى، د دې په جواب کې د ترمذى څخه د باب ماجاء في فضل التامين کې هم د حضرت ابو هريره ﷺ روايت وړاندې کولى شي.

اذامن الامام فامنوا: ليکن په دې کې د جهر صراحت نشته، بلکې دا خبره ښودل شوې ده چې تامين به هغه وخت وي کله چې امام امين ووائي او د دې طريقه تيره شوي روايت کې بيان شوې ده چې د ولاالضالين ويلو نه وروسته به امين ويل کيږي ځکه چې امام هم دغه وخت کې امين وائي، نو حقيقت کې تير شوى روايت د دې روايت تفسير دى او د دواړو د مجموعې نه هم د احنافو د مسلک تاييد کيږي.

(۵) د شعبه په روايت باندې اکثرو صحابه وو عمل کړى دى. (قال الطبري وروي ذالک (اخفـاء التامين) عن ابن مسعود وروي عن النخعي والشعبي وابراهيم التيمي كانوا يخفون... اکـثر الصحابة والتابعين علي ذالک. (الجوهر النقي علي البيهقي باب جهر الامام بالتامين ج٢ ص ٥٨ )

(٦) په پټه امين ويلو ته عملي تواتر حاصل دى او عملي تواتر د سند د تواتر څخه هم قوي دى.

(کتاب الروح المسئالة الاولي ص ٢٢ و المسالة السادسة عشر ص ١٥٧) مکتبه فاروقيه)

**(٣٧) وسواس الخناس: لامذهبه ليکي** :اوس به راشو د دې روايت معنى ته نو د امام شعبه روايت باوجود د دې چې ضعيف دى (حالانکه تا واوريدل چې دا حديث قوي دى امام حاکم فرمائي.

[صحيح الاسناد زيلعى/ج ١ _ ١٩۴].

**خولامذهبه مخکې ليکي** :بياهم داحنافوپاره دليل نه شي کيدلی ځکه چې داحنافوعمل دادی چې امين به په دومره اندازه ويلی شي چې ډيرنزدې نزدې کس يې هم وانه وري الخ (فتاوی ،ج ۱/۲۷۹)

**الاخساء : داخفاء يعنی پټولوستلودرې درجې دي**:

**اعلی :** چې صرف په زړه کې تکلم وي ژبه اوشونډې پکې نه وي شريکې . لکه په يولوی حديث کې راځي چې الله ﷻ به ديوسړي سره جساب کوي نواخرکې به الله ﷻ ملايکوته ووائي چې ايادد سړي کوم نيک عمل پاتې دی ؟ ملايکې به ورته ووائي چې نه يا الله ﷻ کوم شيان چې مونږ ته معلوم ووټول ليکلي وو، الله ﷻ به دغې سړي ته ووائي چې ستايوه نيکي زماسره پاتې ده چې تاته نده معلومه اوزه نن تاته دهغې بدله درکوم اوهغه په پټه ذکردي. (مجمع الزوايد ،ج ۱۰_ ص ۸۱)

**اوسط:** چې دزړه سره ژبه هم شريکه شي اوترخپلې خولې پورې اوازاورسيږي .

**ادني:** چې دزړه سره ژبه هم شريکه شي اوپه څنګ کې سړی يې واوري . دادرې دواړه اخفاء يعنی پټ لوستل دي اوپه دې باندې هرسړی پوهيږي ان شاء الله چې ستاوسوسه دلته ډيره کمزوري ده .

لامذهبه! الزاماً داهم وايوچې جهرهم مختلف مراتب لري دوايل رضي الله عنه په حديث کې صرف دومره راغله چې فسمعته واناخلفه . [نسائی ،ج ۱/۹۴]. اودعطاء رحمه الله په روايت کې دمسجد کړنګيدل راغله نه دااضطراب دقران اوحديث په رڼاکې څرنګه حل کوي ؟

**(۳۸) : وسواس الخناس: لامذهبه خناس ليکلي دي چې:**

## داحنافو پنځم دليل :

ترجمه : دابووايل رضي الله عنه نه روايت دی چې عمراوعلی رضی الله عنهمابه بسم الله الرحمن الرحيم اعوذبالله اوامين په جهرسره نه ويل . (رواه الطحاوی ،۱/ ۱۵۰) وابن جرير کمافی اثارالسنن ص ۱۲۵) (فتاوی ،ج ۱_ ۲۸) لامذهبه ليکي چې داروايت بيخي ضعيف دی، ځکه چې ددې په سند کې سعيدبن المرزبان دی چې داضعيف راوي دی . (فتاوی ،ج ۱/۲۸۱)

يسايې دځوارلسوکسانوبې دليله حوالې پيش کړي دي، چې داضعيف دی حالانکه دی ځوارلسوکسانوخپله جرحه نده مفسره کړي، اوغيرِ مفسرې جرحې ته اعتبارنه شته، اوخصوصاامين الله

لامذهبه خودلايل صرف دووته وائي، چې يو قران دى اوبل حديث او (قبول قول الغير من غير حجة) ته تقليد وائي او تقليد ته شرک او بدعت وائي (دتقليد حقيقت) نو دلته يې دځوارلسو کسانو بې دليله خبره څرنګه ومنله؟ او ددې ځوارلسو کسانو په شرک تقليدي کې يې ځان څرنګه راګير کړو ؟

ابوسعيد بقال مختلف فيه راوى دى. ابن جريح، حاکم، او ابوذرعه دده توثيق کړى دى، حافظ ابن حجر په فتح البارى کې ديو داسې حديث تحسين کړى دى چې مدار يې په ابوسعيد بقال دى، امام ترمذي په علل کبرى کې دده په باره کې ليکلي دي چې د امام بخارى په نيز هم ثقه دي او دده روايت د حسن څخه کم ندى. (درس ترمذى، ج ٥١١/١)

علامه هيثمى دده په باره کې ليکلي دي چې ثقة مدلس. (مجمع الزوايد، ج ١ـ ١٨٥).

**(۳۹) : وسواس الخناس : لامذهبه ليکي چې:** په دې حديث کې بل راوى ابوبکر بن عياش دى چې دده متعلق امام حاکم فرمائي. وکان ابوبکر من الحفاظ المتقنين ثم اختلط حين نسي حفظه وقال الامام البخاري اختلط باخره. (ابوبکر بن عياش ثقه وو ليکن کله چې بوډا شونو ګډوډى پرې راغله نو څه چې ورته يادوو هغه ترينه هير شوامام بخارى فرمايلي دي چې په ده باندې په اخر عمر کې اختلاط او ګډوډي راغله. (نصب الرايه، ج ١ـ ٤٠٩) امين الفتاوى، ج ١ـ ٢٨٣)

**الاخساء :** ابوبکر بن عياش دصحيح بخاري راوى دى په صحيح بخارى کې دده څخه ډير زيات روايات دى. مثلاً وګوره دبخارى شريف لاندې حوالې:

(١) ج ١ / ١٨٦/بخارى. (٢) ج ٢٣٢/١/بخارى. (٣) ج ١ /٢٦٩/بخارى.

(٤) ج ١ /٢٦٣/بخارى. (٥) ج ٢٧٤/١/بخارى. (٦) ج ٤٩٦/١/بخارى.

(٧) ج ٦٥٥/٢/بخارى. (٨) ج ٧٢٥/٢/بخارى. (٩) ج ٧٤٨/٢ بخارى.

(١٠) ج ٨٨٩/٢/بخارى. (١١) ج ٩٠٣/٢/بخارى. (١٢) ج ٩٥٢/٢/بخارى.

(١٣) ج ٩٥٤/٢/بخارى. (١٤) ج٩٦٣/٢بخارى.

همدارنګې په ص ١٠٥٢، ص ١١١٨، ص ٤٠٤، ص ٢٦٠، ص ٧٧٩. نو لامذهبه جاهله اعلان وکړه چې دبخارى دا ټول احاديث ضعيف دي، همدارنګې دده ترجمه او توثيق په تذکرة الحفاظ، ص ٢٥٠) کې کتلې شي.

**(٤٠) : وسواس الخناس :** لامذهبه ليکي:

## داحنافو شپږم دليل

حضرت عمر ﷺ فرمائي چې څلور څيزونه به په پټه باندې ويلى شي اعوذبالله، بسم الله اوربنالک الحمد. [امين الفتاوى، ج ۱/۲۸۴).

بياليکي جواب دلته دوى صاحبان څکه په ابن حزم حواله ورکوي چې بل ځاى دا روايت نه موندلى کيږي او بيا ليکي چې بلاسنده روايت لره هيڅ اعتبار نه شته.

**الاخساء:**

(۱) دا روايت په کنزالعمال، ج ۴/ ۲۴۹ کې شته. او عينى شرح دهدايه کې هم دى.

(۲) دلته وائي چې بلاسنده روايت لره هيڅ اعتبار نه شته او تاچې دامين بالجهر لپاره په نيلو دلايلو کې په پنځم نمبر دليل کې د حضرت عطاء بى سنده روايت پيش کړى وو هلته ورته څرنګه اعتبار وو؟ لامذهبه ته دبخاري تعليقات مني او که نه؟ که نه يې منې نو د حضرت عطاء بى سنده تعليق دې ولې ومنلو؟ او که منې يې نو بيا څرنګه تعليقات دبخاري منې او دنورو محدثينو او د فقهاوو تعليقات نه منې؟ حالانکه د فقهاوو مرتبه د محدثينو څخه پورته او لوړه ده.

**رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائي :** فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ غَيْرِ فَقِيهٍ وَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ إِلَى مَنْ هُوَ أَفْقَهُ مِنْهُ.(مشكوة كتاب العلم، ج ۱ ص ۳۵)

(۳) لامذهبه د عبدالله بن مسعود ﷺ په اثر اعتراض کوي چې دا بې سنده دى، حالانکه دا په صحيح سند باندې ثابت دى. (درس ترمذى، ج ۱ص ۵۱۲) بحواله مجمع الزوايد، ج ۲/ ۱۰۸). او ددوهم جواب حال يې تاسو مخکې وليدو، چې دا بالکل غلطه ده چې دامام عطاء ملاقات ددوه سوه صحابه وو سره شوى دى.

لامذهبه دسمرة بن جندب حديث ته داجواب ورکړى دى چې داسکته دساه اخستلو لپاره وه څکه چې رسول الله ﷺ به چې د قرائت څخه فارغ شو نو دساه اخستلو لپاره به يې سکته کوله مونږ وايو چې بيا خو داسې پکار و چې دوهمه سکته د امين څخه وروسته وه.

حالانکه دى حديث کې ددوو سکتو ذکر دي. يوه د سبحانک اللهم لپاره او دوهمه دامين لپاره. نو دسبحانک اللهم لپاره چې کومه سکته شوى ده هلته قرائت چيرته وو او د قرائت څخه فارغيدل چيرته دى.

دوهم داچې دلته تصريح شوې ده چې داسکته د ولا الضالين څخه وروسته وه او په ولا الضالين قرائت نه خلاصيږي بلکې دضم دسورة څخه وروسته قرائت خلاصيږي او دقرائت څخه وروسته او درکوع څخه مخکې سکته جدا ده چې لږ وروسته به يې بيان کړو دحضرت مغيره ﷺ دروايت څخه صفا معلوميږي چې داهغه سکته نه ده کومه چې دقرائت څخه دفارغيد وپه وخت کې وي .

عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا كَبَّرَ سَكَتَ هُنَيْهَةً، وَإِذَا قَالَ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة:٧] سَكَتَ هُنَيْهَةً، وَإِذَا نَهَضَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ لَمْ يَسْكُتْ، وَقَالَ: {الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ} [الفاتحة:٢].
(مصنف ابن ابی شيبه ، ج ٣٠٩/١).

لامذهبه په حسن بصري هم اعتراضونه کړي دي مونږ وايو چې: دحسن بصری ملاقات ديو سلو شلو صحابه وو سره شوی او په هغه باندې اعتراض دمعترض حيثيت مجروح ګرځوي .

لامذهبه ليکي چې امام ابو حنيفه سره دسکتاتو قايل ندی . (فتاوی ، ج ٢٨٨/١) دادېر يهودي صفته محرف، دروغژن ،بې دينه، حمارِ محض ايجنټ دی.

دامام صاحب قول دهغې سکتې په باره کې دی چې دقرائت څخه وروسته او درکوع څخه وړاندې ده چې دساه صحيح کولو دپاره ده شوافع او حنابله دې سکتی ته مستحب وائي، په احنافو کې علامه شامی داتفصيل بيان کړی دی چې که قرائت داسماء حسنې نه په يوه ختم شی لکه ( وهو العزيز الحکيم ) نوسکته مستحب نه ده . بلکې دتکبير سره ددې وصل اولی دی او که اختتام په بل لفظ وي نو سکته کول پکار دي .

لکن محققين وائي چې دقرائت په اخرکې درکوع څخه مخکی سکته مسنون ده، نو هلته هم دمحقيقينو احنافو په نيز سکته پکار ده . (درس ترمذی ، ج ١ ص ٥١٣ ) اخری صفحه ].

لامذهبه خناس يو خيانت داوکړو چې دقرائت څخه وروسته او د رکوع څخه مخکې سکته يې دولاالضالين څخه وروسته سکتې ته راواړوله . دوهم خيانت يې داوکړو چې دمحقيقينو احنافو قول يې پريښودو مرجوح قول يې ذکرکړو .

دريم داچې په هغې کې يې هم قطع او بريد وکړو ، داحنافو عبارت داسې ندی څرنګه چې ده ذکر کړی دی. محترمو ورونو ددې لامذهبه داکتاب صرف درې ورځې ماته په لاس راغلې وو.

اصلی مالک يې يو لامذهبه و، چې کله خبره شو کتاب يې راڅخه بيرته ويوړو او په زندان کې اګرچې لامذهبان يو څو کسان نور هم شته او ددې لامذهبه کتابونه هم ورسره دي، لکن زما څخه يې پټ

ـانې او د منافقانو په شان زما څخه پټ پټ یې خلکو ته ښائي، د دوی د کتاب داحال دی چې زما غونډی
بړ کمزوري حنفي خادم ته یې هم ورښکاره کولی نه شي .

دوی د هغو مداریانو په شان دي چې په وړو وړو پلاستکونو کې یې څه سره، شنه خړ رنګي میده شیان
اچولي وي او د دې د خرڅولو لپاره د خلکو په مینځ کې اول یو څو جملې ووائي، چې د خلکو توجه ځان ته
راواړوي بیا د ټولو مرضونو شمار شروع کړي او ووائي چې زما دا پوړې د دې ټولو مرضونو علاج دی،
د دې په اورېدو کمعقل خلق ورباندې راپریوزي او په یو څو دقیقو کې ټولې پوړې ورڅخه واخلي، چې بیا
بې د چا ستونی خراب کړی وي، د چا یې سینه خرابه کړې وي، په چا یې بُخار ( خاربښ ) راخیژولی وي .
لکن مداري بیا هم خپل پروپاګند په زور او شور سره کوي .

همدارنګه د دې لامذهبه خناس کتابونه دي، په خوله د قرآن او د حدیث نوم یادوي او د فقهي حنفي
په خلاف پوروپاګند کوي، اخر د یو څو کم عقلو زړه د فقهي حنفي څخه تور کړي. او د دوی په کتابونو کې
ټول مسائل شته ندي، نو بې مهاره او ښـان ترینه جوړ شي، د فقهي څخه یې زړه او ښتی وي او د ده په
کتابونو کې ورته تشفي نه حاصلیږي. نوله دې وجهې حیران حیران ګرځي، کلُه قادیاني شي او کله له
منکرینِ حدیث سره یو ځای شي او کله په بله مرتده ډله کې داخل شي .

حضرت حسن او حضرت حسین رضی الله عنهما داهل سنت والجماعت دسترگو یخوالی دی. (الکامل لابن الاثیر، ج ۲ ص ۲۲) [فرمان رسول الله صلی الله علیه وسلم].

اهل سنت والجماعت دیوم تبیض وجوه مصداق دي . (تفسیر الدر المنثور، ج: ص ۲۳) [فرمان رسول الله صلی الله علیه وسلم].

## په لمانځه کې د نوم ځخه لاندې لاسونه تړل



بسم الله الرحمن الرحيم

# دنامه لاندې لاسونه کېښودل

الحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده

أمابعد!

درسول الله ﷺ څخه چې څرنګه قران پاک په لفظي تواترسره ثابت دی، همدارنګې ترینه پنځه وخته لمونځ په عملي تواترسره ثابت دی، مسلمانان په هرکورکې هره ورځ پنځه وخته لمونځ کوي، لکن لکه څرنګه چې دمتواترقران په خلاف بعضې شاذقراءتونه په کتابونو کې پیداکیږي اوهغه قراءتونه ترینه پورې مسلمانانودقران په تلاوت کې نه دي داخل کړي ،همدارنګې ددغه عملي متواترلمونځ په خلاف بعضې شاذ روایتونه په کتابونو کې پیداکیږي، چې هغه هم اهل اسلام په خپل عملي متواتر لمونځ کې نه داخلوي.

مثلا ټول مسلمانان دقران پاک لاندې ایتونه داسې تلاوت کوي چې: (وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى) مګرپه بخاری شریف کې قرائت داسې راغلی دی چې: (وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى وَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى)(بخاری ،ج ، ۲ص ۷۳۷)

نن تمام مسلمانان دمتواترقرائت موافق تلاوت کوي ، افغانستان ، پاکستان ،هندوستان ،اودماوراء النهر ملکونو ته لکه څرنګه چې قران پاک حنفي مجاهدینورارسولی دی، همدارنګې درسول الله ﷺ لمونځ هم داحنافو مجاهدینوپه ذریعه رارسیدلی دی ، دې ملکونوته قران پاک دقاری عاصم کوفي اوقاری حفص کوفي درروایت او دقراءت مطابق رارسیدلی دی. اونبوي ﷺ لمونځ دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله دتدوین مطابق رارسیدلی دی ، نوکه یوڅوک دکوم شاذقرائت له وجهې دخلکوپه مینځ کې داشوراوغوغاجوړه کړي چې دامتواترقران کوفي قرآن دی او دا صحیح قران نه دی، نوداسړی ددین دشمن ګڼلی شي، اودده دې کارته هیڅکله دیني خدمت نه شي ویل کیدی.

نوهمدارنګې که یولامذهبه دبعضې شاذواو مرجوحو روایتونو له وجهې داشوراوغوغاکوي چې دامتواترلمونځ کوفي لمونځ دی، اوداصحیح لمونځ ندی، نوداسړی هم ددین دشمن دی، اودده داکارهیڅکله

کوم ديني خدمت ندی. ددې ملکونو کافران داحنافوپه لاس مسلمانان شول او دوی تـه يې هغه نبوي ﷺ لمونځ وروښودلو چې امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله يې تدوين کړی دی.

دهمغه وخت څخه دوی لاسونه دنوم څخه لاندې تړي، امين پټ وائي او د امام پسې الحمدلله نه لولي، درکوع رفع اليدين نه کوي، تردولس (۱۲۹۰هـ) سوه نوی يمې هجری پورې هيچا دا اواز پورتـه نکړو چې دا طريقه دسنتو څخه مخالفه ده.

په دې دولس سوه کلونو کې په ميلونو علماءو اولياءو، او عوامو دحج او دتعليم لپاره دحرمينو شريفينو سفرونه کړي دي، مګرهلته ورتـه هيچاهم داندې ويلي چې ستاسو لمونځ دسنتو څخه مخالف دی، په ټول تاريخ داسلام کې څوک يوه واقعه هم داسې نه شي ثابتولی.

اخر څه د پاسه په دولس سوه نويمه (۱۲۹۰هـ) کې په مکه کې نه، او په مدينه کې نه، او په بل اسلامي سلطنت کې نه، بلکې دملکې وکټورې په دوره کې، په هندوستان کې، مولوی محمد حسين بټالوي دهند دأهل حديثو وکيل ديو اشتهار په ذريعه ددې عملي متواتر لمونځ په خلاف اواز اوچت کړو چې څوک په لمانځه کې دنوم څخه لاندې لاسونه تړي دهغه لمونځ دسنتو څخه مخالف دی، او د رفع اليدين وغيره مسائل يې هم په کې وليکل.

او دا اشـتهار يـې هـرې قرئـي اوهرکلـي تـه ورسـولو، اودانګريزانـو دې پاليسـي تـه يـې عملـي جامعـه ورواغوستله چې: **ويې جنګوه او حکومت پرې وکړه** : د برصغير هر مسجد او هر کور يې دجنګ په ميدان بدل کړواو دا قرآني حکم يې بالکل شاته وغورزولو چې: (وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ).

دحکومت برطانيه صفتونه او داسلام داکابروسپکاوی يې اهمه فريضه وګڼله، او د (لعـن أخرُهـذه الأمـة أولها) مصداق شول. کله چې ددوی څخه پوښتنه وشوه چې ددې عملي متواتر لمونځ په خلاف ستاسو سره څه دليل دی؟

او په کوم متواتر روايت کې راغلي دي چې دهميشه لپاره لاسونه په سينه باندې کيږدئ؟ حالانکې دا د يهودو او د نصارااو طريقه وه هغوی به په مانځه کې لاسونه په سينه باندې کيښودل. كما في أحكام القرآن للطحاوي، كتاب الصلوة تأويل قوله تعالى: (فَصَلِّ لِرَبِّکَ وَانْحَرْ) وكذا في المبسوط للسرخسي- كتاب الصلوة، كيفية الدخول في الصلوة.

همدارنګه علامه ابن قيم جوزي رحمه الله فرمايي چې رسول الله ﷺ په سينه باندې د لاسونو کېښودلو تـه مکروه ويلي دي فرمايي: قال فى رواية المزنى اسفل السرة بقليل ويكره ان يجعلهما على الصدر وذكل انه نهى عن التكفير وهو وضع اليد على الصدر بدايع الفوائد ج ۳صـ صـ۶۰۰ـــــ صـ ۶۰۱)

امام احمد هم ورته مکروه ويلي دي. [المبدع شرح المقنع ج۱/ ص۳۷۹، باب صفة الصلوۃ]. او علامه محمد انورشاه کشميري رحمه الله ورته بدعت ويلي دي. [فيض الباري، باب الزاق المنکب بالمنکب... الخ]. نو دلامذهبو شيخ الاسلام مولوی ثناء الله امرتسري راميدان ته شو او په لاندې دلايلو يې شروع وکړه.

## اول دليل:

دقران پاک ايت دی: (فَصَلِّ لِرَبِّکَ وَانْحَرْ)

ددې معنی ده لمونځ وکړه او په سينه باندې لاسونه وتړه. (فتاوی علماء حديث، ج۳ ص۹۵) فتاوی ثنائيه، ج۱ ص۵۳۴) اندازه ولګوئ چې دمتواتر لمونځ پر خلاف دقران په غلطه ترجمه کولو کې څرنګه دروافضو تقليد کوي؟ ځکه چې په صحيحو احاديثو کې د وانحر ترجمه په قرباني کولو سره راغلې ده، لامذهبان وائي چې په سنن بيهقي کې دحضرت علی رضی الله عنه يو اثر دی چې ددې ايت تفسير يې کړی دی او فرمايلي يې دي چې: (وَضَعَ يَدَهُ اليمني علي وسط يده اليسري ثم وضعها علي صدره. [بيهقی ج ۲ص ۳۰)

يعني نبی لاس يې دچپ لاس په مينځ باندې کېښود او بيا يې په سينه کېښودل، ليکن علامه ماديني رحمه الله په الجوهر النقی کې ثابته کړې ده چې ددې روايت په متن او سند کې اضطراب دی ددې په سند کې ابو الحريش الکلابی مجهول دی، امام بيهقی دا تفسير دابن عباس رضی الله عنه څخه هم نقل کړي دي، ليکن ددې په سند کې روح بن المسيب دی ابن حبان دده په باره کې فرمايلي دي چې: (يروي الموضوعات لاتحل الرواية عنه) (الجوهرالنقی ص۳۰۲) کتاب الضعفاء المتروکين لابن الجوزی رقم ۱۲۵۱، قال ابن عدی احديث غير محفوظة الکامل فی الضعفاء رقم ٦٦٤).

يحيی بن ابی طالب پکې کذاب دی (قال موسی بن هارون اشهد انه يکذب تاريخ بغداد رقم الترجمة ۷۵۱۳) عمرو بن مالک النکری پکې ضعيف دی (قال ابن عدی منکر الحديث ويسرق الحديث، (کتاب الضعفاء والمتروکين رقم الترجمة ۲۵۷۵)

حافظ ابن حجر فرماي چې: يخطی ويغرب (تهذيب التهذيب رقم ۱٤٦۰) وذکره الذهبی فی الضعفاء ج ۳صـ ۱۵۱)

قال ابن عدی ولعمرو وغيره ذکرت احاديث مناکير بعضها سرقها من قوم ثقات (الکامل لابن عدی ج ٦صـ ۲۵۸)

يعنې ده بـه موضـوعات روايـت كـول دده څخـه روايـت كـول نـدي جـائز. اوعلامـه سـاعاتي رحمـه الله دمسند احمد رحمه الله دتبويب په شرحه كې ليكلي دي چې. (نسـبة هذالتفسـيرالي علي ﷺ وابـن عبـاس ﷺ لاتصح كماقال ابن كثير والصحيح نحرالبدن)(الفتح الرباني، ج ۳ص ۱۷٤)

ددې تفسير نسبت حضرت على ﷺ او ابن عباس ﷺ ته ندی صحيح لكه څرنګه چې ابن كثير فرمايلي دي صحيح داده چې ددې څخه قرباني مراد ده.

زمونږد زمانې متعصب لامذهبه امين الله پشاوري چې كله دخپلو مشرانو په ګندګيو نوره پرده نه شوه اچولې نو اقرارېې وكړو چې ددې څخه استدلال غلط دی. (الحق الصريح، ج : ۴ص ۱۲۱ سطر اخر)

لكن دهمدي لامذهبه لږوروسته صبرونه شو، دشرارت رګ يې بيرته په حركت راغلو او دخپلو مشرانو په تقليد كې يې ترينه بيرته غير مستقيم استدلال وكړو.

يوه صفحه وروسته يعنې په صفحه (۱۲۲) سطر (۲۲) كې يې د قرطبی په حوالـه داموضوعی اثر رانقل كړو او په سطر (۲۴) كې يې ورته حسن هم وويلو. (دروغ گو را حافظه نباشد)

## دوهم دليل

ددې متواترلمونځ پرخلاف دلامذهبو شيخ الاسلام مولوی ثناء الله ليكلي دي چې په سينه باندې دلاسونو دكيښودلو روايات په بخاری، مسلم، اوددوي په شرحو كې ډيرزيـات دي. (فتـاوی ثنائيـه ج ۱ص ۴۴۳) فتاوی علماء حديث ج ۳ص ۹۱)

مګرافسوس چې داداسې دروغ دي لكه څرنګه به چې مرزاقادياني ويلي چې په بخاري كې دي چې داسمان څخه به اوازراشي چې داخليفة الله المهدي دی. اولكه شيعه ګان چې وايې چې په بخاري كې راغلي دي چې (لولاسنتان لهلک ابوحنيفة) كه هغه دوه كاله نه وای چې ابو حنيفة دجعفر الصادق سره تير كړل نو هلاک شوی به وو، نه دمرزاقادياني اونه دشيعه ګانو داخبرې په بخاری كې شته، اونه ددې لامذهبه داخبره په بخاري او په مسلم كې شته، قادياني اوشيعه ګانو يـوائځې دبخاري پـورې دروغ تړلي دي، او لامذهبه ترينه وړاندې لاړو او دبخاري او دمسلم دواړو پورې يې دروغ وتړل.

## دريم دليل

ددې متواتر لمونځ په خلاف په قران پاک، بخاري، اومسلم باندې د دروغ ويلوڅخه وروسته يې ديوبل دليل تالاش وکړوچې په ابن ماجه، ترمذي، دارقطني اومسند احمد کې يو حديث د حضرت ابن هلب ﷺ عن ابيه څخه مروي دی چې. کان النبي ﷺ ينصرف عن يمينه وعن يساره ورأته يضع هذه علي صدره. مسند احمد رقم ۲۱۸٦٤ (فتاوی ثنائيه، ج ۱ص ٤٥٨) اول خو په دې حديث کې د لمانځه په داخل کې د لاسونو د کېښود ذکر نشته بلکې د سلام څخه وروسته حالات په کې ذکر شوي.

(۱) علامه نيموي فرمايي چې اصل الفاظ په مسند احمد کې داسې دي. (يضع هذه علي هذه) (مسند احمد، ج ٥ ص ۲۲٦ تعليق اثار السنن ص ٧٥)

### نو په دې کې دوه غلطیانې شوي دي:

**اوله غلطي :** په اصل کې روايت داسې دی (يضع هذه علي هذه) يعنې کېښودو به يې ښي لاس په چپ لاس.[قال العلامة نيموي والصحيح يضع هذه علي هذه. [تعليق اثار السنن ص ٧٥ باب وضع اليدين علي الصدر].

لکه څرنګه چې د مسند احمد په يو ځای کې همداسې الفاظ دي او په بل ځای کې د کاتب د غلطی له وجهې نه (يضع هذه علي صدره) جوړ شوی دی، ځکه چې په مجمع الزوايد، کنزالعمال، اوجمع الجوامع کې د صدره لفظ نه شته، حالانکه د مسند احمد ټول زيادات په دې کتابونو کې درج دي.

علامه نيموی رحمه الله په اثار السنن کې په مظبوطو دلائلو دا غلطي ثابته کړې ده، نو اوله غلطي د کاتب د دوهم هذه بدلول دی په صدره باندې.

**دوهمه غلطي :** دوهمه غلطي مولوی ثناء الله کړې ده چې داول (هذه) څخه يې (يده) جوړ کړی دی. (فتاوی ثنائيه، ج ۱ص ۴۵۸) او دده په تقليد کې امين الله پشاوری هم همداسې غلط وليکل. (امين الفتاوی، ج ۱ ص ۲۱۷)

(۲) ددې سند راويان سفيان، سماک، قبيصه، او هلب دی دا حديث (۱) ترمذی او (۲) ابن ماجه د سماک الخ څخه روايت کړی دی چې د علی صدره لفظ په کې نشته (۳) دارقطني د عبدالرحمن او د (۴) وکيع عن سفيان څخه روايت کړی دی چې په هغې کې هم د علی صدره لفظ نشته همدارنګې امام احمد (۵) د وکيع عن سفيان (٦) او د شريک عن سماک څخه روايت کړی دی چې په دی دواړو ځايونو کې په کې د علی صدره لفظ نشته. نو چې په شپږو ځايونو کې نشته نو دا ددې غټ دليل دی چې دا لفظ تحريف دی.

(۳) ددې روایت مرکزي راوی سماک بن حرب دی او هغه منفرددی : (قـال النسـائی اذاانفردباصـل لـم یکـن بحجة لانه کان یلقـن فیـتلقن .میزان الاعتـدال ج ۲ص ۲۳۳).سفیان ورته ضعیف وایي شعبه ورته ضعیف وایي امام احمد ورته مضطرب الحدیث وایي (میزان الاعتدال ج ٥صـ ۲۱) عبدالله بن المبارک ورته ضعیف وایی‌ابن خراش فرمایي فی حدیثه لین ابن حبان فرمایي یخطی کثیرا ، ابن عمار فرمایي چې یقولـون ان کان یغلط ویختلفون فی حدیثه (تهذیب ج ۳صـ ٦٧)

(۴) همدا سماک کوفي دی او غیرمقلدین دکوفیانو روایاتوته اعتبارنه ورکوي .حقیقة الفقه ص ۱۰۱].

(۵) قبیصه یک پمجهول دی ، قال ابن المدینی مجهـول لـم یروعنـه غـیر سـماک قـلا النسـائی مجهـول ـ(تهذیب التهذیب)

(۶) ددې حدیث په سند کې سفیان دی او غیرمقلدین دترک درفع الیدین په حدیث کې سفیان ته اعتبارنه ورکوي .الحق الصریح ج ۴ص ٨٦ دوهمه چهپائی .

(۷) سفیان چې ددې حدیث راوی دی په دی حدیث به ئې عمل نه کولو ، بلکې لاسونه به یې دنوم څخه لاندې تړل. [تعلیق التعلیق علی اثارالسنن ص ۷۲ باب وضع الیـدین علی الصـدرﯙشرح المهـذب ج.۳ص ۳۱۳ ،ومعنی ابن قدامة ج ۱ص ٥١٩ .

(۸) ابن عبدالبر په (التمهید) کې په دې حدیث کې دعلی صدره لفظ ندی راوړی .

(۹) علامه هیثمی په (مجمع الزواید) کې په دې حدیث کې دعلی صدره لفظ ندی راوړی حالانکې ده دمسند احمد ټول زاید احادیث راوړي دي .

(۱۰) علامه سیوطی په جمع الجوامع کې دمسند احمد روایات راوړي دي لکن دعلی صدره دلفظ په کې بالکل نشان هم نشته .

(۱۱) علی متقی په کنزالعمال کې دمسند احمد روایات راوړي دي لکن دعلی صدره لفظ په کې نشته.

## څلورم دلیل

دقران پاک دتحریف معنوي، په بخاری او په مسلم ددروغو ، اود مسند احمد د تحریف لفظي څخه وروسته چې هم کله مسئله ثابته نه شوه نواخري تکیه یې په ابن خزیمه باندې وکړه، په ابن خزیمه کې یو حدیث دی (اَخْبَرَنَا اَبُوطَاهِرٍنَا اَبُوبَکْرٍنَا أَبُومُوسٰی، نَا مُؤَمَّلٌ، نَا سُفْیَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ کُلَیْبٍ، عَنْ أَبِیهِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ: «صَلَّیْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ، وَوَضَعَ یَدَهُ الْیُمْنٰی عَلٰی یَدِهِ الْیُسْرٰی عَلٰی صَدْرِهِ»

دوائل بن حجر ﷺ څخه چې (نبی کریم ﷺ په سینه باندې لاسونه کیښودل). (التلخیص الحبیر، ج ۱ص ۲۲۴ باب صفة الصلوة) اثار السنن ص ۷۲ باب وضع الیدین علي الصدر)

علامه سيد انورشاه کشمیري رحمه الله په فیض الباري کې فرمایي چې: دا حدیث معلول دی او خصوصاً د ایمه یې اربعه وو د اجماع او د عمل څخه مخالف دی، فرمایي چې: (ثم انه وقع عند ابن خزیمة في حدیث وایل لفظ: علی الصدر أیضاً، وهو معلول عندي قطعاً لأنه لم یعمل به أحد من السلف ولاذهب إلیه أحد من الأیمة. [فیض الباري] رفع الیدین إذا قام من الرکعتین.

د معلولوالي یو څو وجې دادي:

(۱) ددې حدیث په سند کې مؤمل بن اسماعیل رحمه الله، سفیان رحمه الله، عاصم بن کلیب رحمه الله او وائل ﷺ دی. اول راوی اتفاقاً ضعیف دی حافظ ماردینی دده په باره کې فرمائي: چې (کثرخطاه) دده خطاګانې ډیرې دي.

امام بخاری دده په باره کې فرمائي (منکرالحدیث) دده احادیث نه شي منلې او ابو حاتم فرمائي: (کثیرالخطاء) دده خطاګانې ډیرې دي. ابوذرعه فرمائی (في حدیثه خطا کثیر) دده په احادیثو کې ډیره زیاته غلطي ده. صاحب التقریب فرمایي: (صدوق سیئي الحفظ) یعنې رشتینی دی خو حافظه یې خرابه وه.

ابن حبان فرمایي (ربما خطأ)، ابن قانع فرمایي (یخطئ)

ابن سعد فرمایي (کثیر الغلط) دده غلطۍ ډیرې دي. میزان الاعتدال ج ۴ص ۲۲۸ تهذیب الکمال ج ۲۰ ص ۲۱۱ تقریب ص ۵۸۴) (اثار السنن، ص ۷۲ باب وضع الیدین علی الصدر). حافظ ابن حجرهم ورته ضعیف ویلي دي. (فتح الباری، ج ۷ص ۲۰۶) حتی چې غیر مقلد البانی لیکي چې: اسناده ضعیف لان مؤملا وهو اسماعیل سيئ الحفظ (حاشیة ابن خزیمة ج ۱ص ۲۷۲)

زمونږ د زمانې متعصب لامذهبه امین الله پشاوری د شوکاني دروغ رانقل کړي دي چې (صححه ابن خزیمه) (الحق الصریح، ج ۴ص ۱۲۰ سطر ۲)

دا دروغ اول شوکاني ویلي وو، او دده دا دروغ نورو لامذهبو د عربۍ څخه اردو ته ترجمه کړل، او د اردو څخه زمونږ د زمانې غیر مقلدینو پښتو ته ترجمه کړل، او دا سپېره دروغ څکه دي چې ابن خزیمه د مؤمل په طریقه تخریج څخه وروسته سکوت کړی دی. وګوره صحیح ابن خزیمه، ج ۱ص ۲۴۳ رقم الحدیث ۴۷۹].

(۲) دده څخـه وروسته نـور درې راويـان دکـوفې دي اود لامـذهبو دا عقيـده ده چې دعراقيانولـه طرفـه چې زرحديثه درته ورسيږي نو نهه سوه نوي يې بالکل وغورزوه اوپه پاتې لسو کې يې هم شک کوه. (حقيقة الفقه ص

(۱۰۱) دلته څرنګه دکوفيانو په څنګ کې سجده سهوه کوي؟

(۳) همـدارنګې لامذهبان دابن مسـعود ﷺ دترک درفع اليدين په حديث کې په سفيان او عاصم بن کليب رحمهم الله سخت اعتراضونه کوي او وائي چې ددوی احاديث قابل داستدلال ندي، لکن دلته يې دا روايت دسترګو تور څرنګه شو؟

لامذهبه امين الله دعاصم بن کليب په باره کې تقليدي اقوال رانقلوي او ليکي: (عاصم بـن کليـب لـيس ممن يحتج به وعاصم بن كليب عن ابيه عن جده ليس بشئ. [الحق الصريح، ج ٤ص ٩٥) دسفيان په باره کې ليکي چې سفيان مدلس وو. (انه كان يدلس عن الضعفاء. [الحق الصريح، ج ٤ص ٨٦).

(۴) کله چې ددې حديث دسند داحال شو، نو يهـودي صـفته لامـذهبو تريـنـه دابـن خزيمـه سندلرې کړو، اودمسلم شريف سنديې ورولګولو دحديث متن يې دابن خزيمه څخه راواخستلو (ج ١ص ٢۴٣) او سند يې ورته دمسلم شريف ولګولو هغه سند دادی (عن محـمد بن يحي عـن عفـان عـن همـام عـن محـمد بن حجـادة عن عبدالجبار بن وائل عن علقمة بن وائل ومولي لهم عن ابيه). (مسلم ج ١ص ١٧٣)

وګورئ دا يهوديت دغير مقلدينو په معتمد کتاب (فتاوی ثنائيه ج ١ص ۴۴۴) کې او په (فتاوی علماء حديث، ج ١ص ٩١) کې الله ﷻ دې مسلمانان دداسې حرکت څخه محفوظ ساتي.

(۵) ددې ټولو خبروسره سره ددې حديث دراوی سفيان ثوری رحمه الله چې دمؤمل استاذدی دده په نيز لاسونه به دنوم څخه لاندې تړلې شي. (تعليق التعليق ص ٧٢ باب وضع اليدين علي الصدر) بحواله شرح المنتقي ج٢ص ٧٨ معارف السنن ج٢ ص ۴۳۰].

درس ترمـذی پښتـو (ج ٢ص ٣ - ۴ شرح المهـذب ج٣ص ٣١٣ ومغنـی ابـن قدامـه ج ١ص ٥١٩) وفـي البعض ٣٣١ج٢]. داسحق بن راهويه او په شوافعو کې د ابو اسحق مروزی په نيزهم لاسونه دنوم څخه لاندې تړلې شي.

درس ترمذی حواله مذکوره، مغنی ابن قدامة ج٢/ ص٣٣١]. ومسايل الامام أحمد مسئله نمبر ٢١١]. اولامذهبه امين دلته هم ددروغو حواله ورکړه چې اسحق لاسونه دنوم څخه پورته تړل. (الحق الصريح ج١ ص ١٢١ سطر ١١)

(٦) علاوه لادا چې دوائل بن حجر ﷺ داحديث دحديثو په نورو کتابونو کې دثقاتو څخه مروي دی، دهغوی څخه يوهم د (علي الصـدر) زياتوالي ندی رانقل کړی، لکه څرنګه چې علامه نيموی رحمه الله په اثار السنن کې دابو داو

نسائي، ابن ماجه، او مسند احمد په حواله د وائل بن حجر ﷺ دا حديث په متعددو طريقو نقل کړی دي او په يو کې هم د على الصدر کلمه نشته. (تعليق اثار السنن ص ۷۲ نمبر التعليق ۱۰۶-۱۰۷)

په مسند ابو داود الطيالسی کې، او په صحيح ابن حبان کې هم د دې حديث زياتي طريقې دي چې په يو کې د په سينه باندې د لاسونو د کېښو د لو ذکر نه شته. (موارد الظمان، ص ۱۲۴ رقم الحديث ۴۴۷) مسند ابو داود الطيالسی حديث ۱۰۲۰)

بلکې علامه ابن قيم رحمه الله په اعلام الموقعين کې پدې اعتراف کړی دی چې د مومل بن اسماعيل څخه نيرېل هيچا دا زيادة ندی را نقل کړی. (اعلام الموقعين المثال الرابع والستون ترک السـنة الصـحيحة الـخ) په ذکر کې ليکي (ولعله تصحيف من الناسخ)

همدا رنګه ابن قيم ﷺ فرمايي: فقد روي هذا الحديث عبدالله بن الوليد عن سفيان ولم يذكر ذلـک و راه شعبة و عبدالواحد ولم يذكرا خـلاف سـفيان. [بـديع الفوايـد ج٤/ ص١٣٨]. لهذا دهغو ټولو راويانو په مقابله کې د مؤمل په شان د ضعيف راوی تفرد حجت نه شي کيدلی بلکه د ابن قيم د قول مطابق دا د کاتب غلطي ده.

(۷) دحضـرت وايـل ﷺ څخـه دده څـوی علقمـه ﷺ دا حـديث روايـت کـړی دی. مسـند احمد ۴ ص ۳۱۶ دارقطنی ج ا ص ۱۱۷ نسائی ج ا ص ۱۴۱ همدا رنګې دده څخه دده دوهم څوی عبد الجبار عن علقمه واهل بيت مولی لهم روايت کړی دی مسلم ج ۱ ص ۱۷۳، ابو داود ج ا ص ۱۱۲، بهيقي ج ۲ ص ۲۶ مسند احمد ج ۴ ص ۳۱۸، دارمی ج ا ص ۱۶۴]. لکن په دې کې يو کې هم د على صدره لفظ نشته.

(۸) دا روايت د عاصـم بـن کليـب څخـه شـعبه (مسـند احمد ج ۴ ص ۳۱۹) عبد الواحد (ايضـا ج ۴ ص ۳۱۶ زهير بن معاوية (ايضا ص ۳۱۸) زايده (ايضا) بشر بن المفضل (ابو داود ج ا ص ۱۱۲) عبد الله بن ادريس (ابن ماجه ص ۵۹) سلام بن سليم (طيالسی ص ۱۳۷) خالد بن عبد الله (بهيقي ج ۲ ص ۳۱) روايت کړی دی او په دوي کې په يو کې هم د على صدره لفظ نشته (۱).

---

(۱) قال العلامة النيموي زيادة علي صدره غير محفوظة فان الحديث رواه أحمد في مسنده من طريق عبدالله بن الوليد عن سفيان عن عاصم بن كليب عن أبيه عن وايل بن حجر وأحمد والنسائي من طريق زايدة عن عاصم عن أبيه عن وايل- وأبوداؤد من طريق بشر بن المفضل عن عاصم عن أبيه عن وايل و ابن ماجة من طريـق عبـدالله بـن ادريـس وبشير بن المفضل عن عاصم عن أبيه عن وايل – وأحمد من طريق عبدالواحد وزهير بن معاوية وشـعبة عـن عاصـم عن أبيه عن وايل كلهم بغير هذه الزيادة؛ وقد نص ابن القيم في اعلام الموقعين لم يقـل علي صـدره غـير مؤمـل بـن اسماعيل عن سفيان الثوري فثبت أنه متفرد في ذلک وقد روي هذا الحديث من طريق علقمة وغيره عـن وايـل بـن

په (فتاوی علماحدیث ج ۳ص ۹۳) کې د مسند بزاز روایت هم شته د وائل ﷺ څخه لکن ددې په سند کې محمد بن حجر دی او حافظ ذهبی د ده په باره کې فرمائي چې (له مناکیر) د ده لپاره منکر احادیث دي . (الهیثمی فی الزوائد . ج ۲ص ۱۳۵) (والجوهر النقی ،ج ۲ص ۳)

---

حجر وليس فيه هذه الزيادة فلاشك أنها غير محفوظة لأن الراوي وان كان عن الثقات إذا خالف الثقات او اوثق منه فروايته لاتقبل وتكون شاذة غير محفوظة. [فتح الملهم ج۲/ ص۳۹]. [باب وضع اليدين علي الصدر في الصلوة] ذكر فيه حديث محمد بن حجر الحضرمي حدثني سعيد بن عبدالجبار بن وايل عن أبيه عن أمه عن وايل قلت محمد بن حجر بن عبدالجبار بن وايل –قلت- محمد بن حجر بن عبدالجبار بن وايل عن عمه سعيد له مناكير. قاله الذهبي . وأم عبدالجبار هي أم يحيي لم أعرف حالها ولا اسمها- قال البيهقي : و رواه مؤمل بن اسماعيل عن الثوري عن عاصم بن كليب –قلت – مؤمل هذا قيل انه دفن كتبه فكان يحدث من حفظه فكثر خطأه كذا ذكر صاحب الكمال، وفي الميزان قال البخاري منكر الحديث. وقال ابوحاتم : كثير الخطأ.

وقال ابو ذرعة: في حديثه خطأ كثير. ثم ذكر البيهقي عن علي ﷺ أنه قال في هذه الآية (فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ) ، قال وضع يده اليمني علي وسط اليسري ثم وضعهما علي صدره –قلت- تقدم هذ الأثر في الباب الذي قبل هذا الباب وفي سنده ومتنه اضطراب ثم ذكر من رواية روح ابن المسيب حدثني عمرو بن مالک عن أبي الجوزاء عن ابن عباس فصل لربک وانحر، قال : وضع اليمين علي الشمال في الصلوة عند النحر –قلت- روح هذ قال ابن عدي: يروي عن ثابت ويزيد الرقاشي أحاديث غير محفوظات. وقال ابن حبان يروي الموضوعات لاتحل الرواية عنه. وقال ابن عدي عمرو النكري : منكر الحديث عن الثقات يسرق الحديث ضعفه ابو يعلي الموصلي ذكره ابن الجوزي. [الجوهر النقي لابن التركماني ج۲/ ص۳۰].

وحديث وايل هٰذا رواه أحمد في مسنده من طريق عبدالله بن الوليد عن سفيان عن عاصم بن كليب عن أبيه عن وايل بن حجر، وأحمد والنسائي من طريق زايدة عن عاصم عن أبيه عن وايل و ابن ماجة من طريق عبدالله بن ادريس وبشر بن المفضل عن عاصم عن أبيه عن وايل وأحمد من طريق عبدالواحد و زهير بن معاوية وشعبة عن عاصم عن أبيه عن وايل كلهم بغير زيادة علي صدره غير مؤمل بن اسماعيل... الخ فثبت أنه متفرد في ذلک . [كذا في التعليق الحسن اعلاء السنن ج۲/ ص۱۹۵].

ويؤيده أن البيهقي مع شدة حرصه علي تخريج ما يؤيد مذهبه لم يخرجه إلا من طريق مؤمل بن اسماعيل هذا، ولو كان له طريق آخر أمثل عنه لأخرجه ولابد، أو كان عند غيره لنبه عليه البتة؛ علي أن ابن القيم يدعي أن لم يقل (علي صدره) غير مؤمل بن اسماعيل وتوسيع ابن القيم في مثل هذا لاينكر. [معارف السنن ج۲/ ص۴۳۷].

اوهمدارنګه هلته د (عندصدره) کلمه ده د (علي صدره) لفظ نشته. (تعليق اثار السنن ص ۷۳ باب في رفع اليدين علي الصدر بحواله فتح الباري ج۲ ص۱۸۶] [مسند البزار حديث نمبر ۴۴۸۸]

کله چې مولوی ثناء الله په قران کې تحريف معنوی وکړو، په بخاری او مسلم پورې يې دروغ وتړل، په مسنداحمد کې يې تحريف لفظي وکړو، دصحيح ابن خزيمه سنديې بدل کړو، نودنورو خيانتونو او دروغو دويلو لپاره ورته ددمې ضرورت پيدا شو او ارام يې وکړو.

لکن ددې لپاره چې لوبه ګرمه وساتل شي نود ګوجرانواله مشهور لامذهبه مستري نورحسين ميدان ته راووتلو او په خپله رساله کې چې په نامه د (اثبات رفع اليدين) ده په ص ۱۹ _ ۲۰) کې يې دحضرت وائل ﷺ په نوم يو حديث وليکلو او د (على صدره) کلمه يې په کې راوړه، اوپه لاندې کتابونويې په لاندې صفحو حواله ورکړه.

(۱) صحيح مسلم، ج ۱ص ۱۷۳. (۲) ابن ماجه ص ٦٤. (۳) داری ص ۱۰۷.

(٤) دارقطنی ص ۱۱۸. (۵) ابوداودص ۱۹۳. (٦) بخاری ص ١٤.

(۷) مسنداحمد، ج ۳ص ١٤٨. (۸) جزء سبکي ص ۱۳. (۹) مشکوة شريف.

يعني په نهو کتابونويې حواله ورکړه. په يوه ساه باندې په نهو کتابونو پورې دروغ تړل لويه حوصله غواړي په حديث کې راځي چې دروغ دمنافق علامه ده، لکن تراوسه پورې مونږ داسې منافق نه وو ليدلی چې په يوه ساه د يو حديث په باره کې نهه دروغه ووائي.

## په فقهې پورې دروغ

مشهور لامذهبه مناظر محمد يوسف جې پورې پخپل کتاب (حقيقة الفقه ص ۱۹۳) کې او دده په تقليد کې زمونږ د زمانې لامذهبه امين الله پشاوري په امين الفتاوی کې دهدائي او شرح وقائي پورې په دې مسئله کې ډير دروغ تړلي دي چې يو څو يې دنموني لپاره رانقلوو.

**اول دروغ :** لامذهبه وائي چې په (هدايه ج ۱ص ۳۵۰) کې يې ليکلي دي چې کوم حديث دنامه لاندې دلاسونو دتړلو په باره کې راغلی دی په اتفاق د محدثينو ضعيف دی. (حقيقة الفقه ص ۱۹۳)

**دوهم دروغ :** لامذهبه وائي چې صاحب دهدائي په جلد اول ص ۳۵۰) او صاحب دشرح وقائي په ص (۱۲) کې ليکلي دي چې کوم حديث په سينه باندې دلاسونو دتړلو په باره کې راغلی دی په اتفاق د محدثينو صحيح دی. (امين الفتاوی، ج : ۱ص ۲۲۰) حقيقة الفقه ص ۱۹۳)

**دریم دروغ :** لامذهبه بیالیکي چې دشرح وقائی په ص ۹۳) کې راغلي دي چې دنامه څخه لاندې دلاسونو دتړلو په باره کې هیڅ مرفوع حدیث نشته. ( حقیقة الفقه ص ۱۹۳)

**څلورم دروغ :** دغو درغړنو لامذهبو یو بل حیرانونکي دروغ داسې ویلي دي چې د( هدائي په صفحه ۳۵۱ جلد اول ) کې راغلي دي چې: مرزا مظهرجان جانان مجددي حنفي په سینه باندې دلاسونو دتړلو حدیث ته دقوة له وجهې ترجیح ورکړي ده او خپله به یې هم په سینه باندې لاسونه کېښودل ). (امین الفتاوی ج ا ص ۲۲۲) ( حقیقة الفقه ص ۱۹۳)

دا څلورواړه خالص دروغ دي، که کوم لامذهبه دا خبرې په هدائي او شرح وقائي کې پیدا کړې نو پوره یو کرور دینار انعام به ورکړم، او په څلورم نمبر کې چې ددوی کوم دروغ را نقل کړل شول، داد ټولو څخه زیات حیرانونکي دي، ځکه صاحب دهدائي په سنه ۵۹۳ هـ ) کې وفات شوی دی او مرزا مظهرجان جانان دده دوفات څخه پنځه سوه اتلس ۵۱۸) کاله وروسته په سنه ۱۱۱۱ هـ ) یوولس سوه یوولسمی هجری کې پیدا شوی دی، نو دده خبرې په سوونو کاله مخکني کتاب کې څرنګه راغلی، دا داسې دروغ دي لکه یو لامذهبه چې ووائي چې میاںنذیر حسین دهلوي او عبدالحق بنارسي چې دلامذهبو بنیادي ایښی دی په جنګ بدر کې درسول الله ﷺ سره شریک وو، او یا څوک ووائي چې امین الله، سیاف او جمیل الرحمن چې افغانستان ته یې لامذهبیت راورسولو د شاشجاع سره یوځای دانګریزانو مقابله کوله، یا یې دبلعم بن باعورا څخه بلا واسطه زده کړې کړې دي.

**پنځم دروغ :** لامذهبه بیالیکي چې په عمدة القاري شرح صحیح البخاری کې دا اعتراف دی چې زمونږ حنفي علماء دضعیفو احادیثو څخه استدلال کوي. ( امین الفتاوی ج : ا ص ۲۲۶ ) ( فتاوی علماء حدیث ج ۳ ص ۹۴ ) الحق الصریح . ج ۴ ص ۱۲۴ ) حالانکه دا خبره په عمدة القاری کې نه شته.

**شپږم دروغ :** بیا یې لیکلي دي چې ابن امیر الحاج په شرح دمنیة المصلی کې اعتراف کړی دی چې دلاسونو دتړلو په باره کې دوائل بن حجر ؓ دسینې والا دحدیث څخه بغیر نور ټول احادیث ضعیف دي. (الحق الصریح ج ۴ ص ۱۲۰ / امین الفتاوی ، ج ا ص ۲۲۶ ) فتاوی علماء حدیث ، ج ۳ ص ۹۵)

دا خبره هم په شرحه دمنیة المصلی کې نه شته، بیا یې پر شیخ الشیوخ حضرت شهاب الدین سهروردی الشافعي پورې دروغ تړلي دي چې هغه دخپل کتاب (عوارف المعارف ص ۳۰۹ ) کې د وانحر ترجمه په علی الصدر یعني په سینه باندې دلاسونو په کېښودلو کړې ده.

افسوس چې په دروغو او خيانتونو کې دا د لستوڼي ماران ديهودو او د نصاراوو او د منافقانو څخه ډير مخکې

تېر شوي د (فتاوى علماء حديث ج ٣ ص ٩٢) کې داخبره ومنله اووېې ليکل چې (په سينه باندې

لاس ايښودو دتړلو والا په حديث باندې نه دائيمه وو اربعه وو عمل وو، او نه دصحابه وو او تابعينو په زمانه کې پدې باندې

عمل کړی وو، لکن ددوې دعمل نه کول د نسخ دليل نه شي کيدلې. (فتاوى علماء حديث ج ٣ ص ٩٢)

تعجب دی چې ټول لمونځ دوړوماشومانو پورې هم رارسيدلی دی، لکن د سينې والاحديث نه صحابه وو ته

رسيدلو، نه تابعينو ته، او نه ايمه يې اربعه وو ته. اخر په سـ ١٢٩٠ ـ نه هـ کې لامذهبانو دعوه وکړه چې داحديث

زمونږ ته راورسيدلو، او په دې دولسوسوو کلونو کې دتيرو شوو ټولو مجاهدينو، مشائخو او دعامو مسلمانانو

د لمونځونه دستنو څخه خلاف وو.

## دقران او دحديثو پورې دروغ

(١) په سينه باندې دلاسونو دتړلو لپاره يې ددې ايت څخه استدلال کړی دی چې: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ.

(فتاوى علماء حديث، ج٣ص ٩٥) (فتاوى ثنائيه ،ج ١ص ٥٣٤) الحق الصريح ج٤ ص ١٢١) حالانکه ددې

تفسير په يو باطل روايت باندې دی.

(٢) په سينه باندې دلاسونو دتړلو احاديث په بخاری او مسلم کې ډير زيات راغلي دي. (امين الفتاوى

ص ٢٢٢/فتاوى ثنائيه، ج١ص ٤٤٣/ فتاوى علماء حديث، ج ٣ص ٩١)

دا داسې دروغ دي لکه مرزا قاديانی به چې ويل چې دمسيح موعود راتلل په دې زمانه کې دقران، حديث

او د بزرگانو د کشفونو څخه ثابت دي.

(٣) رسول الله ﷺ به په سينه باندې لاسونه کيښودل په صحيح بخاری کې هم يو حديث همداسې راغلي

دی. (امين الفتاوى، ج١ص ٢٢٤) (ثنائيه ،ج ١ص ٤٥٧)

دا داسې دروغ دي لکه مرزا قاديانی به چې ويل چې په بخاري کې د (هذاخليفة الله المهدي) اوازونه به د

اسمان څخه اوريدل کيږي.

(٤) په مسند احمد کې په (ص ٢٢٦ ـ ج١) کې د کاتب د غلطۍ له وجهې د. (يضع هذه علي هـذه) پرځای

(يضع هذه علي صدره) جوړ شوی دی، او مولوی ثناء الله په کې نور تحريف هم وکړو او (يضع يـده علي صـدره)

يې ترې جوړ کړو. (ثنائيه ،ج ١ص ٤٥٨) علماء حديث ، ج ١ص ٤٤٥)

(۵) په ابن خزیمه کې په سینه باندې دلاسونو دتړلو دیو حدیث سند داسې راغلي دي (اخبرنـا ابوطاهرنـا ابوبكرنا ابو موسي ناموىل نا سفيان عن عاصم بن كليب عن ابيه عن وائـل بـن حجـر ﷺ الحـديث.(ابن خزیمه، ج ۱ص ۲٤۳) .

دا سند ضعیف وو نو دلامذهبو مشهور عالم مولوی عبدالرحمن مبارکپوري شارح ترمذی او دلامذهبو شیخ الاسلام مولوی ثناء الله امرتسری او علی محمد سعید دابن خزیمه داضعیفه سندلری کړو او د مسلم شریف داقوي سندیې وړولګولو. (عن محمد بـن يـحي عـن عفـان عـن همـام عـن محمـد بـن حجاده عن عبدالجبار بن وائل عن علقمة بن وائل ومولي لهم عن ابيه . [مسلم ج ۱ص ۱۷۳) دادروغ وګوره دلامذهبو په مرکزي کتابونو. (فتـاوی ثنائیه ،ج۱ص ۴۲۴ ) فتـاوی علمـاء حدیث، ج ۳ص ۹۱). داسې دروغ دیهودو په کتابونو کې هم نه موندل کیږي .

(٦) مولوی ثناء الله لیکلي دي چې ابن خزیمه دی حدیث ته صحیح ویلی دی . (فتـاوی ثنائیه ،ج ۱ص ۴۵۷) حالانکه دادروغ دي امام ابن خزیمه په دې حدیث سکوت کړی دی وګوره ابـن خزیمـه . (ج۱ص ۲۴۳ رقم الحدیث ۴۷۹) .

(۷) په (فتـاوی علمـاء حدیث ج ۱ص ۹۵ ) کې دي چې حافظ ابن حجر په بلوغ المرام کې دې حدیث ته صحیح ویلی دی، حالانکه داسې دروغ قادیانیانو هم نه وو ویلي، حافظ ابن حجر دې حدیث ته ضعیف ویلي دي . (وګوره فتح الباری ،ج ۹ ص ۲۰٦) .

(۸) : دګوجرانواله ابو خالد نورحسین ګرجاکهی په خپله رساله په نامه د (اثبات رفـع الیـدین) ص ۲۲) کې دحضرت وایل بن حجر ﷺ د حدیث لاندې لیکلي دي چې دا حدیث په لاندې کتابونو کې راغلي دي .

(۱) صحیح مسلم ،ج ۱ص ۱۷۳) (۲) ابن ماجه ، ص ٦۲ ) (۳) داري ص ۱۰۷)
(٤ ) دارقطنی ، ص ۱۰۷) (۵) ابوداود،ج ۱ص ۱۹۳) (٦) جزء بخاری ، ص ١٤)
(۷) مسنداحمد، ج ۳ص ١٤٨) (۸) جزء سبکی ، ص ۱۳) (۹) مشکوة شریف )

حالانکه په دې یو کتاب کې هم په سینه باندې دلاسونو دکیښودلو الفاظ نشته په یوه ساه باندې پوره نهه دروغ دیهودو ،نصاراوو ، سکهانو ، او هندوانو بلکې دهیڅ یو کتاب کې هم نه پیدا کیږي .

# داحنافو يوځو دلايل

## اول دليل دقرآن څخه

ذَكَرَ الْأَثْرَمُ رحمة الله عليه قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ عَاصِمٍ الْجَحْدَرِيِّ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ صُهْبَانَ سَمِعَ عَلِيًّا رضي الله عنه يَقُولُ فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ قَالَ وَضْعُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى تَحْتَ السُّرَّةِ..

(التمهيد، ج ۲۰ ص ۷۸، ص ۱۶۴ جديد) حضرت عقبه بن صهبان رحمه الله فرمائي چې ما د حضرت علي رضي الله عنه څخه اوريدلي دي د (فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ) په تشريح کې، چې نبي لاس په چپ لاس د نوم څخه لاندې کېږدئ.

## توثيق الرواة

۱- امام ابو بکر الاثرم، ثقة حافظ، له تصانيف، (تقريب رقم الترجمة ۱۰۳.

۲- ابو داود الطيالیسی، ثقة، ثبت، دصحاح سته وو راوي دی (تهذيب تقريب التهذيب رقم ۷۳۰۱)

۳- حماد بن سلمة، شيخ الاسلام، الحافظ، صاحب السنة، د مسلم او سنن اربعه وو راوي دی (تذکرة الحفاظ رقم ۱۹۷)

۴- امام عاصم الجحدري: ثقة الجرح والتعديل للرازي، رقم ۱۱۱۷۶)

۵- امام عقبة بن صهبان د صحيح البخاري او صحيح مسلم ثقه راوي دی تقريب التذهيب رقم (۴۴۰).

۶- امام عبدالبر المالکي شيخ الاسام حافظ المغرب تذکرة الحفاظ رقم (۷۰۱۳)

۷- علي رضی الله صحابي دی.

## دوهم او دريم دليل

## د حضرت وايل رضي الله عنه دوه حديثه

(۱) عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضي الله عنه قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَمِينَهُ عَلَى شِمَالِهِ تَحْتَ السُّرَّةِ

(استاذ البخاری مصنف ابن ابی شيبه. ادارة القرآن دار العلوم الاسلاميه کراچی حديث نمبر ۳۹۰۹، باب نمبر ۱۶۷] (معارف السنن، ج ۲ ص ۴۳۷) (اعلاء السنن، ج ۲ ص ۱۴۳) باب وضع اليدين. (اثار السنن، ج ا ص ۷۷) باب وضع اليدين تحت السرة) بذل المجهود ج ۲ ص ۲۳].

وائل بن حجر رضي الله عنه فرمائي چې ما نبي عليه السلام وليدلو چې خپل ښي لاس يې په چپ لاس باندې دنوم څخه لاندې کيښودلو، علامه نيموي رحمه الله فرمائي چې ددې حديث سند بالکل صحيح دی، او د مصنف ابن ابی شيبه په متعددو نسخويې حواله ورکړی ده چې په هغوئ کې دا زياتوالی شته. (تعليق اثار السنن ص ٧٧ باب في وضع اليدين تحت السرة)

د مصنف ابن ابي شيبة محقق او د احاديثو مخرج الشيخ محمد عوامة د شيخ محمد عابد سندهي او د شيخ محمد مرتضى زبيدي د متعلقه صفحو عکسونه په دريم جلد کې چاپ کړي دي، په کوموکې چې د تحت السرة لفظ شته ؤ شيخ محمد عوامة فرمايي چې: تحت السرة زيادة ثابتة في ت، ع كما يرى القاري الكريم صورتهما في مقدمة هذا المجلد ونسخة ت كان انتهاء هذا المجلد منها سنة ٧٤١ھ وعليها خط الامام العيني في مواضع كما ذكرته في المقدمة ص٣٠ فلا يبعد أن الامام القاسم بن قطلوبغا قد وقف عليها ونقل عنها هذا الحديث في كتابه -التعريف والاخبار بتخريج أحاديث الاختيار... الخ. [مصنف ج٣/ ص٣٢٠، كتاب الصلوة] تحقيق وترقيم وتخريج محمد عوامة الطبعة الثانية ١٤٢٨ھ ادارة القرآن او علامه ظفر احمد العثماني فرمايي چې: قلت ولو وجدت هذه الزيادة في نسخة واحدة فقط لكنا نسلم فلعل بصر الكاتب زاغ من محل إلى محل أخراه ولكن لما وجدت في نسخ عديدة فاحتمال زيغ ابصار جميع الكتاب غير مسلم. [اعلاء السنن ج٢/ ص١٩٩، باب وضع اليدين تحت السرة وكيفية الوضع].

## دحديث څخه د انکار لپاره نوی طريقه

غير مقلدينو د حديثو څخه د انکار لپاره يوه نوې طريقه داسې را ايستلې ده، چې کوم حديث چې ددوی دخواهش څخه مخالف وي نو فوراً ليکي چې په فلانکي ملک کې چې ددې کتاب کومه قلمي نسخه ده په هغې کې دا حديث نشته، لدې وجهې دا حديث بالکل من گهړت دی، کله وائي چې دا تحريف دی، دا خلک د تحريف په معنی کې تحريف کوي، کله د کاتب غلطی ته تحريف وائي او کله د نسخو اختلاف ته تحريف وائي.

**موطـا امـام مالـک:** د موطا امام مالک تقريباً شپاړس نسخې دي دا بو مصعب رحمه الله په موطا کې د نورو نسخو څخه سل احاديث زيات دي، په بعضو نسخو کې بعضو احاديثو ته مرسل ويلی شوی وی، او په بعضو نورو کې ورته مسند ويلی شوی دی، په بعضې بابونو کې هم زيات والې او کموالې، او تقديم او تاخير شته. (التعليق الممجد ص١٩ و ص ٢٠).

**صحيح بخاري** :امام بخاري رحمه الله صحيح البخاري په شپاړلسو کالو کې ليکلی ده، لکن دنظر ثاني اودزيات، اوکمي سلسله په کې دده رحمه الله دعمرتراخره پورې روانه وه، له دې وجهې دفربري رحمه الله په نسخه کې چې ده دامام بخاري رحمه الله څخه په اخر کې اوريدلی ده ،دحماابن شاکر رحمه الله دنسخې څخه دوه سوه او د ابراهيم بن معقل رحمه الله دنسخې څخه په کې درې سوه احاديث زيات دي .(تدريب الراوی ص ۳۰) .

دامام بخاري څخه په زرګونو خلکو بخاري اوريدلی ده، لکن مشهورې نسخې په کې څلور دي (۱) دابراهيم بن معقل الحنفي رحمه الله نسخه (۲) دحمادبن شاکر رحمه الله نسخه (۳) دمحمدبن يوسف الفربري رحمه الله نسخه (۴) دابو طلحه منصوربن محمدبن علی البزدوي رحمه الله نسخه ،داپه يادلرئ چې دا ټول مقلدين وو.

**سنن ابی داود:** دابوداود مشهوری نسخې څلوردي چې په بعضو کې څه احاديث زيات او په بعضو کې کم دي، اخري نسخه دلؤلؤي ده .

**مصنف ابن ابی شيبه :** دمصنف ابن شيبه په بعضو نسخو کې پدې حديث کې دتحت السرة لفظ شته، او په بعضو کې نشته ،دادواړه نسخې په دې ملکونو احنافو چهاپ کړي دي ،په کومو نسخو کې چې دالفظ نشته هغه دټولو څخه مخکې دحيدراباددکن څخه احنافو شايع کړی ده ، او په کومو نسخو کې چې دالفظ شته هغه هم دادارة القرءان دارالعلوم اسلاميه کراچی څخه احنافو چاپ کړی ده ، احناف دنورو کتابونو د حديثو په شان ددې کتاب دواړه نسخې مني اوعمل وربانديې کوي ،لکن غيرمقلدين دالله ﷻ ددې قول مصداق دی چې:( اَفَكُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُوْلٌ بِمَا لَا تَهْوٰى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ)کومه نسخه چې ددوی دخواهش سره موافقه وي دهغې په باره کې دمنلو دعوی کوي أوکومه نسخه چې ددوي دخواهش څخه مخالفه وي، نودهغې منلو ته بالکل نوي تيار ،دلته هم دتحت السره لفظ ددوی دخواهش څخه مخالف دی، نو ددې لفظ دشهيدولو لپاره يې قسما قسم منصوبې جوړې کړي دي.

ددې نسخې اطلاع دټولو څخه مخکې دشيخ الاسلام ابن الهمام شاګرد الشيخ قاسم بن قطلوبغاته وشوه ،دده وصال په سنه ۸۷۹ه کې شوی دی ،دده په مخطوطاتو باندې ډيروسيع نظر وو، ډيرلوی محدث وو، په دې صدۍ کې اوددې څخه وروسته تره يوولس سوه پنځوسمې پورې ددنياهيڅ عجمي اوياعربي محدث ددې څخه انکارونکړوچې داحديث په صحيح نسخه کې نشته .

په اخر کې دمحمدمعين ټهټهوی شيعه يو شاګرد حيات سندهي ددې څخه انکاروکړو،دحيات سندهي وصال په سنه ۱۱٦۸ه کې شوی دی، حيات سندهی هم شيعه وو، او د تقيې په بناء به يې ځانته حنفي ويلو ، ده ځان سره محمد فاخراله ابادی شيعه هم ملګری کړی وو ،ددوي رافضي عقايد مولناعبدالرشيد نعماني په

دراساة اللبيب کې تفصيلاً ذکر کړې دي، کله چې ورته مولنا قائم سندهي رحمه الله او مولانا هاشم سندهي رحمه الله په صحيحو نسخو کې دالفظ ورونښودلو، نو دارمې روغ يې بدل کړو او دا بهانه يې جوړه کړه چې حديث شته لکن دالفظ په کې د کاتب غلطي ده، لکن په دليل کې يې د(۸۷۹ھ) څخه تر(۱۱٦۸ھ) پورې د هيڅ محدث قول هم پيش نکړې شو.

دنن زماني دغير مقلدينو سره هم دليل نشته صرف د رافضي محمد فاخر آله بادي او د رافضي حيات سندهي روند تقليد کوي.

(۲) امام طبراني او امام ابونعيم اصبهاني د خپل سند سره د علقمة رحمه الله څخه او هغه د حضرت وايل رضي الله عنه څخه روايت کوي چې: أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَالَ: " {وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] قَالَ: «آمِينَ» وَأَخْفَى بِهَا صَوْتَهُ، ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى، وَجَعَلَهَا عَلَى بَطْنِهِ. [المعجم الكبير حديث نمبر: ١٧٥٧٦] ومعرفة الصحابة لأبي نعيم حديث نمبر: ٧٢٦٤] ما د رسول الله سره مونځ وکړو، چې کله يې ولاالضالين وويلو نو ورپسې يې په پټه آمين وويلو، بيا يې ښي لاس په چپ لاس باندې په ګېډه کېښودلو. ددې حديث يو رواي حجاج بن نصر مختلف فيه راوي دی، يحيى بن معين ورته صدوق ويلي دی. [الکامل لابن عدي ج۲/ ص۲۳۱. ابونعيم ددې حديث د نقل کولو څخه وروسته ليکي چې رواه الثوري والعلاء بن صالح ومحمد بن سلمة بن کهيل نحوه. [معرفة الصحابة حواله بالا]. قال الهيثمي: حجاج بن نصر ضعفه ابوحاتم وغيره، و وثقه ابن معين وابن حبان. [مجمع الزوايد ج۱/ ص۲۴۹] او نوم او د نوم څخه لاندې حصه په ګېډه کې داخله ده او سينه ترينه خارجه ده.

## ۴-۱۲ پورې دلايل:

## د حضرت علي رضي الله عنه (۹) حديثونه

(۱) وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ السُّوَائِيِّ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ: «مِنْ سُنَّةِ الصَّلَاةِ وَضْعُ الْأَيْدِي عَلَى الْأَيْدِي تَحْتَ السُّرَرِ». (مصنف ابن ابي شيبه الشافعي استاذالبخاري، ج ۱ ص۳۹۱) وضع اليمين علي الشمال رقم ۱۳.

د حضرت علی رضي الله عنه څخه روايت دی چې د لمانځه سنت دا دي چې لاسونه د نوم څخه لاندې کېږدئ.

(٢) وَبِه قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «مِنَ السُّنَّةِ وَضْعُ الْكَفِّ عَلَى الْكَفِّ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ» (ابوداودنسخه ابن اعرابي ص ٧٦، حديث نمبر ٦٤٥]. (اعلاء السنن ،ص ١٦٦(معارف السنن ،ج ٢ص ٤٤١/بذل المجهود ج٢ ص٢٣). بې شکه چې يو ورغوي په بل ورغوى باندې دنوم څخه لاندې کېښودل دسنتو څخه دي.

(٣) وَبِه قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا اَبُوسَعِيْد عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ السُّوَائِيِّ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَلِيٍّ ﷺ، قَالَ: " إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ فِي الصَّلَاةِ وَضْعُ الْأَكُفِّ، تَحْتَ السُّرَّةِ "

[مسايل أحمد بن حنبل رواية ابنه عبدالله ج١/ ص٧٢، باب صفة الصلوة] برواية ابى داود صـ ٣١)

(٤)وَبِه قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَسَدِيُّ لُوَيْنٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُالرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ السُّوَائِيِّ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَلِيٍّ ﷺ، قَالَ: " إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ فِي الصَّلَاةِ وَضْعُ الْأَكُفِّ، عَلَى الْأَكُفِّ تَحْتَ السُّرَّةِ. [مسند أحمد حديث نمبر: ٨٣٣ من مسند علي ﷺ].

(٥) وَبِه قَالَ حدثنا اسماعيل بن قتيبه ، قال حدثنا ابوبكر ، ثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ ثَنَا عبد الرَّحْمَن بْنُ إِسْحَاقَ عَنْ زِيَادِ بْنِ زِيَادٍ السُّوَائِيِّ عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ فِي الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ وَضْعَ الأَيْدِي عَلَى الأَيْدِي تَحْتَ السُّرَّةِ. [الأوسط لابن المنذر حديث نمبر : ١٢٤٢].

(٦) وَبِه قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ , حدثنا أَبُو كُرَيْبٍ , حدثنا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ , عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ , عَنْ عَلِيٍّ ﷺ , أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: «إِنَّ مِنْ سُنَّةِ الصَّلَاةِ وَضْعَ الْيَمِينِ عَلَى الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ» [حواله مذكوره حديث نمبر: ١١٣].

(٧)وَبِه قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ الْحَارِثِ الْفَقِيهُ، أنبأ عَلِيُّ بْنُ عُمَرَ الْحَافِظُ، ثنا مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ بْنِ زَكَرِيَّا، ثنا أَبُوكُرَيْبٍ، ثنا يَحْيَى بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي زِيَادُ بْنُ زَيْدٍ السُّوَائِيُّ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: " إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ فِي الصَّلَاةِ وَضْعُ الْكَفِّ عَلَى الْكَفِّ تَحْتَ السُّرَّةِ " [بيهقي حديث نمبر: ٢٤٣، باب وضع اليدين على الصدر في الصلوة السنة].

(٨) وَبِه قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ الْحَارِثِ، أنبأ عَلِيُّ بْنُ عُمَرَ الْحَافِظُ، ثنا مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ، ثنا أَبُو كُرَيْبٍ، ثنا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ

عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: " إِنَّ مِنْ سُنَّةِ الصَّلَاةِ وَضَعُ الْيَمِينِ عَلَى الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ ". [حواله مذکوره حدیث نمبر: ۲٤۳٦]. ددې تږلو معنی داده چې سنت طریقه د نوم څخه لاندې د لاسونو کیښودل دي.

(۹) وَبِه قَالَ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْبَزَّازِ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عرفة، حَدَّثَنَا أَبُوْمُعَاوِيَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ بْنِ زَكَرِيَّا الْمَحَارِبِيْ، حَدَّثَنَا أَبُوكُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ زَيْدِ السُّوَائِيُّ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: " إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ فِي الصَّلَاةِ وَضْعُ الْكَفِّ عَلَى الْكَفِّ تَحْتَ السُّرَّةِ ". دارقطني حدیث نمبر ۱۱۱۲ باب اخذ الشمال بالیمین فی الصلوة.

سنت دایمی عمل ته وائي کـه لامذهبو نیو خلیفـة الراشـد دخولې څخـه دا ثابتـه کـړه چې پـه سینه باندې دلاسونو تړلو ته یې سنت یعنې دائمي عمل ویلی وی نویو لـک روپی انعام بـه ورکـړم ، غیر مقلدینو لیکلي دي چې دصحابی د سنت لفظ ذکر کول مرفوع حدیث وي. (فتاوی علماء حدیث ، ج ۵ص ۱۴۷)

ددې روایاتو مدار په عبد الرحمن بن اسحق دی او هغه ضعیف دی

۱- لکن ددې تائید دصحابه وو او دتابعینو ډیرو اثارو څخه کیږي.

لکه ذابو مجلز ﷺ، دانس ﷺ، دابو هریرة وغیره وو دا ثارو څخه الجوهر النقی علی السنن الکبري للبهیقی، ج ۲ص ۳۱ ص ۳۲ مصنف ابن ابی شیبه ،ج اص ۳۹۰ ص ۳۹۱) نو ددې څخه استدلال صحیح دی.

۲- دمحدیثینو یو اصل دادی چې دکوم حدیث څخه چې مجتهد استدلال وکړي هغه حدیث په صحیحو احادیثو کې شمار کولی شي ، علامه ابن الهمام فرمایي چې: المجتهد اذا استدل بحدیث کان تصحیحا له (التحریر لابن الهمام بحواله رد المحتار ج ۷ صـ ۸۳) او ددې حدیث څخه مجتهدینو استدلال کړی، علامه ابن حجر رحمهالله فرمايي چې: وقد اصبح بهذا الحدیث احمد وابن المنذر وفی جزمهمـا بـذلک دلیـل علی صـحته عندهما (التلخیص الحبیر تحت رقم الحدیث ۸۰۷)

محدث العرصر علامه ظفر احمد العثمانی رحمه الله لیکي چې: فی جـزم کل مجتهد بحـدیث دلیـل علی صحته عنده، (قواعد فی علوم الحدیث صـ ۵۸)

ددې اصولو مطابق ترینه دا لاندې محدثین استدلال کوي چې دا ددوي په نیز د صحت دلیل دی.

(۱) امام اسحاق بن راهویه، (الاوسط لابن المنذر ج ۳صـ ۹۴)

(۲) اما احمد بن حنبل (مسایل احمد بروایة ابی داود صـ ۳۱)

(۳) امام طحاوي (احکام القرآن للطحاوي ج اصـ ۱۸۷)

(۴) ابو بکر الجصاص الرازی (احکام القران ج ۳صـ ۴۷۶)

(۵)ابو الحسين القدوری (التجريد للقدوری ج ۱ص۴۷۹)

(۶)امام ابو بكر السرخسی (المبسوط للسرخسی ج ۱ص۲۴)

(۷)امام ابو بكر الكاسانی (بدايع الصنائع ج ۱ص۴۶۹)

(۸) علامه ضياء الدين المقدسی (الاحاديث المختاره ج ۳ص۳۸۷)

(۹) امام ابو محمد المتجی (اللباب فی الجمع بين السنة والكتاب ج ۱ص۲۴۷)

(۱۰) علامه ابن القيم (بدائع الفوائد ج ۳ص۷۳)

۳- زبير علی زی غير مقلد ليکي چې د روايت تصحيح او تحسين د ا دهر راوي تصحيح او تحسين وي مقدمة جزء رفع اليدن ص۱۴، او ډېرو محدثينو ددې حديث تصحيح او يا تحسين کړی دی مثلاً :

(۱)امام حسن، رقم ۳۵۶۳.

(۲) امام حاکم صحيح الاسناد رقم ۱۹۷۳، کتاب الدعاء والتکبير

(۳)امام ذهبي : صحيح الاسناد ايضا.

(۴)امام ضياء الدين المقدسي : الاحاديث المختاره ج ۳ص۳۸۷) زبير علی زی وايي چې ضياء الدين المقدسي رحمه الله چې کوم حديث تخريج وکړي هغه ددې حديث د صحت دليل وي (تعداد رکعات قيام رمضان ص۲۳)

(۵) غير مقلد الباني ليکي چې حسن (ترمذي رقم ۳۵۶۳ باحکام الالباني.

۴- غير مقلدين په عبد الرحمن بن اسحاق باندې جرحې رانقلوي لکن کومو محدثينو چې دده توثيق کړی دی هغه د تقيې په صندوق کې بند وي، ډېرو محدثينو دده توثيق کړی دی مثلاً :

(۱)امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چې : (صالح الحديث (مسائل احمد برواية ابی داود ص۳۱) او صالح الحديث د تعديل الفاظ دي (قواعد علوم الحديث ص۲۴۹)

(۲)امام عجلي ورته ثقه ويلي دي (معرفة الثقات ج ۲ص۷۲)

(۳) امام ترمذي دې حديث ته حسن وايي (ترمذي رقم ۳۵۶۳.

(۴) امام مقدسي دده حديث ته صحيح وايي (الاحاديث المختاره ج ۳ص۳۸۷)

(۵) امام بزار ورته صالح الحديث وايي (مسند بزار تحت حديث رقم ۴۹۶)

(۶) علامه عثماني ورته حسن وايي (قواعد فی علوم الحديث ص۷۵)

لامذهبه امين الله پشاوری چې ددې په مقابل کې کوم دوه اثاره د حضرت علی ﷺ پيش کړی دي، د بيهقی په سند کې روح بن المسيب دی او دهغه په باره کې ابن حبان فرمائي چې يروی الموضوعات لاتحل الرواية عنه

(الجوهر النقی ص ۳۰۲) او د قرطبی په حواله یې چې کوم نقل کړی دی ابن کثیر فرمائي چې (نسبة هذا التفسیر الی علی لاتصح) وهکذا فی الفتح الربانی، ج ۳ ص ۱۷۴) خپله همدی لامذهبه دهمدی صفحی په اول کې په دې تفسیر رد کړی دی (الحق الصریح، ج ۴ ص ۱۲۲ سطر اول).

عجیب کار دی یو ځلې ورته ضعیف او موضوعي وائي او لږ وروسته ترینه بیرته استدلال کوي، او داځکه چې (دروغگو را حافظه نباشد)

## ۱۳- دلیل

وَعَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ: ثَلَاثٌ مِنْ أَخْلَاقِ النُّبُوَّةِ: تَعْجِيلُ الْإِفْطَارِ وَتَأْخِيرُ السَّحُورِ وَوَضْعُ الْيَدِ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ. [بذل المجهود ج۲/ ص۲٤، باب وضع الیمنی علی الیسری فی الصلوة]. (الجوهر النقی علی السنن الکبری للبیهقی. ج ۲، ص ۳۱ _ ۳۲) ابن حزم، ج ٤ ص ۱۱۳) دا حدیث په مسند زید باب تعجیل الافطار کې د سند سره ذکر شوی دی.

حضرت انس ﷺ فرمائي چې درې شیان د ټولو پیغمبرانو اخلاق دي، په روژه ماتي کې مخکې والې کول په پیشمني کې وروسته والې کول، او ښي لاس باندې په چپ لاس کیښودل د نوم څخه لاندې.

فانقیل: چې د دې حدیث یو راوي سعید بن زربي مجروح دی؟

قلنا: په سعید بن زربی کلام شوی دی، لکن د دې روایت مؤید شته لهذا دا روایت صحیح دی، شاهد دادی: (وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ: ثَلَاثٌ مِنْ أَخْلَاقِ الأَنْبِيَاءِ عليهم السلام: تَعْجِيلُ الْإِفْطَارِ وَتَأْخِيرُ السَّحُورِ وَوَضْعُ الْكَفِّ تَحْتَ السُّرَّةِ) (مسند زید ۲۰٤، باب الافطار) د دې حدیث معنوي تائید د حضرت علي د مخکینو روایاتو او د وائل بن حجر رضی الله عنه د روایت څخه هم کیږي.

دوهم جواب: په جامع الترمذي کې دیو حدیث په سند کې سعید بن زربی دی او ناصر الدین الباني غیر مقلد ورته صحیح ویلي دي (جامع الترمذي، باحکام الألباني رقم ۳۵۴۴، باب خلق الله مأة رحمة شاملة

## ۱۴-۱٦ دلایل:

## د ابوهريرة رضي الله عنه درې حديثونه

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: أَخْذُ الْأَكُفِّ عَلَى الْأَكُفِّ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ (الجوهر النقی، باب وضع اليدين على الصدر) [والبيهقى حديث نمبر: ۲۳۳٦، باب وضع اليدين على الصدر فى الصلوة من السنة].

حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمائي چې يو ورغوی په بل ورغوي کېښودل په لمانځه کې دنوم څخه لاندې دي.

(۲) وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ إِسْحَاقَ الْكُوفِيِّ، عَنْ سَيَّارٍ أَبِي الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ رحمهم الله، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: «أَخْذُ الْأَكُفِّ عَلَى الْأَكُفِّ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ». [ابوداؤد حديث نمبر: ۷۵۸]. ترجمه يې د مخکې پشان ده.

(۳) وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ هَارُونَ، قَالَ: ثنا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، قَالَ: ثنا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَيَّارٍ أَبِي الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: «مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى تَحْتَ السُّرَّةِ فِي الصَّلَاةِ» وَبِهِ قَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَإِسْحَاقُ رحمهما الله، وَقَالَ إِسْحَاقُ رحمه الله: تَحْتَ السُّرَّةِ أَقْوٰى فِي الْحَدِيثِ، وَأَقْرَبُ إِلَى التَّوَاضُعِ... الخ [الأوسط لابن المنذر تحت حديث رقم ۱۲۴۳].

ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې: سنت طريقه داده چې لاسونه يو دبل د پاسه د نوم څخه لاندې کيدی، او همدا دسفيان ثوري او ادسحاق مذهب هم دی، او اسحاق فرمايي چې: د نوم څخه د لاندې کېښودلو احاديث قوي دي او دا طريقه عاجزی ته ډېره نژدې ده.

## ۱۷ دليل

وبه قَالَ: حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ أَبِي يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ، عَنْ حَمَّادٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمهم الله، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَمِدُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرٰى فِي الصَّلَاةِ، يَتَوَاضَعُ بِذٰلِكَ لِلّٰهِ تَعَالٰى». [كتاب الآثار لأبى يوسف رحمه الله رواية نمبر: ۳۲۲].

يعنې رسول الله ﷺ به د تواضع لپاره ښی لاس په چپ لاس باندې کېښودلو. او پدې کې شک نشته چې تواضع په تحت السرة کې ده لکه څرنګه چې د ابراهيم نخعي رحمه الله همدا مذهب وو لکه راتلونکی روايت وګوره.

## ۱۸ دليل

وبِه قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ رَبِيعٍ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رَحِمَهُمُ اللهُ قَالَ: «يَضَعُ يَمِينَهُ عَلَى شِمَالِهِ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ» [ابن ابی شیبه: باب وضع اليمين على الشمال].

ابراهيم نخعي رضي الله عنه فرمائي چې ږدئ، به ښی لاس په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې، دد ې راوي ربيع صدوق دی. [الذهبی،ج۱ص۳۳۷رقم۲۰۹۹] والجرح والتعديل لابن أبي حاتم ج۳/ص۴۶۳] وسير اعلام النبلاء ج۳/ص۳۲۸].

## ۱۹ دليل

وَبِه قَالَ: أَخْبَرَنَا الرَّبِيعُ بْنُ صُبَيْحٍ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رَحِمَهُمُ اللهُ أَنَّهُ كَانَ يَضَعُ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى تَحْتَ السُّرَّةِ، قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: وَبِهِ نَأْخُذُ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. [كتاب الآثار ص ۲۴ حديث نمبر:۱۲۱].

يعنې امام نخعي رحمه الله به ښی لاس په چپ لاس د نوم څخه لاندې کېښودلو او امام محمد فرمايي چې په همدې مونږ عمل کوو او همدا قول د امام صاحب دی.

## ۲۰ دليل

حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ قَالَ: أَخْبَرَنَا حَجَّاجُ بْنُ حَسَّانَ قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مِجْلَزٍ رَحِمَهُمُ اللهُ، أَوْ سَأَلْتُهُ قَالَ: قُلْتُ: كَيْفَ يَصْنَعُ؟ قَالَ: «يَضَعُ بَاطِنَ كَفِّ يَمِينِهِ عَلَى ظَاهِرِ كَفِّ شِمَالِهِ وَيَجْعَلُهَا أَسْفَلَ مِنَ السُّرَّةِ». (ابن ابی شیبه، ج۱ص۳۹۰/۳۹۱ وضع اليمين على الشمال).

يعنې ږدې به باطن د ښي لاس په ظاهر د چپ لاس، او دواړه لاسونه به د نوم څخه لاندې کړي، په ټولو صحابه وو او تابعينو کې ديو څخه هم نده ثابته چې په سينه باندې يې لاسونه ايښي وي، او تر قيامته به يې څوک ثابت نکړي بلکې په فتاوی علماء حديث، ج ۳ص ۹۳/ کې په دې خبره اعتراف شوی دی چې صحابه وو رضي الله عنهم او تابعينو داسې عمل ندی کړی.

## ۲۱- دليل

اسماعيل بن محمد الصفار احمد بن منصور الرمادي څخه روايت کوي چې: قال الثوری عن سعيد عن فريد عن ابراهيم قال: مادون السرة يعنى تحتها. [الأمالى لآثار الصحابة-حديث نمبر:۵۳] يعنې ابراهيم نخعي د نوم څخه لاندې د لاسونو د تړلو قايل دي.

**۲۲ دلیل:** ابن قدامه حنبلي فرمائي چې (وروی ذلك عن علي وابي هريرة وابي مجلز والنخعي، والثوري، واسحاق لماروي عن علي انه قال من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة، رواه احمد، وابوداود وهذا ينصرف الى سنة النبي ﷺ. المغني ج۱ص ۴۷۲ نسائي ج۱ص ۱۴۳).

**۲۳- دلیل:** حضرت قبیصة بن هلب رضي الله عنه د خپل پلار هلب رضي الله عنه څخه روایت کوي چې: كان النبي ﷺ يؤمنا فيأخذ شماله بيمينه. [ابن ماجه حديث نمبر ۸۰۱ كتاب اقامة الصلوة... الخ باب وضع اليمين على الشمال] [ومسند أحمد حديث نمبر ۲۰۹۷۰ وحديث نمبر ۲۰۹۷۱ وحديث نمبر ۲۰۹۷۲] [والمعجم الكبير للطبراني حديث نمبر ۱۷۸۷۹] وشرح السنة للبغوي باب ما يستفتح به الصلوة من الدعاء].

رسول الله ﷺ به چې مونږ ته امامت راکولو نو په خپل ښي لاس باندې به یې چپ لاس نیولو، دا حدیث حسن دی. شرح السنة.

**فايده:** پدې حدیث کې په یو لاس باندې د بل لاس د نیولو ذکر دی، او د نیولو لپاره په عام طور ګوتې، ورغوي، او مړوند استعمالیږي، نیول په ګوتو او ورغوي باندې کیږي، او د مینځ او د محبت په وخت کې په عام طور باندې مړوند نیول کیږي او په نورو احادیثو کې صراحةً د مړوند دنیولو ذکر دی. پوره طریقه د استدلال د ۳۶ حدیث څخه وروسته را روانه ده.

**۲۴- دلیل:** حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه فرمایي چې: كان الناس يؤمرون أن يضع الرجل اليد اليمنى على ذراعه اليسرى في الصلوة. [بخاري باب وضع اليمنى على اليسرى... الخ حديث نمبر ۶۹۸] [وموطأ الإمام المالك رحمه الله حديث نمبر ۳۴۰ باب وضع اليدين إحداهما على الأخرى]. خلکو یعنې صحابه وو ته به امر کیدلو چې په مانځه کې ښي لاس په خپل چپ لیچې باندې کیږدي.

**فايده:** پدې حدیث کې د ښي لاس په چپ لیچې باندې د کېښودلو ذکر دی، لکن د لیچې د کومې خاصې حصې ذکر پکې نشته.

البته د نورو احادیثو په رڼا کې به ترینه د مړوند سره نږدې لیچې مرادیږي، چې ورغوي په مړوند او درې ګوتې د مړوند سره نږدې په لیچې راشي لکه څرنګه چې د بخاري شریف مشهور شارح علامه ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: قَوْلُهُ عَلَى ذِرَاعِهِ أَبْهَمَ مَوْضِعَهُ مِنَ الذِّرَاعِ وَفِي حَدِيثِ وَائِلٍ رضي الله عنه عِنْدَ أَبِي دَاوُدَ وَالنَّسَائِيِّ رحمهما الله ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى والرسغ والساعد وَصَحَّحَهُ ابن خُزَيْمَةَ رحمه الله وَغَيْرُهُ وَأَصْلُهُ فِي صَحِيحِ مُسْلِمٍ بِدُونِ الزِّيَادَةِ وَالرُّسْغُ بِضَمِّ الرَّاءِ وَسُكُونِ السِّينِ الْمُهْمَلَةِ بَعْدَهَا مُعْجَمَةٌ هُوَ الْمَفْصِلُ بَيْنَ السَّاعِدِ وَالْكَفِّ

وَسَيَأْتِي أَثَرُ عَلِيٍّ نَحْوُهُ فِي أَوَاخِرِ الصَّلَاةِ. [فتح الباری باب وضع الیمنی علی الیسری فی الصلوة] پوره طریقه د استدلال د (۳٦) نمبر حدیث څخه وروسته را روانه ده.

**۲۵- دلیل:** وَبِهِ قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ رَحِمَهُمَا اللهُ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رضي الله عنه قَالَ: «كَانَ النَّاسُ يُؤْمَرُونَ أَنْ يَضَعُوا الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى فِي الصَّلَاةِ». [مسند أحمد حدیث نمبر ۲۱۷۸۲].

خلکو یعنې صحابه وو ﷺ ته به امر کېدلو چې په مانځه کې ښي لاس په چپ لاس باندې کېږدي.

فایده: ددې حدیث د سند راویان د صحیح بخاري راویان دي.

۲- محدثینو د نورو احادیثو په رڼا کې د چپ لاس څخه د چپ لاس مړوند مراد کړی دی ځکه چې دا هیئت عاجزی ته ډېر نژدې دی. لکه څرنګه چې امام مناوي رحمه الله فرمایي چې: کان یضع الیمنی علی الیسری فی الصلوة. أي یضع یده الیمنی علی ظهر کفه الیسری والرسغ من الساعد کما فی حدیث واثلة عن أبی داؤد والنسائی وصححه ابن خزیمة وذلك لأنه أقرب إلی الخشوع وأبعد عن العبث واستحب الشافعی أن یکون الوضع المذکور فوق السرة والحنفیة تحتها. [فیض القدیر للمناوي تحت حدیث رقم ۷۰۸۳. ددې حدیث څخه هم پوره طریقه د استدلال د ۳٦ نمبر دلیل څخه وروسته را روانه ده.

**۲٦- دلیل:** وَبِهِ قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُحَمَّدِ بْنُ صَاعِدٍ، ثنا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ، ثنا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبَانَ الْوَرَّاقُ، حَدَّثَنِي مِنْدَلٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ رَحِمَهُمَا اللهُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَانَ يَأْخُذُ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ فِي الصَّلَاةِ». [دار قطني باب في أخذ الشمال باليمين في الصلوة حدیث نمبر ۱۱۰۴]. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمایي چې بې شکه چې نبي ﷺ په مانځه کې په خپل ښي لاس باندې چپ لاس نیولو.

**فایده: ۱)** پدې حدیث کې هم په ښي لاس باندې د چپ لاس د نیولو ذکر دی، او نیول عام طور په ورغوي او په ګوتو باندې وي، او د مینې او د احترام په وخت کې په عام طور باندې مړوند نیول کېږي. پوره طریقه د استدلال د ۳٦ دلیل څخه وروسته را روانه ده.

**فایده: ۲)** ددې حدیث اول راوي امام، حافظ، مجود، محدث العراق، او عالم بالعلل والرجال دي. [سیر اعلام النبلاء ج۱۴/ ۱۵۱]. تحت رقم الترجمة ۳۸۳].

دوهم راوي امام، محدث، فقیه او مسند العراق دی. [سیر اعلام النبلاء ج ۱۱/ص ۵۲۵] تحت رقم الترجمة ۱۴۸]. دریم راوي ثقه او حافظ دی. [سیر اعلام النبلاء ج۱۰/ ص ۳۴۷]. تحت رقم الترجمة ۸۵].

او کلوم راوي مختلف فیه دی لکن جایز الحدیث دی. [تهذیب الکمال تحت رقم الترجمة ۶۱۷۶]. پنځم راوي امام، عَلَم، مفتي وقاضي الکوفة، الفقیه، المقرء، أفقه الدنیا، صدوق، صاحب السنة او کثیر المناقب وو. [تذکرة الحفاظ ج۱/ ص۱۷۱]. شپږم راوي امام، مجتهد او قاضي الکوفة وو. [سیر اعلام النبلاء ج۵/ ص۱۹۶].

**(۲۷) دلیل:** د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه څخه روایت دي چې: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّا مَعْشَرَ الْأَنْبِيَاءِ أُمِرْنَا أَن نؤخر سحورنا ونعجل فطورنا وأن نمسك أَيْمَانَنَا عَلَى شَمَائِلِنَا فِي صَلَاتِنَا". [صحیح ابن حبان باب ذکر الاخبار عما یستحب للمؤمن وضع الیمین علی الیسار فی صلوته حدیث نمبر ۱۷۷۰] ومسند عبد بن حمید حدیث نمبر ۶۲۶] وسنن دارقطنی باب فی أخذ الشمال حدیث نمبر ۱۱۰۷].

بې شکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: مونږ د پیغمبرانو ډلې ته حکم شوي دي چې پیشمني رروسته کړو او روژه ماتی مخکې کړو، او په ښي لاس باندې چپ لاس ونیسو.

**فایده: ۱)** مخکې ذکر شول چې د مینې نیول د ښي لاس په ورغوي او ګوتو کیږي او د احترام لپاره نیول کیږي. مرونډ او نوره پوره طریقه د استدلال د ۳۶ دلیل څخه وروسته را روانه ده.

**فایده: ۲)** ددې سند په شرط د مسلم باندې صحیح دي. [فتح الباري کتاب الصلوة باب وضع الیمنی علی الیسری في الصلوة].

**(۲۸) دلیل:** په معجم طبراني او په مسند أبي داؤد الطیالسي کې د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه روایت په داسې الفاظو دي چې: سَمِعْتُ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّا مَعْشَرَ الْأَنْبِيَاءِ أُمِرْنَا بِتَعْجِيلِ فِطْرِنَا، وَتَأْخِيرِ سُحُورِنَا، وَوَضْعِ أَيْمَانِنَا عَلَى شَمَائِلِنَا فِي الصَّلَاةِ». [المعجم الکبیر للطبراني حدیث نمبر ۱۱۳۲۳]. والمعجم الأوسط للطبراني حدیث نمبر ۱۸۸۴، ومسند أبي داؤد الطیالسي حدیث نمبر ۲۷۶۷].

یعنې ما د نبي صلی الله علیه وسلم څخه واوریدل چې فرمایل یې چې: مونږ د پیغمبرانو ټولي ته حکم شوی دی چې په روژه ماتي کې تلوار او په پیشمني کې وروسته والي وکړو، او په مانځه کې خپل ښي لاسونه په چپو لاسونو باندې کیږدو.

فایده: ددې حدیث سند صحیح دي، قال الهیثمي رواه الطبراني في الکبیر و رجاله رجال الصحیح. [مجمع الزواید ج۲/ ص۱۰۵]. طریقه د استدلال د ۳۶ دلیل څخه وروسته را روانه ده.

**(۲۹) دليل:** د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې : قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أُمِرْنَا مَعَاشِرَ الْأَنْبِيَآءِ أَنْ نُعَجِّلَ إِفْطَارَنَا وَنُؤَخِّرَ سَحُورَنَا وَنَضْرِبَ بِأَيْمَانِنَا عَلٰى شَمَآئِلِنَا فِي الصَّلَاةِ. [سنن الدارقطني حديث نمبر ۱۱۰۶].

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې : مونږ د پيغمبرانو ټولي ته حکم شوی دی په تعجيل د افطار، او په تأخير د سحور او په کيښودلو د ښي لاس په چپ لاس باندې په مانځه کې.

**فايده: ۱)** ددې حديث سند صحيح دی او داسې دی: حدثني يحيي بن محمد بن صاعد حدثنا زياد بن أيوب حدثنا النضر بن اسماعيل عن أبي ليلي عن عطاء عن أبي هريرة ﷺ. اول راوي يې ابن صاعد ثقه دي. [سير اعلام النبلاء رقم الترجمة ۲۸۳]، نضر بن اسماعيل هم ثقه دي. [تهذيب الكمال رقم الترجمة ۶۲۲۶]، عبد الرحمن بن أبي ليلي هم ثقه دي. [تذکرة الحفاظ ج۱/ ص۱۷۱].

**فايده ۲):** طريقه د استدلال د ۳۶ دليل څخه وروسته را روانه ده.

**(۳۰) دليل:** حضرت أبو الدرداء ﷺ فرمايي چې: من أخلاق النبيين وضع اليمين علي الشمال في الصلوة. [مصنف بن أبي شيبة ، وضع اليمين علي الشمال]. يعنې د پيغمبرانو اخلاق په مانځه کې د ښي لاس کيښودل دي په چپ لاس باندې.

**فايده ۱) :** ددې حديث سند د بخاري شريف په شرط برابر دی او داسې دی چې: حدثنا وكيع عن اسماعيل بن أبي خالد عن الأعمش عن مجاهد عن مورق العجلي عن أبي الدرداء قال... الخ.

فايده ۲) : طريقه د استدلال د ۳۶ دليل څخه وروسته را روانه ده.

**(۳۱) دليل:** په يو روايت کې د حضرت ابو الدرداء څخه داسې الفاظ روايت شوی دی چې: من أخلاق النبيين التكبير في الافطار، والابلاغ في السحور، ووضع اليمين على الشمال في الصلوة. [مصنف ابن أبي شيبة، كتاب الصيام، في تعجيل الافطار وما ذكر فيه].

د پيغمبرانو په اخلاقو کې تلوار دي په روژه ماتي کې او وروسته والی دی په پيشمني کې، او په مانځه کې د ښي لاس کيښودل په چپ باندې.

**(۳۲) دليل :** د ابن جريج څخه روايت دی چې: أَخْبَرَنِي غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ مِنْ أَخْلَاقِ الْأَنْبِيَآءِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ «تَعْجِيلُ الْفِطْرِ، وَتَأْخِيرُ السُّحُورِ، وَوَضْعُ الْيَدِ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى فِي الصَّلَاةِ». [مصنف عبدالرزاق حديث نمبر ۷۶۱۵]

**ترجمه:** د مخکې حديث پشان ده او طريقه د استدلال د ۳۶ دليل څخه وروسته را روانه ده.

**(٣٣) دلیل:** د حضرت عایشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې: ثَلَاثَةٌ مِنَ النُّبُوَّةِ: تَعْجِيلُ الْإِفْطَارِ، وَتَأْخِيرُ السُّحُورِ، وَوَضْعُ الْيَدِ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى فِي الصَّلَاةِ [سنن دارقطنی باب أخذ الشمال حدیث نمبر ١١٠٥] [والسنن الکبری للبیهقی باب وضع الید الیمنی علی الیسری فی الصلوة حدیث نمبر ٢٤٦٣].

ترجمه یې تیره شوې ده او طریقه د استدلال یې د ٣٦ دلیل څخه وروسته را روانه ده.

**(٣٤) دلیل:** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدَانُ بْنُ أَحْمَدَ، ثنا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ، ثنا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى فِي الصَّلَاةِ قَرِيبًا مِنَ الرُّسْغِ». [المعجم الکبیر حدیث نمبر ١٧٥٢١].

حضرت وایل رضی الله عنه فرمایي چې: ما رسول الله ﷺ ولیدلو چې په مانځه کې یې خپل ښي لاس په چپ لاس باندې مروند ته نږدې کېښودلو. فایده: ددې حدیث سند حسن دی او طریقه د استدلال یې را روانه ده.

**(٣٥) دلیل:** عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضی الله عنه قَالَ: قُلْتُ: لَأَنْظُرَنَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُصَلِّي قَالَ: فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ " قَامَ وَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى حَاذَتَا بِأُذُنَيْهِ، ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى، وَالرُّسْغِ مِنَ السَّاعِدِ " [السنن الکبري للبیهقي، کتاب الصلوة، باب وضع الید الیمني علي الیسري في الصلوة].

وایل بن حجر رضی الله عنه فرمایي چې: ما قصد وکړو چې زه به رسول الله ﷺ ته ګورم چې څرنګه مونځ کوي؟ نو ما د رسول الله ﷺ طرفته وکتل رسول الله ﷺ ودریدلو الله اکبر یې وویلو، او لاسونه یې د غوږونو په برابرۍ اوچت کړل، بیا یې خپل ښي لاس د خپل چپ لاس په ورغوي باندې او د مټ په مروند باندې کېښودلو.

**(٣٦) دلیل:** أَنَّ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ الْحَضْرَمِيَّ رضی الله عنه أَخْبَرَهُ، قَالَ: قُلْتُ: لَأَنْظُرَنَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُصَلِّي، فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ حِينَ قَامَ، فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى حَاذَتَا أُذُنَيْهِ، ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى، وَالرُّسْغِ، وَالسَّاعِدِ [صحیح ابن حبان حدیث نمبر ١٨٦٠].

وایل بن حجر رضی الله عنه فرمایي چې: ما قصد وکړ چې زه به ګورم چې رسول الله ﷺ څرنګه مونځ کوي؟ نو ما چې د رسول الله ﷺ طرفته وکتل کله چې ودریدلو نو الله اکبر یې وویلو او لاسونه یې تر غوږونو پورې اوچت کړل بیا یې خپل ښي لاس د چپ لاس د ورغوي په شا او په مروند او په مټ باندې کېښودلو.

همدا سې الفاظ په صحیح ابن خزیمه کې هم دي [باب وضع بطن الکف الیمني علي الکف الیسري والرسغ والساعد جمیعاً حدیث نمبر ٤٦٤].

## په دې احاديثو باندې د عمل لپاره د احنافو بهترين تطبيق

د دوويشتم دليل څخه تر ۳٦ دليل پورې په بعضې احاديثو کې د وضع يعنې د ښي لاس په چپ لاس باندې د کېښودلو ذکر وو، او په بعضو احاديثو کې د اخذ يعنې په ښي لاس باندې د چپ لاس د نيولو ذکر وو. احنافو فقهاوو رحمهم الله چې په دې دواړو قسمه احاديثو باندې د عمل لپاره کوم صورت ته راجح ويلی دی، هغه داسې دې چې د ښي لاس ورغوی او د منځ درې ګوتې دې د چپ لاس د ورغوي په شاه، او مړوند، او په يو څه حصه د مټ باندې کېښودلی شي نو د وضع په ټولو احاديثو به عمل راشي.

او چې غټه او کچه ګوته د مړوند څخه راتاو کړل شي نو د أخذ يعنې د نيولو په ټولو احاديثو به عمل راشي. د غير مقلدينو عمل د دې ټولو احاديثو څخه مخالف دی.

- وَأَمَّا صِفَةُ الْوَضْعِ فَفِي الْحَدِيثِ الْمَرْفُوعِ لَفْظُ الْأَخْذِ، وَفِي حَدِيثِ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ- لَفْظُ الْوَضْعِ وَاسْتَحْسَنَ كَثِيرٌ مِنْ مَشَايِخِنَا الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا بِأَنْ يَضَعَ بَاطِنَ كَفِّهِ الْيُمْنَى عَلَى ظَاهِرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى وَيُحَلِّقَ بِالْخِنْصَرِ وَالْإِبْهَامِ عَلَى الرُّسْغِ لِيَكُونَ عَامِلًا بِالْحَدِيثَيْنِ، [المبسوط للسرخسي: كتاب الصلوة، كيفية الدخول في الصلوة].

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: يَضَعُهَا كَذَلِكَ وَيَكُونُ الرُّسْغُ وَسَطَ الْكَفِّ، وَقِيلَ يَأْخُذُ الرُّسْغَ بِالْإِبْهَامِ وَالْخِنْصَرِ: يَعْنِي وَيَضَعُ الْبَاقِيَ فَيَكُونُ جَمْعًا بَيْنَ الْأَخْذِ وَالْوَضْعِ وَهُوَ الْمُخْتَارُ. [فتح القدير كتاب الصلوة باب صفة الصلوة]. وهكذا في رد المحتار كتاب الصلوة، مطلب بيان المتواتر والشاذ.

**(۳۷) دليل :** امام طحاوي رحمه الله فرمايي چې: وَقَالَ بَعْضُهُمْ: تُوضَعَانِ تَحْتَ السُّرَّةِ وَمِمَّنْ قَالَ بِذَلِكَ مِنْهُمْ: أَبُو حَنِيفَةَ، وَأَبُو يُوسُفَ، وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمُ اللَّهُ، وَرَوَوْا ذَلِكَ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا.

حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عُثْمَانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا نُعَيْمٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَلِيٍّ كَرَّمَ اللَّهُ وَجْهَهُ، قَالَ: "وَضْعُ الْيَمِينِ عَلَى الشِّمَالِ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ مِنَ السُّنَّةِ"

حَدَّثَنَا فَهْدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَيَّارٍ أَبِي الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَدَهُ الْيُمْنَى تَحْتَ السُّرَّةِ فِي الصَّلَاةِ" وَسَقَطَ مِنَ الْحَدِيثِ الْيَدُ الْيُسْرَى وَلَمَّا كَانَ فِي مَوْضِعِ وَضْعِ الْيَدَيْنِ مِنَ الِاخْتِلَافِ مَا ذَكَرْنَا، وَوَجَدْنَا التَّكْبِيرَ مِنَ النَّاسِ بَعْضِهِمْ لِبَعْضٍ هُوَ وَضْعُ الْيَدَيْنِ عَلَى الصَّدْرِ، وَذَلِكَ مَكْرُوهٌ، فَكَانَ أَوْلَى بِنَا أَنْ نَجْعَلَ الْمُبَاحَ لَنَا بِخِلَافِهِ. [وبعد السطر] وَهُوَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: تُوضَعُ تَحْتَ السُّرَّةِ، وَتَابَعَهُ عَلَى ذَلِكَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَا جَمِيعًا: إِنَّ ذَلِكَ مِنَ السُّنَّةِ، وَذَلِكَ مِمَّا لَا يُوجَدُ مِنْ جِهَةِ الِاسْتِنْبَاطِ وَلَا مِنْ جِهَةِ الرَّأْيِ، فَيَكُونُ مَا رَوَى وَائِلٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ أَوْلَى مِنْ قَوْلِهِمَا، وَلَكِنَّهُ إِنَّمَا يُوجَدُ مِنْ جِهَةِ التَّوْقِيفِ مِنَ الرَّسُولِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهُمَا عَلَى ذَلِكَ، فَصَارَ مَا رَوَيْنَاهُ عَنْهُمَا ذَلِكَ مُكَافِئًا لِمَا رَوَيْنَاهُ فِيهِ عَنْ وَائِلٍ، وَلَمَّا كَانَ الَّذِي رَوَاهُ وَائِلٌ فِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسلم مَا يُوَافِقُ أَفْعَالَ أَهْلِ الْكِتَابَيْنِ فِي صَلَاتِهِمْ،

وَالَّذِي رَوَيْنَاهُ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، مِمَّا لَا يَكُونُ مَأْخُوذًا عَنْ غَيْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخِلَافِ ذٰلِكَ كَانَ أَوْلٰى مِمَّا رَوٰى وَائِلٌ، لِأَنَّ الَّذِي كَانَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتِّبَاعُ شَرِيعَةِ مَنْ كَانَ قَبْلَهُ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِمْ حَتّٰى يُحْدِثَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ لَهُ شَرِيعَةً مَا تَنْسَخُ ذٰلِكَ، فَصَحَّحْنَا الرِّوَايَتَيْنِ جَمِيعًا، فَجَعَلْنَا مَا رَوٰى وَائِلُ بْنُ حُجْرٍ مِنْ ذٰلِكَ مُتَقَدِّمًا، وَمَا رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ فِي ذٰلِكَ مُتَأَخِّرًا نَاسِخًا لِمَا كَانَ قَبْلَهُ. [أحكام القرآن للطحاوي، كتاب الصلوة، تأويل قوله تعالى عزوجل: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ].

ترجمه: او بعضې حضراتو فرمایلي دي چې دواړه لاسونه به د نوم څخه لاندې ږدئ، او کومو حضراتو رحمهم الله چې دا خبره کړې ده په هغوي کې امام ابو حنيفة رحمه الله امام ابو يوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله دي، او دوي دا خبره د حضرت علي رضي الله عنه او د ابو هريرة رضي الله عنه څخه نقل کړې ده، ماته يحيي، هغه ته عثمان، هغه ته حفص بيان کړې دی هغه د عبد الرحمن بن اسحاق څخه، هغه د زياد بن زيد څخه، هغه د ابو جحيفة څخه هغه د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت کوي چې سنت طريقه داده چې ښي لاس په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې کيږدئ.

ماته فهد، هغه ته يحيي بن عبد الحميد، هغه ته عبد الواحد بن زياد بيان کړي دی، هغه د عبد الرحمن بن اسحاق، هغه د سيار ابو الحکم، هغه د وايل رضي الله عنه، هغه د ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت کوي هغه فرمايي چې يو د سنتو څخه داده چې ښي لاس د نوم څخه لاندې کيږدي.

او په حديث کې د چپ لاس ذکر پاتې شوی دی. او کله چې د لاس د کېښودلو په ځاي کې اختلاف وو او مونږ خلک ليدلي دي چې يو بل باندې د کبر په وخت کې په سينه باندې لاسونه ږدي، (په سينه باندې لاسونه کېښودل د کبرجنو طريقه ده) او د کبرجنو سره مشابهت مکروه دی نو مونږ ته بهتره داده چې خپل مباح ددې (کبرجنو) په خلاف وکړو (او يو څو کرښې لاندې ليکي چې: حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې: د نوم څخه لاندې لاسونه کيږدئ، او ابو هريرة رضي الله عنه هم د حضرت علي رضي الله عنه موافقت کړی دی، دواړو فرمايلي دي چې د نوم څخه لاندې د لاسونو کېښودل سنت دي. او دوي رضي الله عنه دا خبره د خپلې رايې څخه نده را ايستلې بلکې د رسول الله د قول او يا د فعل څخه يې معلومه کړې ده) ځکه چې دې فعل ته يې سنت ويلی دی، نو حضرت وايل رضي الله عنه چې د رسول الله ﷺ څخه کوم روايت کړی دی چې رسول الله ﷺ په سينه باندې لاسونه ايښي دي) ددې درجه د حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه د خپل قول څخه زياته ده، لکن دا د ابو هريرة او حضرت علي رضي الله عنه خپل قول ندي، بلکې دوي هم دا طريقه د رسول الله ﷺ د قول او يا د فعل څخه را اخيستې ده، نو ددوي حديثونه د حضرت علي رضي الله عنه د حديث سره مماثل شو. (چې دړې واړه د رسول الله ﷺ قول او يا فعل بيانوي) او د حضرت وايل رضي الله عنه په بيان کړې طريقه کې د يهودو او د نصاراو سره موافقت راځي، ځکه چې يهودو او نصاراوو به په مانځه کې په سينه باندې لاسونه کېښودل).

او زمونږ طريقه صرف د رسول الله ﷺ څخه را اخيستل شوې ده. (يعنې سنت کېدل د نبي ﷺ څخه ماسوا د بل چا يعنې د يهودو او د نصاراوو څخه نوي راخيستل شوي) او سنت يوائې د تحت السرة سره ذکر شوي دي نو لدې وجې د حضرت علي ﷺ او د حضرت ابوهريرة ﷺ د روايت مرتبه د حضرت وايل ﷺ د مرتبې څخه اوچته شوه، ځکه نبي ﷺ د مخکنيو شريعتونو پابند وو ترڅو به چې الله ﷻ منسوخه کړي نه وو.

نو مونږ دواړه روايتونه صحيح وګڼل، او د حضرت وايل ﷺ حديث مو د حضرت علي ﷺ او د حضرت ابوهريرة ﷺ د حديث څخه مقدم وګڼل (يعنې په سينه باندې د لاسونو د کېښودلو عمل په هغه وخت کې وو په کوم وخت کې چې د نوي حکم په ذريعه باندې د اهل کتابو سره د مخالفت حکم نه وو راغلی) او د حضرت علي ﷺ او د حضرت ابوهريرة ﷺ روايات مو وروستني او ناسخ وګڼل.

## د امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ څو دلايل

(۱) په ابو داؤد شريف کې روايت دي چې: عن أبي جرير الضبي عن أبيه قال: رأيت علياً ﷺ يمسک شماله بيمينه فوق السرة. [ابوداؤد حديث نمبر ٦٤٦].

اول جواب: ددې حديث يو راوي ابو بدر مختلف فيه راوي دي ابن معين رحمه الله او امام احمد رحمه الله ورته ثقه او صدوق ويلی دی لکن ابن حجر رحمه الله او ابو الحاتم رحمه الله ورته ضعيف ويلي دي. [تهذيب الکمال ج۱۲/ ص۳۸۴] تقريب التهذيب ج۱/ ص۴۱۳].

دوهم جواب: دا فعلي حديث دی او د سنت لفظ هم پکې نشته، او د حضرت علي ﷺ د تحت السرة حديث قولي دی او د سنت لفظ هم پکې دی لهذا هغه روايت راجح دی.

دريم جواب: پدې حديث کې فوق په معني د علی سره دی لکه څرنګه چې په سورة يوسف کې الله ﷻ فرمايي چې: وَقَالَ الْآخَرُ إِنِّي أَرَانِي أَحْمِلُ فَوْقَ رَأْسِي خُبْزًا. الآية او په سورة حم سجده کې فرمايي چې: وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ مِن فَوْقِهَا. آيت ۱۰].

زمونږ په عرف کې هم د (پورته) او د (باندې) لفظ پدې معني باندې مستعمل شوی دی لکه خلک وايي چې: لوڅ سر لمونځ بنه ندی په سر باندې خولۍ کېده.

(۲) سئل سعيد بن جبير أين موضع اليدين في الصلوة؟ فقال: فوق السرة. [الأمالي في أثار الصحابة لعبد الرزاق صنعاني حديث نمبر: ٥٤]. دلته هم د فوق همغه معني ده چې مخکې تيره شوه

ددې حدیث په سند کې ابن جریج دی چې د نوي زنانه وو سره یې متعه کړې وه، او دې ته به یې جایز هم ویلې. [تذکرة الحفاظ ج۱/ ص۱۴۹]. [و میزان الاعتدال ج۲/ ص۱۵۱].

## په مختلفو روایاتو کې داحنافو تطبیق او ترجیح

(۱) علامه عیني رحمه الله دبخاري شریف په شرح کې فرمایي چې: وَاحْتجَ صَاحب الْهِدَايَة لِأَصْحَابِنَا فِي ذَٰلِك بقوله - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إن من السّنة وضع الْيُمْنَى على الشمَال تَحت السُّرَّة (قلت) هَـٰذَا قول عَليّ بن أبي طَالب وَإِسْنَاده إِلَى النَّبِي - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - غير صَحِيح وَإِنَّمَا رَوَاهُ أَحْمد فِي مُسْنده وَالدَّارَقُطْنِيّ ثمَّ الْبَيْهَقِيّ من جِهَته فِي سنَنَيْهِمَا من حَدِيث أبي جُحَيْفَة عَن عَليّ رَضِي الله تَعَالَى عَنهُ أنه قَالَ إِن من السّنة وضع الْكَفّ على الْكَفّ تَحت السُّرَّة وَقَول عَليّ أَن من السّنة هَذَا اللَّفْظ يدْخل فِي الْمَرْفُوع عِنْدهم. وَقَالَ أَبُو عمر فِي التقصي وَاعْلَم أَن الصَّحَابِيّ إِذا أطلق اسْم السّنة فَالْمُرَاد بِهِ سنة النَّبِي - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَكَذَٰلِكَ إِذا أطلقها غَيره مَا لم تضف إِلَى صَاحبهَا كَقَوْلِهِم سنة العمرين وَمَا أشبه ذَٰلِك. [عمدة القاري باب وضع اليمنی علي اليسری].

د لاسونو د کېښودلو په باره کې زمونږ د فقهاوو څخه صاحب د هدایه د حضرت علي رضي الله عنه پدې قول باندې استدلال کړی دی چې سنت طریقه داده چې ښي لاس په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې کېږدئ.

زه وایم چې دا د حضرت علي رضي الله عنه قول دی، او د رسول الله ﷺ طرفته ددې منسوبول ندي صحیح (یعنې دا د رسول الله قول نه دی) او دا حدیث امام احمد په خپل مسند کې او دارقطني کې او بیا بیهقي په خپلو خپلو سند باندې پخپلو سننو (بیهقي او دارقطني) کې دابو جحیفة د حدیث څخه د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت کړی دی، چې حضرت علي رضي الله عنه فرمایلي دي چې سنت طریقه داده چې ښي ورغوی په چپ ورغوی باندې د نوم څخه لاندې کېږدئ، او حضرت علي رضي الله عنه چې دې ته سنت وایي نو دا د فقهاوو په نزد د مرفوع په حکم کې دی او ابو عمر فرمایلي دي چې کله صحابي رضي الله عنه د سنت لفظ ذکر کړي نو ددې څخه د نبي علیه السلام سنت مراد وي او همدارنګه غیر صحابي چې د سنت لفظ مطلق ذکر کړي نو د هغې څخه هم د نبي علیه السلام سنت مراد وي، ترڅو یې چې بل چا ته نسبت نوي کړي لکه د سنت العمرین د کلمې په شان.

(۲) صاحب د اعلاء السنن فرمايلي چې: فنقول أن حديث على ﷺ أرجح عندنا لما فيه من التصريح بأن وضع اليدين تحت السرة من السنة، وأحاديث الصدر كلها من قبيل الافعال، لايثبت منها أن الوضع على الصدر سنة واظب عليها النبي ﷺ وإنما هي حكاية حال لاعموم لها.

وأما لفظ كان فلايقتضي الاستمرار، وأيضاً فدلالتها عليه دون دلالة لفظ السنة فكان الآخذ بحديث تحت السرة أولى، وغيره محمول على بيان الجواز عندنا، والقياس أيضاً يرجح الوضع تحت السرة لأنه المعهود حال قصد التعظيم. [اعلاء السنن ج ۲/ص ۱۹۷ باب وضع اليدين تحت السرة].

يعنې د نوم څخه لاندې د لاسونو د تړلو په باره کې چې د حضرت علي ﷺ کوم حديث راغلی دی دا ځکه راجح دی چې پدې کې د سنت لفظ راغلی دی، او په کومو (ضعيفو) رواياتو کې چې د صدر لفظ راغلی دی هغه ټول روايات فعلي دي، د بعضې حالاتو حکايات دی د سنت لفظ پکې نشته، نو عموم نه لري، او دا ترينه نه ثابتيږي چې پدې باندې هميشه والی شوی دی او پاتې شوه د کان معامله؟ نو دا د استمرار تقاضی نه کوي. او علاوه لا دا چې ددې (طاوس د مرسل حديث) دلالت د سنت د لفظ د دلالت څخه کمزوری دی، نو د نوم څخه لاندې د تړلو روايت ډېر بهتر دی، او نور روايات چې د تحت السرة څخه بغير بل څه پکې راغلی دی هغه زمونږ په نيز په جواز ورحمل دي، او ددې څخه علاوه قياس هم د تحت السرة تاييد کوي ځکه چې د ارادې د تعظيم په وخت کې د نوم څخه لاندې د لاسونو د تړلو رواج دی.

(۳) بې نظيره محدث الشيخ محمد هاشم السندي رحمه الله المتوفي ۱۱۷۴هـ فرمايلي چې: لما وقع التعارض بين الجانبين رجح ابوحنيفة رحمه الله الوضع تحت السرة، لحديث على ﷺ من السنة كذا، وهو حديث حسن لغيره، وان كان ضعيفاً في نفسه، ولانه ابلغ في التواضع والتعظيم، وهذا اعهد بين الامراء والملوك، والتعظيم هو المطلوب في أحوال الصلوة كلها، وهذا في حق الرجال وأما في حق النساء فنظر إلى ما هو الأستر لهن، ورأى أ[illegible] ماية الأستر في حقهن أولى من رعاية التعظيم، مع ما فيه من أعمال النصين وهو أولى من اهمال أحدهما بالكلية. [معيار النقاد في تميز المغشوش عن الجياد مشمولة درهم الصرة ص ۱۱۵].

يعنې د احاديثو په مابين کې تعارض راغلو نو امام ابوحنيفة رحمه الله د تحت السرة رواياتو ته د حضرت علي ﷺ د حديث له وجې ترجيح ورکړه ځکه چې په هغې کې د سنت لفظ راغلي دي، او د حضرت علي ﷺ حديث ضعيف في نفسه او حسن لغيره دي، او د نوم څخه لاندې د لاسونو تړل د تعظيم سره ډېر مناسب دي، او د امراء و په مخکې هم همدا طريقه رواج ده، او د مانځه په ټولو حالاتو کې

مقصود تعظیم دی او دا د سړي په باره کې دی، پاتې شوه د ښځو معامله نو د دوي په باره کې امام صاحب رحمه الله د ستر او پردې رعایت کړی دی، او دې ته بې کتلي دي چې د ښځو ب... کې د تعظیم په نسبت دستر او پردې رعایت اولی دی، او پدې طریقه باندې به په دواړه قسمه روایاتو عمل راشي، او په ټولو روایاتو باندې عمل کول ددې شخه بهتر دي چې یو قسم روایت بالکل مهمل شي. انتهي ملخصاً.

(۴) همدارنګه مخکې لیکي چې: الجمع بالنسبة الينا، وذلك واقع من امامنا الأعظم رحمه الله حيث خص أحد المرويين بالرجال لما فيه من زيادة التواضع والتعظيم، وثانيهما بالنساء، وهو ما كان أستر في حقهن ورأى أن رعاية الاستر في حقهن أولى من رعاية ما فيه زيادة التعظيم، وهكذا فعل رحمه الله في أحاديث أخر، منها رفع اليدين، فإنه لما اختلفت الروايات عن رسول الله ﷺ وأصحابه في كونه إلى الأذنين أو الكتفين خصّ الاستر منهما -وهو الأخير- بالنساء -وغير الاستر- وهو الأول- بالرجال. ومنها الجلوس في التشهد. لما اختلفت الروايات فيه افتراشا وتوركاً خص الأستر منهما وهو التورك بالنساء -وغير الأستر وهو الافتراش بالرجال- وقد قدمنا عن التحرير وشرحه أنه يجوز للمجتهد ترجيح أحد النصين المتعارضين لموافقة القياس. انتهى.

ولا يخفى أن هذا الجمع جمع من وجه لما فيه من اعمال النصّين، ولا شك أن اعمال النصين المتعارضين بعد ثبوتهما أولى من اهمال أحدهما بالكلية وترجيح القياس من وجه لما فيه من رعاية ما فيه زيادة التعظيم في حق الرجال، وما فيه زيادة الستر في حق النساء، والترجيح بالقياس يجوز للمجتهد، وفيه عمل بالقولين، اعنى أن النصين إذا تعارضا فالجمع مقدم على الترجيح أو عكسه فظهر ان قولكم ثم مقتضى الجمع أن يكون كل من الوضع تحت السرة وعلى الصدر سنة الرجل والمرءة من غير تخصيص الأول بالأول والثاني بالثاني إلى آخره باطل بمقدماته بأسرها. [معيار النقاد في تميز المغشوش عن الجياد مشمولة درهم الصرة في وضع اليدين تحت السرة ص ۱۱۱ وص ۱۱۲].

خلاصه دا چې د تعارض په وخت کې امام ابو حنيفة رحمه الله په تطبیق باندې عمل کوي، پداسې طريقه چې د تحت السرة احادیث تر نارینه و پورې خاص کوي، ځکه چې پدې طریقه کې تعظیم او تواضع ده، او دصدر والا (ضعیف) أحادیث د زنانه و پورې خاص کوي، ځکه چې د دوي په حق کې رعایت د ستر او دپردې ډېر بهتر دی، او همدا په متعارضو احادیثو کې د امام صاحب طریقه ده، لکه د رفع اليدين په احادیثو کې یې چې همداسې کړي دي چې په کومو احادیثو کې چې د لاسونو او چتول ترغوږونو پورې راغلي دي نو هغه یې تر نارینه وو پورې خاص کړي دي، او په کومو احادیثو کې چې د لاسونو اوچتول تر اوګو پورې راغلي دي نو هغه یې تر زنانه وو پورې خاص کړي دي ځکه چې دا د دوي په حق کې ستر او پرده ده.

همدارنګه په قاعده کې کيناستل دي نو په کومو احاديثو کې چې د افتراش ذکر راغلي دي نو هغه يې تر نارينه وو پورې خاص کړي دي او په کومو احاديثو کې چې د تورک ذکر راغلی دی نو هغه يې تر زنانه وو پورې خاص کړی دی ځکه چې دا ددوي په حق کې د ستر او دپردې کار ورکوي او مجتهد ته داسې ترجيح جايزه ده او پدې طريقه باندې په دواړو نصينو باندې عمل راځي او په نورو طريقو کې په يو نص باندې عمل پاتې کيږي نو ددې تفصيل څخه دا ښکاره شوه چې دا اعتراض بالکل غلط دی چې نارينه وو او زنانه وو دواړو ته په يوه طريقه مونځ کول پکار وو، چې يا دې دواړه د نوم څخه لاندې لاسونه تړي اويا دې دواړه په سينه باندې لاسونه تړي يعنې يوه طريقه دې د زنانه وو او بله دې تر نارينه وو پورې نه خاصيږي.

## ائمه اربعه

لکه څرنګه چې قران کريم د (اوو) قاريانو په قرائت امت ته رارسيدلی دی او کوم قرائت چې په دې (اوو) قاريانو کې ديو قاری څخه هم نه وي ثابت هغه شاذ او مردود دی، هيڅکله قرآن نه دی.

نو همدارنګې په کوم روايت باندې چې په أيمه يې أربعه وو کې دهيچا عمل نه وي، هغه هم قطعاً اويقيناً شاذ او مردود وي، په لمانځه کې په سينه باندې لاسونه ايښودل په ايمه يې اربعه وو کې دهيچا مسلک هم ندی. [معارف السنن باب ماجاء في وضع اليمين في الصلوة ج٢/ ص٤٣٦. وعبارته هكذا قال الترمذي لم يأخذ أحد من الأربعة بالوضع على الصدر...الخ أو صاحب د وبذل الجهود فرمايي چې: فانحصر مذاهب المسلمين فى ثلاثة أحدها الوضع تحت السرة، وثانيها فوق السرة تحت الصدر وثالثها الارسال، بل انحصر الوضع فى هيئتين، تحت الصدر وتحت السرة ولم يوجد على ما قال الشوكاني مذهب من مذاهب المسلمين أن يكون الوضع على الصدر فقول الوضع على الصدر قول خارج من مذاهب المسلمين وخارق لاجماعهم المركب. [بذل المجهود ج٢/ ص٢٥، باب وضع اليمين على اليسرى في الصلوة. يعنې د مسلمانانو پدې مسئله کې درې مذهبه دي اول د نوم څخه لاندې کيښودل. دوهم د سينې څخه لاندې کيښودل، او دريم زړوند نيول، بلکې څوک چې د لاسونو په کيښودلو قايل دي د هغوی څخه صرف دوه قوله رانقل شوي دي، يو دا چې د نوم څخه به يې لاندې ږدي، او دوهم دا چې د سينې څخه به يې لاندې ږدي او په سينه باندې د لاسونو کيښودل د هيڅ مسلمان مذهب هم ندی نو په سينه باندې د لاسونو کيښودل د ټولو مسلمانانو د مذهبونو څخه ځان ايستل دي او د مسلمانانو د

مرکبې اجماع څخه مخالفت دی. قلت ان رواية على الصدر عن الشافعي رواية النادرة كماسيأتي في عبارة السنن].

امام نووي فرمايي چې دامام شافعي رحمه الله مذهب دادی چې لاسونه به دسينې څخه لاندې ږدئ ،اودامام ابوحنيفه رحمه الله په مذهب به لاسونه دنوم څخه لاندې ږدئ ، اودامام احمد رحمه الله څخه درې روايته دي ، يو دامام ابوحنيفه رحمه الله په شان، يو دامام شافعي رحمه الله په شان، اودريم داچې اختيار دی، خو مختار روايت يې دادی چې: د نوم څخه به يې لاندې کېږدئ. او د امام مالک رحمه الله په نيز ارسال دی .(نووی الشافعی شرح مسلم ،ج ۱ص ۱۷۳) باب وضع يده اليمني علي اليسري ...الخ )

امام ترمذی رحمه الله چې ددې اختلافاتو ذکرکوي نو هغوئ هم په سينه باندې لاسونه کېښودل هيڅ امام ته ندی منسوب کړی هغه فرمايي چې: (وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالتَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ رَحِمَهُمُ اللَّهُ، يَرَوْنَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَمِينَهُ عَلَى شِمَالِهِ فِي الصَّلَاةِ، وَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنْ يَضَعَهُمَا فَوْقَ السُّرَّةِ. وَرَأَى بَعْضُهُمْ: أَنْ يَضَعَهُمَا تَحْتَ السُّرَّةِ، وَكُلُّ ذَلِكَ وَاسِعٌ عِنْدَهُمْ.) (ترمذی ج۱ ص ۵۹ باب ماجاء في وضع اليمين علي الشمال )

لامذهبو هم په دې اعتراف کړی دی لکه څرنګه يې چې دفتاوی علماء حديث په جلد ۳ ص ۹۳) باندې ليکلي دي چې په سينه باندې لاسونه کېښودل په څلورو خلفاوو کې دهيچا قول هم نه دی، اوپه څلورو امامانو کې دهيڅ يو مذهب هم نه دی. په الاوسط کې دي چې: وروى عن سعيد بن جبير أنه قال: فوق السرة. وقال أحمد بن حنبل: فوق السرة قليلاً وان كانت تحت السرة فلا بأس، وقال الآخرون وضع الأيدى على الأيدى تحت السرة روى هذا القول عن على بن ابى طالب وأبى هريرة رضي الله عنه وابراهيم النخعى وأبى مجلز. [الأوسط لابن المنذر ذيل حديث نمبر: ۱۲۴۱]. كتاب صفة الصلوة ذكر وضع بطن الكف اليمنى على ظهر الكف اليسرى والرسغ والساعد]. اوپه معارف السنن کې همدا مضمون پداسې الفاظو راغلی دی چې: فعند ابى حنيفة رحمه الله وسفيان ثورى وابن راهويه وأبى اسحاق المروزى من الشافعية تحت السرة، وعند الشافعى تحت صدره، كما فى الوسيط وعامة الكتب الشافعية وهى المذكورة فى الأم والمعمولة والمختارة عند أصحابه وهى رواية عن مالك أيضاً أو على صدره كما فى رواية النادرة وعن أحمد روايتان كالمذهبين، وثالثة فى التخيير وجعل ابن هبيرة الرواية المشهورة عن أحمد مذهب امامنا ابى حنيفة رحمه الله أفاده شيخنا فى تعليقاته وكذا فى الميزان وقال واختارها الخرقى، وقال ابو الطيب المدنى قال الترمذى لم يأخذ أحد من الأربعة بالوضع على الصدر. [معارف السنن باب ما جاء فى وضع اليمين على الشمال فى الصلوة. ج۲/ص۴۳۶].

## د حنفي فقهې عبارات

(۱) د امام ابو حنيفة رحمه الله شاګرد امام محمد رحمه الله فرمايي چې: « أَخْبَرَنَا أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَمِدُ بِإِحْدَى يَدَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى فِي الصَّلَاةِ، يَتَوَاضَعُ لِلَّهِ تَعَالَى" فَيَكُونُ الرُّسْغُ فِي وَسَطِ الْكَفِّ.، كتاب الآثار ص ۲۴ حديث نمبر ۱۲۰ باب الصلوة قاعداً... الخ.

مونږ ته خبر راکړي دي امام ابو حنيفة رحمه الله د ابراهيم نخعي رحمه الله څخه چې رسول الله ﷺ به په مانځه کې د عاجزۍ په طريقه ښي لاس په چپ لاس باندې کېښودلو، امام محمد رحمه الله فرمايي چې د ښي لاس ورغوي به د چپ لاس په مړوند باندې د نوم څخه لاندې ږدئ نو ورغوې به د مړوند په منځ باندې راشي.

(۲) امام محمد رحمه الله فرمايي چې: ينبغي للمصلي إذا قام في صلوته أن يضع باطن كفه اليمنى على رسغه اليسرى تحت السرة، ويرمي ببصره إلى موضع سجوده، وهو قول أبي حنيفة رحمه الله. [الموطأ للإمام محمد بن الحسن در ذيل حديث نمبر ۲۹۰].

د مونځ کوونکي لپاره مناسبه داده چې مانځه ته د دريدلو په وخت کې ښي لاس په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې کېږدئ او د سجدې ځاي ته دې ګوري.

(۳) په بدايع الصنايع کې داسې عبارت دی چې: وأما محل الوضع فما تحت السرة في حق الرجال والصدر في حق المرءة. [بدايع الصنايع فصل في سنن حكم التكبير].

د لاسونو د کېښودلو ځاي د سړي لپاره د نوم څخه لاندې دی او د ښځې لپاره په سينه باندې دي.

او د احنافو په بل کتاب المبسوط للسرخسي کې داسې عبارت دي چې: وَلَنَا حَدِيثُ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ- كَمَا رَوَيْنَا وَالسُّنَّةُ إذَا أُطْلِقَتْ تَنْصَرِفُ إلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، ثُمَّ الْوَضْعُ تَحْتَ السُّرَّةِ أَبْعَدُ عَنْ التَّشَبُّهِ بِأَهْلِ الْكِتَابِ وَأَقْرَبُ إلَى سِتْرِ الْعَوْرَةِ فَكَانَ أَوْلَى. [المبسوط للسرخسي كتاب الصلوة، كيفية الدخول في الصلوة]. زمونږ لپاره (چې د نوم څخه لاندې لاسونه ږدو) د حضرت علي رضي الله عنه حديث دليل دی (چې د سنت لفظ پکې ذکر شوی دی) او د نوم څخه لاندې د لاسونو په کېښودلو کې) ډېر لرې والی دی د مشابهت د اهل کتابو څخه، او ډېر نزدې والی دی پټولو د عورت ته فلهذا (د نوم څخه لاندې د لاسونو کېښودل) بهتر دي.

(٤) الشيخ محمد هاشم السندي رحمه الله فرمايي چې: رجعنا إلى كلام في الترجيح لا يخفى ان المجتهدين رحمهم الله لما وجدوا الأحاديث في الباب متعارضة رجحوا بينها بوجوه كثيرة، نقل بعض منها في كتب اتباعهم فرجح الامام الأعظم ابو حنيفة رحمه الله وضع اليدين تحت السرة بكونه هيئة التواضع والتعظيم، ولهذا كان معهوداً عند القيام بين يدي

الملوك والأمراء، فينبغي أن يكون هو المندوب حالة القيام بين يدي الله سبحانه وتعالى بأن فيه التحرز عن التشبيه بأهل الكتاب فإنهم يضعون أيديهم على صدورهم في حالة صلوتهم كما يضعونها عليه بعد موته، فكان ما فيه التحرز أولى، وبأن الوارد في جانب الوضع تحت السرة لفظة (أن من السنة) والنصوص الواردة في الوضع على الصدر ليس فيها ذلك وانما هي وقائع أحوال لا عموم لها الى غير ذلك من الوجوه التي ذكرنا بعضها في درهم الصرة من قبل. [درهم الصرة ص ۸۷ وص ۸۸].

یعنې مونږ د ترجیح خبرې ته رجوع کوو نو دا خبره پته نده چې کله مجتهدینو پدې باب کې داحادیثو تعارض ولیدلو نو په ډېرو وجوهو سره یې د دوي په منځ کې ترجیح وکړه.

نو امام ابوحنیفة رحمه الله د نوم څخه لاندې د لاسونو تړلو ته ترجیح ورکړه، ځکه چې دا دعاجزۍ او د تعظیم حالت دی. لدې وجې د امیرانو او د بادشاهانو په مخکې پدې هیئت باندې ودریدل مناسب دي، او بل په دې طریقه کې د یهودو او د نصارا او د مشابهت څخه لرې والی دی، ځکه چې هغوي به په مانځه کې په سینه باندې لاسونه کیښودل، لکه د مرګ څخه وروسته چې هم دوي د مړي لاسونه دمړي په سینه باندې ږدي او بل دا چې د نوم څخه لاندې د لاسونو د تړلو په باره کې د حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه د سنت لفظ رانقل شوی دی، او په سینه باندې د لاسونو د تړلو په باره کې دا لفظ ندی رانقل شوی، بلکې په سینه باندې د لاسونو دتړلو په باره کې چې کوم احادیث راغلي دي هغه ټول د حالاتو واقعې دی.

کوم چې عموم نه لري، ددې څخه ماسوي نور وجوه د ترجیح هم شته د کومو ذکر چې مونږ مخکې په درهم الصرة کې کړی دی.

(۵) همدارنګه د احنافو په یو بل کتاب تبیین الحقایق کې داسې عبارت: وضع اليمين على الشمال دی چې: ولنا حديث علي رضي الله عنه أن من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة، ولأنه أقرب الى التعظيم، كما بين يدي الملوك، ووضعها على العورة لا يضر فوق الثياب بلا حايل لأنها ليس لها حكم العورة في حقه ولهذا تضع المرءة يديها على صدرها وان كان عورة. [تبيين الحقايق، سنن الصلوة].

یعنې زمونږ دلیل د حضرت علي رضي الله عنه حدیث دی چې سنت طریقه دا ده چې ښي لاس په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې کیږدئ، ځکه چې دا طریقه تعظیم ته ډېره نږدې ده لکه خلک یې چې د بادشاهانو په مخکې کوي، او د جامو د پاسه یې په عورت باندې کیښودل پروا نه لري، لکه بغیر د حایله

چې هم پروا نلري، ځکه چې خپل عورت په نظر سره خپل ځان ته د عورت حکم نه لري له همدې وجې ښځې په سینه باندې لاسونه ږدي، اګر چې سینه د ښځې عورت دی.

**فایده:** بعضې خلک وايي چې نوم څخه لاندې د لاسونو کېښودل ځکه ښه ندي چې دا د عورت حصه ده نو صاحب د تبيين الحقايق فرمايي چې دا توجيه ځکه غلطه ده چې ښځه اتفاقاً په سینه باندې لاسونه ږدي حالانکه دا هم عورت دی.

## د حنبلي فقهې يو څو عبارات

(۱) ابو يعقوب اسحاق بن منصور بن بهرام فرمايي چې: قلت أين يضع يمينه على شماله؟ قال كل هذا عندي واسع، قلت: إذا وضع يمينه على (شماله) أين (يضعها)؟ قال: فوق السرة وتحته، كل ذلك واسع، كل هذا ليس بذاك قال (اسحاق) كما قال تحت السرة أقوى في الحديث وأقرب الى التواضع. [مسايل الامام احمد بن حنبل وابن راهويه ج ۱/ ص ۱۳۹، مسئله نمبر ۲۱۱].

ما وويل چې ښي لاس به په چپ لاس باندې په کوم ځاي ږدئ؟ نو امام أحمد رحمه الله وفرمايل چې زما په نزد پدې ټولو (يعني د نوم څخه لاندې او باندې) کې ګنجايش دی، ما وويل چې کله يې ښي لاس په چپ لاس باندې کېښودلو نو (دواړه) به په کوم ځاي باندې ږدو؟ هغه وفرمايل چې د نوم څخه لاندې او باندې د دواړو ګنجايش دی، او يو هم پروا نه لري.

اسحاق بن راهويه رحمه الله د امام أحمد رحمه الله په شان د نوم څخه لاندې د لاسونو تړل أقوى في الحديث او أقرب الي التواضع ګڼلي دي.

(۲) د حنبلي فقهې مشهور ترجمان علامه ابن قدامه الحنبلي المتوفي ۶۸۲هـ فرمايي چې:

مسئلة: قَالَ: (وَيَجْعَلُهُمَا تَحْتَ سُرَّتِهِ) اخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِي مَوْضِعِ وَضْعِهِمَا، فَرُوِيَ عَنْ أَحْمَدَ رحمه الله، أَنَّهُ يَضَعُهُمَا تَحْتَ سُرَّتِهِ. رُوِيَ ذٰلِكَ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي مِجْلَزٍ، وَالنَّخَعِيِّ، وَالثَّوْرِيِّ، وَإِسْحَاقَ رضي الله عنهم لِمَا رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ وَضْعُ الْيَمِينِ عَلَى الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ. رَوَاهُ الْإِمَامُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُد. رحمة الله تعالىٰ عليهما وَهٰذَا يَنْصَرِفُ إِلَى سُنَّةِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَلِأَنَّهُ قَوْلُ مَنْ ذَكَرْنَا مِنَ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم.

وَعَنْ أَحْمَدَ رَحِمَهُ اللهُ، أَنَّهُ يَضَعُهُمَا فَوْقَ السُّرَّةِ. وَهُوَ قَوْلُ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللهُ، لِمَا رَوَى وَائِلُ بْنُ حُجْرٍ رضي الله عنه قَالَ: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى صَدْرِهِ إحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى». وَعَنْهُ أَنَّهُ مُخَيَّرٌ فِي ذَلِكَ؛ لِأَنَّ الْجَمِيعَ مَرْوِيٌّ، وَالْأَمْرُ فِي ذَلِكَ وَاسِعٌ. [المغني لابن قدامة الحنبلي ج۲/ ص ۳۳۱].

يعنې د لاسونو په کيښودلو کې د امام أحمد رحمه الله څخه مختلف روايات راغلي دي، يو روايت دادی چې د نوم څخه به يې لاندې ږدئ، لکه څرنګه چې د علي رضي الله عنه، او دابوهريرة رضي الله عنه او دابو مجلز، او د نخعي رحمه الله او د ثوري رحمه الله او د اسحاق رحمه الله څخه روايت دي او حضرت علي رضي الله عنه ورته سنت ويلي دي او ددې څخه مراد د رسول الله ﷺ سنت دي او دا د تيرو صحابه وو قول هم دي. دوهم روايت يې د سعيد بن جبير رضي الله عنه او د امام شافعي رحمه الله په شان دادی چې د نوم څخه به يې د پاسه ږدئ له وجې د حديث د حضرت وايل رحمه الله څخه چې په هغې کې په سينه باندې د لاسونو د کيښودلو ذکر دی او دريم روايت يې دادي چې پدې دواړو کې اختيار دی ځکه چې دا دواړه کيفيات مروي دي او پدې معامله کې وسعت دی.

(۳) همدا رنګه فرمايي چې: النوع الثاني سنن الافعال وهی اثنان وعشرون -إلى أن قال- ووضع اليمنى على اليسرى وجعلهما تحت السرة. [الكافى فى فقه الامام المبجل أحمد بن حنبل عبد الله بن قدامة المقدسى ابو محمد ج ۱/ص ۱۴۶ وكذا فى ص ۱۲۹].

يعنې دوهمه نوعه د مانځه د فعلي سنتونو په بيان کې ده او هغه دوه ويشت سنتونه دي —بيا مخکې ليکي چې- د ښي لاس کيښودل دي په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې.

(۴) او علامه ابن قيم جوزي رحمه الله المتوفي ۷۵۱هـ فرمايي چې: واختلف فى موضع الوضع، فعنه فوق السرة، وعنه تحتها وعنه ابو طالب سألت أحمد أين يضع يده إذا كان يصلى؟ قال على السرة أو أسفل وكل ذلك واسع عنده. (أن وضع فوق السرة أو عليها أو تحتها).

قال على رضي الله عنه من السنة فى الصلوة وضع الكف على الأكف تحت السرة. عمرو بن مالك عن أبى الجوزاء عن ابن عباس رضي الله عنه مثل تفسير على إلا أنه غير صحيح والصحيح حديث على رضي الله عنه قال فى رواية المزنى أسفل السرة بقليل، ويكره أن يجعلهما على الصدر، وذلك لما روى عن النبى ﷺ أنه نهى عن التكفير، وهو وضع اليد على الصدر، مؤمل عن سفيان عن عاصم بن كليب عن أبيه عن وايل أن النبى ﷺ وضع يده على صدره، فقد روى هذا الحديث عبد الله بن الوليد عن سفيان ولم يذكر ذلك، ورواه شعبة وعبد الواحد لم يذكر خلاف سفيان. [بدايع الفوايد ج ۴/ص ۱۳۸].

يعنې د لاسونو د کيښودلو په ځاي کې اختلاف دی، او د امام أحمد رحمه الله څخه د نوم څخه لاندې کيښودل هم روايت شوي دي، او د نوم څخه د پاسه هم او ابو طالب رحمه الله د امام أحمد رحمه الله څخه روايت کړي دي چې ما د احمد رحمه الله څخه پدې باره پوښتنه وکړه، نو هغه په جواب کې وويل چې: په نوم باندې او د نوم څخه لاندې او د نوم څخه د پاسه په ټولو کې اختيار دی، حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې ورغوي په ورغوي باندې کيښودل د نوم څخه لاندې سنت دي، او همداسې يو روايت عمرو بن مالک د ابو الجوزاء عن ابن عباس رضي الله عنه څخه هم کړی دی لکن هغه ندي صحيح بلکې صحيح روايت د حضرت علي رضي الله عنه دی.

د مزني په روايت کې امام أحمد رحمه الله فرمايلي دي چې لاسونه به د نوم څخه لر لاندې ږدي، او په سينه باندې د لاسونو کيښودل مکروه دي، ځکه چې رسول الله ﷺ د تکفير څخه منع کړې ده، او تکفير په سينه باندې د لاسونو کيښودلو ته وايي او مؤمل د سفيان څخه هغه د عاصم بن کليب څخه، هغه د خپل پلار څخه، هغه د وايل رضي الله عنه څخه روايت کړي دي چې:

رسول الله ﷺ خپل لاس په سينه باندې کيښودلو، په تحقيق سره دا روايت عبد الله بن الوليد رحمه الله د سفيان رحمه الله څخه کړی دی او د سينې ذکر يې پکې نه دی کړی او شعبه رحمه الله او عبد الواحد رحمه الله هم د سفيان رحمه الله د خلاف ذکر نه دی کړی. لهذا د مؤمل په روايت کې د سينې ذکر صحيح نه دی.

(۵) د فقهې حنبلي په مشهور کتاب المقنع او ددې سره په شرح المبدع کې د امام أحمد ن حنبل رحمة الله عليه مذهب داسې بيان شوي دي چې: (وَيَجْعَلُهُمَا تَحْتَ سُرَّتِهِ) فِي أَشْهَرِ الرِّوَايَاتِ، وَصَحَّحَهَا ابْنُ الْجَوْزِيِّ رحمة الله عليه وَغَيْرُهُ لِقَوْلِ عَلِيٍّ رضي الله عنه: مِنَ السُّنَّةِ وَضْعُ الْيُمْنَى عَلَى الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُودَاوُدَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ، وَذَكَرَ فِي "التَّحْقِيقِ" أَنَّهُ لَا يَصِحُّ قِيلَ لِلْقَاضِي: هُوَ عَوْرَةٌ فَلَا يَضَعُهُمَا عَلَيْهِ كَالْعَانَةِ، وَالْفَخِذِ، فَأَجَابَ بِأَنَّ الْعَوْرَةَ أَوْلَى، وَأَبْلَغُ بِالْوَضْعِ عَلَيْهِ لِحِفْظِهِ وَعَنْهُ: تَحْتَ صَدْرِهِ، وَفَوْقَ سُرَّتِهِ، وَعَنْهُ: يُخَيَّرُ، اخْتَارَهُ فِي "الْإِرْشَادِ" لِأَنَّ كُلًّا مِنْهُمَا مَأْثُورٌ، وَظَاهِرُهُ يُكْرَهُ وَضْعُهُمَا عَلَى صَدْرِهِ، نَصَّ عَلَيْهِ مَعَ أَنَّهُ رَوَاهُ. [المبدع شرح المقنع لابن المفلح الحنبلي ج۱/ ص ۳۷۹، باب صفة الصلوة].

د مقنع ددې قول چې: (لاسونه به د نوم څخه لاندې ترې) په تشريح کې صاحب د مبدع فرمايي چې دا د امام أحمد رحمه الله مشهور روايت دي، او دی روايت ته ابن قيم الجوزي او نورو حنبليانو صحيح ويلی دی ځکه چې حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې د نوم څخه لاندې د لاسونو تړل سنت طريقه ده، دا حديث په

مسند أحمد او په ابو داؤد کې دی او د تحقيق په نوم کتاب کې راغلي دي چې د نوم څخه لاندې د لاسونو ترل ندي صحيح، يو چا قاضي ته وويل چې: د نوم څخه لاندې خو عورة دي لهذا پدې باندې کيښودل نه دي پکار لکه د نوم څخه لاندې او د متيازو د ځاي څخه پورتني حصه او ورون نو قاضي جواب ورکړو چې په عورة باندې د لاس کيښودل خو د عورت د پټولو لپاره ډېره ښه خبره ده، او د امام أحمد څخه بل روايت دادی چې د سينې څخه لاندې او د نوم څخه پورته به يې تړي، او په دريم روايت کې ترينه ددې دواړو په مابين کې اختيار دی ځکه چې د نوم څخه د لاندې او د باندې دواړه طريقې په رواياتو کې راغلي دي. او ظاهره خبره داده چې په سينه باندې د لاسونو کيښودل مکروه دي، امام أحمد رحمه الله پدې باندې تصريح کړې ده، سره ددې چې دا ترينه مروي هم دي. انتهي.

يعني د امام أحمد څخه په سينه باندې د لاسونو د کيښودلو روايت هم راغلی دی او مکروه هم ورته وايي چې ددې معني داده چې د امام أحمد رحمه الله په نزد دا روايت غير صحيح او غير قابل العمل دی او يا پکې تاويل داسې کوي چې د صدر څخه قريب الي الصدر مراد وي.

(۶) منصور بن يونس بن ادريس بهوتي الحنبلي پورتني مضمون پداسې الفاظو بيانوي چې: ثُمَّ «وَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنٰى عَلٰى كَفِّهِ الْيُسْرٰى، وَالرُّسْغَ وَالسَّاعِدَ» (وَيَجْعَلُهُمَا تَحْتَ سُرَّتِهِ) رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنهما لِقَوْلِ عَلِيٍّ رضي الله عنه «مِنَ السُّنَّةِ وَضْعُ الْيُمْنٰى عَلَى الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُد رَحِمَهُمَا اللهُ وَذَكَرَ فِي التَّحْقِيقِ: أَنَّهُ لَا يَصِحُّ قِيلَ لِلْقَاضِي: هُوَ عَوْرَةٌ فَلَا يَضَعُهَا عَلَيْهِ كَالْعَانَةِ وَالْفَخِذِ؟ وَأَجَابَ: بِأَنَّ الْعَوْرَةَ أَوْلٰى وَأَبْلَغُ بِالْوَضْعِ عَلَيْهِ لِحِفْظِهِ (وَمَعْنَاهُ) أَيْ مَعْنٰى وَضْعِ كَفِّهِ الْأَيْمَنِ عَلٰى كُوعِهِ الْأَيْسَرِ وَجَعْلِهَا تَحْتَ سُرَّتِهِ: أَنَّ فَاعِلَ ذٰلِكَ ذُو (ذُلٍّ بَيْنَ يَدَيْ ذِي عِزٍّ) نَقَلَهُ أَحْمَدُ بْنُ يَحْيَى الرَّقِّيُّ. (وَيُكْرَهُ) جَعْلُ يَدَيْهِ (عَلٰى صَدْرِهِ) نَصَّ عَلَيْهِ، مَعَ أَنَّهُ رَوَاهُ. قال في المبدع. [كشاف القناع ج ۲/ص ۴۷۶، باب صفة الصلوة وبيان ما يكره فيها...].

ترجمه يې مخکنۍ ترجمې ته ورته ده.

(۷) همدا رنګه مخکني بزرګ منصور بن يونس رحمه الله الحنبلي په شرح منتهي الارادة کې فرمايي چې: (و) سن له أيضاً (جعلهما) أي يديه (تحت سرته) لقول علی رضي الله عنه من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة. رواه أحمد وأبو داؤد ومعناه ذل بين يدي الله عزوجل. [شرح منتهی الاراداة، باب صفة الصلوة وما يكره فيها... ج ۱/ ۴۱۳].

يعنې سنت طريقه داده چې لاسونه د نوم څخه لاندې کيږدئ د حضرت علي ﷺ ددې قول له وجهې چې سنت طريقه د نوم څخه لاندې د لاسونو تړل دي ،دا حديث أحمد او ابوداؤد روايت کړی دی او ددې وجه د الله ﷻ په دربار کې د خپلې عاجزۍ ظاهرول دي.

(۸) مصطفي سيوطي رحيباني الحنبلي هم د نوم څخه لاندې د لاسونو تړلو ته سنت او په سينه باندې د لاسونو کيښودلو ته مکروه ويلي دي، عبارت يې داسې دي چې: ويجعلهما أي يديه تحت سرته لقول علي ﷺ من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة. [رواه أحمد وأبوداؤد ومعناه ذل بين يدي عزويكره جعلهما على صدره نقله أحمد عن يحيى الرقي. [مطالب أولى النهى فى شرح غاية المنتهى ج ۲/ص ۴۸۲،باب صفة الصلوة ومايكره فيها].

(۹) د خرقي د متن په شرح کې شمس الدين ابو عبد الله محمد بن عبد الله الزركشي مصري الحنبلي المتوفي ۷۷۲هـ فرمايي چې: ثم وضع اليمنى على اليسرى. رواه أحمد ومسلم وفى لفظ لأحمد وأبى داؤد: وضع يده اليمنى على ظهر كفه اليسرى والرسغ والساعد، وقال ويجعلهما تحت سرته.

ش: هذا أحد الرواية عن أحمد، لما روى أحمد، وأبوداؤد عن علي ﷺ قال: من السنة المطلقة تنصرف إلى سنة رسول الله ﷺ.

والرواية الثانية: الأفضل جعلهما تحت صدره، لما روى قبيصة بن هلب عن أبيه قال: رأيت النبى ﷺ يضع يده على صدره، ووصف يحيى بن سعيد اليمنى على اليسرى فوق المفصل [رواه أحمد] والثالثة: التخيير بين الصفتين اختارها ابن أبي موسى وابو البركات لورود الأمر بهما قال ابو البركات: وعلى الروايات فالأمر (فى الأمرين) واسع لاكراهة لواحد منهما، والله أعلم [شرح الزركشى على مختصر الخرقى ج ۱/ص ۱۷۹ باب صفة الصلوة].

خپل ښي لاس په چپ لاس باندې کيده، دا حديث احمد او مسلم روايت کړی دی، او په ابو داؤد او احمد کې داسې الفاظ راغلي دي چې: خپل ښي لاس يې د چپ لاس د ورغوي په شاه او په مړوند او په مټ باندې کيښودلو، او بيا يې فرمايلي دي چې دواړه لاسونه يې د نوم څخه لاندې کيښودل، او دا يو روايت دی د امام أحمد رحمه الله څخه له وجې د هغه حديث څخه چې احمد او ابو داؤد د حضرت علي ﷺ څخه روايت کړی دی چې د نوم څخه لاندې د لاسونو تړل سنت دي، او سنت چې مطلق ذکر شي نو د رسول الله ﷺ سنت ترينه مراديږي، او دوهم روايت دادی چې بهتر دادی چې لاسونه د سينې څخه لاندې وتړي له وجې د حديث د قبيصه بن هلب عن أبيه څخه چې ما رسول الله ﷺ وليدلو چې لاس يې په سينه باندې کيښودلو، او يحيي بن سعيد ددې طريقه داسې بيان کړې ده چې ښي لاس يې د چپ لاس په بند کيښودلو، دا امام أحمد روايت کړی دی او دريم روايت دادي چې پدې دواړو طريقو کې اختيار دي او دا روايت ابن

ابي موسي او ابو البركات غوره کړي دي ځکه چې په دواړو طريقو کې روايات راغلي دي، ابو البركات فرمايي چې ددې رواياتو په نظر کې نيولو څخه په دواړو طريقو کې وسعت دي په يو کې هم کراهة نه شته.

(۱۰) ابو القاسم عمر بن الحسين بن عبد الله خرقي حنبلي المتوفي ۳۳۴ھ فرمايلي چې: ثم يضع يده اليمنى على كوعه اليسرى ويجعلهما تحت سرته. [متن الخرقى على مذهب أبي عبد الله أحمد بن حنبل الشيباني ج ۱/ص ۲۲، باب استقبال القبلة].

بيا به خپل ښي لاس د چپ لاس په مړوند باندې ږدي او دواړه به د نوم څخه لاندې کوی

## د شافعي فقهي څو عبارات

(۱) مشهور شافعي امام محي الدين أبي زكريا يحيي بن شرف النووي الشافعي المتوفي ۶۷۶ھ فرمايي چې: وَيَجْعَلُهُمَا تَحْتَ صَدْرِهٖ فَوْقَ سُرَّتِهٖ هٰذَا مَذْهَبُنَا الْمَشْهُوْرُ وَبِهٖ قَالَ الْجُمْهُوْرُ وَقَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَاِسْحَاقُ بْنُ راهويه، وابو اسحاق المروزى عن أصحابنا رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، يجعلهما تحت سرته، وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ رِوَايَتَانِ كَالْمَذْهَبَيْنِ وَعَنْ أَحْمَدَ رحمه الله رِوَايَتَانِ كَالْمَذْهَبَيْنِ وَرِوَايَةٌ ثَالِثَةٌ أَنَّهُ مُخَيَّرٌ بَيْنَهُمَا وَلَا ترجيح وبهذا قال الأوزاعي وبن الْمُنْذِرِ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ وَعَنْ مَالِكٍ رحمه الله رِوَايَتَانِ إِحْدَاهُمَا يَضَعُهُمَا تَحْتَ صَدْرِهٖ وَالثَّانِيَةُ يُرْسِلُهُمَا وَلَا يَضَعُ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى وَهٰذِهٖ رِوَايَةُ جُمْهُوْرِ أَصْحَابِهٖ وَهِيَ الْأَشْهَرُ عِنْدَهُمْ وَهِيَ مَذْهَبُ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ وَعَنْ مَالِكٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَيْضًا اسْتِحْبَابُ الْوَضْعِ فِي النَّفْلِ وَالْإِرْسَالِ فِي الْفَرْضِ وَهُوَ الَّذِي رَجَّحَهُ الْبَصْرِيُّوْنَ مِنْ أَصْحَابِهٖ [شرح مسلم للنووي، باب وضع يده اليمني علي اليسري بعد تكبيره الاحرام]. او لاسونه به د نوم څخه د پاسه او د سينې څخه لاندې ږدئ، همدا زمونږ (د شوافعو) مشهور مذهب دی، او په همدې باندې جمهورو قول کړی دی، او امام ابوحنيفة، سفيان ثوري، او اسحاق بن راهويه، او اسحاق مروزي زمونږ د شوافعو څخه فرمايي چې د نوم څخه لاندې به يې ږدئ. او د حضرت علي رضي الله عنه څخه د دواړو مذهبونو په شان دوه روايتونه دئ او د امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه هم د دواړو مذهبونو په شان دوه روايتونه دي، او دريم روايت يې دادی چې په دې دواړو صورتونو کې اختيار دي، او يو ته هم ترجيح نشته او د امام مالک رحمه الله څخه دوه روايته دی يو دادي چې زوړند به يې نيسي او يو په بل به يې نه ږدي او دا د امام مالک رحمه الله او د جمهورو اصحابو مسلک دي او د مالکيانو په نزد مشهور دی او همدا د ليث بن سعد مسلک هم دی، او د امام مالک رحمه الله څخه دا روايت هم راغلی دی چې په نفل مونځ کې د لاسونو يو په بل باندې کيښودل مستحب دي، او په فرض مونځ کې زوړند نيول مستحب دي او دې طريقې ته د بصرې مالکيانو ترجيح ورکړې ده.

(۲) همدې ته ورته عبارت د امام نووي رحمه الله په بل کتاب المجموع شرح المهذب ج۷/ ص ۱۲۵ کې هم دي فرمايي چې: (فَرْعٌ) فِي مَذَاهِبِهِمْ فِي مَحَلِّ مَوْضِعِ الْيَدَيْنِ: قَدْ ذَكَرْنَا أَنَّ مَذْهَبَنَا أَنَّ الْمُسْتَحَبَّ جَعْلُهُمَا تَحْتَ صَدْرِهِ فَوْقَ سُرَّتِهِ وَبِهَذَا قَالَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَدَاوُد رحمة الله تعالى عليهما: وَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ وَالثَّوْرِيُّ واسحق رحمة الله تعالى عليهم يجعلها تحت سرته وبه قال أبو اسحق الْمَرْوَزِيّ رحمة الله عليه مِنْ أَصْحَابِنَا كَمَا سَبَقَ وَحَكَاهُ ابْنُ الْمُنْذِرِ رحمة الله تعالى عليه عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَالنَّخَعِيِّ وَأَبِي مِجْلَزٍ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ رِوَايَتَانِ إِحْدَاهُمَا فَوْقَ السُّرَّةِ وَالثَّانِيَةُ تَحْتَهَا وَعَنْ أَحْمَدَ رحمة الله تعالى عليه ثَلَاثُ رِوَايَاتٍ هَاتَانِ وَالثَّالِثَةُ يَتَخَيَّرُ بَيْنَهُمَا وَلَا تَفْضِيلَ وَقَالَ ابْنُ الْمُنْذِرِ رحمة الله تعالى عليه فِي غَيْرِ الْأَشْرَافِ أَظُنُّهُ فِي الْأَوْسَطِ لَمْ يَثْبُتْ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذلك شئ وَهُوَ مُخَيَّرٌ بَيْنَهُمَا. حواله بالا.

او همدارنګه فرمايي چې: وَيَجْعَلُهُمَا تَحْتَ صَدْرِهِ وَفَوْقَ سُرَّتِهِ هَذَا هُوَ الصَّحِيحُ المنصوص وفيه وجه مشهور لابى اسحق المروزي رحمة الله تعالى عليه انه تجعلهما تحت سُرَّتِهِ وَالْمَذْهَبُ الْأَوَّلُ. [المجموع شرح المهذب ج۷/ ص ۱۲۱].

خلاصه دا ده چې په فقه شافعيه کې مشهور او منصوص مذهب دادي چې لاسونه به د نوم څخه د پاسه او د سينې څخه لاندې تړئ.

(۳) او امام نووي رحمه الله په روضة الطالبين کې فرمايي چې: ثـم يضـع يديـه كمـا ذكرنـا تحت صدره وفوق سرته علي الصحيح. [روضة الطالبين باب الرابع في صفة الصلوة فصل في القيام]. يعنې صحيح قول دادي چې لاسونه به د نوم څخه د پاسه او د سينې څخه لاندې تړئ.

(۴) شهاب الدين أحمد بن محمد بن حجر الهيثمي الشافعي رحمه الله المتوفي ۹۷۴هـ فرمايي چې: ما تحت صدره أي فوق سرته. [تحفة المحتاج في شرح المنهاج باب صفة الصلوة]. ترجمه يې د مخکې په شان ده.

(۵) شمس الدين محمد بن احمد الشربيني الشافعي المتوفي ۹۲۶هـ فرمايي چې: ويضـعهما- أي اليدين - بين السرة والصدر. [اسني المطالب الباب الرابع في صفة الصلوة الركن الثاني، تكبيرة الاحرام].

يعنې لاسونه به د نوم او د سينې په منځ کې ږدئ. همدارنګه پخپل بل تصنيف کې فرمايي چې: وقبض في قيام او بدله بيمين كوع يسار وبعض ساعدها ورسغها تحت صـدره فـوق سرتـه. [حاشـية الجمل باب صفة الصلوة ج۳/ ص ٤٧٤].

همدارنګه په حاشية البجيرمي علي الخطيب كتاب الصلوة فصل في أركان الصـلوة ج٤/ ص۳٤۳] او په حواشي الشرواني على تحفة المحتاج بشرح المنهـاج بـاب صـفة الصـلوة ج۲/ ص۱۰۳]. کې هم د شوافعو د عباراتو خلاصه همدا ده چې لاسونه به د سينې څخه لاندې او د نوم د پاسه تړئ.

## د امام مالک رحمه الله فقه

د امام نووي رحمة الله عليه د مذکور عبارت څخه د امام مالک رحمة الله عليه مسلک واضح شو.

**الحاصل:** په سينه باندې د لاسونو تړل بدعت او مردوده طريقه ده. [فيض الباري، الزاق المنكب بالمنكب والقدم بالقدم بالصف].

د امام أحمد رحمه الله په نيز مکروه دي. [المبدع شرح المقنع ج۱/ ص ۲۷۹ باب صفة الصلوة بديع الفوايد ج۴/ ۱۳۸]، کشاف القناع ج۲/ ص ۴۷۶].

همدارنګه د اجماع د مسلمانانو څخه وتل دي. [بذل المجهود ج۲/ ص۲۵، باب وضع اليمني علي اليسري]. او همدارنګه د يهودو او د نصاراوو سره مشابهت دی. [کما في أحکام القرآن للطحاوي، والمبسوط للسرخسي].

او د نوم څخه لاندې د لاسونو تړل د رسول الله ﷺ طريقه ده، د صحابه وو رضي الله عنهم طريقه ده، د تابعينو او د جمهورو مسلمانانو طريقه ده، پدې طريقه کې د يهودو او د نصاراوو سره بالکل مخالفت دي او همدا طريقه د عقل او د قياس سره هم موافقه ده.

## اجماع

**مولانا عبد الحی لکهنوی فرمائي:** اما في حق النساء فاتفقوا علي ان السنة لهن وضع اليدين علي الصدر لانها ما استرها. (السعايه، جد ۳ ص ۱۵٦) د علماء وپه دی اتفاق دی چې د ښځو په باره کې سنت طريقه په سينه باندې د لاسونو کېښودل دي په يو مقطوع حديث کې راځي چې: (عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ قَالَ: تَجْتَمِعُ الْمَرْأَةُ إِذَا رَكَعَتْ تَرْفَعُ يَدَيْهَا إِلَى بَطْنِهَا، وَتَجْتَمِعُ مَا اسْتَطَاعَتْ). (مصنف عبدالرزاق، ج ۳ ص ۴۹، باب تكبير المرءة بيديها وقيام المرءة وركوعها وسجودها.

ښځې په قيام کې تر خپل طاقت پورې لاسونه راټول نيسي او چې لاسونه پورې راټول ونيسي نو په سينه راځي.

## په سنتو پورې ټوقې

مولوی محمد حنيف فريد کوټي د دې سنتو پورې داسې ريشخند وهي (د احنافو لمونځ نه کيږي ځکه دوی په اله د تناسل باندې لاسونه تړي) (قول حق ص ۲۱)

يو لامذهبه فيض عالم صديقي په خپل کتاب (اختلاف امت کا الميه ص ۷۸) باندې ليکلي دي چې (دبنی عباس ديو خليفه هارون په لمانځه کې پرتوغانې وشکيدو، نوده دسينې څخه لاسونه رابنکته کړل اوپرتوغانې يې کلک کړو، دلمانځه څخه وروسته خلکو په حيرانی دده دي کار ته کتل، نو قاضی ابويوسف فتوی ورکړه چې دنوم څخه لاندې دلاسونو تړل صحيح دي .(اختلاف امت کاالميه ص ۷۸).

زمونږ د زمـانې لامذهبـه امـين الله پشـاوری دسـنتوپورې داسـې تـوقې کـوي چـې دنامـه لانـدې پـه لاسونو کيښودلو کې دعورت طرف ته اشاره ده (الحق الصريح ،ج ۴ص ۱۲۵ سطر ۸).

وګې سړي ته هرعدد ډوډۍ ډوډۍ کيږي نو همدا رنګې دې لامذهبه ته داحنافو هره عضوه ذکر ذکر کيږي او هره اشاره ورته بل شي ته اشاره وي .

دهمدې کتاب په اول جلد، ص :۳۳٦ اوله چهپائی اوص ۳۱۷ دوهمه چهپائی کې يې ليکلي دي چې زنا درې قسمه ده اودريم قسم زنا دانبياوو کرامو ده (معاذالله) دباب الايمان بالقدر، داتم نمبر حديث په تشريح کې، غټ غټ منکرين دحديثو هم دسنتوپورې دومره ريشخندنه وهي، اهل سنت والجماعت ته درخواست کووچې ددوی دوسوسو څخه دحفاظت لپاره دې هميشه سورة الناس لولي او ځان دی ورباندې دموي، ترڅوېې چې الله ﷻ ددوی دوسوسو څخه حافظ اوناصرشي . رسول الله ﷺ فرمائي چې کله اختلاف راشي نو دخلفاء راشدينو په سنتو باندې کلکې منګولې ولګوئ .

نو په دې مسئله کې په هغه احاديثو باندې عمل پکاردی، چې پر کومو باندې عمل کولو ته حضرت علی ﷺ اوحضرت ابـو هريرة ﷺ وغيـره وو سـنت ويلـي دي او رسـول الله ﷺ فرمـايلي دي چـې کـوم حديثونه زما دسنتو څخه خلاف وي هغه زما څخه ندي لدی وجهې مونږ پـه هغـه روايـاتو عمـل نه کوو کوم چې خلاف سنت دي او غير مقلدين اقرار کوي چې په سينه باندې لاسونه کيښودل دخلفاوو اربعه وود عمل، د رسول الله دسنتو او د أيمه اربعه وو دعمل څخه مخالف دي. (فتاوی علماء حديث ،ج ۳ص ۹۲).

* * *

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الحمدلله رب العٰلمين والصلوة والسلام على سيدالمرسلين وعلى اله واصحابه وازواجه اجمعين.

أمابعد!

داسلام حق دين دالله ﷻ كامل اوبهترين دين دى اودټولې دنيالپاره د نجات لاره ده، دادين داهل سنت والجماعت خصوصاً داحنافوپه كوششونوټولې دنياته ورسيدلو.

افغانستان، پاكستان، اوهندوستان وغيره اسلامي ملكونوته داسلام رارسونكي، داسلام خپرونكي، او داسلام قبلونكي ټول اهل سنت والجماعت حنفي المذهب وو.

دامذهب سيدنا امام اعظم رحمه الله مرتب كړى دى. امام اعظم رحمه الله د مسئلو داستنباط خپله طريقه داسې بيان كړې ده چې (زه دټولو څخه مخكې په كتاب الله شريف عمل كوم، په دوهمه مرتبه كې په سنت مقدسه اومطهره باندې عمل كوم، په دريمه مرتبه كې دحضرت ابوبكر صديق ﷺ، حضرت عمر ﷺ، حضرت عثمان ﷺ اوحضرت على ﷺ په فيصلو باندې عمل كوم، په څلورمه مرتبه كې دنوروصحابه وو په فيصلو باندې عمل كوم، اوكه په دې يو كې هم مسئله پيدا نه شوه نو په اخركې په خپل اجتهاد اوقياس باندې عمل كوم، يعنې دخپل اجتهاد په وجه دالله ﷻ اودرسول الله ﷺ حكم لټوم. (الميزان الكبرى الشعرانى ج ۱، ص ٦٦)

په يادولرئ چې داهل سنت والجماعت پدې خبره اتفاق دى چې د اجتهاد اودقياس په وجه مجتهد خپل ذاتي اوشخصي حكم نه بيانوي.

بلكه دالله ﷻ اودرسول الله ﷺ دحكم لټون كوي دمجتهدينو امامانو ښكاره اعلان دى چې (القياس مظهرلامثبت) قياس ثابتونكى ندى بلكه ظاهرونكى دى [نورالانوار ص ۲۲۸].

لكه څرنگه چې دجماعت په لمونځ كې ټول مقتديان ديو امام په تابعدارۍ كې دالله ﷻ عبادة كوي نو همدارنگه مقلدين دخپل يو امام په لارښوونه دالله ﷻ اودرسول الله ﷺ اطاعت كوي.

پدې ملكونو اواكثرونورو ملكونو كې بادشاهان رعايا، علماء، اوعوام ټول حنفيان وو چې دهمدې په بركت داتفاق اوداتحاد فضا قائمه وه تقريباً دولس سوه كاله پدې ملكونو كې نه مناظرې وې اونه چيلينج بازياني او په افغانستان كې خو تقريباً دروسانو تر يرغل پورې هيڅ اختلاف نه وو.

## دلامذهبانو دفرقی ابتداء

مساجد خالص دعبادة ځايونه دي، دجنګونو ميدانونه نه دي، کله چې انګريزانو هندوستان ونيولو نودوي وليدل چې په دی مساجدوکې لکه څرنګه چې لمونځونه کيږي همدارنګه په کې دجهاد درسونه هم کيږي اودجهادله وجهې انګريزان ډيرپه عذاب وو.

له دې وجې دوي دافکروکړوچې ترڅوپورې چې په دې مساجدوکې مسلمانان په نوروفسادونوکې مصروف نه شي نوترهغې پورې د جهاد درسونه نه بنديږي. اوپه مساجدوکې د فسادونو د جوړولو لپاره دیوې داسې فرقې ضرورت ووچې په حنفي مسلمانانو اعتراضونه وکړي اوددوی لمونځونو ته غلط ووائي څکه چې چنګيزيانو دهمدې نسخې په کارولو باندې دبغداد مسلمانان ترتيغه تيرکړي وو، نودهمدې مقصد لپاره يې دغيرمقلدينو فرقه راپيدا کړه دکومې چې دوه مقصدونه وو.

**اول:** دانګريزانو سره جهاد حرام دی.

**دوهـــم:** د مسـلمانانو په مسـاجدوکې دفسـاد جوړول فـرض دي، داول مقصـد دپـوره کولو لپـاره دهـند داهلحديثو وکيل مولوی محمدحسين بټالوي دخپل ټول جماعت له طرفه دجهاد په ردکې يوه رساله وليکله په نامه ده الاقتصادفي مسائل الجهاد:

اودانګريزانو څخه يې په انعام کې ځمکې ترلاسه کړې، اوبل لامذهبه نواب صديق حسن خان هم رساله وليکله اونوم يې ورته کيښودلو - ترجمان وهابيه.

اودانګريزانو څخه يې درياست او دنوابی القاب وګټل، دادواړه رسالی د(رسائل اهلحديث) په اول جلدکې اوس هم موجودی دي اودټول تفصيل لپاره د(انګريزاوراهلحديث) رساله وګورئ، دلا مذهبو ددواړو رسالو يوڅو عبارتونه لاندې ولولئ.

### لامذهبه محمدحسين بټالوي وکيل اهلحديث هند ليکي چې:

(۱) دانګريزي حکومت پرخلاف جهادکول هيڅکله نه دي جايز(الاقتصاد ص۱۹)

(۲) دارالاسلام، يعنې دهندوستان ملک سره ددينه چې د عيسويانو په قبضه کې دی دارالاسلام دی، پدې ملک کې چې هرڅوک بادشاه وي دهغه په خلاف جنګ حرام دی (الاقتصاد، ص۲۵].

(۳) دانګريزانو سره غداري (جهاد) کول اودهغوی په جان او په مال باندې تعرض کول صراحة حرام دي. [الاقتصاد، ص۳۴].

(۴) دغه خلک چې تقريرًا او تحريرًا حاضرين او غائبين د انګريزي دولت وفاداران دي او ددوی په خدمت کې سرګرم دي، نو په دوی کې دپنجاب اهلحديث هم داخل دي، چې دپنجاب انګريزي حکومت هم ددې تصديق کوي [الاقتصاد، ص۴۸].

(۵) دانګريزي حکومت په خلاف جنګيدل او دجنګيدونکو سره هر قسم کومک کول صراحة غدر او حرام دی. [الاقتصاد، ص۴۸].

(٦) دانګريزانو سره جنګيدل جهاد نه دی بلکې عناد او فساد دی، د اتلس سوه (۱۸۵۷) او وپنځوسم ميلادي کال په فساد کې چې کوم مسلمانان شريک شوي وو هغه ګناهګاران دي، او دقران او دحديث په حکم مفسدين، باغيان، او بدکرداره دي، پدې مفسدينو او باغيانو کې اکثر خلک عوام کالانعام دي او بعضو نورو ته چې خواص او علماء ويلی شي هغوی هم داصلي علوم و ددين څخه چې قران او حديث دی بې برخې دي، باخبره او پوهان علماء هيڅکله په دی کې شرکت نکوي او نه يې په هغې فتوی دزړه څخه دستخط کړی دی چې ددې غدر څخه دجهاد دجوړولو لپاره صادره شوی ده (الاقتصاد ص۴۹).

(۷) جنرل بخت خان د ډهلی دعلماء وڅخه دجهاد فتوه واخستله دا فتوه دهغه وخت په يوه رساله کې په نامه د (جنګ ازادي) د ص ۴۰۴ څخه تر، ص۴۰٦) پورې اوس هم موجوده ده.

دمحمد حسين بټالوي استاذ ميانذير حسين باني غير مقلديت او نورو لامذهبانو يو طرفته ظاهرا په دې فتوی دستخط وکړو او په حقيقت کې يې انګريزانو ته جاسوسي کوله.

**لا مذهبه پروفيسرايوب قادري وايي :** کوم دستخط کونکي چې دانګريزانو وفاداران وو هغوی انګريزانو ته دجاسوسی فرائض ادا کول، چې دتحريک ازادی په مخالفينو کې دا لاندې علماء داخل وو.

(۱) شيخ الکل شمس العلماء مياسيد محمد نذير حسين باني. (۲) شمس العلماء مولوي ضياء الدين.

(۳) مولـوي سيد محبوب علي جعفري.(۴) مفتي صدرالدين ازرده. (۵) مولـوي حفيظ الله خان.

(جنګ ازادي ص ۴۰۹)

(۸) نو مولوي محمد حسين بټالوي ددوي دتزکيې لپاره ليکې (چې جنرل بخت خان او نورو باغي افسرانو علماء وته حکم وکړو چې په دې فتوی دستخط وکړي او که نه تول به قتل کړي، نو ټولو ځان له داره کړه او جبرًا د ستخط وکړو، که دوي دستخط نه وی کړی نو ټول په توره باندې وژل کيدل، يا په توپونو اوليزول کيدل، نو دوي دمجبوری له وجهې د ستخط وکړو، چې پدغه مجبورو خلکو کې مولوي حفيظ الله خان او مولوي

نذیر حسین او ده ځوی مولوي شریف حسین او ددوی شاګردان مولوي محمد صدیق پشاوري او مولوي عبدالله مرحوم غزنوي دی.(اشاعة السنة نمبرا بحواله اثار رحمت، ص ۲۲۴/ جنګ ازادي، ص۴۱۴ وص ۴۱)

**داهلحدیثو مذکوروکیل دمجاهدینوپه باره کې لیکلي دي چې:**

(۹) دادفساداو دعناد خورونکي خلک په حرام مرګ باندې مړه کیږي، دجنتونو دخوشحالیو ځخه به محروم وي ،داسې فسادونو ته جهادویل اوپه دې کې دشهادت هوس کول سراسر جهالت اوحماقت دی. (الاقتصاد، ص ۷۱)

(۱۰) مشهور غیرمقلد عالم مسعودعالم ندوي لیکلي دي چې (د معتبرو اوقوي راویانو بیان دی چې ددې رسالې په عوض کې محمد حسین بټالوي ته دانګریزانو له خوا ځخه ډیرجایداد ورکړل شو، ددې رسالې اوله حصه زمونږ دنظرونو په وړاندې ده، ټوله رساله دتحریف اود تدلیس عجیبه اوغریبه نمونه ده) (پهلي اسلامي تحریک، ص۲۹)

**لا مذهبه نواب صدیق حسن خان لیکي چې:**

(۱) خلاصه دهندوستان دمسلمانانو داحال دی چې دکوم وخت ځخه دلته اسلام راغلی دی، چونکه اکثرخلک دبادشاهانو طریقه اومذهب خوښوي، نودهغه وخت ځخه ترننه پورې داخلک په حنفی مذهب باندې وه اودي ،اودهمدې مذهب عالمان ،مفتیان، قاضیان او حاکمان دي، تردې چې ددوی یوه غټه ډله یوځای شوه اوفتاوی هندیه یعنې فتاوی عالمګیري یې ولیکله ،چې په دوی کې شیخ عبدالرحیم دهلوي دشاه ولی الله والد بزرګوارهم شریک وو (ترجمان وهابیه، ص۱۰ وص۱۱)

(۲) د انګریزانو په مقابل کې مجاهدین حنفیان دي .آیا چا اوریدلي دي چې ترننه پورې کوم موحد، متبع، سنت په حدیث اوپه قران باندې تلونکي بې وفائي کړې ده اواقرارېې پربینی دی، یایې فتنه جوړه کړیده، یابغاوت ته اماده شوي دي ،کومو کسانو چې په زمانه دغدر کې فساد کړی دی،اوانګریزي حکامو سره یې عنادد ی، هغه ټول دحنفي مذهب پیروان دي نه متبعین داحادیثو نبویه وو . (ترجمان وهابیه ،ص ۲۵).

کله چې په هندوستان کې انګریزانو په زرګونو جید علماء اعدام کړل او په لکونو عوامو مسلمانانو ته یې اعدام ورکړو ،اوتراو(۷) ورځو پورې یې قتل عام روان کړی وو ،اوپه زرګونو مسلمانان جلاوطنه شول، نوددوی په باره کې نواب صدیق حسن خان لیکي چې.

(۳) دحاکمانو (انګریزانو) اطاعت اورئیسانو تباندې دټولو واجباتو ځخه غټ واجب دی(ترجمان وهابیه، ص۲۹)

**عجیب دلیل:** (۴) نواب صدیق حسن خان په دلیل کې داسې وایې چې په احادیثو کې راځي چې قیامت ته نزدې به په هرځای کې د عیسویانو حکومت وي ،دهمدې احادیثو مطابق داانګریزي حکومت دی، نودوی سره جنګیدل جهادنــه دی بلکــه فســاددی او ډیــره ســخته نــاداني اوبــې وقــوفي ده، دعاقبت څخه ناخبرتیا او دپیغمبرصادق ﷺ دفرمان څخه مخالفت دی. (ترجمان وهابیه، ص ۷)

(۵) جهاداو مـذهبي جنـګ پـه مقابلـه دبرطانوي حکومت کې چې مـذهبي ازادي يـې اعـلان کړی ده دشریعت لـه رویـه عمومـاخلاف اوممنـوع دي. کوموخلکوچې ددې حکومت پرخلاف اسلحه رااخستې ده او مذهبی جهادکوي داټول خلک باغیان دي اود باغیانو دسزاء مستحق دي، پدې فتوی باندې ټولو غیرمقلدینو دستخط کړی دی. (ترجمان وهابیه، ص ٦١) .

(٦) دانګریزي حکومت پرخلاف اسلحه رااوچتول دایمان او داسلام څخه خلاف دي. (ترجمان وهابیه، ص ۱۲۱)

(۷) دهندوستان دغدرپه زمانه کې زمونږهرغټ اووړوکې دانګریزي حکومت خیرخواهان وه.

(ترجمان وهابیه، ص ۵)

(۸) خلاصه داچې څوک چې دانګریزي حکومت بدخواهان دي داهغه خلک دي چې مذهبي ازادي نه خوښوي اودیوخاص مذهب پابنددي چې دپلرونواودنیکونودوخت څخه ورته پاتې دی.

(ترجمان وهابیه، ص ۵)

(۹) بعضــې خلکودحکومــت پــه وینــاحنفي مــذهب پرینښــودودغه خلــک دانګریزانودشــمنان دي ،مونږدانګریزي حکومت په خدمت کې دومره قرباني ورکړه چې مذهب موپرېښودو، لامذهبه شو او د برطانوي حکومت ددروازې فقیران شوو.

(ای انګریــزي ســرکاره) مونږڅرنګــه ستاســومخالفت وکړوحالانکــه دملکــې عــالیې معظمــې دام اقبالها اشتهاردټولوخلکوسره دمذهبي ازادۍ وعده کړی ده. (ترجمان وهابیه، ص ۴۵).

**دحنفیانوپه باره کې یې لیکلي دي چې:**

(۱۰) بعضې خلک پــه مــذهبي تعصب شخصــي تقلیـد اوضـد او جهالـت باندې کلـک ولاړدي اوکوم سهولتونه چې دهندرعیت ته دمذهبي ازادۍ له وجهې حکومت ورکړي دي. دهغې څخه یې ځانونه محروم کړي دي اودعالم امن ته یې خطرپیښ کړی دی دوي غواړي چې ټول خلک دیوخاص مذهب پابندوي چې پدې سره یې دانګریزي حکومت سره خپل تعصب ظاهرکړی دی اوغواړي چې موقع پیداکړي اودغدردزمانې په شان فسادونه راوپاروي. (ترجمان وهابیه، ص ٥٦).

اوددوهم مقصد دپوره کولولپاره مولوي محمد حسين بټالوي وکيل اهلحديث هند دخپلو ملګروسره په مشوره باندې يواشتهارچاپ کړو چې په لسوسوالونو باندې مشتمل وو. په دې اشتهارکې يې ليکلي وچې:

(دهندوستان او دپنجاب حنفيانوته داشتهارپه ذريعه وعده ورکووچې که په دوی کې هرعالم دلاندې مسائلو داثبات لپاره کوم قراني ايات يادا سې صحيح حديث پيش کړي چې په صحت کې يې هيڅ خبره نه وي اوداحديث چې دکومې مسئلې داثبات لپاره پيش کولې شي په دغې مسئله کې صريح نص وي او وربانديې قطعي الدلالة وي نوموږبه دهرآيت اوهرحديث په مقابله کې لس لس روپې انعام ورکړو)

دعوامودوهکه کولولپاره داسې انعامي چيلينج داسلام په تاريخ کې مثال نه لرلو، دداسې انعامي چيلينج بازۍ مؤسس مرزاقادياني وو، داچيلينج يې هربنار،هرکلي ،اوهرې کوڅې ته ورسولو، په هرکوراوپه هرمسجدکې يې دنفاق اوربل کړو، اهل سنت والجماعت په دې پوهيدل چې دمسلمانانوپه مينځ کې فتنه اوفسادجوړول ګناه کبيره اوحرام دي، الله ﷻ فرمائي: (وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ)،اهل سنت پردې پوهيدل چې دمسلمانانوپه مينځ کې اتفاق اواتحادپه هروخت کې ضروري دی خصوصًا په دغه زمانه کې چې دکفاروپه خلاف جهادروان وو،اواسلامي حکومت رانړيدلې وو، دنورهروخت څخه زيات داتفاق اوداتحادضرورت وو مګرافسوس چې غيرمقلدينو افتراق اوانتشارته دقران او دحديث داتباع نوم ورکولواودې منافقت ته يې تحقيق ويلی.

## دحضرت شيخ الهند رحمه الله جواب:

ددې فتنې دکرارولولپاره حضرت شيخ الهند ددې اشتهارپه جواب کې يوه وړه رساله وليکله په نامه د(ادله کامله) په هغې کې يې وليکل چې دازمانه ددې جنګونو نه ده. دمسلمانانو دجنګولو پرځای ددوي ديوځای کولو کوشش وکړئ اودايې هم وليکل چې مشتهرصاحب ستااندازدتحقيق اندازنه دی، اونه دمسلمانانو جنګول دحديثو اتباع ده ،بلکه ستاعلمي حدود اربعه دادي :چې دقران پاک څخه ستاپه حصه کې صرف متشابهات راغلي دي ،اوداحاديثو څخه صرف متعارضات ،او ستاسودفرقې ابتداء په اکابرو داسلام باندې بدګماني ده اوانتهائي داسلافو پر خلاف بدزباني ده ګوياچې ددې حديث مصداق يې چې (لعن اخرهذه الامة اولها).

لامذهبه محمد حسين بټالوي وکيل اهلحديث ددې اشتهارپه ذريعه دمسلمانانوپه مابين کې دافتراق اودانتشارابتداء وکړه، لکن هغه نه دمناظري په طريقه خبروو،اونه په علم حديث پوهيدو، مثلاپه محکمه کې زيدپه عمرباندې ديولکهوروپودعوه وکړه نوزيدته مدعی اوعمرته مدعاعليه ويلی شي ،قاضي دمدعي څخه

شاهدان غواړي او مدعاعليه ته دجرح او داعتراض حق ورکوي، نو همدارنګه په مناظره کې يو مناظر مدعي وي چې دهغـه وظيفـه پـه دلايلو بانـدې دخپلـې دعـوى ثـابتول وي، دوهـم مناظرسـائل وي چـې دهغـه وظيفـه پر هغوي دلائلو جرحه او اعتراض کول وي چې اول مناظر پيش کړي وي، رسـول الله ﷺ فرمائی چې (شاهدان دمدعي په ذمه دي او قسم د انکارکونکي په ذمه دی) الحديث.

محمد حسين بټالوي چې درکوع درفع اليدين په مسئله کې د چيلينج کوم الفاظ ليکلي وو هغه داسې وو (زمونږ چيلينج دی چې يو قراني ايت او يا يو حديث صحيحه ،صريحه ،متفق عليه ،قطعي الدلالة پيش کړئ چې په هغې کې يې رکوع ته د تللو په وخت او د رکوع څخه دسر داوچتولو پـه وخت کې رفع اليدين ته ممنوع ويلي وي که چا دمنع آيت يا حديث پيش کړونو دفی ايت او حديث په مقابل کې ورته لس روپۍ انعام دی).

د اهلحديثو دوکيل دا سوال دا سې دی لکه کوم شيعه چې بټالوي ته چيلينج ورکړی چې که تا يو قراني ايت، او يا يو حـديث صـحيحه ،صـريحه، متفق عليـه ،او قطعـي الدلالـة پـيش کړو چې پـه هغـې کـې يـې پـه اذان کې د(اَشْهَدُاَنَّ عَلِي وَلِيُّ الله). زيـ ولوته ممنوع ويلي وي نو ديو ايت او يو حديث پـه مقابلـه کې بـه درتـه لس روپۍ انعام درکړم. نو بټالوی مجبوردی چې په جواب کې ورته ووايې چې زما سره دمنع حديث نشته، لکن دليل دهغه چا په ذمه وي چې څوک کـار کونکي وي (اَلْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى مَنْ اَنْکَرَ) نو دليـل دشيعه پـه ذمه دی، همدارنګې مثلا دغير مقلدينو موټروي ټريفک ترينه پوښتنه کوي چې ددې موټر کاغذونه وښايه، غير مقلد ورته ووائي چې ته دمنع کاغذونه وښايه، يا ته داسې سرکاري کاغذونه وښايه چې په هغې کې يې ليکلي وي چې دا موټر دده ندی همدا مثال :دهغه چا دی چې هغه وائي چې ته دمنع درفع اليدين احاديث وښايه.

**خلاصـه**: شيخ الهند صـاحب پـه جـواب کـې دهغـه څخـه پوښـتنه وکړه څکـه چـې مـدعي هغـه وو چې تا سو زمونږ څخه درفع اليدين دمنع په باره کې صحيح صريح حديث غوښتې دی، مګر زه ستاسو څخه ددوام درفع اليـدين پـه بـاره کـې صـحيح ،صـريح، متفـق عليـه ،قطعـي الدلالـة حـديث غـواړم، کـه داسـې حـديث دی پيش کړونو دلسو پر ځای شل روپۍ درته انعام دی ،او که نه يې شي پيش کولې نو بيا داسې صحيح صريح متفق عليه حديث پيش کړه چې په هغې کې راغلي وي چې رسول الله ﷺ په اخري وخت دنبوت کې رفع اليدين کړي دي (ادله کامله، ص ٣).

دشيخ الهند رحمه الله دا سوال ترننه پورې پردوي باندې قرض دی، چې نه يې دی اداکړي، اونه به يې اداء کړي ان شاء الله تعالی، دوی چې څومره احاديث پيش کوي په هغې کې نه دهميشوالي لفظ شته اونه په کې داخري عمر صراحة ذکرشوی دی.

دحضرت شيخ الهند رحمه الله ددې رسالې په جواب کې د غير مقلدينو دټول جماعت له طرفه دمحمداحسن امروهی په نوم غيرمقلديوه رساله شائع کړه په نامه د (مصباح الادله) پدې کتاب کې دايت اوحديث پرځای دکنځلو باران وو.

حضرت شيخ الهند رحمه الله بيايوه بله رساله وليکله په نامه د (ايضاح الادلة) اوپه هغې کې يې وليکل چې اګرچې دغيرمقلدينو دا دعوه ده چې مونږ په قران او په حديث باندې دخير القرون د مجتهدينو څخه نه پوهيږو مګرددوي ټول جماعت زما په اردو کتاب هم پوهه نه شواوکله چې زما په کتاب پوهه شوي نه دي نو جواب به څرنګه وليکي؟ لدې وجهې څخه زه دخپل اردوکتاب زيات وضاحت کوم، ترڅو مخالف فريق پوه شي اودپوهې څخه وروسته ورته کوم جواب ووائي.

## دحضرت شيخ الهند رحمه الله كرامت:

دحضرت شيخ الهند رحمه الله دامنلې شوی کرامت دی چې کله محمد احسن امروهی غيرمقلد سره ددې چې نه پوهيدو په جواب کې يې کنځلې وليکلې، نو په اخرکې مرتد اوقادياني شو او دقاديانيت په حال کې مړشو، دين اودنيا دواړه يې بربادشو. (مجموعه اشتهارات مرزا، ج ۱ ص ۳۳۷].

(من عاد لي وليافقد آذنته بالحرب) دايضاج الادله جواب ترننه پورې په غيرمقلدينو باندې قرض دی اوان شاءالله تعالی چې دا قرض به ترقيامت پورې اداء نکړي.

## درفع اليدين ابتداء

دغو مُلکونو ته خو ډير مخکې اسلام رارسيدلې دی، مګرپه دی ټولو ملکونو کې اول رفع اليدين په اتلس سوه اوشپيتمه (۱۸۶۰) عيسوی صدی کې وشو او دا اول رفع اليدين کونکې نه حاجي وو، اونه عالم، بلکې يوغريب هندوستاني وو، چې دخپلې ګيډې دپالنې لپاره به يې کتابونه ګنډل، ده اول دهندوستان په امرتسر، بيا په مظفرګړه، اوبيايې په ډهلې کې رفع اليدين وکړل. اوځای پرځای يې شوراوجينجالونه جوړکړل. (نقوش ابوالوفاء، ص ۳۹ وص ۴۰).

چې ددې څخه وروسته دبرطانوي حکومت لخوادیرونازول شو ، اوپه غټه دپټې باندې مقررشو . ددءنوم محمدیوسف وو ، چې اخردقادیانیت په حالت کې مړشو . سنه ۱۸٦۰) میلادي کال هغه زمانه وه چې انګریزي حکومت په هندوستان کې مسلمانانوته وحشیانه سزاء ګانې ورکولې ، پدغه وخت کې دمیاندیرحسین دهلوی دمدرسې یومدرس داسې فتوی صادره کړه چې : داخلک یعني حنفی ألمذهب مستحل الدم ( واجب القتل ) دي ، د دوي مال دغنیمت مال دی ، ددوی ښځې مونږته جایزې دي ، کەلاس موورباندې برشونوخه په شوق سره یې وینځې کړئ . ( دهلي اوراسکې اطراف ، ص ٥٦ )

ددهلي جامع مسجد چې حنفی بادشاهانوجوړکړی وو ، دانګریزانو په مټ په کې یولامذهبه مولوی محمداکبروعظ کولو ، داحنافوپسې یې ښی تږقې کولې اوپه دې خبره یې فخرکولوچې دهدائي دلوستلو څخه یې توبه ایستلې ده ، اوبیابه یې ویل چې نن څوک دی چې د هدائي دلوستلو څخه توبه اوباسي ، اودقران کریم تعلیم شروع کړي ، اودتوبې نه ایستونکي ټول جهنم ته روان دي . (دهلی اوراسکی اطراف ، ص ٥٦ مجموعه رسائل ، ج ۳ ص ۲۹۱) .

دافتنه دهندوستان څخه پاکستان ته اواخرپه افغانستان باندې د روسانودیرغل په وخت کې افغانستان ته هم راورسیدله ددې فتنې راوړونکې دمجاهدینو د ( ۸ ) اتو تنظیمونو څخه ددوو تنظیمونو مشران وو ، یوسیاف ، اوبل جمیل الرحمن نومیدو .

سیاف دکمونستانودسقوط څخه وروسته اول کابل کنډواله کړو ، په زرګونو مسلمانان په شمول دښځواوماشومانویې په وینوولړل ، یوځل به دشیعه ګانواوګلم جموپه مقابل کې جنګیدلو ، اوکال بعدبه بیا دشوری نظارپه نوم شوری کې دشیعه ګانواوکمونستوګلم جمانو سره په یود سترخوان ناست وو . د ډیرې زیاتی ګډوډی ، ظلمونو او پاټکونو ، حتی دخدایي ددعوو څخه وروروسته چې ددوي په خلاف دافغانستان علماءاو طالبان راپاڅیدل ، اودافغانستان ټول مسلمانان ورسره همکار شول ، اوددې مفسیدینو ټغرپه ټولیدوشو ، نو سیّاف د دوستم ، مسعود ، خلیلي او نورو سره یوځای شو . د علماوو او طالبانو په خلاف تقریبااوه کاله وجنګیدو ، چې دټولې دنیا د کافرانوکومکونه ورسره وو اوپه زرګونو علماء ، طالبان اودقران حافظان اومسافرعربي مجاهدین یې شهیدان کړل .

**یادونه:** دوستم (کمونست ګلم جم و ) محقق ، کریم خلیلی او عبدالعلی مزاری ( درې واړه شیعه ګان رهبران وو او د زرګونو سُنیانوپه سرونو یې میخونه وهلي وو ، د زرګونو سُنی ښځو څخه یې په ژوندون تیونه غوڅ کړي وو اوپه ډیرو مړویې ګډاګانې کړې وې ) او مسعود (چې دروسانودکې ، جې ، بې استخباراتي شبکې

جاسوس و) لکه څرنګه چې نړۍ وال خبریال داود جنبش د روس دیو فوجي افسر کتاب ترجمه کړی دی او نوم یې ورته ایښی دی. (په افغانستان کې سرې لمبکړې).

او په هغې کې یې د مسعود څخه روسانو په د جاسوسۍ پرده لرې کړې ده، همدارنګه یو کتاب دی په نامه د(کې جي بي په افغانستان کې) په څلویښتمه او یو څلویښتمه صفحه کې دده د جاسوسۍ په اړه پوره معلومات دي،، دا کتاب یو روسي (واسیلي میتروخین)دکې جي بي افسرلیکلی دی). کله چې د دنیا ټولو عیسویانو، او یهودیانو، دافغانستان دعلماوو، طلباو، حافظانو او دیندارو عوامو په وینو جوړشوي اسلامي امارت باندې یرغل وکړو، نوسیاف دده اسلامي نظام د رانړولو لپاره ددې کفارو په څنګ کې ودریدو. اودده مضمون دلیکلو په وخت کې دصلبیانو په پارلمان کې دلوڅوښځو او کمونستو خلقیانو پرچمیانو سره یو ځای ناست دی او د امریکایانو په چوپړ کې د قران ایتونه د مجاهدینو او فدایانو په خلاف تحریفوي.

او جمیل الرحمن خو مخکې وژل شوی دی لکن دده د تنظیم د مطبوعاتو پخوانی مشر غیر مقلد عالم مسلم دوست یو کتاب لیکلی دی په نامه د( ماتی زولنې ) په هغې کې یې چې دده کوم فجائع او قبائیح رابښکاره کړي دي نو زه یې په رانقلولو شرمیږم (صاحب البیت ادری بما فیه ) دده ځای ناستې مولوی سمیع الله نجیبی هم اوس د مسلمانانو په خلاف دصلبیانو په څنګ کې ولاړ دی

## داهل سنت والجماعت طريقه

داهل سنت والجماعت دعلماو په نیزپه فروعی مسائلو کې اختلاف دصحابه وورضوان الله علیهم ،تابعینو ،اودتبع تابعینو د دورڅخه را روان دی ،اوداامت لپاره رحمت دی ،اوداصرف ترجیحي اختلاف دی دعلمی استدلال پورې محدود دی ،اوددې مسائلو له وجهې هیڅ عالم دبل عالم تضلیل، تفسیق او تکذیب نه دی کړی،او هیڅکله کوم عالم دې اختلاف ته دحق او دباطل اختلاف نه دی ویلی ،درفع الیدین په مسئله کې هم امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله رکوع د تللو په وخت کې او درکوع څخه د جیګیدلو په وخت کې درفع الیدین قایلین دي او امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله د ترک د رفع الیدین قایلین دي.

نو که امام مالک او امام ابوحنیفه رحمهما الله په خپل اجتهاد کې حق ته رسیدلي وي، نو الله تعالی به دوه اجره ورکړي. او که خطاء شوي وي نو الله تعالی به یو اجر ورکړي. همدارنګه امام شافعي او امام احمد رحمهما الله که حق ته رسیدلي وي نو الله پاک به دوه اجره ورکړي او که خطا شوي وي نو الله پاک به یو اجر ورکړي.

## د لامذهبو طريقه

دې نوې فرقې اجتهادي اختلافي مسایلو ته دکفر او داسلام اختلاف وویلو ،فروعي اختلافي مسایلو ته یې هوا ورکړه، ددې فروعي مسائلو لپاره یې کانفرانسونه جلسې او جلوسونه وکړل ،او کوي یې ،چې داټول

کانفرانسونه ،جلسی، جلوسونه، اشتهارونه ،رسالې، او کتابونه صرف اوصرف داحنافو دتحقير،توهين ،تذليل، او تضحيک ،لپاره وقف دي .ديونام نهادعالم کتاب راته دپلچرخي په زندان کې يواهلحديث ديوځوورځولپاره راکړو.

ددې کتاب دانداز څخه معلوميده چې دادکوم عالم تصنيف نه دی بلکې ديوځورسالوڅخه يې يوځوبې ربطه حوالې راټولې کړي دي ، دانه علمي تصنيف وو ،اونه تحقيقي ،البته مصنف يې دغلط فهمۍ ښکاروو ،اوداګمراه رساله دکفارواودمرتدينودزندان دتورو ديوالو نو شاته په ماباندې باعث شوه چې ديهوديانو ، اوعيسويانو ،په زندان کې ددوي ددې روحاني اولادپه خلاف قلم راواخلم. دمشت نمونه يې خروارپه طريقه دلامذهبويوګمراه کونکوعباراتونوته ستاسو پام رااړوم ،اوستاسوداغلط فهمي لرې کوم چې ولې مې په دې حساس وخت کې ددوي په خلاف ليکل وکړل؟ يوغيرمقلد ليکي :

(۱) زه وايم چې مقلد هرڅوک چې وي جاهل وي که جاهل نه وي نوتقليد دڅه لپاره کوي تقليد دجاهلانو کار دی اوجاهلان يې کوي څوک چې دعلم اوعقل خاوندوي هغه دڅه لپاره تقليد کوي. (مسئله رفع اليدين ،ص ۴۰)

(۲) لکن تاسو دړندواِمامانو ړوند تقليد کوي. (مسئله رفع اليدين ،ص ۴۰)

(۳) راهنمائی به بيچاره مقلدڅرنګه وکړي دهغه خوسترګې هم ړندې دي اوزړه هم (مسئله رفع اليدين، ص ۴۲)

(۴) مقلد چونکه بدنيته اومطلبی وي نوپه همدی وجهې د احاديثو په معامله کې بدنصيبه وي. (مسئله رفع اليدين ،ص ۵۷) دنوروزهريله خبرولپاره دامين الله پشاوری کتابونه کتلي شی چې په التحقيق السديدکې يې بې شميره ځايه احنافوته کافران ويلی دي (معاذ الله).

(۶) دالحق الصريح په ج ۱ص ۲۱۷ دوهمه چهپائی کې يې انبيا وو ته زنا ثابته کړې ده (معاذالله).

(۷) په ج ۱ص ۴۰ص ۱۶۳وج ۴ ص ۱۶۳ کې يې ډيروصحابه وورضی الله عنهم ته دجهل نسبت کړی دی.

په فتاوی الدين الخالص ج ۲ص ۲۲ پښتوکې يې بي بي عايشی رضي الله عنها ته بې وقوفه ويلی ده ،معاذالله.

(۸) په حکمة القران ص ۳۹۴ کې ادم عليه السلام ته دتقصير اودفتنوځای ته حاضريدونکي ويلی دی، معاذالله.

(۹) دحکمة القرءان ص ۱۱۸ کې ليکی چې (عبادة اوشهوات نه جمع کيږي) بيا په ص ۳۸٦ کې ليکي معصية په دوه قسمه دی (۱) معصية اساسها الکبر. (۲) معصية اساسها الحرص والشهوة اولني معصيت دابليس دی اودوهم معصية دادم عليه السلام دی. (حکمة القرءان ص ۳۸٦) يعني دادم عليه السلام څخه کبير ګناه شويده اومنشاورته حرص اوشهوة دی اومخکې يې ليکلي ووچې شهوة دعبادة سره نه جمع کيږي.

(۱۰)يوه رساله يې ليکلې ده په نامه د(دجمعې دلمانځه نه مخکې دڅلور رکعته سنتو حيثيت )ددې په ص ۷کې ليکي چې دادصحابي قول دی اوبياپه ص ۲۰ کې ليکي چې ددې بدعت څخه ځان وساتي انتهی يعنې دصحابي دافعل بدعت دی.

## التـــــنويـــــرات

### التنوير الأول:

## د لامذهبو د رفع اليدين اود امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله رفع اليدين په منځ کې فرقونه

۱-دغه امامان د رفع اليدين مسئلې ته مسئله منصوصه متعارضه وايي. او لامذهبان ورته د عقيدو مسائلو په شان مسئله منصوصه غير متعارضه او غير محتمل التأويل وايي.

۲-امامان د رفع اليدين اود ترک د رفع اليدين دواړه قسمه احاديث مني. او لا مذهبان د ترک د رفع اليدين له احاديثو څخه منکر دي.

۳-امامان داوړه قسمه احاديث مني اود تعارض له وجهې پکې تطبيق کوي، که دا نه وه ممکنه بيا ترجيح ورکوي اوکه دا نه وه ممکنه بيا په نسخه قول کوي اوکه دا هم نه وه ممکنه نو بيا توقف کوي. لکه څرنګه چې د تعارض حکم دی. لکن لا مذهبان خو اول په دې احاديثو کې تعارض نه مني، او که يې ومني نو بيا ددې اهل نه دي چې بيا تطبيق وکړي، يا ترجيح، يا په نسخ قول وکړي او يا توقف وکړي. او اهل يې ځکه نه دي چې مجتهدين نه دي. نو دوي نه په خپله مجتهدين دي او نه هم د بل مجتهد پيروي کوي. لهذا د امامانو رفع اليدين په اُصولو باندې بناء دی اود لا مذهبو رفع اليدين د ترک د رفع اليدين له احاديثو څخه په انکار باندې بناء دی.

۴-د امامانو په رفع اليدين او په ترک د رفع اليدين دواړو کې ثواب دی، ځکه چې دوی مجتهدين دي. مجتهد اود مجتهد مقلد په هر صورت کې مأجور وي. [کما فی حديث مسلم/ج ۲/ص ۷۶].

اود لا مذهبو رفع اليدين ګناه ده، ځکه چې غير مجتهد چې په غير واضحه مسئله کې د مجتهد پيروي و نه کړي نو که حق ته ورسيږي هم ګناهګار دی او که خطاء شي هم ګنهګار دی. [نووي شرح مسلم/ج ۲/ص ۷۶].

۵-د امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ او امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په مذهب د احنافو لمونځ د ترکِ رفع اليدين په وجه نه باطل دی او نه هم مکروه دی. په حرمينو کې چې د څلورو واړو مذاهبو خلک را جمع کيږي نو هيڅ شافعي او نه هم

كوم حنبلي په هيڅ كوم حنفي او مالكي باندې د ترکِ رفع اليدين په وجهه اعتراض نه دی کړی. او لا مذهبان د ترکِ رفع اليدين په وجهه د احنافو او مالكيانو لمونځ ته فاسد وايي.

**التنـوير الثـاني:** اهل السنة والجماعت پدې مسئله كې د ترک د د رفع الدين عنوان لگوي دعدم د رفع اليدين عنوان نه لگوي، د ترک د رفع اليدين معنى داده چې نبي صلى الله عليه وسلم په اول كې رفع اليدين كړي دي او بيا يې پريښي دي او د عدم در فع اليدين معنى داده چې نبي صلى الله عليه وسلم بلكل رفع اليدين ندي كړي، نو كه زمونږ په اكابرو كې چا په عدم تعبير كړى وي نو د هغې څخه به ترک مراد وي، نو مونږ د رفع اليدين ثبوت د منسوخ په مرتبه كې منو، په اول كې نبي صلى الله عليه وسلم رفع اليدين كول بيا يې پريښودل.

**التنوير الثالث: مدعي څوک دی؟** د مدعي ډير تعريفونه وو چې په اصولو د مناظرې كې مخكې ذكر شوي دي، يو تعريف داوه، چې (من نصب نفسه لاثبات الحكم بالدليل او التنبيه) د دې تعريف مطابق من وجه اهل السنت والجماعت احناف مدعيان دي، ځكه چې مونږ نفس رفع اليدين قبل الركوع او بعد الركوع او بعد الركعتين مكروه او منسوخ گڼو او دلا مذهبو وكتوري اهلحديثو رفع اليدين حرام گڼو، ځكه چې د دوي رفع اليدين د ترک د رفع اليدين د احاديثو څخه په انكار بناء دى، وكتوري اهل حديث د ترک د رفع اليدين لسگونه احاديث نه مني، او من وجه وكتوري اهلحديث مدعيان دي ځكه چې هغوي قبل الركوع او بعد الركوع او بعد الركعتين رفع اليدين ته سنت او يا واجب وايي.

د باقي تعريفاتو مطابق مدعيان غير مقلدين دي.

**التنوير الرابع: داهل سنت والجماعت احنافو دعوه:** ۱- نبي كريم صلى الله عليه وسلم قبل الركوع او بعد الركوع او بعد الركعتين، همدارنگه د لمانځه په داخل كې، نور رفع اليدينونه هميشه ندي كړي.

۲- بلكې د وفات څخه مخكې يې پريښي دي، يعني متروک دي.

۳- د بې ته سنت ويل باطل دی، خلاصه دا چې ثابت دي خو متروک دي، هميشه يې ندي كړي، لكه د سجدو رفع اليدين چې ثابت دي، لكن متروک دي، د وفات څخه مخكې يې پريښي دي.

**التنوير الخامس: مواضع ثبوت رفع اليدين:** په څلورو رکعته لمونځ کې شپږویشت انتقالات یعنې حرکتونه دي، اته انتقالات د رکوع دي (څلورو رکوعاتو ته څلور ټيټيدل او څلور ترينه جګيدل) او شپاړس انتقالات او حرکته دسجدو دي او يو د اول رکعت او بل د دريم رکعت دی دا ټول (۸+۲+۱۶=۲۲) دوه ويشت کيږي، د دوهم رکعت حرکت بعينه د سجدو څخه د راپورته کيدلو حرکت دی او د څلورم رکعت حرکت هم بعينه د سجدو څخه د راپورته کيدلو حرکت دی، ځکه مو مستقل شمار نه کړل او وکتوري اهلحديث خو په څلور رکعته لمونځ کې دوه جلسې د استراحت هم کوي لهذا دهغوي په څلور رکعته لمونځ کې اته ويشت انتقالات دي، پدې ټولو کې رفع اليدين ثابت دی، مثلاً په ابن ماجه صـ ۶۲، باب رفع اليدين اذا رکع واذا رفع رأسه من الرکوع کې د يو حديث الفاظ داسې دي چې: کان رسول الله يرفع يديه مع کل تکبيرة فی الصلوة المکتوبة ،همدارنګه دحضرت أنس رضی الله عنه دحديث الفاظ داسې دي چې أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يرفع يديه فى الركوع والسجود (رواه ابو يعلى واسناده صحيح، اثار السنن صـ ۱۳۱)، دحضرت جابر رضی الله عنه په حديث کې راځي چې: کان رسول الله صلی الله عليه وسلم يرفع يديه فی کل تکبيرة من الصلوة المکتوبة (رواه احمد فی مسنده ، اعلاء السنن ج ۳صـ ٦٧)

همدارنګه د عبد الله بن عمر رضی الله عنه په حديث کې راځي چې كان يرفع يديه فى كل خفض ورفع وركوع وسجود وقيام وقعود وبين السجدتين ويذكر أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يفعل ذلک، (رواه الطحاوي فی مشکل الاثار (اعلاء السنن ج ۳صـ ٦٦) رجاله ثقات وما ادعاه الحافظ من كون هذه الرواية شاذة غير صحيح ،همدارنګه په نسائي باب رفع اليدين للسجود صـ ۱۶۵) کې د مالک بن حويرث رضی الله عنه روايت دی چې، أنه رأى النبي صلى الله عليه وسلم رفع يديه فى صلوته واذا ركع واذا رفع رأسه من الركوع واذا سجد واذا رفع رأسه من السجود حتى يحاذي بهما فروع أذينه.

خلاصه: دا چې په څلورو رکعته لمونځ کې (۲۶) رفع اليدينونه ثابت دي، لکن دې ټولو ته په ايمه يې اربعه وو کې هيڅ يو سنت ندي ويلي، نو پدې اتفاق دی چې په رفع اليدين کې نسخه واقع شوې ده ،بيا دنسخ په ترتيب کې د وه احتماله دي، اول: داچې د قلت څخه د کثرت طرفته نسخ راشي او دوهم: داچې د کثرت څخه د قلت طرفته نسخ راشي ، اول احتمال باطل دی، ځکه چې که د قلت څخه د کثرت طرفته نسخ راغلې وی، نو بيا د هر انتقال سره رفع الدين پکار وو ، يعنې بيا (۲۶) رفع اليدينونه پکار وو، حالانکې (۲۶) رفع اليدينونه هيڅوک هم نه کوي او هيڅوک هم ورته سنت نه وايي، نو دوهم احتمال متعين شو چې په رفع اليدين کې نسخ د کثرة څخه د قلت طرفته ده، اول رفع اليدينونه ډير وو بيا کميدل تر دې چې يو د تکبير تحريمه رفع اليدين پاتې شو.

**التنوير السادس:** د وكټوري اهلحديثو دعوه: وكټوري اهلحديث په څلور ركعته لمونځ كې څلور ځايه رفع اليدين كوي ۱- تكبير تحريمه سره ۲- قبل الركوع، ۳- بعد الركوع ۴- عند الركعة الثالثة، چې دا ټول لس رفع اليدينونه كيږي.

نو دغير مقلدينو په نيز په څلور ركعتي لمونځ كې په څلورو ځايونو كې لس واري رفع اليدين كول سنت او يا هم واجب دي. د اول ركعت په شروع كې. او دريم ركعت ته د پاڅيدو په وخت كې، او څلور ور كوع ګانو ته د ټيټيدلو او ترې نه د جيګيدو په وخت كې، نو د دوي د دعوې تقريبا شپږ اجزاء دي.

۱-په څلور ركعتي لمونځ كې په څلورو ځايونو كې د لسو رفع اليدينو ثبوت.

۲-ددې رفع اليدينونو د كولو حُكم: چې دا څلور ځايه رفع اليدين واجب دي، يا سنت دي، يا د نبي عليه السلام دايمي عمل او يا هم د نبي عليه السلام آخري عمل دی.

۳-ددې رفع اليدينونو د تاركينو دلمونځ حكم: چې كه چا قبل الركوع او بعد الركوع او عند الركعة الثالثة رفع اليدين ونه كړل د هغه لمونځ فاسد دی او يا باطل ؟

۴-په پاتې اتلسو ټيټيدلو او جګېدلو كې د رفع اليدين نفي.

۵-او ددې حكم: چې په دې اتلسو ځايونو كې رفع اليدين يا منسوخ دي، يا متروك دي، يا حرام دي او يا مكروه دي.

۶-كه چا د سجدو رفع اليدين وكړل لمونځ يې فاسد او يا باطل دی، نو غير مقلد به په دليل كې داسې حديث نه پيش كوي چې په هغې كې پدې څلورو واړو ځايونو كې د رفع اليدين ذكر نه وي، ځكه چې كله چې په څلورو ځايونو كې لس رفع اليدينه سنت شي، نو بيا ددې ټولو په پرېښودلو هم لمونځ خلاف سنت ګرځي او ديو په پرېښودلو هم لمونځ خلاف سنت ګرځي، نو په كوم حديث كې چې پدې څلورو ځايونو كې دلسو رفع اليدينونو ذكر نه وي، بلكې ددې څخه كم وي، نو بيا خو په داسې حديث باندې عمل كول خپله د غير مقلدينو په نيز خلاف السنة دي، همدارنګه به داسې حديث هم نه پيش كوي چې ددې څلورو ځايونو څخه په زياتو كې پكې رفع اليدين ذكر شوی وي، مثلاً: د سجدو د رفع اليدين ذكر پكې وي او يا پكې عند كل تكبير رفع اليدين ذكر وي، يا پكې في كل خفض ورفع رفع اليدين ذكر شوی وي، ځكه چې دداسې احاديثو له وجې خو خپله د غير مقلدينو لمونځ خلاف سنت ثابتيږي ځكه دا رفع اليدينونه خو د غير مقلدينو په لمونځ كې نه شته، همدارنګه داسې حديث هم د غير مقلد لپاره دليل نه شي كيدلې چې په هغې كې صرف د رفع اليدين ثبوت راغلی وي، ځكه چې د غير مقلدينو دعوه ددوام ده، نفس ثبوت خو اتفاقي دی، لكه د سجدو د رفع اليدين نفس ثبوت چې اتفاقي دی، نو غير مقلدين به په حديث كې دوام ښايي، همدارنګه به په حديث كې دا ښايي چې ددې متنازع فيه رفع اليدين څخه بغير لمونځ نه كيږي، همدارنګه به په حديث كې د سجدو

درفع اليدين نفې ښايي، همدارنګه به دا ښايي چې که چا دسجدو رفع اليدين وکړل نو دهغه لمونځ فاسد او يا باطل دی او يقين وکړئ چې داسې يو حديث هم نه شته.

**د احنافو جواب دعوه:** په څلور رکعتي لمونځ کې شپږ ويشت واړي تيتېدل او پورته کېدل دي:

۱-په دې ټولو کې رفع اليدين ثابت دي، يعنې په څلور رکعته لمونځ کې شپږ ويشت واړي رفع اليدين ثابت دی.

۲-په دې کې يواځې د تکبير تحريمه رفع اليدين سنت دی او باقي ټول منسوخ او متروک دي.

**التنوير السابع:** د قبل الرکوع ،بعد الرکوع او عند الرکعة الثالثة لـ.رفع اليدين په ثبوت کې اختلاف نشته، بلکې اختلاف پدې ځايونو کې د رفع اليدين په دوام کې دی، لامذهبه وکټوريان ددوام مدعيان دي او احناف او مالکيه يې ددوام څخه منکر دي، نو که لامذهبه وکټوري اهلحديثو داسې دلايل پيش کړل چې په هغې کې پدې دريو ځايونو کې د رفع اليدين ثبوت وو، نو تقريب به تام نه وي، دليل به ددعوې سره مطابق نه وي ځکه چې دعوه ددوام ده او په دليل کې به ثبوت ذکر شوی وي، حالانکې ددوام ذکر په يو حديث کې هم نشته، کوم حديثونه چې دوی پيش کوي هغه ټول صرف په ثبوت دلالت کوي، يو هم په دوام دلالت نه کوي.

فانقيل: چې په دې احاديثو کې په بعضو کې (کان يرفع) راغلی دی، او کلمه د کان چې په مضارع داخله شي، نو استمرار فايده کوي، معلومېږي چې پدې ځايونو رفع اليدين دايم او مستمر وو؟

قلنا: کان چې په مضارع داخل شي نو مستلزم دوام او استمرار لره نه وي، په ډيرو احاديثو کې کان په مضارع داخل شوی دی او افاده ددوام يې نده کړې، لکه کان يطوف علی نسائه بغسل واحدٍ.

خپله نياز محمد کنړي عرف امين الله پشاوري په يو ځای کې ليکلي دي چې (کان يخلل لحيته) کې کان هميشه د پاره ددوام او داستمرار لپاره په احاديثو کې نه راځي، بلکې په احيانا وقوع باندې هم دلالت کوي (الحق الصريح ج ۲ص ۳۳۵، کتاب الطهارة باب سنن الوضوء)

فانقيل: چې د عبد الله بن عمر رضی الله عنه په يو حديث کې ددې رفع اليدينونو ذکر دی او په آخر کې يې دا الفاظ دي چې فما زالت تلک صلوته حتی لقی الله؟

قلنا: دا روايت موضوعي دی، عصمه بن محمد پکې کذاب دی، دلامذهبو ددلايلو په اخر کې مونږ ددې حديث تحقيق ليکلی دی.

**التنوير الثامن:** محمد انورشاه الکشمیري رحمه الله فرمایي: چې رفع اليدين او ترک د رفع اليدين دواړه په تواتر سره ثابت دي، د رفع اليدين روايات متواتر بالاسناد دي، او د ترک د رفع اليدين روايات متواتر با التعامل دي، انتهى او تواتر التعامل په نظر سره تواتر الاسناد ته راجح وي، ديو شي دثبوت لپاره دصحابه وو او دتابعينو تعامل د ټولو څخه غټ دليل وي، ځکه چې دصحابه وو د جماعت تشکيل خپله رسول الله صلى الله عليه وسلم کړی دی، پدې مقدس جماعت کې به صرف هغه اعمال رواجيدل په کومو به چې د دربار رسالت مهر لګيدلی وو، نو دصحابه وو تعامل دنبي صلى الله عليه وسلم د سنتو ترجمان وو ،لهذا يو عمل به په صحيح سند ثابت وو بيا به هم امام مالک تعامل داهل مدينه وو ته وربانديې ترجيح ورکوله، امام ترمذي رحمه الله چې د رفع اليدين روايت ذکر کړی دی نو وروسته يې فرمايلي دي چې وبهذا يقول بعض اهل العلم من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم يعني رفع اليدين د بعضو صحابه وو عمل وو او بيا يې چې د ترک د رفع اليدين روايت ذکر کړی دی، نو وروسته يې فرمايلي دي چې وبه يقول غير واحد من أهل العلم من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم والتابعين الخ يعني ترک د رفع اليدين د بې شميره صحابه وو او تابعينو عمل وو، نو امام ترمذي د قايلينو د رفع اليدين څخه په (بعض) تعبير کړی دی او د قايلينو د ترک د رفع اليدين څخه يې په (غير واحد) سره تعبير کړی دی، يعني د اکثرو صحابه و او تابعينو عمل ترک د رفع اليدين وو.

**التنوير التاسع:** په کوموا احاديثو کې چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د لمونځ بيان راغلی دی نو هغه د رفع اليدين د رانقلولو او نه رانقلولو په اعتبار سره په درې قسمه دي.

اول: هغه احاديث چې په هغې کې قبل الركوع او بعد الركوع رفع اليدين صراحةً ذکر شوی دی.

دوهم: هغه احاديث چې په هغې کې صراحةً دلمانځه په داخل د رفع اليدين نفي ذکر شوې ده.

دريم: هغه احاديث چې دلمانځه آداب پکې ذکر شوي دي ، لکن نه پکې صراحةً رفع اليدين ذکر شوی دی او نه ترک د رفع اليدين، که قواعدو ته نظر وکړو نو دا هم داحنافو دلايل دي، ځکه چې (السکوت فی معرض البيان بيان) نو که صرف داولو د وارو قسمونو تقابل وکړو، نو بيا د رفع اليدين روايات زيات دي ، لکن دريم قسم احاديث هم دترک د رفع اليدين دلايل دي لهذا د وهم او دريم قسم احاديث چې سره يو ځای کړو نو بيا د ترک د رفع اليدين روايات اسناداً هم زياتيږي، وروسته به مونږ تقريبا دوه سوه دلايل وليکو ان شاء الله.

**التنوير العاشر:** بالفرض كه د رفع اليدين روايات زيات شي نو بيا هم د ازيادت د ترجيح دليل نشي كيدلى، ځكه چې رفع اليدين يو وجودي امر دى، او ترک د رفع اليدين يو سلبي أمر دى او خلک وجودي شى زيات نقلوي، مثلا: زيد يو كار صرف يو ځل كړى وي، نو هر څوک يې رانقلوي، لكن په زرګونو ځله يې پرېښى وي بيا هم څوک د اترک او پرېښودل نه رانقلوي، كله بادشاه يو ولايت ته صرف يو ځل سفر كړى وي، نو په زرګونو اخبارونو كې راغلى وي او چې په سلګونو ورځې نه وي ورغلى، نو دا نه ورتلل يې په يو اخبار كې هم نه وي، البته كله كه نه ورتلل اهم وي، نو بيا يې دا اخبارونو والا رانقلوي، نو ترک د رفع اليدين دومره اهم دى، چې صحابه وو رانقل كړى دى، يا مثلا: زيد په عمرو باندې دزرو روپو دعوه وكړه بيا يې سل شاهدان پيش كړل، او مدعى عليه (عمرو) صرف دوه شاهدان پيش كړل چې ما داقرض روپى وركړې دي، نو د مدعى عليه په جانب كې به فيصله كيږي، همدارنګه كه غير مقلد سل دلايل د رفع اليدين پيش كړي او مدعى عليه ورته وايي چې دا ټول صحيح دي، لكن زما سره يو دليل دى چې دا يې بيا وروسته پرېښي وو نو همدې يو دليل ته به ترجيح وي.

**التنوير الحادي عشر:** د رفع اليدين په مسئله كې د وكټوري اهلحديثو اصول: وكټوريان مجتهدين ندي لهذا ديوا اصل پابند ندي، دهرې مسئلې لپاره يې جدا جدا اصول دي، په يوه مسئله كې يې يو اصل وي بيا په بله مسئله كې دهمدې خپل اصل څخه منكر وي، وكټوريان چې په مناظرو كې كوم اصول استعمالوي يو څو يې دادي:

۱-وكټوريان وايي د رفع اليدين حديث متفق عليه دى لهذا ددې مقابل يا مرجوح دى او يا باطل دى؟

قلنا: چې ډير متفق عليه روايات دي چې تاسوورباندې عمل نكوئ، په اول جلد كې د وكټوري اهلحديثو د امام بخاري او صحيح البخاري سره شديد اختلاف وګورئ، كه غير مقلد دا اصل پيش كړو نو ته به ورته هغه مواضع پيش كړې چې خپل دا اصل يې پكې پرېښى دى.

۲-كله وكټوريان وايي چې كوم حديث چې سنداً زيات صحيح وي په هغې عمل پكار دى او د رفع اليدين حديث په بخاري كې دى او دبخاري سند و نه زيات صحيح دي؟

قلنا: په صحيح البخاري كې بال قائما دى او په ترمذي كې باب النهى عن البول قائما دى او دواړو نارينه اكثر د ترمذي په روايت عمل كوي او زنانه خو يې ټول عمر د ترمذي په روايت عمل كوي.

۳-كله وكټوريان وايي چې رفع اليدين د اهل الحرمين عمل دى؟

قلنا: اولاً-دا اهل الحرمين عمل ستاسو څويم دليل دى؟

ثانياً: په حرمينو کې (۸۰۰) کاله حنفي علماوو امامت او خطابت کړی دی، دخلافت عثماني د سقوط څخه وروسته پکې څلور جاينمازه وو ځکه چې اهل حق څلور مذهبه دي او س هم هلته مقلدين دي، نو د حرمينو ټول تاريخ ته ولې نه ګورئ؟

ثالثاً: په حرمينو کې شل رکعته تراويح دي او تاسو يې نه منئ، هلته دواړه خطبې په عربی دي او تاسو يې په نورو ژبو وايئ، هلته دجمعې دلمانځه دوه اذانونه دي او ستاسو يو دی، په اول جلد کې د وکټوريانو داهل الحرمين سره شديد اختلاف وګورئ.

۴- کله وکټوريان وايي چې کوم طرفته چې احاديث زيات وي مونږ په هغې عمل کوو؟

قلنا: دسجدو رفع اليدين تقريبا دلسو صحابه وو څخه نقل دی او ترک يې تقريبا ددريو صحابه وو څخه نقل دی، نو ولې دسجدو رفع اليدين نه کوئ؟ همدارنګه انما الماء من الماء يعنې صرف په جماع غسل نه شته ترڅو چې انزال نه وي شوی دا د ډيرو صحابه وو څخه نقل دی، لکه: عثمان، علي، طلحه، زبير، ابو ايوب، أبی ابن كعب رضی الله عنهم او په مقابل کې يواځې د ابو هريره رضی الله عنه حديث دی چې په نفس جماع سره غسل شته حالانکې انما الماء من الماء د ټولو وکټوريانو مسلک ندی همدارنګه د التنوير التاسع لاندې تحقيق تير شو چې د ترک روايات زيات دي.

**التنوير الثانی عشر: وجوه ترجيح ترک رفع اليدين:** ۱- داحنافو په نيز داحاديثو د تعارض په وخت کې هغو احاديثو ته ترجيح ورکول پکار دي کوم چې اوفق بالقرآن وي او اوفق بالقرآن د ترک د رفع اليدين احاديث دي، وروسته به مونږ د احنافو په دلايلو کې قرآني دلايل ذکر کړو ان شاء الله.

۲- دتکبير تحريمه رفع اليدين اتفاقاً سنت دی، په سجدو کې ترک رفع اليدين اتفاقاً سنت دی، پاتې شو قبل الرکوع او بعدالرکوع او عند الرکعة الثالثة نو دا به په يو اتفاقي ځای ورقياس کړو. نو که تکبير الرکوع په تکبير التحريمه ورقياس کړو، نو بيا رفع اليدين پکار دی لکن دا قياسِ مع الفارق دی ځکه چې تکبير تحريمه فرض دی او تکبير الرکوع سنت دی، نو ضرور به يې به تکبير السجود ورقياسوو، دتکبير السجود سره رفع اليدين نشته نو دتکبير الرکوع سره به هم نه وي.

۳- د رکوع تکبير که په تکبير تحريمه ورقياس کړو، نو دا به قياس الوسط بالطرف شي او که په تکبير السجود يې قياس کړو نو دا به قياس الوسط بالوسط شي او په تکبير السجود کې رفع اليدين نشته لهذا په تکبير الرکوع کې يې هم نه کول پکار دي.

۴- په احاديثو کې دهر انتقال سره رفع اليدين ثابت دی او غير مقلدين دهر انتقال سره رفع اليدين نه کوي لهذا اتفاقاً درفع اليدين په مسئله کې نسخه واقع شوې ده، او س دنسخ په ترتيب کې دوه احتماله دي اول دا چې نسخه دقلت څخه د کثرت طرفته وي، او دوهم دا چې دکثرت څخه دقلت طرفته وي، اول احتمال باطل دی، ځکه چې که نسخ دقلت څخه دکثرة طرفته وي، نو بيا د هر انتقال سره رفع اليدين پکار دی ولاقائل به احد، فتعين الثانی چې نسخه دکثرت څخه دقلت طرفته ده.

اول: دهر انتقال سره رفع اليدين کيدلو بيا راکم شو، پنځه ځايه به کيدلو (۱)عندالتحريمه (۲) قبل الرکوع (۳) بعدالرکوع (٤) بعدالرکعتين (عند الرکعة الثالثة) (۵) بين السجدتين بيا راکم شو څلورو ځايونو ته عند التحريمه، قبل الرکوع، بعد الرکوع، بعدالرکعتين بيانورهم راکم شو درېو ته عند التحريمه، قبل الرکوع، بعدالرکوع، بيا نورهم راکم شو دوو ته عند التحريمه او قبل الرکوع بيا نورهم کم شو صرف يو پاتې شو عند التحريمه، ځکه چې په احاديثو کې مختلف قسم رفع اليدينونه راغلي دي ۱-صرف يو ځای د تکبير تحريمه سره ۲-دوه ځايه عند التحريمه وقبل الرکوع ۳-صرف درې ځايه عند التحريمه وقبل الرکوع وبعدالرکوع ٤-څلور ځايه درې مخکښې او څلورم بعدالرکعتين ۵-پنځه ځايه څلور مخکښې او پنځم بين السجدتين ۶-دهر انتقال سره.

۵-دلمونځ تاريخ د ترک د رفع اليدين احاديثو ته ترجيح ورکوي ځکه چې په لمونځ کې دحرکت څخه سکون طرفته تغير راغلی دی، دسکون څخه دحرکت طرفته تغير ندی راغلی.

۶-پدې مسئله کې دنبي صلی الله عليه وسلم فعلي روايات متعارض دي او قولي سالم عن المعارضه دي لهذا په قولي احاديثو عمل پکار دی او قولي احاديث يو اځې د ترک په باره کې دي.

۷-عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ترک د رفع اليدين روايت کړی دی او خپل عمل يې هم ترک د رفع يدين وو او درفع اليدين د راويانو عمل بيا رفع اليدين نه وو، درفع اليدين مرکزي راوي عبد الله بن عمر رضی الله عنهما دی او دده خپل عمل ترک د رفع اليدين وو (عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله، قَالَ: «صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَلَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ» (طحاوي، باب رفع اليدين رقم ۱۳۲۳).

عبدالعزيز بن حکيم فرمايي چې: «رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةِ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُمَا فِيمَا سِوَى ذَلِكَ» (مؤطا امام محمد صـ ۹۰)

۸-د ترک د رفع اليدين راويان زيات أفقه دي او تفقه الرواة وجه د ترجيح ده، (تدريب الراوي صـ ۴۴ ج ۱) په صحابه وو کې د ترک د رفع اليدين مرکزي راوي عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دی او د رفع اليدين مرکزي راوي عبد الله بن عمر رضی الله عنهما دی او عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه په تفقه کې د عبد الله بن عمر رضی الله

عنهما څخه زيات وو او په تابعينو کې د ترک د رفع اليدين مرکزي راويان علقمه او اسود دی او د رفع اليدين راوي نافع دی او علقمه او اسود په تفقه کې د نافع څخه زيات وو.

۹- په صحابه وو کې د ترک راويان مشران صحابه کرام دی لکه عمر، علي، عبدالله بن مسعود، او عشره مبشره رضی الله عنهم او خلفاء راشدين رضی الله عنهم (اعلاء السنن) او د رفع اليدين راويان بيا په دې کيفيت نه دي.

۱۰- بې ذکره عمل په لمانځه کې نشته او د رکوع رفع اليدين بې ذکره عمل دی.

۱۱- په طرفينو کې ذکرونه مقرون بالعمل دي (د اول الله اکبر سره د تکبير تحريمه رفع اليدين دي او په اخر کې د سلام سره مخ يو طرف او بل طرفته اړول دي)، نو طرفين يو شان دي، نو منځني اذکار هم يو شان کيدل پکار دي، چې يا ټول مقرون بالعمل شي او يا ټول مجرد شي، او ظاهره ده چې اکثر مجرد دي، يعنې رفع اليدين ورسره نه شته نو په متنازع فيه ځايونو کې يې هم نه کول پکار دي.

## التنوير الثالث عشر: د ويکټوري اهلحديثو له طرفه دصحيح البخاري او صحيح مسلم په راويانو جرحې:

منقول از جزء ترک رفع اليدين.

(۱) سفيان ثوري رحمه الله المتوفی (۱۶۱) هـ دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سننو اربعه وو اتفاقي راوي دی، لکن د رفع اليدين روايت يې د وکټوري اهلحديثو د مزاج څخه مخالف دی، نو اعتراضات پرې کوي، دا اعتراضات د وکټوري اهلحديثو په رسالو کې وګوره مثلاً: نور العينين (ص۴۸، ۱۳۸، ۱۴۰، ۲۱۶، ۲۱۷، ۲۲۷، ۲۲۸، ۲۲۹، ۲۸۸) همدارنګه ابکار المنن للمبارکفوری (ص ۲۱۳)

(۲) قتادة رحمه الله المتوفی سنـ (۱۱۷ هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سننو اربعه وو اتفاقي راوي دی، لکن د قراءت خلف الامام روايت يې د وکټوري اهلحديثو د مزاج څخ مخالف دی، نو اعتراضات پرې کوي دا اعتراضات وګورئ د وکټوريانو په رسالو کې لکه: نور العينين ص۱۰۲، ۱۹۰) همدارنګه علمي مقالات (ج ۱ ص ۶۰۲) همدارنګه تحقيق الکلام للمبارکفوری (ج۲ ص۸۵) خير الکلام لمحمد ګوندلوی ص (۳۰۵) توضيح الکلام لارشاد الحق اثري ص (۶۸۸)

(۳) امام سعيد بن ابی عروبه رحمه الله المتوفی (۱۸۵هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دی، لکن غير مقلدينو پرې اعتراضات کړي دي، دا اعتراضات وګورئ د وکټوري اهلحديثو په رسالو کې مثلاً: نور العينين: ص۱۰۲، ص۱۸۹) همدارنګه الفتح المبين (ص۸۹)

(۴)امام زهري رحمه الله المتوفي (۱۲۴هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى لكن غير مقلدينو پرې اعتراضات كړي دي، دا اعتراضات وګورئ دوكتهوري اهحلديثو په رسالو كې مثلاً: نور العينين ص۱۱۸، ص۲۶۱، ص۳۲۹، ص۳۳۲، الفتح المبين ص۶۲، ابكار المنن للمباركفورى ص۴۳، ص۶۰)

(۵) يزيد بن ابى زياد رحمه الله المتوفي (۱۳۶هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى، لكن د رفع اليدين روايت يې د وكتهوزي اهحلديثو د مزاج مخالف دى، نو اعتراضات پرې كوي، دا اعتراضات وګورئ د وكتهوري اهحلديثو په رسالو كې مثلا: نور العينين ص۱۴۵ص۱۴۹، ص۲۱۷، ص۲۲۹، ص۲۹۰ص۲۹۱)

(۶) امام حميد الطويل رحمه الله المتوفي (۱۴۲هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى، لكن ويكتهوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي، دا اعتراضات وګورئ دوكتهوري اهحلديثو په رسالو كې مثلا: نور العينين ص۵۰، ص۱۹۱، علمي مقالات ج۱ص۲۶۳)

(۷) ابو زبير المكي رحمه الله المتوفي (۱۲۶هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى، لكن ويكتهوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي، دا اعتراضات وګورئ دوكتهوري اهحلديثو په رسالو كې مثلا: نور العينين (ص۵۰، علمي مقالات ج ۱ص ۲۷۶)

(۸) ابراهيم نخعي رحمه الله المتوفي (۹۶هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى، لكن ويكتهوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي، دا اعتراضات دوكتهوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلا: نور العينين (ص۱۷۰، ص۱۷۲ص۳۰۸، مترجم جزء رفع اليدين للعلزئى ص۳۶)

(۹) امام ابو بكر بن عياش رحمه الله المتوفي (۱۹۳هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى، لكن ويكتهوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي، دا اعتراضات دوكتهوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلاً: نور العينين ص۲۵۸، ص۳۱۴، الفتح المبين ص۳۳)

(۱۰) امام اسماعيل بن أبى خالد المتوفي (۱۴۶هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى، لكن ويكتهوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي، دا اعتراضات دوكتهوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلا: نور العينين ص۲۵۸، ص۳۱۴، /الفتح المبين ص۳۳)

(۱۱) امام حكم بن عتيبه رحمه الله المتوفي (۱۱۳هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى، لكن ويكتهوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي، دا اعتراضات دوكتهوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلا: نور العينين (ص۲۸۶/ الفتح المبين ۳۳)

(۱۲) امام حفص بن غياث رحمه الله المتوفي (۱۹۵هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى ،لكن ويكتوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي ، دا اعتراضات دوكتوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلا :نور العينين (صـ ۲۹۶ ، الفتح المبين صـ ۲۲)

(۱۳) امام حماد بن ابى سليمان رحمه الله المتوفي (۱۲۰هـ) معلقاً دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى ،لكن ويكتوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي ، دا اعتراضات دوكتوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلا :نور العينين (صـ۲۸۷ ، علمي مقالات ۲۶۷)

(۱۴) عطاء بن السايب رحمه الله المتوفي (۱۳۶هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دي ،لكن ويكتوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي ، دا اعتراضات دوكتوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلا :نور العينين (صـ۲۸۷ ، علمي مقالات ، ج۳صـ۱۰۵)

(۱۵) امام اعمش رحمه الله المتوفي (۱۴۸هـ) دصحيح البخاري او صحيح مسلم او د سنن اربعه وو اتفاقي راوي دى ،لكن ويكتوري اهحلديثو پرې اعتراضات كړي دي ، دا اعتراضات دوكتوري اهحلديثو په لاندې رسالو كې وګورئ مثلاً :نور العينين (صـ ۴۲، علمي مقالات ج ۱صـ ۲۶۷)

لامذهبه وكتوريان داهلحديث په لباس كې منكرين د احاديثو څرنګه مسلمانان دصحيحينو په احاديثو بدګمانه كوي؟

## التنوير الرابع عشر: د وكتوري اهحلديثو كذب بياني

منقول از جزء ترک رفع اليدين.

**اول دروغ:** زبير على زئى د انكار د احاديثو لپاره دروغ وايي چې امام بخاري رحمه الله دعبدالله بن ادريس روايت د سفيان ثوري رحمه الله د روايت څخه پدې وجه راجح ګڼلى دى چې سفيان ثوري مدلس دى او عبدالله بن ادريس مدلس نه دى (نور العينين صـ۴۸)

نقول : لعنت الله على الكاذبين، دا وجه د ترجيح په هيڅ سند نه د امام بخاري رحمه الله په كوم كتاب كې راغلې ده او نه د دنيا د كتابخانو په بل كوم كتاب كې راغلى ده ، دا په امام بخاري پورې تور دروغ دي.

**دوهم دروغ:** لامذهبه زبير على زئى دانكا د احاديثو لپاره په امام بخاري رحمه الله پورې دروغ وايي چې ابن ادريس بالاجماع ثقه دى (يعنې سفيان ثوري بالاجماع ثقه نه دى) نورا لعينين صـ ۴۸) .

نقول: لعنت الله على الكاذبين، دا وجه د ترجيح د امام بخاري رحمه الله په هيڅ كتاب كې په صحيح سند ثابته نه ده.

تنبيه: سفيان ثوري بالاجماع ثقه دى (تهذيب الاسماء واللغات للنووي ج ۱ رقم ۲۱۴، تهذيب لابن حجر رقم ۲۰۰)

**دریم دروغ:** لامذهبه زبیر علی زئی دانکا د احادیثو لپاره په امام بخاري رحمه الله پورې دروغ وایي چې امام بخاري فرمایلي دي: یو جماعت د عبدالله بن ادریس متابعت کړی دی (نور العینین ص ۴۸)

نقول: لعنت الله علی الکاذبین! دا خبره د امام بخاري رحمه الله په هیڅ کتاب کې نه شته.

**څلورم دروغ:** لامذهبه زبیر علی زئی دانکا د احادیثو لپاره دروغ وایلي دي چې د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په صحیحو متواترو احادیثو کې رفع الیدین ثابت دی (یعنې څلور ځایه رفع الیدین ثابت دی) (نور العینین ص ۹۱) او مخکې یې لیکلي دي چې متواتر هغه حدیث ته وایي چې اقلاً لسو راویانو روایت کړی وي، (نور العینین ص ۱۲۳)

حالانکې د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه پنځو کسانو: امام نافع رحمه الله، سالم رحمه الله محارب بن دثار رحمه الله ابو الزبیر رحمه الله او طاوس رحمه الله د رفع الیدین روایت رانقل کړی دی، همدارنګه دوي د سجدو رفع الیدین هم روایت کړی دی چې د وکټوریانو د مزاج څخه مخالف دی، خلاصه دا چې دلته د لسو عدد نه پوره کیږي چې د متواتر شرط پوره شي، لهذا دا خالص دروغ دي.

**پنځم دروغ:** زبیر علي زئي لیکلي دي چې: *(حدیث مالک بن حویرث من طریق عبدالصمد ویزید بن زریع ومعاویه بن ہشام ہے) صرف معاویہ بن ہشام کے رویت میں سجدوں والے رفع الیدین کا ذکر ہے (نور العینین ص ۹۷)*

نقول: لعنت الله علی الکاذبین! د دنیا د کتابخانو په هیڅ کتاب کې د مالک بن حویرث حدیث من طریق معاویه بن هشام ثابت نه دی، لهذا دا تور ترین دروغ دي.

**شپږم دروغ:** زبیر علی زئي لیکلي دي چې: د جابر بن سمرة رضی الله عنه په حدیث د ټولو محدثینو اجماع ده چې د دې حدیث تعلق د تشهد سره دی، د قبل الرکوع او بعد الرکوع د رفع الیدین سره نه دی (نور العینین ص ۱۲۶)

نقول: لعنت الله علی الکاذبین! په درجنو محدثینو فرمایلي دي چې: د دې حدیث تعلق د قبل الرکوع او بعد الرکوع د رفع الیدین سره دی او د دې حدیث په وجه قبل الرکوع او بعد الرکوع رفع الیدین منسوخ شوي دي لکه:

۱- امام ابو حنیفه رحمه الله المتوفي (۱۵۰) ۲- امام ابن ابی لیلی المتوفي (۱۴۸ھ)

۳- امام سفیان ثوري رحمه الله المتوفي (۱۶۱ھ) ۴- امام مالک المتوفي (۱۷۹ھ)

۵- الامام الفقیه المحدث قاضي عیاض المالکي المتوفي (۵۴۴ھ)

۶- الامام الفقیه المحدث محمود البخاري، المتوفي (۶۱۶ھ)

۷- الامام الفقیه المحدث ابو بکر الکاساني، المتوفي (۵۸۷ھ)

۸- الامام الفقیه المحدث محمد الخوارزمي، المتوفي (۶۵۵ھ)

۹- الامام الفقيه المحدث احمد القرافي المالكي ، المتوفي (۶۸۴ھ)

۱۰- الامام الفقيه المحدث محمد المنجبي ،المتوفي (۶۸۶ھ)

۱۱- الامام الفقيه المحدث عثمان الزيلعی، المتوفي (۷۴۳ھ)

۱۲- الامام الفقيه المحدث ابو محمد الزيلعي ،المتوفي (۷۶۲ھ)

۱۳- الامام الفقيه المحدث مغلطائي ، المتوفي (۶۷۲ھ)

۱۴- الامام الفقيه المحدث محمود العيني ،المتوفي (۸۵۵ھ)

۱۵- الامام الفقيه المحدث ابن نجيم المصري ، المتوفي (۹۷۰ھ)

۱۶- الامام الفقيه المحدث علي القاري ،المتوفي (۱۰۱۴ھ)

۱۷- الامام الفقيه المحدث أبن القصار المالكي، المتوفي (۳۹۷ھ)

۱۸- الامام الفقيه المحدث ابو الحسن القدوري، المتوفي (۴۲۸ھ)

۱۹- الامام الفقيه المحدث محمد السرخسی ،المتوفي (۴۸۳ھ)

۲۰- الامام الفقيه المحدث علامه زمحشری ،المتوفي (۵۳۸ھ) وغيره ډيرو محدثينو دډي حديث په وجه رفع اليدين قبل الركوع او بعد الركوع ته منسوخ وئيلي دي

**اووم دروغ:** لامذهبه زبير علي زئي ليكلي دي چې: دمحمد بن عبدالله الانصاري رحمه الله په طريقه چې دبراء بن عازب رضی الله عنه کوم حديث راغلی دی په هغې کې نفي د رفع اليدين صراحةً نشته(نور العينين صـ۱۴۴)

نقول: لعنت الله على الكاذبين! د محمد بن عبد الله الانصاري رحمه الله په طريقه د براء بن عازب رضی الله عنه په حديث کې نفی د رفع اليدين صراحةً ذکر شوی ده (فكبر فرفع يديه حتى حاذى أذنيه فى اول مرة لم يزد عليها)

**اتم دروغ:** لامذهبه زبير علي زئي ليكلي دي چې: دعبدالله بن ادريس په طريقه چې دبراء بن عازب کوم حديث راغلی دی په هغه کې صراحةً نفي د رفع اليدين ذکر نه دی (نور العينين صـ ۱۴۴)

نقول: لعنت الله على الكاذبين! دعبدالله بن ادريس په طريقه دبراء بن عازب رضی الله عنه په حديث کې صراحةً نفي د رفع اليدين راغلې ده (حتى رأيت ابهاميه قريباً من أذنيه ثم لم يرفعهما)

**نهم دروغ:** لامذهبه زبير علی زئي ليكلي دي چې: د ابو حميد الساعدي په حديث کې په ابن حبان کې دسجدو د رفع اليدين نفي ده (نور العينين صـ۶۵)

نقول: لعنت الله على الكاذبين! په صحيح ابن حبان کې د لا يفعل ذلک فى السجود وغيره لفظ نه شته.

**لسم دروغ:** لامذهبه زبير علي زئي ليکلي دي چې: په ابوداود کې د ابو حميد الساعدي رضی الله عنه په حديث کې د سجدو د رفع اليدين نفې ده (نور العينين ص ۶۵)

نقول: لعنت الله على الكاذبين! په سنن أبي داود کې د لا يفعل ذلک فی السجود وغيره الفاظ نشته.

**التنوير الخامس عشر: د ويکټوري اهلحديثو خيانتونه:**

منقول از جزء ترک رفع اليدين للعلامه عبدالغفار الذهبي حفظه الله تعالى.

**اول خيانت:** زبير علي زئي ليکلي دي چې: امام ابن معين رحمه الله سفيان الثوري ته مدلس ويلي دي او دا يې هم ويلي دي چې د مدلس معنعن روايت حجت نه دی (نور العينين ص ۱۳۴، ص ۱۳۸)

حالانکې امام ابن معين رحمه الله امام سفيان ثوري رحمه الله ته دهغې درجې مدلس ويلي دي د کومو تدليس چې د صحت د حديث سره منافي نه دی، امام ابن معين رحمه الله امام سفيان ثوري رحمه الله عن سعد بن ابراهيم په طريقه مروي معنعن ته على الاعلان صحيح ويلي دي ، (تاريخ ابن معين برواية الدوری ج ۱ص ۱۹۷، رقم ۱۳۷۱، وسنده صحيح)

**دوهم خيانت:** زبير علی زئي ليکلي دي چې: امام ابوداود په يزيد بن أبي زياد جرحه کړې ده (نور العينين ص ۱۴۵)

حالانکې امام ابوداود رحمه الله صراحةً توثيقي کلمات ليکلي دي چې: ثبت لا أعلم أحداً ترک حديثه، د ثبت لفظ اعلى توثيقي کلمه ده (سوالات الأجری علی أبی داود، ج ا ص ۱۵۸، رقم ۱۳۹، وشرح ابن ماجه للمغلطائي ج ا ص ۱۴۷۰، ج ۳ ص ۳۵۱)

**دريم خيانت:** زبير علي زئي ليکلي دي چې: امام دارقطني رحمه الله د عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما حديث ته غير محفوظ ويلي دي (نور العينين ص ۱۳۱)

حالانکې امام ارقطني د ابن مسعود رضی الله عنه حديث من طريق سفيان اسناده صحيح ليکلي دي (علل الحديث للدار قطني ج ۵ ص ۱۷۲)، نو د دارقطني دد ې خبرې نه رانقلول چې: اسناده صحيح، دی صريح خيانت دی.

**څلورم خيانت:** لامذهبه زبير علي زئي ليکلي دي چې: امام حاکم فرمايلي دي چې سفيان ثوري رحمه الله د دريمې طبقې مدلس دی (نور العينين ص ۱۳۸)

حالانکې د امام حاکم په اخري فيصله کې د سفيان عن الاعمش په طريقه روايت ته صحيح على شرط الشيخين ويلي دي . (المستدرک للحاکم ج ١ص ١٢٧، رقم ١٩٦)

نو د امام حاکم د أخري فيصلې نه رانقلول خيانت دی.

**پنځم خيانت:** لامذهبه زبير علي زئي ليکلي دي چې: امام ابن الترکماني الحنفي ،سفيان ثوري رحمه الله ته مدلس ويلي دي (نور العينين ص ١٤٣)

حالانکې امام ابن الترکماني د مخالف د تنبيه لپاره ورته مدلس ويلي دي ،ځکه چې امام ابن الترکماني ، سفيان الثوري عن عاصم بن کليب ، له طريقه د ابن مسعود رضى الله عنه د حديث په باره کې فرمايلي دي چې: صححه ابن خزيمه وحسنه الترمذي، او بيا يې خپله فيصله ليکلې ده چې: والحاصل: رجال هذا الحديث على شرط مسلم (الجوهر النفقى ج ٢ص ٧٧ )

**شپږم خيانت:** لامذهبه زبير على زئي ليکلي دي چې: امام علائي ،سفيان الثوري رحمه الله ته مدلس ويلي دي (نور العينين ص ١٣٥)

حالانکې امام علائي سفيان الثوري رحمه الله ته د دريمې طبقې مدلس ويلي دي (جامع التحصيل ص ١١٣) او امام علائي ښکاره فيصله کړې ده چې :لان جماعة من الأيمة الكبار دلسوا، وقد اتفق على الاحتجاج بهم ولم يقدح التدليس فيهم، كقتادة والاعمش والسفيانين (جامع التحصيل للعلائي ص ٩٨)

**اووم خيانت:** لامذهب زبير علي زئي ليکلي دي چې: امام ذهبي رحمه الله سفيان الثوري رحمه الله ته مدلس ويلي دي (نور العينين ص ١٣٤)

حالانکې امام ذهبي رحمه الله سفيان الثوري رحمه الله ته د هغې درجې مدلس ويلي دي د کومو تدليس چې د حديث د صحت سره منافي نه دی او خپله يې من طريق سفيان الثوري عن زبيد معنعن حديث ته صحيح الاسناد ويلي دي (التلخيص المستدرک ج ١ص ٨٨، رقم ١٩٤) نو اصلي حقيقت نه بيانول خيانت دی.

**اتم خيانت:** لامذهبه زبير علي زئي ليکلي ده چې: امام هيثمي رحمه الله يزيد بن أبي زياد ته ضعيف ويلي دي (نور العينين ص ١٤٥)

حالانکې علامه هيثمي رحمه الله يزيد بن أبي زياد ته حسن الحديث ويلي دي (مجمع الزوايد ج ۸ص ۲۵۸) همدرانګه يې فرمايلي دي چې: وهيثم ويزيد كلاهما من اهل الصحيح، (مجمع الزوايد ج ۲ص ۱۹۸، رقم ۳۲۰۷) د امام هيثمي د دې فيصلې نه رانقلول خيانت دى.

**نهم خيانت:** لامذهبه زبير علي زئي ليکلي دي چې: امام عراقي رحمه الله سفيان الثوري رحمه الله ته مدلس ويلي دي (نور العينين ص ۱۳۵)

حالانکې امام عراقي رحمه الله سفيان الثوري رحمه الله ته د هغې درجې مدلس ويلى دى د کومو تدليس چې د حديث د صحت سره منافي ندى، (وګوره طرح التثريب، ج۵ص ۴۴)

**لسم خيانت:** لامذهبه زبير علي زئي ليکلي دي چې: امام عيني الحنفي رحمه الله هم سفيان الثوري رحمه الله ته مدلس ويلي دي (نور العينين ص ۱۳۶)

حالانکې امام عيني رحمه الله مخالفينو ته د الزام په طريقه سفيان الثوري رحمه الله ته مدلس ويلي دي ،لکن خپله يې من طريق سفيان الثوري عن عاصم بن کليب سند ته صحيح ويلي دي وګوره !(نخب الأفكار ج ۲ص ۶۰۱، همدارنګه شرح ابى داود ج ۳ص ۲۹۸)

**التنوير السادس عشر: د ويکټوري اهلحديثو تضاد بياني:**

۱- امام ابو يوسف ته يې په يو ځای کې مجروح ويلي دي، (تعداد رکعات فى قيام رمضان ص ۹۰) او په بل ځای کې يې حديث ته صحيح ويلي دي (نصر الباري ص ۱۹۹)

۲- په يو ځای کې يې په شهر بن حوشب اعتراض کړی دی (نور العينين ص ۲۱۱) او په بل ځای کې يې ورته حسن الحديث ويلي دي (الحديث، ش۱۷، ص ۲۵)

۳- په يو ځای کې يې علي بن الجعد ته شيعه، مجروح او غير مقبول ويلي دي (تعداد رکعات قيام رمضان ص ۳۱) او په بل ځای کې دده د روايت په باره کې ليکلي دي چې وسنده صحيح (الحديث ش ۱ص ۲۱)

۴- په يو ځای کې يې امام ابو مقاتل حفص بن سلم ته کذاب او وضاع ويلي دي (نور العينين ص ۳۵) او په بل ځای کې يې د خپل مطلب لپاره دده روايت قبول کړی دی (هداية المسلمين ص ۲۰)

۵- په يو ځای کې يې په امام ابو اسحق الدبري جرحه کړې ده. (تعداد رکعات قيام رمضان ص ۴۸) او په بل ځای کې يې ورته صحيح ويلي دي (الحديث، ش ۱۷ص ۴۳)

۶- په يو ځای کې يې په قاضي احمد بن کامل جرحه کړې ده (الحديث،ش ۱۹ص-۴۶) په بل ځای کې توثيق کړی دی (تحقيق مقالات ج ۱ص-۵۳۵)

۷- په يو ځای کې يې غير محفوظ ته مبهمه جرحه ويلې ده (فاتحه خلف الامام ص-۲۲) او په بل ځای کې يې ورته مفسره جرحه ويلې ده ،(نور العينين ص-۱۳۱)

۸- ټول لامذهبان سفيان الثوري ته د رفع اليدين په حديث کې مجروح ويلي دي (الحق الصريح، ج ۱ص-۸۵) او دامين بالمد په حديث کې ورته غير مجروح وايي (الحق الصريح ج، ۴ص-۲۶۳)

۹- زبير علي زئي په يو ځای کې وايي چې: د صحيحينو نه بغير په بل کتاب کې د مدلس عنعنه قبليږي (الحديث ،ش ص-۳۲، ص-۱۵) او په بل ځای کې يې د مکحول په شان د مدلس عنعني والا حديث ته حسن او صحيح ويلي دي (تسهيل الوصول ص-۱۶۸)

۱۰- په يو ځای کې يې محمد بن جابر ته سخت ضعيف ويلي دي (نور العينين ص-۱۳۸) او په بل ځای کې يې د محمد بن جابر حديث ته صحيح ويلي دي (نصر الباري ص-۲۴۱).

منقول از جز ترک رفع اليدين.

## لطيفه

## د (رفع اليدين) په هكله د حنفي اود لامذهبه مختصره مُكالمه

**غير مقلد:** تاسې احناف ولې د ركوع او د د ريم ركعت يعنې (۹) رفع اليدين نه كوئ؟ حالانكه په دې باره كې څلور سوه احاديث دي

**سُني حنفي:** تاسو لامذهبان ولې د سجدو اود دوهم او څلورم ركعت يعنې (۱۸) رفع اليدين نه كوئ ؟ته د اتلسو (رفع اليدين) د نه كولو ځواب راكړه زه به بيا د (۹) رفع اليدينو د نه كولو ځواب دركړم.

**غير مقلد:** د ركوع د رفع اليدين په باره كې احاديث دي، تاسو ولې ورباندې عمل نه كوئ ؟

**سُنّي حنفي:** د سجدو اود دوهم اود څلورم ركعت د رفع اليدين په باره كې هم احاديث دي ، تاسې ولې ورباندې عمل نه كوئ ! ؟

**غير مقلد:** د ركوع رفع اليدين منسوخ نه دي، كه ته نرېَې نو د نسخِ الفاظ راته په قرآن او يا په حديث كې وښايه !

**سُنّي حنفي:** په احاديثو كې د نسخِ الفاظ اكثره نه وي. بلكې د منسوخوالي له پاره محدّثينو خپل اصول مقرر كړي دي، چې له هغو څخه معلوميږي چې دا ناسخ اودا منسوخ دي. كه ته بيا هم په خپل ضد ټينګ يې نو ته د سجدو د رفع اليدين د منسوخوالي په باره كې د نسخِ الفاظ وښايه .

**غير مقلد:** د عبدالله بن عمر رضى الله عنهما په حديث كې راځي چې: ( وكان لا يفعل ذلک فی السجود ) له دې څخه د سجدو د رفع اليدين منسوخوالي رامعلوميږي.

**سُنّي حنفي:** اول ځواب: د عبدالله بن عمر رضى الله عنهما په حديث كې د ( وكان لا يفعل ذلک فی السجود ) لفظ دی. يعنې په سجده كې دننه به يې رفع اليدين نه كول. د دې لفظ څخه څرنګه سجدو ته د تللو اود سجدو څخه د راپورته كېدلو د رفع اليدين نسخ راغله ؟

دوهم ځواب: د عبدالله بن مسعود رضى الله عنهما حديث مبارک دی چې د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم په لمانځه كې يو ائې د تكبير تحريمه رفع اليدين وو او بل هيڅ نه وو له دې څخه څرنګه د ركوع و غيره د رفع اليدين منسوخوالى نه رامعلوميږي ؟

**غير مقلد:** ولې د رکوع رفع اليدين حرام دی څه؟ حرام شی خو په حديث کې نه راځي!
**سُني حنفي:** ولې د سجدو رفع اليدين حرام دی څه؟ حرام شی خو په حديث کې نه راځي!
**غير مقلد:** د رکوع رفع اليدين خو ثابت دي نو تاسې يې ولې نه کوئ!؟
**سُني حنفي:** اول ځواب: د سجدو رفع اليدين ثابت دي نو تاسو يې ولې نه کوئ!؟
دوهم ځواب: بيت المقدس ته لمونځ کول ثابت دی نو تاسو يې ولې نه کوئ!؟

## د ثبوت او د سُنّت په منځ کې فرق

• ډېر شيان ثابت دي لکن سُنّت نه دي. لکه: (بال قائماً) [بخاری / ج ۱ / ص ۳۵] که (بول قائماً) سنت شي، لکه ځينې لا مذهبيان چې وايي نو بيا به ښځې په دې سنت باندې څرنګه عمل کوي؟ همدارنګه په يوه غُسل باندې د ټولو بيبيانو سره يو ځای کېدل ثابت دي (كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يطوف على نِسَآئِهٖ وَيغسل وَاحِد) [مشکوة / ج ۱ / ص ٤٩]. لکن سُنّت نه دي.

نو په سنّت عمل کې اول شرط دادی چې: دا عمل به حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم (عادةً) کړی وي. او (ضرورةً) به يې نه وي کړی. که (ضرورةً) يې کړی وو نو دا سُنّت نه ګرځي.

دوهم شرط دادی چې: دغه عمل به حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم (دائماً) کړی وي، داسې به نه وي چې وروسته يې پرېښی وي. لکه د بيت المقدس طرف ته لمونځ و غيره.

دريم شرط يې داچې: دا عمل به يې د اُمّت د عمل له پاره کړی وي. د خپل ذات له پاره به يې نه وي کړی. يعنې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم خصوصيت به نه وي.

اوس به وګورو چې: رفع اليدين ثابت دی، لکن د پرېښودلو احاديث يې شته او کنه؟ يو اځې مولانا الياس ګهمن صاحب د (رفع اليدين) د پرېښودلو والا دولس سوه احاديث را جمع کړي دي. نو چې د پرېښودلو والا احاديث يې شته دي نو څرنګه به اوس (رفع اليدين) سُنّت شي؟

## د رفع اليدين د ترک له پاره قرآني دلايل

دهرې مسئلي د حل له پاره اول د قرآن څخه استدلال پکار دی، بيا په احاديثو باندې نظر پکار دی کومه مسئله چې د قرآن او د احاديثو سره موافقه وه په همغې باندې عمل کول پکار دي او کوم حديث

چې په ظاهر کې د قرآن کريم سره معارض ښکاريده نو د هغه له پاره د داسې مفهوم لټول پکار دي کوم چې د قرآن سره معارض نه وي، د دې څخه وروسته د صحابه وو رضی الله عنهم خصوصاً د خلفاء اربعه او د عشره مبشره و او د اهل بدر رضوان الله تعالى عليهم اجمعين عمل ته کتل پکار دي، بيا د خير القرون يعنې د تابعينو او تبع تابعينو عمل ته کتل پکار دي، د رفع اليدين په مسئله کې به هم همدا ترتيب په مخکې کيدو.

**(۱)۔ اول قرآني دليل:** واقم الصلوة لذکری (طه ۱۴) سم ادا کړه لمونځ زما د ذکر له پاره.

**طريقه د ستدلال :** د دې ايت څخه معلو ميږي چې د مانځه څخه قصد د الله جل جلاله ذکر دی، له دې وجې خو د لمانځه د هر عمل سره ذکر دی، په قيام کې حمد او ثناء ده او د هر و ټيټېدلو او د جګيدلو سره د الله جل جلاله يو يو ذکر شته او د رکوع او د دريم رکعت د رفع اليدين له پاره هيڅ مستقل ذکر نه دی مقرر، همدارنګه جلسه د استراحت هيڅ مستقل ذکر نه لري، له دې وجې د دې نه کول پکار دي.

**فانقيل :** رکوع ته د تللو په وخت او د رکوع څخه د جګيدلو په وخت کې د الله اکبر د لفظ لوستل شته، نو که غير مقلدين وايي چې موږ چې الله اکبر وو وايو نو رکوع هم کوو او رفع اليدين هم کوو، نو رفع اليدين بلا ذکره نشو.

**قلنا :** لا مذهبان که د زړې په مقدار ايمان لرې نو دا درې واړه دې يو ځای وکړي، يعنې الله اکبر، رکوع او رفع اليدين دې يو ځای کړي، که الله اکبر د رفع اليدين سره وايي نو رکوع بلا ذکره پاتې کيږي او که د رکوع سره يې وايي نو رفع اليدين بلا ذکره پاتې کيږي رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي چې واذا کبرورکع فکبروا وارکعوا (مسلم ج ۱ ص ۱۷۴) کله چې امام الله اکبر ووايي او رکوع وکړي نو تاسو هم الله اکبر ووايئ او رکوع وکړئ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم د دوو کارونو امر کوي، يو د رکوع او بل د الله اکبر او لا مذهبان وايي چې صرف دا دوه مه کوئ يو دريم کار هم وکړئ چې رفع اليدين دی، نو موږ د الله جل جلاله د نبی خبره منو د لا مذهبانو نه منو.

پاتې شو د وترو او د عيدينو رفع اليدين نو هغه د دې ايت څخه مخالف نه دي ځکه چې د هغې رفع اليدين په وخت کې موږ الله اکبر وايو نو هغه رفع اليدين بلا ذکره نه دي.

**(۲)ـ دوهم قرآني دليل :** الله (جل جلاله) فرمايي چې : واقيموا الصلوة واتوالزكـوة واركعوا مع الراكعين. (البقره ٤٣) او سم وکړئ لمونځ او ورکړئ زکات او رکوع وکړئ د رکوع کونکو سره، په دې ايت کې د جماعت د لمانځه ذکر دی

**فانقيل** چې په لمانځه کې خو قيام، رکوع، سجده او تشهد وغيره شته نو د رکوع د تخصيص څه حکمت دی ؟

**قلنا:** چې په دې کې دې نکتې ته اشاره ده چې څوک چې د امام سره په رکوع کې شريک شي نو د هغه دغه رکعت وشو او که په سجده وغيره کې ورسره شريک شو نو د هغه څخه رکعت فوت شو او مقتدي چې د امام سره په رکوع کې شريکيږي نو صرف يو تکبير تحريمه ورته کافي دی، ددوو تکبيرونو ضرورت نشته، نو د رکوع تکبير ته ضرورت نشته، او چې تکبير يې نشته نو خالي رفع اليدين خو په طريقه اولی نشته او س دا خبره چې د رکوع د تکبير ضرورت نشته، ددې له پاره لاندې درې حوالې وګورئ.

۱- (إِنَّ زَيْدَبْنَ ثَابِتٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَعَبْدَاللّٰهِ بْنَ عُمَرَرَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَا يَفْتِيَانِ الرَّجُلَ إِذَا انْتَهٰى إِلَى الْقَوْمِ وَهُمْ رُكُوْعٌ أَنْ يُكَبِّرَتَكْبِيْرَةً وَقَدْ أَدْرَكَ رَكْعَةً. الخ...) مصنف عبد الرزاق ج ۲ ص ۲۷۸)

زيد بن ثابت او عبد الله ابن عمر رضی الله عنهم دواړو به فتوی ورکوله، کله چې کوم سړی جماعت د رکوع په حالت کې ونيسي نو الله اکبر دې ووايي او رکوع ته دې لاړشي دا رکعت يې وشو الخ...

۲- امام بيهقي رحمه الله فرمايي : (عَنِ ابْنِ شِهَابٍ رحمه الله قَالَ: "كَانَ ابْنُ عُمَرَوَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ رضي الله عنهم إِذَا أَتَيَا الْإِمَامَ وَهُوَرَاكِعٌ كَبَّرَا تَكْبِيْرَةً وَيَرْكَعَانِ بِهَا") السنن الكبری ج۲ ص ۹۱).

زيد بن ثابت او عبد الله بن عمر رضی الله عنهم به چې امام د رکوع په حالت کې ونيولو نو يو الله اکبر به يې وويلو او رکوع ته به لاړل.

۳- شمس الدين ابن قدامه رحمه الله او موفق الدين ابن قدامه رحمه الله فرمايي : چاچې امام د رکوع په حالت کې ونيولو نو د هغه د پاره صرف يو د تکبير تحريمه الله اکبر کافي دی، په دې باندې امام محمد د امام ابو داؤد او د صالح د روايت مطابق تصريح کړې ده او دا د زيد بن ثابت رضی الله عنه، د سعيد بن المسيب رضی الله عنه، د عطاء رحمه الله، د حسن رحمه الله، د شافعي رحمه الله او د مالک رحمه الله او د اصحاب الرای څخه مروي ده د حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله څخه روايت دی چې دوه

تکبیره به وایي او همدا د حماد بن ابی سلیمان قول دی زموږ شیخ رحمه الله فرمایي چې دده دواړو منصد دادی چې دوه تکبیره بهتر دي، فلهذا دا دواړه هم د لوی جماعت سره موافق دي او اول قول د زید بن ثابت رضی الله عنه او عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما څخه مروي دی او په صحابه رضی الله عنهم کې هیڅ مخالف نه دی معلوم فلهذا دا جماعتي قول دی (شرح منقع ج ۲ ص ۹ والمغنی ج ۱ ص ۵۴۴)

نو الله جل جلاله حکم کوي چې د رکوع کونکو سره رکوع وکړئ داسې یې نه دي ویلي چې د رکوع کونکو سره رفع الیدین هم وکړئ.

**(۳)۔ دریم قرآني دلیل** : الله جل جلاله فرمایي چې حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى ۗ وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ﴿۲۳۸﴾ البقرة ۲۳۸).

د ټولو لمونځونو پوره حفاظت کوئ او په خاص طور د مینځیني لمونځ او د الله جل جلاله په دربار کې تابع دار ودریږئ.

**طریقه د استدلال:** د قانتین ترجمه بعضې مفسرین ساکنین ساکتین سره کوي او سکون د رفع الیدین سره منافي دی: کما فی صحیح المسلم عن جابر رضی الله عنه قال: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «مَالِي أَرَاكُمْ رَافِعِي أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ؟ اسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ» (مسلم باب الامر بالسکون فی الصلوة).

**(٤)۔ څلورم قرآني دلیل** : الله جل جلاله فرمایي : قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱﴾ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ﴿۲﴾. (سورة المؤمنون ۲-۱ . په تحقیق سره هغه مؤمنان کامیاب دي چې په لمانځه کې خشوع کونکي وي.

**اوله طریقه د استدلال** : حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما د (خاشعون) په تشریح کې فرمایي چې : مخبتون متواضعون لا یلتفتون یمینا ولا شمالا ولا یرفعون ایدیهم فی الصلوة. (تفسیر ابن عباس رضی الله عنه ص ۲۱۲ طبع مردان ص ۳۵۹ قدیمي کتب خانه) ویریدونکي عاجزي کونکي دي او ښي او چپ طرف ته نه ګوري او په لمانځه کې رفع الیدین نه کوي.

**فانقیل چې** : د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما په تفسیر کې درې راویان ضعیفه دي یو محمد بن سایب الکلبی او دوهم محمد بن مروان السدي او دریم ابو صالح باذام.

**قلنا** : دا ممکنه ده چې یو سړی دی په یوفن کې غیر ماهر او غیر ثقه وي او په بل فن کې دی ماهر او ثقه او امام وي، محدیثنو دا اصول ذکر کړي دي، چې بعضې امامان په احادیثو کې قابل داعتبار نه وي لکن په فن د تفسیر کې دهغوي روايات حجت وي، مثلا : قال الامام البيهقي: قال يحى بن سعيد يعنى القطان تساهلوا فى التفسير عن قوم لا يوثقونهم فى الحديث ثم ذكر ليث بن أبى سليم رجويبر بن سعيد والضحاک ومحمد بن السايب يعنى الكلبي وقال هؤلاء لايحمد حديثهم ويكتب التفسير عنهم (دلايل النبوة للبيهقى ج ١صـ٣٣، ميزان الاعتدال للذهبي ج ١صـ ٣١٩، فى ترجمة جويبر بن سعيد ، تهذيب التهذيب لابن حجر ج ١صـ ٣٨٩، رقم ١١٤١، في ترجمة جويبر بن سعيد او ددې درې واړوه راويانو په باره کې دامامانو عبارات وګورئ.

**محمد بن مروان السدي:**

قال الامام ابو محمد محمود بن احمد الغيتابى: وصاحب التفسير محمد بن مروان الكوفى وهو ايضا يعرف بالسدي، مغانى الاخيار فى شرح اسامي رجال معانى الاثار ابى محمد للغيبتابى ج ٥صـ ٤٢٩)

٢- قال الحافظ ابن حجر العسقلاني : محمد بن مروان بن عبد الله بن اسماعيل الكوفى السدى الصغير صاحب التفسير عن محمد بن السايب الكلبي ، (لسان الميزان لابن حجر ج ٧ص، ٣٧٥)

٣- قال الامام عبد الحى بن العسكري الدمشقي : محمد بن مروان السدي الصغير الكوفي المفسر صاحب الكلبي (شذرات الذهب لعبد الحى العكري ج ١صـ ٣١٨)

**محمد بن السايب الكلبي:**

١-قال الامام ابن عدي محمد بن سايب الكلبي هو رجل معروف بالتفسير وحدث عن الكلبي الثوري وشعبه ورضوه فى التفسير (الكامل لابن عدي ج ٦ صـ ٢١٣٢)

٢- قال الذهبي : محمد بن السايب الكلبي ابو النضر الكوفي المفسر النسابة الاخباري (ميزان الاعتدال، ج ٣صـ ٥٥٦)

٣- قال الحافظ ابن حجر العسقلاني : هو معروف بالتفسير وليس لاحد اطول من تفسره وحدث عنه ثقات من الناس ورضوه فى التفسير (تهذيب التهذيب، ج ٩صـ ١٥٧)

**ابو صالح باذام:**

١-قال الامام ابو الحسن احمد بن عبدالله العجلي: باذام ابو صاالح روى عنه اسماعيل بن ابى خالد فى التفسير ثقة وهو مولى أم هانئ (معرفة الثقات العجلي ج ١صـ ٢٤٢) وقال يحى بن سعيد : لم أر احدا من اصحابنا ترک ابا صالح مولى أم هانئ لاشعبة ولازايدة. (الجرح والتعديل لابن ابى حاتم ج ١صـ ١٣٥).

خلاصه دا چې ددوي تفسيري روايات صحيح دي او مونږه يې تفسير روايت را اخيستي دي:

**دوهمه طريقه د استدلال:** امام حسن بصرى رحمه الله فرمايي : اى يخافون وروى عنه انه قال خاشعون الذين لا يرفعون ايديهم فى الصلوٰة الا فى التكبيرة الاولى (تفسير سمر قندى ج ٢ ص ٤٠٨ طبعه بيروت)

د خاشعون معنى ده ويريدونكي او روايت كړى شوى دى، د حسن بصري رحمه الله نه چې ده فرمايلي دي چې خاشعون هغه خلک دي چې د تكبير تحريمه څخه ماسوى نور په لمانځه کې هيڅ رفع اليدين نه كوي.

**دريمه طريقه داستدلال :** امام بيهقى رحمه الله په خپل عظيم كتاب (السنن الكبرى ج٢ ص ٢٧٩ طبع اداره تاليفات اشرفيه ملتان) کې د خشوع په نوم باندې باب لګولی دی، ددې باب لاندې يې اول دا ايت كريمه ذكر كړى دى او بيا يې هغه احاديث ذكر كړي دي چې په هغه کې رسول الله صلى الله عليه وسلم د رفع اليدين څخه منع كړې ده، نو د بيهقي په نزدهم د خشوع ترجمه د رفع اليدين نه كول دي.

امام بيهقى رحمه الله فرمايي چې: بَابُ الْخُشُوعِ فِى الصَّلَاةِ وَالْإِقْبَالِ عَلَيْهَا وَإِتْمَامِ رُكُوعِهَا وَسُجُودِهَا قَالَ اللَّهُ تَعَالَى {قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِى صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ} [المؤمنون:٢].

بيا يې احاديث ذكر كړي دي په څلورم نمبر کې يې د حضرت جابر بن سمرة رضى الله عنه حديث ذكر كړى دى چې : رَآنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ رَافِعِى أَيْدِينَا فِى الصَّلٰوةِ فَقَالَ: أُسْكُنُوا فِى الصَّلٰوةِ. په بل روايت کې راغلي دي چې : دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ رَافِعِى أَيْدِينَا فِى الصَّلٰوةِ فَقَالَ مَالِى أَرَاكُمْ رَافِعِى أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمُسٍ أُسْكُنُوا فِى الصَّلٰوةِ.

ژباړه : يعني يوه ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم موږ ولیدلو چې موږ د لمانځه په داخل کې رفع اليدين کول نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې تاسو ولې د شريرو اسونو د لکيو په څېر رفع اليدين کوی د لمانځه په داخل کې سکون اختيار کړئ د رکوع رفع اليدين هم په داخل د لمانځه کې دی نو دا حديث د خشوع په باب کې راوړل ددې واضح دليل دی چې د خاشعون معنی د رفع اليدين نه کول دي.

ددې پسې امام بهيقی رحمه الله د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه او د امام مجاهد رحمه الله تر جمې هم رانقل کړي دي دواړو حضراتو د خشوع ترجمه په سکون سره کړي ده.

وَرُوِينَا عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه أَنَّهُ قَالَ: قَارُّوا فِي الصَّلَاةِ، يَعْنِي اسْكُنُوا فِيهَا

عَنْ مَسْرُوقٍ رحمه الله قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ رضي الله عنه: "قَارُّوا فِي الصَّلَاةِ".

عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله، {الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ} [المؤمنون: ۲] قَالَ: "السُّكُونُ فِيهَا"

او د حضرت جابر رضی الله عنه په حديث کې صراحتاً راغله چې د لمانځه په داخل کې رفع اليدين کول د سکون سره منافي دي.

علامه شبير احمد عثماني فرمايي : چې په لمانځه کې خشوع مطلوبه ده او د خشوع څخه هغه سکون مراد دی چې د حضرت جابر رضی الله په حديث کې په دې الفاظو ذکر شوي دي چې (اسکنوا فی الصلوة) فتح الملهم ج۳ ص ۳۱۸ و ص ۳۱۹).

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کې ليکي چې خشوع په دوه قسمه ده، يوه قلبي ده لکه خشيت او دوهمه عملي ده، لکه سکون او دلته دواړه معنی ګانې مراد دي. (فتح الباری ج۲ ص ۲۹۲ طبع دار السلام رياض).

او سکون ترک د رفع اليدين ته وايي په داخل د لمانځه کې لکه څرنګه چې د حضرت جابر رضی الله عنه په حديث کې صراحتاً ذکر شو.

د لا مذهبانو هغه دچل او فريب دلته بالکل نه چليږي چې د حضرت جابر رضی الله عنه حديث د رفع اليدين عند السلام سره تعلق لري، ځکه چې د رفع اليدين عند السلام حديث امام بهيقي په دې باب کې بالکل ذکر کړی نه دی بلکې د هغې له پاره يې دوه مستقل بابه لګولي دي، اول باب په نوم د باب من ينوی بالسلام التحليل او د وهم په نوم د باب کراهية الايماء باليد عند التسليم عن الصلوة.

# ترک د رفع اليدين دقولي احاديثو په رڼا کې

**۵- اول حديث :** عن جابر رضی الله عنه قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «مَالِي أَرَاكُمْ رَافِعِي أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ؟ اسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ». (صحيح مسلم ،ج ۱ ص ۱۸۱ /ابوداود،ج ۱ ص ۱۵۰ /نسائي ص ۱۷٦ /طحاوی ج ۱ ص ۱۵۸/مسنداحمدج ۵ ص۹۳ وسنده صحيح .

**٦- دوهم حديث :** وبه قال حدثنا عبدالله قال حدثنی ابی حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ مُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ طَرَفَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَأَبْصَرَ قَوْمًا قَدْ رَفَعُوا أَيْدِيَهُمْ، فَقَالَ: «قَدْ رَفَعُوهَا كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ، اسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ».. (مسند احمد رقم الحديث ۲۰۳٦۲ ورقم ۲۰٤۵۰ ورقم ۲۰٤۵٦ ورقم ۲۰۵۲۲)

**۷- دريم حديث :** وَبِهِ قَالَ أَخْبَرَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْثَرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ طَرَفَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ رَافِعُو أَيْدِينَا فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ: «مَا بَالُهُمْ رَافِعِينَ أَيْدِيَهُمْ فِي الصَّلَاةِ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ الْخَيْلِ الشُّمْسِ، اسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ». (نسائی ج ص۱۳۳ رقم ۱۱۸٤ طبع مكتبة المعارف رياض)باب السلام بالايدى فى الصلوة.

**۸- څلورم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ تَمِيمٍ الطَّائِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالنَّاسُ رَافِعُو أَيْدِيهِمْ - قَالَ زُهَيْرٌ: أُرَاهُ قَالَ - فِي الصَّلَاةِ، فَقَالَ: «مَالِي أَرَاكُمْ رَافِعِي أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ؟ اُسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ (أبوداؤد رقم ۱۰۰۰). باب السلام

**۹- پنځم حديث :** و به قال حدثنا فهد قال حدثنا محمدبن سعيد قال اخبرنا شريک عن الاعمش عن المسي بن رافع عن جابر بن سمرة رضى الله عنهم قال دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم فراى قوماً يصلون قد رفعوا ايديهم فقال مالى اراكم ترفعون ايديكم كانها اذناب خيل شمس ؟ اسكنوا فى الصلوة (طحاوی رقم ٦۹ ۲۵ ) السنن الكبرى للبيهقي: ابواب الخشوع فى الصلوة والاقبال عليها)

**يادونه:** ددې تېرو شوېو احاديثو مباركه وو ترجمې متقاربې دي.

**د مسلم شريف د حديث ترجمه :** دحضرت جابربن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ زمونږ خواته تشريف راوړو. ( په داسې حال کې چې مونږ لمونځ کولو او په لمانځه مورفع اليدين کول

نورسول الله ﷺ ډېري ناراضګی په حالت وفرمايل ) چې زه ولې تاسو درفع اليدين په کولو باندې ګورم لکه دشريرو اسونو دلکيو په شان؟ دلمانځه په داخل کې ساکن اوسيږئ . (يعني رفع اليدين مه کوئ).

ظاهره دی وي چې دلمانځه په داخل کې چې څومره تېټيدل او جيګيدل دی ، ددې ټولو لپاره درفع اليدين څخه منع راغله ،دتکبير تحريمه رفع اليدين دلمانځه دداخل رفع اليدين نه دی بلکې دلمانځه دشروع کولو رفع اليدين دی لدی وجهې دهغې څخه په دی حديث کې منع نه ده راغلې .

رسـول الله ﷺ فرمـائی : چـې تـكـبيرهـــاالتحريم وتحليلهاالتســـليم دلمانځـه شـروع کيـدل په تکبير تحريمه باندې دی او ختميدل يې په سلام باندې دی . (مشکوة ، ج ۱ ص ٤٠)

يعنې دتکبير تحريمه څخه بعد دسلام تر ګرزرلو پورې دلمانځه داخله حصه ده ،رسول الله ﷺ د(فی الصلوة) . لفظ ذکر کړی دی يعنې په لمانځه کې داخل رفع اليدين مه کوئ اوپه لمانځه کې درکوع، سجدی ، ددوهم، دريم، اودڅلورم رکعت ،په شروع کې رفع اليدين کول ،د لمانځهٔ په داخل کې رفع اليدين کول دي. اوپه دی رفع اليدين باندې رسول الله ﷺ دخفګان اظهار کړی دی او دايې دشريرو اسونو دلکيو دخوزلو سره مشابه کړي دي، اودالمونځ يې دسکون څخه مخالف ګرزولی دی .

ددې حديث څخه معلومه شوه چې رسول الله ﷺ رفع اليدين ډير مخکې پريښی وو ،اودرسول الله ﷺ فدايانو صحابه وورضوان الله عليهم پريښی وو .

لکن بعضې صحابه وورضی الله عنهم دناخبرتيا له وجهې کول ، ځکه رسول الله ﷺ دغه صحابه رضی الله عنهم په ډيرې سختې سره منع کړل نو ټول صحابه رضی الله عنهم منع شول .

(۱) لکه څرنګه چې وايل بن حجر ﷺ اول ځلې درسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شونو درکوع اودسجدې درفع اليدين ذکر يې وکړو ،دمسلم په روايت کې يوازې درکوع درفع اليدين ذکر دی اوپه ابوداودشريف کې درکوع اودسجدې دواړو درفع اليدين ذکر دی .(ابوداود ،ج ۱ ص ۱۱۲ رقم۷۲۸)

اوچې کله يې دوهم ځلې تشريف راوړونو خپله مشاهده يې صرف داول تکبير درفع اليدين په باره کې بيان کړه، وايل بن حجر ﷺ فرمائی : ثم اتيتهم فرأيتهم يرفعـون أيـديهم الي صـدورهم في افتتـاح الصلوة. (ابوداود، ج ۱ ص ۱۱۲ )

که په دوهم وارراتللو کې وايل بن حجر ﷺ داول تکبير څخه وروسته درکوع اودسجدې رفع اليدين ليدلي وي نو دابه يې هم ضرور بيان کړي وي، وايل بن حجر ﷺ هيڅ صحابي رضی الله عنهم نه دی مستثنی کړی معلوميږي دا چې ددوهم ځلې راتللو په وخت کې ټولو صحابه وو رضی الله عنهم بلاء استثناء صرف دتکبير تحريمه په وخت کې رفع اليدين کول.

(۲) اولکه څرنګه چې دميمون مکی رحمه الله دروايت څخه معلوميږي چې صحابه وو، تابعينو اوتبع تابعينو به رفع اليدين نه کول .دروايت ترجمه داسې ده چې يوه ورځ حضرت ميمون مکی عبدالله بن زبير رضی الله عنهما په رفع اليدين کولو باندې وليدلو، نو حضرت ميمون فرمائی چې زه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ته ورغلم اوورته مې وويل چې ماخونن ورځ عبدالله بن زبير رضی الله عنهما په داسې نوي لمونځ وليدلو چې ددې څخه مخکې مې هيڅوک وربانديې نه وو ليدلي نو عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ورته وفرمايل چې که د رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ کوري نو دعبدالله بن الزبير اقتداء وکړه. (ابوداود، ج ۱ ص ۱۱۵ رقم ۷۳۹)

حضرت ميمون مکی ډير صحابه ليدلي وو، مګر دعبدالله بن زبير رضی الله عنهما څخه بغيريې بل څوک په رفع اليدين نه وو ليدلي ،ډير تابعين يې ليدلي وو، مګريو تابعي يې هم په رفع اليدين نه وو ليدلی ،ډير تبع تابعين يې ليدلي وو، مګريو تبع تابعي يې هم په رفع اليدين نه وو ليدلی دټولې دنيا څخه مکی مکرمی ته راتلونکي حاجيان يې د لمانځه په وخت کې ليدلی وو ،مګرد هيڅ علاقې هيڅ حاجی يې هم په رفع اليدين نه وو ليدلی داپه خيرالقرون کې په ترک درفع اليدين باندې عملي تواتردی. (کمافی نيل الفرقدين / ص / ۶۴ / معارف السنن/ج ۲/ ۴۶۳).

(۳) اولکه څرنګه چې حضرت ابراهيم نخعی فرمائی چې ماهيڅ صحابي په رفع اليدين کولو نه دي ليدلي، [مؤطا امام محمد رقم ۱۰۷]. بلکې ابراهيم نخعی رحمه الله به ددې حديث موافق په رفع اليدين کولو باندې غوصه کيدلو. (طحاوی ،ج ۱ص ۱۵۴) دارقطنی ،ج ۱ص ۱۹۱) .

(۴) سيدنا امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله شل ځلې بصري ته علمي سفرونه کړي دي ،پنځه پنځوس (۵۵) حجونه يې کړي دي ،شپږ کاله مستقل په مکه مکرمه کې اوسيدلې دی ،امام صاحب رحمه الله هم د رسول الله ﷺ په نقش قدم ددې رفع اليدين څخه خپل نفرت ظاهر کړی دی . ابومقاتل رحمه الله فرمايي

چې مايوه ورځ دامام صاحب رحمه الله په څنګ کې لمونځ کولو اورفع اليدين مې وکړل نوامام صاحب دسلام څخه وروسته راته وفرمايل چې: ابومقاتله ! تـه هم لکه چې دپکيـو وهونکو خلکو څخه يې.
(التمهيد،ج ۳ص٦٦).

(۵) دحضرت امام ابوحفص په زمانه کې يوسړي رفع اليدين وکړل دهغه شکايت ترخليفه پورې ورسيدلو چې بياهغه سړی ګرفتار شواوتوبه يې پرې وايستله. (کتاب الارشادالی سبيل الرشادص۲۰۹ دغيرمقلدينو کتاب).

(٦) الشيخ ابوعمرالمالکی رحمه الله فرمائي چې زه رفع اليدين نه کووم، ځکه چې رفع اليدين نن سبابالکل متروک دی ،اودرفع اليدين په کولودجماعت مخالفت راځي ،اوديومباح کارپه کولوباندې دامت مخالفت کول ددين داامامانوزينت نه دی .(التمهيد قلمی ص ٦٧)

(۷) امام احمد رحمه الله ناست وو چې يومسافرراغلو ، وروسته هغه امام احمد رحمه الله په رفع اليدين کولوباندې وليدلو ، نوهغه مسافر حيران شواووی ويل چې زمونږپه علاقه کې خوهيڅوک رفع اليدين نه کوي (التمهيد ص۶۵ ،ج ۳ ).

(۸) شيخ ابوبکرالفهری رحمه الله دشپږمې صدی داکابروعلماو څخه دی، ده په يومسجدکې رفع اليدين وکړل رئيس ابوثمنه رحمه الله چې وليدلو نو وې فرمايل چې داڅوک زمونږمسجدته راغلی دی؟ داقتل کړئ اوسمندرته يې وغورزوئ. (تفسيرقرطبی ،ج ۲۹/ ۲۷۹ )

(۹) شيخ ابوالحسن سندي رحمه الله رفع اليدين وکړل، نوقاضی بندی خانی تـه وليګلو،شيخ عابدسندی رحمه الله اوامريمانی رحمه الله ،اوددوی ملګري درفع اليدين لـه وجهـې بنـديان شول.( البدرالطالع ،ج ۲ص ۱۳۴)

خلاصه داچې په خيرالقرون کې هيچارفع اليدين نه کول ،اودرفع اليدين حالت دشاذقرائت په شان دی په مقابله دمتواترقرائت کې اودهغې څخه وروسته ترننه پورې نهه (۹۹)نوي فيصده اهل سنت والجماعت احناف دي، چې ددوی عمل ترک درفع اليدين دی .

دغیرمقلدینو په حالت باندې افسوس دی چې هغه حدیثونه چې په هغې باندې دصحابه وو، تابعینو اوتبع تابعینو متواترعمل راروان دی ضعیف ورته وائي، چې خُلاصه یې په دی صحابه وو او اسلافو باندې تهمت لګول دی چې معاذالله دغه صحابه وو او اسلافو په ضعیفو احادیثو باندې عمل کولو.

**۱۰ - شپږم حدیث:** عَنْ عُبَيْدُ اللهِ بْنُ الْقِبْطِيَّةِ رحمه الله، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا: اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ، وَأَشَارَ بِيَدِهِ إِلَى الْجَانِبَيْنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلَامَ تُومِئُونَ بِأَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمُسٍ؟ إِنَّمَا يَكْفِي أَحَدَكُمْ أَنْ يَضَعَ يَدَهُ عَلَى فَخِذِهِ ثُمَّ يُسَلِّمُ عَلَى أَخِيهِ مَنْ عَلَى يَمِينِهِ، وَشِمَالِهِ» (مسلم ج ۱ ص۱۸۱ رقم ۹۶۹).

ژباړه : یعنې موږ به چې کله درسول الله صلی الله علیه وسلم سره لمونځ کولو نو د سلام په وخت کې به مو یو طرف او بل طرف ته اشاره کوله، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائل چې تاسې ولې د شریرو اسونو د لکیو په شان یو طرف او بل طرف ته اشارې کوئ؟

بې شکه کافي کیږي هر یو ستاسو ته چې په ورون باندې لاس کیږدي او (بغیرد اشارې څخه) سلام واچوي په هغو ورونو چې ښي اړخ ته دي او په هغوی چې چپ اړخ ته دي.

**طریقه د استدلال :** په دې حدیث کې: ۱- په یوه لاس د اشارې څخه منع راغلې ده ۲- او هغه هم د سلام په وخت کې چې من وجه په مانځه کې داخل او من وجه خارج دی، نو هغه رفع الیدین به په طریقه اولی باندې ممنوع وي چې: ۱- په دواړو لاسونو باندې وي ۲- او د لمانځه په داخل کې وي، لکه څرنګه چې والدینو ته د اُف ویل ممنوع دي، نو کنځلې خوبه ورته په طریقه اولی سره ممنوع وي.

۳- همدا رنګه آس د کوم مقرر ذکر الهی څخه بغیر لکۍ خوزوي او د سلام په وخت کې چې کومې اشارې دي نو هغه اګر چې د ذکر څخه خالي دي، لکن د دعا سره معي دي او د رکوع رفع الیدین د ذکر او ددعا د هر څه څخه خالي دي، نو چې د سلام په وخت کې اشارې د شریرو اسونو د لکیو د خوزولو سره مشابه دي، نو د رکوع د رفع الیدین په طریقه اولی ورسره مشابه دي.

خلاصه دا چې د حضرت جابر رضی الله عنه څخه درفع الیدین په باره کې دوه قسمه احادیث راغلي دي په یوه قسم کې د لمانځه په داخل کې د رفع الیدین څخه منعه ده او د لمانځه دداخل رفع الیدین یې د شریرو اسونو د لکیو د خوزولو سره مشابه کړی دی او په دوهم قسم کې د سلام په وخت کې په لاسونو

باندې د اشارې څخه منعه ده او هغه یې د شریرو اسونو د لکیو د خوزولو سره مشابه کړې دي احناف په دواړو باندې عمل کوي او لا مذهبان یوائې په دوهم قسم باندې عمل کوي او په اول قسم یې نه کوي، نو د (اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَ تَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ) مصداق دي.

**دلا مذهبانو اعتراضونه:**

**اول اعتراض**: لا مذهبان دا اعتراض کوي چې که دا حدیثو نه د منع د رفع الیدین د پاره وي، نو په اکابرو کې خو به یو چا استدلال ورباندې کړی وای.

**اول ځواب**: زموږ ډیرو اکابرو په دې احادیثو باندې استدلال کړی دی.

۱- د مکې مکرمې مشهور محدث د مشکوة شریف شارح حضرت ملا علي قاري رحمه الله فرمایي چې: ولیس فی غیر التحریمة رفع یدین عند ابی حنیفة لخبر مسلم عن جابر بن سمرة رضی الله عنه (مرقات شرح مشکوة ج۲ ص ۲۷۵ مکتبه امدادیه ملتان)

یعنې د امام صاحب رحمه الله په نیز د تکبیر تحریمه څخه ماسوی په بل هیڅ ځای کې رفع الیدین نشته، له وجې د حدیث د مسلم څخه چې عن جابر بن سمرة رضی الله عنه الحدیث دی.

۲- همدغه مذکور محدث په شرح نقایه ج۱ ص ۷۸) کې د دې حدیث په باره کې لیکي چې رواه مسلم ویفید النسخ، د حضرت جابر بن سمرة حدیث مسلم شریف روایت کړی دی او دا حدیث د رفع الیدین د منسوخ والي له پاره مفید دی.

۳- علامه بدرالدین عینی رحمه الله په خپل کتاب البنایه فی شرح الهدایه کې د دې حدیث په باره کې لیکي چې قلت فی الحدیث الاول انکار عن رفع الیدین فی الصلوة و امر بالسکون فیها (البنایه شرح الهدایه ج۲ ص۲۹٦ طبع مکتبه حقانیه ملتان).

زه وایم چې د مسلم شریف په دې حدیث کې د مانځه په داخل کې د رفع الیدین څخه ممانعت دی او د لمانځه په داخل کې د سکون حکم دی.

۴- همدارنګه حافظ زیلعی رحمه الله هم د ترک د رفع الیدین له پاره د دې حدیث څخه استدلال کړی دی (نصب الرایه ج۱ ص ۴۷۲).

۵- علامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله فرمايي چې: رسول الله د رفع اليدين د کونکو څخه د ناراضګی اظهار کړی دی او حکم يې کړی دی چې اسکنو فی الصلوة دا د سکون په وجوب باندې دلالت کوي، په لمانځه کې رفع اليدين د سکون سره منافات لري (اعلاء السنن ج۳ ص ۵۶)

۶- قاضی عياض المالکی رحمه الله فرمايي چې: وقد ذکر ابن القصار هذا الحديث حجة فی النهی عن رفع الايدی علی رواية المنع من ذلک. (الاکمال المعلم بفوائد مسلم ج۲ ص ۳٤٤).

۷- امام نووي فرمايي چې: (وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ وَالثَّوْرِيُّ وَابْنُ أَبِي لَيْلَى وَسَائِرُ أَصْحَابِ الرأى: لايعرف يَدَيْهِ فِي الصَّلَاةِ إِلَّا لِتَكْبِيرَةِ الْإِحْرَامِ وَهِيَ رِوَايَةٌ عَنْ مَالِكٍ رحمه الله وَاحْتَجَّ لَهُمْ بِحَدِيثِ الْبَرَاءِ بن عازب رضى الله تعالى عنهما قال "رأيت رسول اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ ثُمَّ لَا يَعُودُ" رَوَاهُ أَبُودَاوُد... وعن جابر بن سمرة رضى الله عَنْهُ قَالَ "قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالِي أَرَاكُمُ الخ) (المجموع شرح المهذب ج ۳صـ ٤۰۰، فصل فی مسائل مهمة تتعلق بقراءة الفاتحة.

۸- (وَقَدِ احْتَجَّ بَعْضُ الْمُتَأَخِّرِينَ لِلْكُوفِيِّينَ وَمَنْ ذَهَبَ مَذْهَبَهُمْ فِي رَفْعِ الْيَدَيْنِ بِمَا حَدَّثَنَا... عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وسلم مالی أَرَاكُمُ الخ). (التمهيد لابن عبدالبر ج ٤صـ ۱۹٤)

۹- الامام القدوري: التجريد للقدوري ج ۲صـ ۱۹) باب لاترفع الايدی فی تکبير الرکوع.

۱۰- امام ابومحمد علي بن زکريا المنبجي: (اللباب فی الجمع بين السنة والکتاب، ج ۱صـ ۲۵۶، باب لاترفع الايدی عند الرکوع ولا بعدالرفع منه)

۱۱- علامه زمخشري: روس المسايل الخلافية بين الحنفية والشافعية (باب لاترفع الايدی فی الصلوة الا عند افتتاح الصلٰوة.)

**دوهم جواب:** چې څومره فتنې ډيرېږي همغومره استدلالات زياتيږي کله چې فتنې کمې وي هلته په لږو دلايلو باندې اکتفاء کيږي ، نو په لږو دلايلو باندې د اکتفاء څخه دا نه لازميږي چې نور دلايل نشته، لکه په خوړ کې چې ډيرې تيږې پرتې وي لکن څوک ورته لاس نه وروړي او چې کله سپي وغاپي نو بيا يې د راخيستلو ضرورت پيدا شي ، همدا رنګه په هندوستان باندې د انګريزانو د دورې څخه مخکې د احنافو پسې چا نه غيبل نو د ډيرو استدلالاتو ضرورت نه وؤ ، لکن کله چې انګريزان هندوستان ته راغلل او د احنافو په خلاف يې ګېډو نکي سپي (غير مقلدين) راپيدا کړل نو احنافو دلايل هم ډير کړل.

**دوهم اعتراض :** چې احناف ولې د تکبير تحريمه رفع اليدين کوي ؟

**الجواب :** د تکبير تحريمه رفع اليدين د اسکنوا فی الصلوة ) لاندې نه دي داخل، ځکه چې تکبير تحريمه د لمانځه له پاره شرط يعنې خارجي فرض دی، نو هغه رفع اليدين د للصلوة دی د فی الصلوة نه دی.

**دريم اعتراض :** د تکبير تحريمه رفع اليدين اګر چې د اسکنو فی الصلوة لاندې نه دي داخل، لکن د رکوع د رفع اليدين په شان د شريرو اسونو د لکيو د خوزولو سره خو مشابه دي، نو تاسو ولې د تکبير تحريمه په وخت کې د اسونو د لکيو پيښې کوی؟

**ځواب :** د تکبير تحريمه رفع اليدين د اسونو د لکيو د خوزولو سره مشابه نه دي، ځکه چې د اسونو د لکيو د خوزولو له پاره کوم ذکر مقرر نه دی او د تکبير تحريمه د رفع اليدين د پاره مقرر دی چې الله اکبر دی، نو د رکوع رفع اليدين ورسره بالکل مشابه دی، ځکه چې دا سونو د لکيو د خوزولو د پاره هم کوم مقرر ذکر نشته لکه د رکوع د رفع اليدين د پاره چې کوم مقرر ذکر نشته .

**فانقيل :** هغه د رکوع الله اکبر دي د رفع اليدين د پاره هم شي نو د رکوع رفع اليدين هم بې ذکره نشو .

**قلنا :** رکوع ،رفع اليدين ، الله اکبر درې واړه په يوه وخت کې ځوک نشي ادا کولای، نو که د رکوع سره الله اکبر وايي رفع اليدين بې ذکره کيږي او که د رفع اليدين سره يې وايي نو رکوع بې ذکره کيږي، حالانکې دا ذکر د رکوع له پاره مقرر دی نو رفع اليدين بې ذکره شو .

**څلورم اعتراض:** احناف ولې د شريرو اسونو د لکيو په شان په وترو او په عيدينو کې رفع اليدين کوي؟

**ځواب :** مخکې بيان شو چې د اسونو د لکيو د خوزولو له پاره کوم ذکر نه دی مقرر، لکه د رکوع د رفع اليدين له پاره چې نه دی مقرر په خلاف د وترو او د عيدينو څخه ځکه چې د هغوی هر يو سره الله اکبر مقرر دی او که لا مذهبان د رفع اليدين د پاره بېل الله اکبر وايي او د رکوع له پاره بېل الله اکبر وايي نو بيا په څلور رکعتي لمونځ کې تکبيرونه ۲۲ نه شو، حالانکه په څلور رکعتي لمونځ ۲۲ تکبيرونه دي (بخاری ج ۱ ص ۱۸).

۲- ابن رشد په بداية المجتهد ج ۱ ص ۲۱۸ کې ليکي چې د اختر د لمانځه طريقه رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه نه ده روايت شوې، له دې وجې ټول علماء له صحابه وو څخه استدلال کوي (وکان ابن عمر مع تحريه للاتباع يرفع يديه مع کل تکبيرة) مختصر ذاد المعاد للشيخ عبد الوهاب النجدی

ص۳۳ زاد المعاد ص ١٤٦ بيروت) حضرت امام بخاری رحمه الله فرمايي : عن عبد الله انه كان يقرا في اخر ركعة من الوتر قل هوالله احد ثم يرفع يديه فيقنت قبل الركعة . [جزء رفع اليدين رقم ٩٦] .

۳- د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما او د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په حديثونو کې به راشي چې رسول الله په اوو ځايونو کې د رفع اليدين ذکر کړی دی او دا اوه واړه ځايونه د شعائرو ځخه دي، نو د شعايرو د اظهار له پاره رفع اليدين مطلوب دي او عيدين او د وترو قنوت هم د شعايرو ځخه دي، لهذا دلته هم رفع اليدين مطلوب دي، نو خلاصه دا چې د آسونود لکيو خوزول د شعائرو علامه نه ده او د رکوع رفع اليدين هم د شعايرو علامه نه ده، نو دا ورسره مشابه شو او د وترو او عيدينو رفع اليدينو نه د شعائرو علامې دي، نو هغه ورسره نه دي مشابه، نور تفصيل د دولسم حديث ځخه په وروسته تشريح کې د شپږم اعتراض لاندې وګوره.

**پنځم اعتراض :** په دی استدلال دا اعتراض دی چې دا حديث د رفع اليدين عند السلام سره متعلق دی نه د رفع اليدين عند الركوع سره ځکه مسلم شريف دی حديث ته باب لګولی دی . (باب الامر بالسكون في الصلوة والنهي عن الاشارة باليد ورفعها عند السلام...الخ (مسلم ج ۱ ص ۱۸۱). د دې باب ځخه معلومېږي چې د مسلم شريف په نيز دا حديث د رفع اليدين عند السلام سره متعلق دی .

**اول جواب :** دا بابونه مسلم شريف (المتوفى ٢٦١هـ) نه دي لګولي، بلکې نووي صاحب المتوفى (٦٧٦ هـ) لګولي دي، له دې وجهې دا خبره غلطه ده چې دا حديث د مسلم شريف په نيز د رفع اليدين عند السلام سره تعلق لري، د مسلم شريف په کتاب کې خپله مصنف رحمه الله هيڅ باب نه دی لګولی، دا امام مسلم تولد په (۲۰۴هـ) کې شوی دی او دا امام نووی رحمه الله تولد په (٦٣١هـ) کې شوی دی، نو دا بابونه د مسلم شريف ځخه (۴۲۷) کاله بعد لګول شوي دي .

**دوهم ځواب:** د امام نووي رحمه الله د دې باب ځخه هم دا نه معلومېږي چې دا حديث د رفع اليدين عند السلام سره متعلق دی، ځکه چې د امام نووي رحمه الله په باب کې ځلور اجزاء دي:

۱- په لمانځه کې د سکون اختيارول. يعنې رفع اليدين نه کول.

۲- د سلام د ګرځولو په وخت کې له اشارو ځخه ممانعت.

۳- د منځکنيو صفونو د خلاء ډکول.

۴-د اجتماع حُکم.

نو دامام نووي په نزد هم پدې باب کې څلور جدا جدا شيان ذکر کيږي.

## شپږم اعتراض:

اعتراض دادی چې داحديث درفع اليدين عند السلام سره تعلق لري لکه مخکې چې ذکر شو، چې په مسلم شريف کې داروايت په طريقه دعبيدالله بن القبطيه هم مروی دی په کوم کې چې ددې تصريح ده چې دا حديث دزفع اليدين عند السلام په باره کې دي.

عَنْ عُبَيْدُ اللهِ بْنُ الْقِبْطِيَّةِ رحمة الله عليه، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ، وَأَشَارَ بِيَدِهِ إِلَى الْجَانِبَيْنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلَامَ تُومِئُونَ بِأَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ؟ إِنَّمَا يَكْفِي أَحَدَكُمْ أَنْ يَضَعَ يَدَهُ عَلَى فَخِذِهِ ثُمَّ يُسَلِّمُ عَلَى أَخِيهِ مَنْ عَلَى يَمِينِهِ، وَشِمَالِهِ». (مسلم ج ۱ ص ۱۸۱).

ددې څرګندوالي څخه وروسته دحضرت جابربن سمرة رضي الله عنه حديث درفع اليدين عند الركوع په ممانعت نه شي ورحملولی.

**جواب** : پدې دواړو حديثونو کې چونکې د کأنها أذناب خيل شمس فقره راغلې ده، کيدای شي چې له دې وجې دمعترض ذهن دې طرفته تللی وي چې دا دواړه حديثونه ديوې واقعې سره تعلق لري، حالانکې دا بالکل غلطه خبره ده، ځکه چې د دواړو حديثونو مضمونونه سره بالکل جدا دي، د دواړو حديثينو په منځ کې لاندې فرقونه دي:

د رفع اليدين څخه د منع د حديث يعنې د اول حديث الفاظ داسې دي چې:

- خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ......مسلم رقم ۹۶۸
- دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.....ابوداؤد رقم ۱۰۰۰
- أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَأَبْصَرَ قَوْمًا ..... مسند احمد رقم ۲۰۳۶۲

ددې څخه معلوميږي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ددوي سره په دې لمونځ کې نه و شريک.

د اشارو څخه د منع د حديث يعنې ددوهم حديث الفاظ داسې دي چې :

- صَلَّيْنَا وَرَاءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسند احمد ج۵ ص ۸۶

- كُنَّا نَقُولُ خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسند احمد ج۵ ص ۱۰۲
- كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسند احمد ج۵ ص ۱۰۷

ددې څخه معلو میږي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ددوي سره په دې لمونځ کې شریک و .

۲- داول حدیث د الفاظو څخه دا معلو میږي چې دا انفرادي لمونځ و او ددوهم حدیث د الفاظو څخه دا معلو میږي چې داد جماعت لمونځ و.

۳- داول حدیث د الفاظو څخه معلو میږي چې دا نفلي او یا سنت لمونځ و او ددهم حدیث د الفاظو څخه معلو میږي چې دا فرضي لمونځ و ، په جماعت باندې.

٤- درفع الیدین څخه د منع په حدیث کې د رافعی ایدیکم او یا د قد رافعوا ایدیهم الفاظ دي چې په رفع الیدین کې صریح دي او داشارو څخه د منع په حدیث کې دتشیرون بایدیکم او یا دتومون بایدیکم اویادیومون بایدیهم الفاظ دي چې په اشاره کې صریح دي .

۵- درفع الیدین په حدیث کې د اسکنوا فی الصلوة جمله ده یعنې د لمانځه په داخل کې ساکن شئ او د اشارو څخه د منع په حدیث کې دا جمله نشته بلکې هلته داسې دي چې انما یکفی احدکم ان یضع یده علی فخذه ثم یسلم علی أخیه الخ .

۶- ددواړو حدیثونو سندونه جدا جدا دي، د اول حدیث راوي ددوهمې واقعې طرف ته بالکل اشاره نه ده کړې او ددوهم حدیث راوي د اولې واقعې طرفته بالکل اشاره نه ده کړې، د یوه روایت راویان داسې دي چې مسیب بن رافع عن تمیم بن طرفة عن جابر بن سمرة رضی الله عنهم او د بل روایت راویان داسې دی چې سعد عن عبید الله بن القبطیة عن جابر بن سمرة رضی الله عنه .

۷- دې حدیث ته امام ابوداؤد رحمه الله په داسې الفاظو باندې باب لګولی دی چې باب النظر فی الصلوة رقم۲۱۹ ج۱ ص۱۳۸ ، عبد الرزاق ورته په داسې الفاظو باندې باب لګولی دی چې باب رفع الیدین فی الدعاء رقم ۳۲۵۲ و ۳۲۵۳ ج۲ ص۲۵۲]. په مصنف ابن ابی شیبه کې ورته په داسې الفاظو باندې باب لګیدلی دی چې باب من کره رفع الیدین فی الدعاء ، ددې څخه معلو میږي چې ددې حدیث څخه د سلام په وخت د اشارو څخه د منع اخیستل صحیح نه دی.

۸- قاضی عیاض مالکي رحمه الله ددې حدیث په باره کې فرمایي چې وقـد ذکـر ابـن القصار هذاالحدیث حجة فی النهی عن رفع الایدی علی روایة المنع من ذلک (الاکمال المعلم بفوایـد مسلم ج۲ ص۳٤٤). یعنې ابن قصار المالکي رحمه الله دا حدیث د رفع الیدین څخه د منع د پاره ذکر کړی دی.

۹- امام بهیقی رحمه الله دواړه حدیثونه د دوو جدا جدا بابونو لاندې ذکر کړیدي اول حدیث نمبر ۳۴۰ چې په مسلم کې د نمبر ۹۶۸ لاندې راغلی دی، دا امام بهیقی رحمه الله د باب خشوع لاندې ذکر کړی دی او د اشارو څخه د منع له پاره یې دوه حدیثه ذکر کړي دي یو حدیث نمبر ۴۳۱ چې په مسلم کې د رقم ۹۷۰ لاندې راغلي دي او اخري الفاظ یې داسې دي چې انما یکـفی احـدکم ان یضع یـده علی فخذه ثم یسلم علی اخیه من علی یمینه و شماله. ددې حدیث له پاره امام بهیقي په داسې الفاظو باندې باب لګولی دی چې باب من قال ینوی بالسلام التحلیل من الصلوة او د بل حدیث چې په مسلم رقم ۹۷۱ کې راغلی دی او اخري الفاظ یې داسې دي چې اذا سلم احدکم فلیلتفت الی صاحبه ولا یؤی بیده. امام بهیقی رحمه الله ددې حدیث له پاره په داسې الفاظو باندې باب لګولی دی چې باب کراهیة الایماء بالید عند التسلیم من الصلوة.

۱۰- که په طریقې د فرض المحال سره ومنو چې د دواړو حدیثونو شان ورود یو دی، نو بیا هم زموږ استدلال تام دی ځکه چې اعتبار عموم د لفظ لره وي خصوص د سبب ته اعتبار نشته او دلته د اسکنوا فی الصلوة عام دی، هر هغه رفع الیدین ته شاملیږي چې د لمانځه په داخل کې وي، همدا رنګه د سلام حالت د خروج عن الصلوة حالت دی، نو چې هلته سکون مناسب دی نو د لمانځه په داخل کې په طریق اولی سره سکون پکار دی.

۱۱-علامه بدرالدین عیني او امام زیلعي فرمایي: چې پدې حدیث کې د (اسـکنوا فی الصلوة) جمله ده، (اِنَّمَا یُقَالُ ذَٰلِکَ لمن یرفع یدیه أَثْنَاءِ الصَّلَاةِ، وَهُوَ حَالَةُ الرُّکُوعِ وَالسُّجُودِ، وَنَحْوُ ذَٰلِکَ (شرح سنن ابي داود للعیني، ج ۳ صـ ۲۹۷، نصب الرأیه ج ۱ صـ ٤۷۲.)

۱۲- امام ابن حبان ورته داسې باب لګولی دی چې: ذکر مایستحب للمصلي رفـع الیـدین عند قیامه من الرکعتین من صلوته (صحیح ابن حبان رقم ۱۸۷۸)

۱۳-الامام ابو محمد علي بن ذكريا المنجبي ورته داسې باب لګولی دی چې (باب لاترفع الايدی فی تكبير الركوع، (التجريد للقدوري ج ۲صـ ۵۱۹)

۱۴-علامه زمحشري ورته داسې باب لګولی دی چې : باب لاترفع الأيدی الا عندافتتاح الصلوة (رؤس المسايل الخلافية الحنيفة والشافعية ج ۱صـ ۱۵۶)

**نوټ** : لامذهبان دبعضې اعتراضونو حواله په امام بخاري ورکوي خو دا په یادولرئ چې دصحيح بخاری شريف کتاب دامام بخاری رحمه الله څخه تقريبانوي زره شاګردانو لوستلې دي، نو په امت مسلمه کې داکتاب متواتردی، لکن دامام بخاری دوه نورې رسالې هم شته په نامه دجزء رفع اليدين اوجزء القراءة دادواړه رسالې داعتمادوړندې، ځکه چې ددې دواړورسالویوراوی محمودبن اسحاق الخزاعی دی چې دهغه ثقه والې هيڅکله نه دی ثابت او هيڅ غيرمقلدبه يې ثابت نه کړي، دامام بخاری دااعتراضونه په صحيح بخاری کې نه شته، بلکه په هغه بله رساله کې دي چې په نامه دجزء رفع اليدين ده اوهغه رساله داعتمادوړنده

**دلامذهبانو کتمان :**

لامذهبان چې کوم اعتراضونه رانقلوي، نوصرف په امام بخاری حواله ورکوي اودانه ظاهروي چې دااعتراض په صحيح بخاری کې نه شته بلکې په جزءرفع اليدين رساله کې دي، چې هغه داعتمادوړ رساله نه ده اوددوی داکارصرف ددې لپاره دی چې عوامو ته دامغالطه ورکړي چې دااعتراض په متواتر اوصحيح کتاب صحيح البخاری کې دی، نو البته ډيرقوی اعتراض به وي، حالانکه دااعتراض اضعف من بيت العنكبوت دی داهم په يادلرئ چې شيخ الاسلام والمسلمين علامه ابن همام فرمائي چې هرڅوک چې وايي چې : بخاري اصح الكتب دی نوداخبره : تحكم لايجوزالتقليد فيه [ حاشيه بخاري ج اص ۱۵۸ باب الصلوة قبل المغرب داهل سنت والجماعت نه تقاضی کوو چې د لامذهبانو دوسوسو څخه دخلاصې لپاره دی هميشه سورة الفلق او سورة الناس لولی اوځان دی وربانديې دموی . اوچې کوم لامذهبه ورسره مخ شي نو اعوذبالله من الشيطن الرجيم دی وائي اوچپ طرف ته دی لاړی توکوي ترڅوئي چې په شيطاني دام کې ونه نخلي .

## د تكبير تحريمه په وخت كې د رفع اليدين (۷) قولي احاديث

**۱۱- اووم د عبدالله بن عباس او عبدالله بن عمر حديث :** وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "«تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ: افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَاسْتِقْبَالِ الْبَيْتِ، وَالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَالْمَوْقِفَيْنِ، وَعِنْدَ الْحَجَرِ» مجمع الزوايد رقم ۲۵۹۵ و طحاوی رقم ۳۷ ٤۰].

**ترجمـه :** د حضرت عبد الله بن عباس رضى الله عنهما او د حضرت عبد الله ابن عمر رضى الله عنهما څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې رفع اليدين په اوو ځايونو كې كيږي ۱- د لمانځه په شروع كې ۲- د بيت الله شريف د ملاقات په وخت كې ۳- په صفا باندې ۴- په مروه باندې ۵- دعرفات ۶- د مزدلفې د وقوف په وخت كې ۷- او د رمى د جمراتو په وخت كې.

**۱۲- اتم حديث:** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، ثنا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْمُحَارِبِيُّ، ثنا ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مُقْسِمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهم، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ: افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَاسْتِقْبَالِ الْبَيْتِ، وَالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَالْمَوْقِفَيْنِ، وَعِنْدَ الْحَجَرِ (رواه البزار فى مسنده كشف الاستار ج۱ ص۲۵۱ ،نصب الرايه ج۱ ص۴۷۰)

ترجمه : د حضرت عبد الله بن عباس رضى الله عنهما او د حضرت عبد الله ابن عمر رضى الله عنهما څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې رفع اليدين په اوو ځايونو كې كيږي ۱- د لمانځه په شروع كې ۲- د بيت الله شريف د ملاقات په وخت كې ۳- په صفا باندې ۴- په مروه باندې ۵- د عرفات ۶- د مزدلفې د وقوف په وخت كې ۷- او د رمى د جمراتو په وخت كې.

**۱۳- نهم حديث :** وبه قال حدثنا محمد بن عثمان بن ابى شيبه، حدثنا محمد بن عمران بن ابى ليلى، حدثنا ابى، عن ابن ابى ليلى، عن الحكم عن مقسم، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ: حِينَ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ، وَحِينَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ فَيَنْظُرُ إِلَى الْبَيْتِ، وَحِينَ يَقُومُ عَلَى الصَّفَا، وَحِينَ يَقُومُ عَلَى الْمَرْوَةِ، وَحِينَ يَقِفُ مَعَ النَّاسِ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ وَبِجَمْعٍ وَالْمَقَامَيْنِ، وَحِينَ يَرْمِي الْجَمْرَةَ». (نصب الرايه ج۱ ص ٤٦۹ بمجمع الزوائد رقم ۵٤٦۱].

وقال الهيثمى رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ فِي الْكَبِيرِ وَالْأَوْسَطِ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "رَفْعُ الْأَيْدِي إِذَا رَأَيْتَ الْبَيْتَ". وَفِيهِ: "عِنْدَ رَمْيِ الْجِمَارِ وَإِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ" ورواه الطبرانى فى الاوسط رقم ۱۶۸۸.

وَفِي الْإِسْنَادِ الْأَوَّلِ مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي لَيْلَى، وَهُوَ سَيِّئُ الْحِفْظِ، وَحَدِيثُهُ حَسَنٌ إِنْ شَاءَ اللَّهُ، وَفِي الثَّانِي عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ وَقَدِ اخْتَلَطَ (طبرانی کبير ج۱۱ ص۳۵۰).

عبد الله ابن عباس رضی الله عنه فرمايي : چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي رفع اليدين به براځې په مذکورو اووځايونو کې کيږي ، په دې کې حصر حقيقي نه دی بلکې اضافي دی فلهذا د وترو او د عيدينو او ددعاء د رفع اليدين سره دا حديث منافي نه دی .

**۱۴- لسم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ شُعَيْبٍ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ النَّسَائِيُّ، أَنَا عَمْرُو بْنُ يَزِيدَ أَبُو بُرَيْدٍ الْجَرْمِيُّ، ثنا سَيْفُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، ثنا وَرْقَاءُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "السُّجُودُ عَلَى سَبْعَةِ أَعْضَاءٍ: الْيَدَيْنِ، وَالْقَدَمَيْنِ، وَالرُّكْبَتَيْنِ، وَالْجَبْهَةِ، وَرَفْعُ الْأَيْدِي إِذَا رَأَيْتَ الْبَيْتَ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَبِعَرَفَةَ وَبِجَمْعٍ وَعِنْدَ رَمْيِ الْجِمَارِ وَإِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ" (رواه الطبرانی الکبير ج۱۱ ص۳۵۸ نصب الرايه ج۱ ص٤٦۹).

دحضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائلي دي چې سجده په اوواندامونو ده ، په دواړو لاسونو، په دواړو قدمونو، په دواړو زنګنونو او په تندي باندې او پورته کول د لاسونو چې دي په هغه وخت کې دي چې کله دي ۱- بيت الله وليدلو ۲- او په صفا ۳- او په مروه ۴- او په عرفات ۵- او په وخت د رمی د جمراتو کې دی ۶- او چې کله مانځه نه ودريږي نو که د رکوع په وخت کې رفع اليدين وي هغه به يې هم ذکر کړی و .

قال الشيخ انور شاه الکشميری فی نيل الفرقدين واذا قمت للصلوة وفی الجامع الصغير للسيوطی واذا اقيمت الصلوة ، قال شارحه العزيزی رحمه الله قال الشيخ حديث حسن صحيح وقال الشيخ ايضاً اسناد النسائی کلهم من رجال التهذيب ثقات وورقاء بن عمر من اقران شعبه و شعبه سمع من عطاء قبل التغير فالاسناد قوی و متابعاته ايضاً فی (التخريج) کافيه ويکفی فيه وجود النسائی فيه فانه علی ما علم من عادته لا يروی ساقطاً و لا عن ساقط (نيل الفرقدين ص ۱۳۷)

**۱۵- يولسم حديث :** أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ الْحَسَنِ الْقَاضِي، ثنا أَبُو الْعَبَّاسِ مُحَمَّدُ بْنُ يَعْقُوبَ، أنبأ الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ، أنبأ الشَّافِعِيُّ، أنبأ سَعِيدُ بْنُ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: حُدِّثْتُ، عَنْ مِقْسَمٍ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي الصَّلَاةِ، وَإِذَا رَأَى الْبَيْتَ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَعَشِيَّةَ عَرَفَةَ، وَبِجَمْعٍ، وَعِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ، وَعَلَى الْمَيِّتِ. (سنن کبری للبهيقی ج۵ ص ۷۲ نصب الرايه ج۱ ص ٤۷۱ ).

د حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې رفع اليدين كولى شي ۱- په لمانځه کې ۲- دبيت الله شريف د زيارت په وخت کې ۳- په صفا باندې ۴- په مروه باندې ۵- په عرفات کې ۶- د رمی د جمراتو په وخت کې ۷- په مړي باندې د جنازې د لمانځه په وخت کې.

**۱٦- دولسم حديث :** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه، قَالَ: "تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ: إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ، وَإِذَا رَأَى الْبَيْتَ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَفِي جَمْعٍ، وَفِي عَرَفَاتٍ، وَعِنْدَ الْجِمَارِ (مصنف ابن ابى شيبه رقم٦٥٢٤)

حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنه فرمايي : چې رفع اليدين په اوو ځايونو کې کيږي ۱- چې كله لمونځ ته ودريږي ۲- چې كله بيت الله وګوري ۳- په صفا باندې ۴- په مروه باندې ۵- په عرفات کې ۶- په مزدلفه کې ۷- او د رمی د جمراتو په وخت کې.

**۱۷ - ديارلسم حديث :** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه، قَالَ: "لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ: إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ، وَإِذَا رَأَى الْبَيْتَ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَفِي عَرَفَاتٍ، وَفِي جَمْعٍ، وَعِنْدَ الْجِمَارِ. (مصنف ابن ابى شيبة ج۱ ص۲٦۷ و ۲٦۸ طبع مكتبه امداديه ملتان رقم ۵۲، ۵۳ يعنې رفع اليدين په مذكورو اوو ځايونو کې دی.

**نوټ :** بعضو محدثينو دې حديث ته موقوف ويلي دي، نو که موقوف شي بيا هم حكماً مرفوع دی، خاصكر چې كله مرفوعاً هم ثابت دی، په دې احاديثو کې عبد الله ابن عباس په اوو ځايونو کې د رفع اليدين ذكر کړی دی يو د تكبير تحريمه او باقي شپږ د حج دي، نو که د ركوع رفع اليدين وای هغه به يې هم بيان کړی وو حالانکې داسې يې نه دي کړي معلوميږي چې صرف د لمانځه په شروع کې د رفع اليدين كول مناسب دي.

**اول اعتراض :** د عبدا لله بن عباس رضی الله عنهما په روايت کې حضرت ابن ابی ليلی متفرد دی او ابن ابی ليلی د رواياتو په معامله کې د احتجاج قابل نه دی.

**۱- ځواب :** د ابن ابی ليلی څخه د شعبة رحمه الله، د وكيع رحمه الله او د سفيان رحمه الله په شان ثقه راويان روايتو نه كوي چې دا دده د ثقه والي واضح دليل دی، دده حافظه اګر چې په اخر کې متغيره شوې وه لکن د وكيع رحمه الله روايات ترېنه په هغه وخت کې وو چې حافظه يې سالمه وه.

(۱) امام عجلي رحمه الله دده په باره کې فرمايي چې: كان فقيهـا صـاحب سـنة صـدوقاً جـايز الحديث قارئا عالما قرأ عليه حمزة الزيات( تهذيب التهذيب ج۹ ص۳۰۲ )

(۲) امام ترمذی رحمه الله دده بعضو رواياتو ته صحيح ويلي دي مثلاً وګوره باب متى يقطع التلبية في العمرة. ترمذی ج۱ ص ۱۵۸ ).

همدارنګه: باب ماجاء في الرجل يقرأ القرآن على كل حال مالم يكن جنبا همدارنګه: باب ماجاء في كراهية الشرب في أنية الذهب والفضة وغيره.

(۳) محدث منذری رحمه الله فرمايي چې الانصاری ، الكوفی ،صدوق ، امام ثقة ، ردئ الحفظ كثيراً كذا قال الجمهور فيه . ( الترغيب والترهيب ج۵ ص ۵۳۵)

(٤) امام احمد بن يونس فرمايي: كان افقه اهل الدنيا(ميزان الاعتدال ج ٤صـ ۱۷۵)

(٥) امام زايده فرمايي چې كان افقه اهل الدنيا (سير اعلام النبلاء ج ٦صـ ۳۱۱)

(٦) امام ابو يوسف القاضي فرمايي: ماولى القضاء احد افقه في دين الله ولا اقرأ لكتاب الله ولا اقول حقا بالله ولا اعف عن الاموال من ابن ابي ليلى، (ميزان الاعتدال ج ٤صـ ۱۷٦)

(۷) امام ابو ذرعه فرمايي: هو صالح ليس بأقوى مايكون (الجرح والتعديل ج ۷صـ ۳۲۲)

(۸) امام ابو حاتم الرازي فرمايي: محله الصدق كان سيئ الحفظ (الجرح والتعديل ج ۷صـ ۳۲۲)

(۹) امام عطاء بن ابي رباح فرمايي: قال ابن ابي ليلى: دخلت على عطاء فجعل يسألني فكان اصحابه أنكروا عليه ذلك وقالوا تسأله؟ قالو: وماتنكرون؟ هو اعلم مني (ميزان الاعتدال ج ٤۳ـ ۱۷٦)

(۱۰) علامه ابن حجر فرمايي: له ذكر في الاحكام من صحيح البخاري قال اول من سأل على كتاب القاضي البينة ابن ابي ليلى وسوار (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

(۱۱) امام سفيان الثوري رحمه الله فرمايي: فقهاءنا ابن ابي ليلى وشبرمه (تهذيب التذهيب تحت ترجمته)

(۱۲) امام ذهبي فرمايي: حديثه في وزن الحسن (تذكرة الحفاظ تحت ترجمته)

(۱۳) غیر مقلد شاکر لیکي چې: ومثل هذا (لابن ابی لیلی) لا یقـل حدیثـه عـن درجـة الحسن المحتج به واذا تابعه غیره کان الحدیث صـحیحا (شرح ترمـذي لاحمدشـاکر غـیر مقـلد، بحواله نورالصباح ج ۱ صـ۱٦٦)

**۲- ځواب :** ابن ابی لیلی په دې روایت کې متفرد نه دی په لسم نمبر حدیث کې او په یوولسم نمبر حدیث کې د امام نسائی رحمه الله او د امام شافعی رحمه الله په طریقه هم همدا روایت تیر شو په هغې دواړو سندونو کې ابن ابی لیلی نه و .

**دوهم اعـتراض :** شعبه رحمه الله فرمایلي دي چې حکم رحمه الله د مقسم رحمه الله څخه صرف څلور روایات اوریدلي دي او دا حدیث په هغې څلورو کې نشته .

**۱- ځواب :** د امام شعبة رحمه الله مذکور بیان دا صرف د ده رحمه الله استقراء ده، امام احمد رحمه الله د ده د روایاتو تعداد پنځه ښودلی دی او امام ترمذی رحمه الله د دې څخه هم د زیاتو روایاتو ذکر کړی دی، په کومو کې چې د سماع او یا د تحدیث تصریح ده، حافظ زیلعی رحمه الله په نصب الرایه ج ۱ ص ۴۶۹ و ۴۷۰ و ۴۷۱ کې څه نور احادیث هم ذکر کړي دي، چې د هغې څخه معلومیږي چې د حکم سماع د مقسم څخه په دغه څلورو کې منحصره نه ده .

**۲- ځواب :** د احدیث یو ائې د حکم عن مقسم په سند سره نه دی روایت شوی، بلکې په لسم نمبر کې چې مونږ کوم سند را نقل کړی دی په هغه کې خو حکم عن مقسم نشته .

**دریم اعتراض :** په دې حدیث کې وقفا او رفعاً اضطراب دی .

**ځواب :** امام بخاری په جزء رفع الیدین کې د وکیع رحمه الله روایت مرفوعا ذکر کړی دی، د دې څخه معلومیږي چې د وکیع دا روایت په دواړو طریقو را نقل شوی دی، نو دا اضطراب نه دی بلکې حدیث په دوو طریقو سره را نقل شوی دی او دا سې د ېرشوي دي چې یو صحابي یو روایت کله رسول الله ته منسوبه وي او کله یې نه منسوبه وي او که بالفرض دا روایت موقوف هم شي نو د مرفوع په حکم کې دی ځکه کوم احکام چې په دې حدیث کې ذکر شوي دي په هغې کې د اجتهاد او قیاس دخل نشته .

**څلورم اعتراض :** حضرت حکم مدلس دی او عمران بن ابی لیلی مجهول الحال دی صرف ابن حبان ورته ثقه ویلی دی.

**ځواب :** د حضرت حکم رحمه الله تدلیس مضر نه دی، ځکه چې حکم رحمه الله د دوهمې طبقې مدلس دی، علاوه لا دا چې متفرد نه دی بلکې متابعات یې موجود دي او حضرت عمران ابن ابی لیلی ته صرف ابن حبان ثقه نه دی ویلی، بلکې حافظ ابن حجر رحمه الله د ده په باره کې فرمایي چې مقبول من الثامنة، تقریب ص ۲۲۵.

**۵- اعتراض:** چې په دې روایتونو کې اختلاف دی په بعضو کې د حصر جملې دي، لا ترفع الایدی الافی سبع مواطن او په بعضو کې د حصر جملې نشته لکه د ترفع الایدی فی سبع مواطن او د رفع الایدی اذا رایت البیت جملې.

**قُلنا :** کومې جملې چې معترض ته بلا حصره ښکاري په هغې جملو کې هم د بلاغت د اصولو مطابق حصر دی ځکه چې حصر د - ما - او - الا - یعنې د نفی او د استثناء پورې خاص نه دی ددې له پاره نورې هم ډیرې طریقې دي لکه تعریف د مسند او مسند الیه او کله په مسند او مسند الیه کې یو معرفه وي او په بل کې د (من) یا د (فی) او یا د (لام) کلمه وي لکه الائمة من قریش، الحمد لله، والکرم فی العرب. دا ټول تعبیرات مفید د قصر دي نو په لا ترفع الایدی الا فی سبع مواطن او په ترفع الایدی فی سبع مواطن دواړو کې حصر دی.

**٦ اعتراض :** دلته خو حصر محال دی ځکه چې رفع الیدین خو تر دغو مذکورو اوو ۷ ځایونو پورې مقصور نه دی بلکې په وترو او په عیدینو کې هم شته.

**قلنا :** چې د لته قصر حقیقی نه دی مراد بلکې قصر اضافي مراد دی په نظر سره هغه رفع الیدین ته قصر دی چې په هغوی کې د کوم شعار د اظهار حیثیت نه وي.

تفصیل یې دا دی چې د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما په حدیث کې ددې اوو رفع الیدینونو په تخصیص کې اظهار د شعار دی، یعنې دا اووه (۷) ځایونه د اسلام د شعایرو څخه دي او رفع الیدین ددې اوو ۷ ځایونو د شعایر والي علامه ده او په دې باندې د هغو شعایرو اظهار کیږي، له دې وجې په دې ځایونو کې رفع الیدین مطلوب دی نو د قصر اضافي معنی دا شوه چې په هغو ځایو کې رفع الیدین

مه کوه چې هغه د شعايرو څخه نه دي، د رکوع رفع اليدين د شعار والي تقاضا نه ده له دې وجې د هغې نه
کول پکار دي، پاتې شوه د اخترونو تکبيرونه نو دا هم د شعايرو څخه دي په قرآن کريم کې ددې طرفته
په دې الفاظو ترغيب دی چې لتکبروا الله على ما هداکم.

او داد مسلمانانو د خوشالۍ ورځ ده، د نورو قومونو د خوشاليو په ورځو کې لهو او لعب وي، الله
جل جلاله د مسلمانانو د خوشالۍ د ورځې امتياز په دې اجتماعي لمونځ او تکبيرونو باندې راوستلو
او ددې شعار د اظهار له پاره يې پکې رفع اليدين زيات کړل. پاتې شو

**د وترو او د قنوت رفع اليدين :** نو علامه کشميري رحمه الله فرمايي دا داسې دي لکه د قيام د
شروع کيدو رفع اليدين، د قيام په شروع کې رفع اليدين وي نو له دې وجې د وترو د قيام په شروع کې هم
رفع اليدين راغلل.

تفصيل يې دادی چې الله جل جلاله فرمايي چې حافظوا على الصلوة والصلوة الوسطى وقوموا لله
قانتين الايه البقرة ۲۳۸] په قوموا لله قانتين کې دوه لفظه دي، يو د قيام او بل د قنوت، د قيام مشهوره
معنی ودريدل دي او قنوت يو جامع لفظ دی يو معنی يې دعا هم ده، نو ددې حاصل دا شو چې په لمانځه
کې د قنوت او يا د دعا قنوت په وخت کې هم قيام مطلوب دی او د احنافو په نيز د صحيح رواياتو مطابق
دا قنوت د وترو پورې ملحق دی، نو په ايت باندې د عمل کولو تقاضا داده چې د قنوت له پاره د قيام
ضرورت دی او دلته چې کوم قيام راروان دی د هغې په شروع کې د شعار والي د ظاهرولو له پاره رفع
اليدين شوي وو، نو د قنوت د قيام په شروع کې هم د شعار د ظاهرولو له پاره رفع اليدين پکار دي او دا
قيام مستقل نشو بلکې د اول قيام پورې مربوط کړی شو.

**د روايت معنی :** دا روايت مرفوع دی په اول کې د څه خاص مصلحت له پاره په څو ځايونو کې
رفع اليدين مطلوب و کله چې هغه مصلحت په ذهنونو کې پوخ شو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم
وفرمايل چې اوس په هر ځای کې د رفع اليدين ضرورت نشته صرف د شعار د اظهار له پاره د رفع اليدين
کول کافي دي، نو د مخاطب په عقيده کې رفع اليدين د شعار او د عدم شعار په مينځ کې مشترک وو نو د
قصر افراد په ذريعه تر شعايرو پورې خاص شو.

او که بالفرض دا حديث موقوف شي او د عبدالله ابن عباس رضی الله عنه بيان شي نو بيا هم قصر
افراد دی حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنه وغير صحابهٔ چې کله وليدل چې کله خلک د شعايرو

ځکه ماسوی د انتقالاتو په وخت کې هم رفع اليدين کوي نو د قصر افراد په طريقه يې رد پرې او کړو چې رفع اليدين په لمانځه کې صرف او صرف د تکبير تحريمه په وخت کې دی د انتقالاتو سره رفع اليدين نشته، نيل الفرقدين ص ۱۳۷ و ص ۱۴۱ رفع اليدين از حضرت مولانا فخرالدين احمد ص ۱۳۳.

## منفرد ته د لمونځ د ښودلو والا قولي احاديث

**۱۸- دیارلسم د ابوهريرة رض حديث :** دا حديث د مسيئ الصلوة په نوم باندې مشهور دی، کوم صحابي ته چې دلته د لمانځه تعليم ورکول کيږي هغه رضي الله عنه ته دلمانځه د ادا کولو صحيح طريقه نه وه معلومه، ددې صحابي رضي الله عنه نوم خلاد بن رافع رضي الله عنه دی.

دا حديث چونکې د لمانځه د مسايلو په باره کې تفصيلي حديث دی، له دې وجې ټول امامان ددې حديث څخه د لمانځه د مسايلو له پاره استدلال کوي، شوکاني ليکي چې دا حديث د لمانځه د واجباتو د معرفت له پاره د مرجع حيثيت لري [نيل الاوطار ج ۲ ص ۱۷۹].

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ، فَجَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَقَالَ لَهُ: «ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ» فَرَجَعَ فَصَلَّى ثُمَّ سَلَّمَ، فَقَالَ: «وَعَلَيْكَ، ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ» قَالَ فِي الثَّالِثَةِ: فَأَعْلِمْنِي، قَالَ: «إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ، فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ، ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ، فَكَبِّرْ وَاقْرَأْ بِمَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا، ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ حَتَّى تَعْتَدِلَ قَائِمًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ وَتَطْمَئِنَّ جَالِسًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا، ثُمَّ افْعَلْ ذَلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا». (بخاری رقم الحديث ۷۵۷ و ٦٦٦٧ واللفظ له، مسلم رقم الحديث ٨٨٤ ورقم ٨٨٥ و ابوداؤد رقم ٨٥٦، ترمذی رقم ۳۰۳ نسائی رقم ۱۰۵۳، مسند احمد رقم ۹۳۵۲).

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې يوه ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم د مسجد په يو طرف کې تشريف فرما وو، چې يو سړی راغی او لمونځ يې وکړو بيا د رسول الله صلی الله عليه وسلم طرفته راغی او سلام يې واچولو، رسول الله صلی الله عليه وسلم د سلام جواب ورکړه او بيا يې ورته وفرمايل چې لاړ شه لمونځ وکړه تا پوره صحيح لمونځ نه دی کړی هغه لاړو او لمونځ يې وکړو او بيا د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او سلام يې وکړو رسول الله صلی الله عليه وسلم د سلام جواب ورکړو او دته يې وفرمايل چې لاړ شه لمونځ وکړه تا پوره صحيح لمونځ نه دی کړی نو دغه سړي په دريم ځل عرض وکړ چې يا رسول الله نو بيا يې ماته وښايه چې زه څرنګه لمونځ وکړم؟ رسول

الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې: كله چې دې د لمانځه اراده وكړه نو اول په صحيح طريقه باندې اودس وكړه، بيا د قبلې طرف ته مخ كړه، ددې څخه وروسته چې كله د قرات موقع راغله نو د قرات كومه حصه چې درته ياده وه او لوستل يې درته اسان و نو هغه ولوله بيا د قرات څخه وروسته ركوع وكړه تر دې چې په ركوع كې مطمئن شې، بيا د ركوع څخه پورته شه تر دې چې په ودريدلو كې ساكن او مطمئن شې، بيا سجده وكړه تر دې چې په سجده كې مطمئن او ساكن شې، بيا دسجدې څخه پورته شه تر دې چې په كيناستلو كې مطمئن او ساكن شې بيا ودريږه تر دې چې سيده ودريږې، بيا په ټول لمونځ كې همداسې كوه يعني په هر ركعت كې قرات كوه قيام ، ركوع ، سجده ، قومه ، جلسه او تمام اعمال په اطمنان سره ادا كوه.

په دې حديث كې رسول الله صلى الله عليه وسلم خلاد بن رافع رضى الله عنه ته دنورو واجباتو تعليم وركړو لكن د رفع اليدين تعليم يې ورنكړو حالانكې دا مقام د تعليم وو كه رفع اليدين څه خاص اهميت درلودلاى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به ددې تعليم ضرورو وركړى و.

١- امام نووي رحمه الله د امام احمد رحمه الله په خلاف دليل پيش كوي او ليكي چې د ركوع او د سجدې تسبيحات مستحب دي واجب نه دي امام احمد رحمه الله ورته واجب وايي امام نووى رحمه الله فرمايي چې جمهور امام احمد رحمه الله ته جواب وركوي چې د مسيئ الصلوة په حديث كې رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې تسبيحاتو حكم نه دى وركړى كه چيرته دا تسبيحات واجب وي، نو رسول الله صلى الله عله وسلم به ضرور ددې حكم ورته كړى و (نووى شرح مسلم ج١ ص ١٩١) ددې څخه معلومه شوه چې د كومو شيانو ذكر په دې حديث كې نشته هغه واجب نه دي.

٢- ابن دقيق العيد رحمه الله ليكي چې فقهاء كرام بيا بيا ددې حديث څخه استدلال كوي چې د كومو شيانو ذكر چې په دې حديث كې شوى دى هغه واجب دي او د كومو شيانو ذكر چې نه دى شوى هغه واجب نه دي. (احكام القرآن ج١ ص ٧٣).

٣- امير يماني ليكي چې دا استدلال چې د كومو امورو ذكر چې په دې حديث كې شوى دى هغه واجب دي او د كومو شيانو ذكر چې نه دى شوى هغه نه دي واجب ، بالكل صحيح دي ځكه چې دا دلمانځه د واجباتو دتعليم موقع دى كه په دې مقام كې د لمانځه د واجباتو ذكر پرېښودل شي، نو

ضرورت په وخت کې به د بيان د کولو څخه تاخير راشي، حالانکه د ضرورت په وخت د بيان تاخير بالاجماع ناجائز دى (سبل السلام ج۱ ص ۲۴۸ باب صفة الصلوة).

۴- امام ابوداؤد رحمه الله فرمايي: چې ما د امام احمدبن حنبل رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چې يو سړي لمونځ شروع کړ او د لمانځه په شروع کې يې رفع اليدين ونکړل نو ايا دي به د لمانځه اعاده کوي؟ هغه وفرمايل چې اعاده به نه کوي ځکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم اعرابي ته درفع اليدين تعليم ورنکړو نو که رفع اليدين واجب واى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به يې تعليم ورکړى و (بدايع الفوائد ج۳ ص۹ لابن القيم طبع مصر).

۵- علامه ابن عبد البر رحمه الله فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت ابوهريره رضى الله عنه او د حضرت رفاعه رضى الله عنه په حديثونو کې هغه سړي ته د رفع اليدين حکم ونکړو او نه يې ورته د اول تکبير څخه ماسوى د بل تکبير حکم وکړو (الاستذکار ج۱ ص۱۰۹) په دې حديث کې د تمامو اعمالو ذکر نه دى شوى لکن کوم چې ذکر شوي نو په هغې کې يقينا چې د يوې يا د يوې څخه د زياتې کوتاهۍ په وجه ورته رسول الله صلى الله عليه وسلم دبيا بيا لمونځ کولو حکم وکړ که دد دې مذکورو شيانو څخه ماسوى بل داسې شى وي چې په هغه کې د کوتاهۍ په وجه لمونځ ماتيدلاى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به په دې موقع کې ضرور د هغې تعليم هم ورکړى وو دد دې څخه معلوميږي چې رفع اليدين څه داسې ضروري عمل نه دى چې په پرېښودلو يې لمونځ خرابيږي.

۶- شوکانى رحمه الله ليکي چې: وقد تقرر من الفقهاء الاستدلال بهذا الحديث على وجوب ما ذكر فيه وعدم وجوب مالم يذكر فيه (نيل الاوطار باب السجدة الثانية و لزوم الطمانية فى الركوع).

## ۱۹- څوارلسم حديث:

عَنْ عَلِيِّ بْنِ يَحْيَى بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ عَمِّهِ، أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ قَالَ فِيهِ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهُ لَا تَتِمُّ صَلَاةٌ لِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ حَتَّى يَتَوَضَّأَ، فَيَضَعَ الْوُضُوءَ - يَعْنِي مَوَاضِعَهُ - ثُمَّ يُكَبِّرُ، وَيَحْمَدُ اللَّهَ جَلَّ وَعَزَّ، وَيُثْنِي عَلَيْهِ، وَيَقْرَأُ بِمَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَرْكَعُ حَتَّى تَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ، ثُمَّ يَقُولُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَائِمًا، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَسْجُدُ حَتَّى تَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، وَيَرْفَعُ رَأْسَهُ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ

يَسْجُدُ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ، ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ فَيُكَبِّرُ، فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُهُ" ( ابوداؤد رقم ۸۵۷ و۸٦۱ واللفظ له ترمذی رقم ۳۰۲ نسائی رقم ۱۰۵۳ و ۱۱۳٦ وابن ماجه رقم ٤٦۰)

حضرت علي بن يحی بن خلاد رحمه الله د خپل کاکا حضرت رفاعه بن رافع رضی الله عنه څخه روايت کوي چې يو سړی مسجد ته راغلو بيايې د مخکيني حديث (ابوداؤد رقم ۸۵۶) په شان واقع ذکر کړه په دې کې يې وفرمايل چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې بيشکه د هيچا لمونځ نه مکمل کيږي ترڅو پورې چې اودس وکړي او ټول اندامونه پاک کړي، بيا الله اکبر ووايي او د الله جل جلاله حمد بيان کړي او په الله جل جلاله باندې ثنا ووايي بيايې چې د قرآن کومې حصې ته اراده وي هغه ووايي، بيا الله اکبر ووايي، بيا رکوع وکړي تر دې چې دده هر بند ساکن او مطمئن شي بيا سمع الله لمن حمده ووايي تر دې چې سيده ودريږي بيا الله اکبر ووايي بيا سجده وکړي تر دې چې بندونه يې ارام او مطمئن شی بيا الله اکبر ووايي او سر راپورته کړي تر دې چې سيده کيني، بيا الله اکبر ووايي او سجده وکړي تر دې چې بندونه يې ارام او مطمئن شي، بيا سر راپورته کړي نو الله اکبر ووايي پس کله يې چې دا وکړل نو په تحقيق سره پوره شو لمونځ دده .طريقه د استدلال به د اولسم حديث څخه وروسته وليکو ان شاء الله تعالی .

**۲۰- پنځلسم حديث :** عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ - بِهٰذِهِ الْقِصَّةِ - قَالَ: «إِذَا قُمْتَ فَتَوَجَّهْتَ إِلَى الْقِبْلَةِ فَكَبِّرْ، ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ، وَبِمَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ تَقْرَأَ، وَإِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ رَاحَتَيْكَ عَلٰى رُكْبَتَيْكَ، وَامْدُدْ ظَهْرَكَ»، وَقَالَ: «إِذَا سَجَدْتَ فَمَكِّنْ لِسُجُودِكَ، فَإِذَا رَفَعْتَ فَاقْعُدْ عَلٰى فَخِذِكَ الْيُسْرٰى» (ابوداؤد رقم ۸۵۹ )

د حضرت رفاعه بن رافع رضی الله عنه څخه هم دا سې قصه روايت شوې ده په کومه کې چې د حضور صلی الله عليه وسلم دا ارشاد مروي دی چې کله قبلې ته مخامخ ودريدلې نو الله اکبر ووايه، بيا سورة فاتحه ولوله او د قرآن هغه حصه ولوله چې د الله جل جلاله ورته اراده وي او چې کله رکوع کوې نو خپل ورغوي په خپلو زنګنونو باندې کيږده او ملا دې اوږده کړه او فرمائلي يې دي چې کله دې سجده کوله نو خپل اندامونه په ښه طريقه باندې ځای په ځای کړه او کله چې راپورته شوې نو په خپل چپ ورون باندې کينه .

**۲۱- شپاړسم حديث :** عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ رضي الله عنه : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ جَالِسًا فِي الْمَسْجِدِ فَدَخَلَ رَجُلٌ فَصَلّٰى وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ إِلَيْهِ فَقَالَ لَهُ «إِذَا قُمْتَ فِي صَلَاتِكَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ إِنْ كَانَ مَعَكَ قُرْآنٌ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَكَ قُرْآنٌ، فَاحْمَدِ اللّٰهَ، وَكَبِّرْ وَهَلِّلْ، ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا، ثُمَّ قُمْ حَتّٰى تَعْتَدِلَ قَائِمًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ

ساجداً ثم اجلس حتى تطمئن جالساً، فإذا فعلت ذلك فقد تمت صلاتك وما انقصت من ذلك، فإنما تنقص من صلاتك». (طحاوی رقم ۳۵۸ واللفظ له مسند احمد رقم۱۸۵۱۶ و رقم ۱۸۵۱۸ .

حضرت رفاعه بن رافع فرمايي : چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په مسجد كې ناست و يو سړې راغی او لمونځ يې وكړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته كتل، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې كله ته لمانځه ته ودريدلې نو الله اكبر ووايه بيا كه دې قران ياد و نو قرآن ولوله او كه قرآن دې نه و ياد نو الحمد لله ، الله اكبر او لااله الا الله ولوله ،بيا ركوع وكړه تردې پورې چې په ركوع كې مطمئن او ارام شې، بيا د ركوع څخه پاڅېږه تر دې چې سيده ودرېږې، بيا سجده وكړه تر دې چې په سجده كې بنه ارام او مطمئن شې بيا د سجدې څخه پاڅېږه تردې چې مطمئن شې، بيا سجده وكړه تردې چې مطمئن شې بيا پاڅېږه تر دې چې مطمئن كينې كله چې دې داسې وكړل نو لمونځ دې پوره كړو او كه په دې كې دې يو څه كم كړل نو يقيناً چې تا خپل لمونځ كم كړو.

**۲۲- اولسم حديث :** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ يَحْيَى بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمِّهِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ رضي الله عنه أَنَّهُ كَانَ جَالِسًا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَ رَجُلٌ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى، فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَى الْقَوْمِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ» وَذَكَرَ ذَلِكَ إِمَّا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً، فَقَالَ الرَّجُلُ: مَا أَدْرِي مَا عِبْتَ عَلَيَّ مِنْ صَلَاتِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهَا لَا تَتِمُّ صَلَاةُ أَحَدٍ حَتَّى يُسْبِغَ الْوُضُوءَ كَمَا أَمَرَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ، يَغْسِلُ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ، وَيَمْسَحُ رَأْسَهُ وَرِجْلَهُ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَحْمَدُ اللَّهَ وَيُمَجِّدُهُ، وَيَقْرَأُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا أَذِنَ اللَّهُ لَهُ فِيهِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَرْكَعُ، وَيَضَعُ كَفَّيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ حَتَّى يَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ وَيَسْتَوِي ثُمَّ يَقُولُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَيَسْتَوِي قَائِمًا حَتَّى يَأْخُذَ كُلُّ عَظْمٍ مَأْخَذَهُ، ثُمَّ يُقِيمُ صُلْبَهُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ فَيَسْجُدُ فَيُمَكِّنُ جَبْهَتَهُ مِنَ الْأَرْضِ حَتَّى يَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ، وَيَسْتَوِي ثُمَّ يُكَبِّرُ فَيَرْفَعُ رَأْسَهُ، وَيَسْتَوِي قَاعِدًا عَلَى مَقْعَدَتِهِ وَيُقِيمُ صُلْبَهُ" فَوَصَفَ الصَّلَاةَ هَكَذَا حَتَّى فَرَغَ ثُمَّ قَالَ: «لَا يَتِمُّ صَلَاةُ أَحَدِكُمْ حَتَّى يَفْعَلَ ذَلِكَ» ( مستدرک حاکم رقم ۹۱۶).

حضرت علي بن يحى بن خلاد د خپل پلار څخه او هغه د خپل تره څخه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په مسجد كې تشريف فرماوو چې يو سړى مسجد ته راغلو او لمونځ يې وكړو چې كله يې لمونځ وكړ نو راغی او په رسول الله صلى الله عليه وسلم او په قوم باندې يې سلام واچوو، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وعليک وويلې او ورته وېفرمايل چې واپس شه مونځ وكړه تا لمونځ نه دى كړى، هغه سړي دوه او يا درې ځلې همداسې لمونځ وكړو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته دوه يا درې ځلې

پوهیږم تاسو زما په لمونځ کې همداسې وفرمايل هغه سړي عرض وکړو چې زه ددې څخه په بهتر لمونځ نه پوهیږم تاسو زما په لمونځ کې ماته کوم نقصان هم را ونښودلو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل چې د هیچا لمونځ هم تر هغې پورې نه مکمل کیږي ترڅو پورې چې د الله جل جلاله د امر مطابق پوره اودس وکړي، خپل مخ ووينځي او لاسونه ووينځي، تر څنګلو پورې او په سر باندې مسح وکړي او پښې ووينځي تر ښنګرو پورې بیا الله اکبر ووايي او د الله جل جلاله حمد اولولي او بیان کړي او د څومره قرآن چې الله توفیق ورکړي وي هغه ولولي بیا الله اکبر ووايي رکوع وکړي او لاسونه په زنګنونو باندې کیدي ترڅو چې بندونه یې په خپل خپل ځای باندې ښه په ارام شي او ملا او سر برابر کړي بیا سمع الله لمن حمده ووايي او سیده ودریږي ترڅو چې هر اندام خپل خپل ځای ونیسي او بیا ملا نیغه کړي بیا الله اکبر ووايي بیا سجده وکړي او خپل تندي په زمکه باندې کیدي، ترڅو چې هر اندام یې په خپل خپل ځای باندې په ارام شي، بیا الله اکبر ووايي او سر راپورته کړي او په خپل ځای باندې کیني او خپله ملا بالکل سیده کړي.

بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم همداسې د لمونځ صفات بیانول ترڅو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې بیان څخه فارغ شو بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په تاسو کې د هیچا مونځ هم تر هغې پورې نه مکمل کیږي ترڅو چې په دغو ټولو بیان شویو احکامو عمل ونکړي.

## طريقه د استدلال:

حضرت کشمیري رحمه الله فرمايي چې : ثم ان لفظ الحديث عن رفاعة فى الكنز (حتى يرجع كل عضو منك) اهاى الى موضعه وحتى ياخذ كل عظم ماخذه مبنى على الترک عند الرفع فليس موضع اليد الاعدم الرفع لكن لم اجد بهذااللفظ عند كل من عزاله انما هو فى المستدرک و معناه متكرر فى حديث المسيئ (نيل الفرقدين ص١٢ و ص١٣)

یعنې د رفاعه رضی الله عنه حدیث چې په کنز العمال رقم ١٩٦٢٠ کې راغلی دی او د (حتى يرجع كل عضو منک) او د (حتى ياخذ كل عظم ماخذه) الفاظ پکې راغلي دي دا په ترک د رفع اليدين باندې مبني دي ځکه چې ددواړو لاسونو ځای صرف عدم رفع ده، لکن کومو کتابونو ته چې ددې الفاظو نسبت شوی دی هلته ما دا الفاظ پیدا نکړه، دا الفاظ په مستدرک حاکم رقم ٩١٦ ج ١ ص ٢٤٢ کې راغلي دي او

دې معنی په حدیث د مسیئ الصلوة کنزالعمال رقم ۱۹۶۲۱ و ۱۹۶۲۲ همدا رنګه په حدیث د عبد الله بن عمر رضی الله عنه رقم ۱۹۶۳۰ کې بيا بيا ذکر شوی ده. نيل الفرقدين ص ۱۲ و ص ۱۳). همدا رنګه په حديث د مسیئ الصلوة لاندې بله طريقه د استدلال هم تيره شوې ده.

**۲۳ - اتلسم حدیث :** وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما قَالَ: «سَأَلَ رَجُلُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ شَيْءٍ مِنْ أَمْرِ الصَّلَاةِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "خَلِّلْ أَصَابِعَ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ" - يَعْنِي إِسْبَاغَ الْوُضُوءِ وَكَانَ فِيمَا قَالَ لَهُ: "إِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ حَتَّى تَطْمَئِنَّ - أَوْ يَطْمَئِنَّا - وَإِذَا سَجَدْتَ فَأَمْكِنْ جَبْهَتَكَ مِنَ الْأَرْضِ حَتَّى تَجِدَ حَجْمَ الْأَرْضِ». (مجمع الزوايد رقم ۲۷۹۲ وقال الهيثمى رواه احمد وفيه عبد الرحمن بن ابى الزناد وهو ضعيف مسند احمد رقم ۲۵۹۹ ورقم ۲۶۰٤ وقال الرمذى حسن غريب قال الالبانى حسن صحيح ابن ماجه ٤٤٧ الترمذى ۳۹ و قال شعيب اسناده حسن ترقيم بيت الافكار الدوليه ج۱ ص ۲۵۹ ذكره الشيخ شاكر برقم ۲۶۰٤ و قال اسناده صحيح والعطونى فى كشف الخفاء ج۱ ص ٤٥۹ والالبانى فى السلسلة الصحيحة رقم ۱۳٤۹).

حضرت عبد الله بن عباس رضى الله عنهما فرمايي : چې يو سړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د لمانځه د احکامو په باره کې پوښتنه وکړه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل چې د خپلو دواړو لاسو نو او د پښنو د ګوتو خلال وکړه ، يعني د اودس مکمل کول او رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل چې کله چې دې رکوع کوله نو خپل دواړه ورغوي په خپلو زنګنونو باندې کيده تر څو چې ښه په ارام شې او يا دې لاسو نه ښه په ارام شي او چې کله دې سجده کوله نو خپل تندی دې ښه په زمکه ولګوه تر څو چې د زمکې حجم محسوس کړې په فضع کفيک کې فا له پاره د تعقيب بلا مهلة ده معلوميږي دا چې رکوع ته د تللو په وخت کې به متصلاً لاسونه په زنګنونو باندې ګدې د زنګنونو څخه بغير به بل طرف ته لاسونه نه وړي او په رفع اليدين کې لاسونه بل طرف ته وړل کيږي .

**۲٤- نولسم حدیث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ رَحِمَهُ اللَّهُ عَنِ ابْنِ مُجَاهِدٍ، عَنْ أَبِيهِ رَحِمَهُمَا اللَّهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ: «إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَرَكَعْتَ فَضَعْ يَدَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ، وَافْرِجْ بَيْنَ أَصَابِعِكَ، ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عُضْوٍ إِلَى مَفْصِلِهِ، وَإِذَا سَجَدْتَ فَأَمْكِنْ جَبِينَكَ مِنَ الْأَرْضِ وَلَا تَنْقُرْ» (مصنف عبد الرزاق ج۱ ص ۱۵۱ رقم ۲۸۵۹ )

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یو سړي ته وفرمایل چې کله لمانځه ته ودرېدې پس رکوع ته لاړې نو لاسونه دې په زنګنونو باندې کېده او د ګوتو په مینځ کې دې کشادګي راوله، بیا سر راپورته کړه تر دې چې هر اندام خپل بند ته واپس شي او چې کله دې سجده کوله نو خپل تندی دې په زمکه باندې کېده او د چرګ په شان ټونګې مه وهه.

طریقه د استدلال : د اولسم حدیث په تشریح کې تیره شوې ده، همدارنګه په فضع کفیک کې ف له پاره د تعقیب مع الوصل ده یعنې رکوع ته د تللو په وخت کې، به لاسونه بس طرف ته نه وړې او په رفع الیدین کې لاسونه بل طرفته ځي.

**۲۵- شلم حدیث :** عبد الله ابن عمر رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "فَإِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ رَاحَتَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ ثُمَّ فَرِّجْ بَيْنَ أَصَابِعِكَ ثُمَّ أَمْكُثْ حَتَّى يَأْخُذَ كُلُّ عُضْوٍ مَأْخَذَهُ" (صحیح ابن حبان: ص۵۸٦ باب ذِكْرُ وَصْفِ بَعْضِ السُّجُودِ وَالرُّكُوعِ لِلْمُصَلِّي فِي صَلَاتِهِ: رقم۱۸۸۷)

کله چې دې رکوع کوله نو خپل دواړه لاسونه په خپلو زنګنونو باندې کېده او د ګوتو په مینځ کې فاصله راوله بیا درنګ وکړه تر څو چې هر اندام خپل خپل ځای ونیسي طریقه د استدلال مخکې تیره شوې ده.

**۲٦- یوویشتم حدیث :** رسول الله صلی الله علیه وسلم یو صحابي ته وفرمایل: «يَا أَخَا ثَقِيفٍ! سَلْ عَنْ حَاجَتِكَ، وَإِنْ شِئْتَ أَخْبَرْتُكَ عَمَّا جِئْتَ تَسْأَلُ عَنْهُ» قَالَ: ذَاكَ أَعْجَبُ إِلَيَّ، قَالَ: «فَإِنَّكَ تَسْأَلُنِي عَنْ صَلَاتِكَ، وَعَنْ رُكُوعِكَ، وَعَنْ سُجُودِكَ، وَعَنْ صِيَامِكَ، "فَصَلِّ أَوَّلَ اللَّيْلِ وَآخِرَهُ وَنَمْ وَسَطَهُ، فَإِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ، فَرَكَعْتَ، فَضَعْ يَدَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ، وَفَرِّجْ بَيْنَ أَصَابِعِكَ، ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عُضْوٍ إِلَى مَفْصِلِهِ، وَإِذَا سَجَدْتَ فَأَمْكِنْ جَبْهَتَكَ مِنَ الْأَرْضِ ولاتنقر- الحديث ( طب عن ابن عمر کنز العمال ۱۹٦۳۰ ) ای د ثقیف وروره ته پخپله تپوس کوي او که زه درته ستا په زړه کې سوال بیان کړم د کوم د پاره چې ته راغلی یې؟ هغه رضی الله عنه ورته وفرمایل چې دا دوهمه طریقه مې خوښه ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمائل چې ته دې له پاره راغلی یې چې زما څخه دې دلمونځ، رکوع، د سجدې او د روژې په باره کې پوښتنه وکړې نو د شپې په اول او په اخر کې لمونځ کوه او په مینځ کې اوده کیږه، کله چې لمانځه ته ودرېدې او رکوع ته لاړې نو لاسونه دې په زنګنونو باندې کېده او د ګوتو په مینځ کې دې کشادګي راوله، بیا سر پورته کړه تر دې پورې چې هر

اندام خپل بند ته ورسيږي او چې کله دې سجده کوله نو تندی دې ښه په زمکه باندې کيده او ټونګې مه وهه طريقه د استدلال مخکې تيره شوي ده، همدارنګه په فضع کفيک علی رکبتيک کې ف له پاره د تعقيب بلا مهلة ده دا دې څخه معلوميږي چې رکوع ته د تللو په وخت کې به لاسونه بل طرف ته نه وړې.

**۲۷- دوه ويشتم حديث :** عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا اسْتَفْتَحَ أَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ فَلْيَرْفَعْ يَدَيْهِ، وَلْيَسْتَقْبِلْ بِبَاطِنِهِمَا الْقِبْلَةَ، فَإِنَّ اللّٰهَ أَمَامَهُ» ( المعجم الاوسط للطبرانی رقم ۷۸۰۱ ج۶ ص ۹ سنن الكبرى للبيهقی باب كيفية رفع اليدين ج۲ ص ۲۷ مجمع الزوايد ج۲ ص ۲۷۰ رقم ۲۵۸۹ باب رفع اليدين فی الصلوة طس عن ابن عمر كنزالعمال رقم ۱۹۶۳٤ )

حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما فرمايي : چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې کله په تاسو کې څوک لمونځ شروع کړي نو رفع اليدين دې وکړي او د لاسونو ورغوی دې قبلې ته مخامخ کړي ځکه چې الله دده په مخکې دی (بلاكيف) رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې حديث کې د رفع اليدين مسئله بيانوي او صرف يو د تکبير تحريمه په رفع اليدين باندې اکتفاء کوي معلوميږي دا چې رفع اليدين صرف او صرف د لمانځه په شروع کې دی او بس.

**۲۸ – درويشتم حديث :** وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رضی الله تعالی عنه... فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَعَدِّلُوا صُفُوفَكُمْ وَأَقِيمُوهَا وَسُدُّوا الْخَلَلَ فَإِنِّي أَرَاكُمْ وَرَاءَ ظَهْرِي، فَإِذَا قَالَ الْإِمَامُ: اللّٰهُ أَكْبَرُ فَقُولُوا: اللّٰهُ أَكْبَرُ، وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا: اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. الحديث – ( مجمع الزوايد رقم ۲۸۰٤ كشف الاستار رقم ۵۳۱ ) حضرت ابو سعيد خدری رضی الله عنه په يو لوی حديث کې فرمايي چې پس رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې کله لمانځه ته ودريدلئ نو صفونه برابر سيده کړئ او خالي ځاوې بندې کړئ ځکه چې زه شاته هم تاسو ته ګورم، نو کله چې امام الله اکبر ووېلو تاسو الله اکبر ووايئ او چې کله يې رکوع وکړه نو تاسو رکوع وکړئ او چې کله يې سمع الله لمن حمده ووېلو نو تاسو اللهم ربنا لک الحمد ووايئ.

رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې حديث کې رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د راجګيدلو په وخت کې صرف د تسميع او د تحميد ذکر کړی دی لکن د رفع اليدين ذکر يې بالکل نه دی کړی.

**۲۹- خلورویشتم حدیث:** د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې : یا بنی اذا رکعت فضع کفیک علی رکبتیک و فرج بین اصابعک وارفع یدیک عن جنبیک (المعجم الاوسط للطرانی ج٤ ص٢٨١ رقم الحدیث ٥٩٩١) ای زما خوږه بچیه کله چې ته رکوع ته لاړې نو لاسونه دې په زنګنونو باندې کیده او د ګوتو په مینځ کې دې کشادګي راوله او خپلې متې دې د خپلو تشو څخه جدا ولره . په فضع کفیک علی رکبتیک کې ف له پاره د تعقیب مع الوصل ده معلومیږي دا چې رکوع ته د تللو په وخت کې به لاسونه بل طرف ته نه وړې .

**۳۰ - پنځه ویشتم حدیث:** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ منصور سجادة، حَدَّثَنَا بشر بن الوليد القاضي، حَدَّثَنَا كثير بن عبد الله أبو هاشم رَحِمَهُمُ اللهُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رضي الله عنه يَقُولُ: قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بُنَيَّ إِذَا تَقَدَّمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَاسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَارْفَعْ يَدَيْكَ وَكَبِّرْ وَاقْرَأْ مَا بَدَا لَكَ فَإِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ وَفَرِّقْ بَيْنَ أَصَابِعِكَ وَسَبِّحْ فَإِذَا رَفَعْتَ رَأْسَكَ فَأَقِمْ صُلْبَكَ حَتَّى يَقَعَ كُلُّ عُضْوٍ مَكَانَهُ، وَإِذَا سَجَدْتَ فَأَمْكِنْ جَبْهَتَكَ مِنَ الْأَرْضِ وَسَبِّحْ، وَإِذَا رَفَعْتَ رَأْسَكَ فَأَقِمْ رَأْسَكَ فَإِذَا قَعَدْتَ فَضَعْ عَقِبَيْكَ تَحْتَ أَلْيَتَيْكَ وَأَقِمْ صُلْبَكَ فَإِنَّهَا مِنْ سُنَّتِي، وَمَنِ اتَّبَعَ سُنَّتِي فَإِنَّهُ مِنِّي وَمَنْ هُوَ مِنِّي فَهُوَ مَعِي فِي الْجَنَّةِ. (الکامل فی ضعفاء الرجال لابن عدی ج٦ ص ٢٠٨٦).

حضرت کثیربن عبد الله فرمایي : چې ما د انس بن مالک رضی الله عنه څخه دا فرمان واوریده چې ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ای زما خوږه بچیه کله چې د لمانځه په اراده باندې مخکې شوې نو قبلې ته مخامخ شه خپل دواړه لاسونه اوچت کړه او الله اکبر ووایه او د قرآن کومه حصه چې د خوښه وي هغه ولوله پس کله چې دې رکوع کوله نو خپل ورغوی دې په خپلو زنګنونو باندې کیده او د ګوتو په منځ کې دې کشادګي راوله او د رکوع تسبیح ووایه ،پس کله چې د ې سر را اوچت کړو نو خپله ملا دې نیغه کړه، ترڅو چې هر اندام په خپل خپل ځای باندې شي او چې کله دې سجده کوله نو تندی دې په زمکه باندې کیده او د سجدې تسبیح ووایه او چې کله دې سر راپورته کړو نو سر دې سیده کړه پس بې شکه دا زما سنت دي او څوک چې زما د سنتو پیروي وکړي هغه زما څخه دی او څوک چې زما څخه وي هغه به زما سره په جنت کې یو ځای وي . په فضع کفیک کې ف له پاره د تعقیب بلا مهلة راځي معلومیږي چې رکوع ته د تللو په وخت کې به لاسونه بل طرف ته نه وړي .

**٣١ - شپږويشتم حديث :** دحضرت حکيم بن عمير ثمالى رضى الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : اذا قمتم الى الصلوة فارفعوا ايديكم و لا تخالف اذانكم ثم قولوا الله اكبر – سبحنك اللّٰهُمَّ و بحمدك و تبارك اسمك و تعالى جدك ولا اله غيرك ، وان لم تزيدوا على التكبير اجزأتكم . (الباوردى طب عن الحكيم بن عمير الثمالى رضى الله عنه كنزالعمال رقم١٩٦٣٥).

چې کله لمانځه ته ودريدلئ نو رفع اليدين وکړئ د غوږونو څخه يې مه مخالف کوئ بيا سبحنک اللهم الخ ولولئ او که د تکبير څخه مو زيات څه ونه ويلې نو هم درته کافي دي .

په دې حديث کې هم يوازې د لمانځه په شروع کې د رفع اليدين ذکر دی .

**٣٢- اوه ويشتم حديث:** وَعَنْ وَآئِلِ بْنِ حُجْرٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ لِي رَسُوْلُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«يَا وَآئِلَ بْنَ حُجْرٍ! إِذَا صَلَّيْتَ فَاجْعَلْ يَدَيْكَ حِذَآءَ أُذُنَيْكَ، وَالْمَرْأَةُ تَجْعَلُ يَدَيْهَا حِذَآءَ ثَدْيَيْهَا» ( المعجم للطبرانى ج٩ ص ١١٤ رقم ١٧٤٩٧ ، مجمع الزوايد رقم ٢٥٩٤ ج٢ ص ٢٧٢ ، كنزالعمال رقم ١٩٦٣٦ جامع الاحاديث للسيوطى رقم ٢٦٣٧٧ ) .

حضرت وايل بن حجر رضى الله عنه فرمايي چې زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شوم نو ما ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې اى وايل بن حجره ! کله چې دې لمونځ کولو نو لاسونه د غوږونو سره برابر کړه او ښځه به يې سينو سره برابروي .

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت وايل رضى الله عنه ته صرف د تکبير تحريمه رفع اليدين وروښودلو ، د دې قولي احاديثو څخه معلومه شوه چې رفع اليدين يوازې د تکبير تحريمه په وخت کې پکار دی د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مبارکه ژبه چې کله هم د رفع اليدين لفظ راغلى دی نو صرف د تکبير تحريمه په وخت کې راغلى دی ، په ټوله دوره د نبوت کې صرف يو ځلې هم د رکوع رفع اليدين د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ژبه نه دی راغلى .

لامذهبان دې صرف يو او صرف يو داسې قولي حدث پيش کړي چې د دوی د دعوى ځلور واړه اجزاء پکې وي ١- د اول او د دريم رکعت په شروع کې د رفع اليدين حکم ٢- او د دوهم او ځلورم رکعت

په شروع کې د رفع اليدين منع ٣- د رکوع په اول او په اخر کې د رفع اليدين حکم ۴- د سجدو په اول او په اخر کې د رفع اليدين څخه منعه.

## ترک د رفع اليدين د فعلي احاديثو په رڼا کې

### د حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه احادیث:

**٣٣- اول حديث:** وَبِهِ قَالَ أَخْبَرَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، قَالَ: أَنْبَأَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ ﷺ قَالَ: أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «فَقَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ ثُمَّ لَمْ يُعِدْ. (نسائی رقم ١٠٩٩ باب ترک ذلک، وقال الشيخ النيموی هذا اسناد صحيح التعليق الحسن حاشية اثارالسنن ص ١٥٣) حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه يوه ورځ اعلان وکړ چې ايا زه تاسو د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لمونځ خبر نکړم؟ راوي وايي چې پس پاڅيدو او صرف په اول کې يې رفع اليدين وکړل او دوباره يې ونکړل.

**٣۴- دوهم حديث** : حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ **رحمهم الله تعالى**، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ: أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَصَلَّى، فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ. (ترمذی باب ماجاء ان النبی صلی الله عليه وسلم لم يرفع الا فی اول مرة رقم ٢٥٧). باب رفع اليدين عندالركوع، وفی نسخة الشيخ صالح بن عبدالعزيز باب ماجاء أن النبي صلى الله عليه وسلم لم يرفع الا فی اول مرّة رقم (٢٥٧).

**٣۵- دريم حديث** : وَبِهِ قَالَ أَخْبَرَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ الْمَرْوَزِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ قَالَ: «أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَصَلَّى فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً» ( نسائی رقم ١٠٥٨ باب الرخصة فی ترک ذلک، والسنن الکبری للنسائي رقم ٦٤٥ اسناده صحيح على شرط البخاري ومسلم) الباني دده تصحيح هم کړي دی.

**٣٦ - خلورم حديث** : وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمٍ يَعْنِي ابْنَ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ ﷺ: "أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ قَالَ: فَصَلَّى فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً"، ( اوداؤد رقم ٧٤٨ ورجاله رجال صحيحين) البانی دي حديث ته صحيح ويلي دي. (صحيح سنن ابی داؤد رقم ٦٨٣ و ٧٤٨)

**٣٧ - پنځم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ، وَخَالِدُ بْنُ عَمْرٍو، وَأَبُو حُذَيْفَةَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا قَالَ: «فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ»، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: «مَرَّةً وَاحِدَةً». (ابوداؤد رقم الحديث ٧٤٩ ترقيم بذالمجهود) يعنې معاويه بن هشام، او خالد بن عمرو او ابو حذيفة په مذكور سند د عن عاصم يعنې ابن كليب، عن عبد الرحمن بن الاسود عن علقمة ) د عبد الله بن مسعود پورتنی حديث روايت کړی دی په کوم کې چې بعضې راويانو د فرفع يديه فی اول مرة الفاظ ذکر کړي دي او بعضو د فرفع يديه مرة واحدة الفاظ ذکر کړي دي.

**٣٨- شپږم حديث :** وبه قال حدثنا عبد الله حدثنى ابى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ ﷺ: أَلَا أُصَلِّي لَكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: «فَصَلَّى، فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً».(. (مسند امام احمد رقم ٣٦٧٢ ورقم٣٦٨٧ ج١ ص ٣٨٨).

**٣٩- اووم حديث :** وبه قال حدثنا عبد الله حدثنى ابى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ ﷺ: أَلَا أُصَلِّي لَكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: «فَصَلَّى، فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ».( مسند احمد رقم ٤١٩٩ رقم ٤٢١٠ ج٤ ص ٤٤٢ )

**٤٠- اتم حديث :** وبه قال حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَلَا أُرِيكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ «فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً». (مصنف بن ابی شيبة رقم ٢٤٥٦ والمدونة الكبرى ج١ ص ١٦٦ ) .

**٤١- نهم حديث :** وَبِهِ قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو طَاهِرٍ الْفَقِيهُ، أَنْبَأَنَا أَبُو حَامِدِ بْنُ بِلَالٍ، أنبا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْأَحْمَسِيُّ، ثنا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمٍ يَعْنِي ابْنَ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ ﷺ يَعْنِي ابْنَ مَسْعُودٍ: لَأُصَلِّيَنَّ بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "فَصَلَّى فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً" ( السنن الكبرى للبيهقى ج٢ ص٧٨ ) .

**۴۲- لسم حديث :** حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي دَاوُدَ، قَالَ: ثنا نُعَيْمُ بْنُ حَمَّادٍ، قَالَ: ثنا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ، ثُمَّ لَا يَعُودُ» (طحاوى رقم ١٣١٦ و اسناده قوى).

**۴۳- يولسم حديث :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ نُعْمَانَ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ سُفْيَانَ فَذَكَرَ مِثْلَهُ بِإِسْنَادِهِ (طحاوى رقم ١٣١٧).

**۴۴- دولسم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوحَنِيفَةَ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ تَعَالَى أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ التَّكْبِيرَةِ ثُمَّ لَا يَعُودُ إِلٰى شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ وَيَأْثِرُ ذٰلِكَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ( جامع المسانيد خوارزمى ج١ ص ٣٥٥ )

**۴۵ - ديارلسم حديث :** ابراهيم نخعى رحمه الله فرمايي چې : وَقَدْ حَدَّثَنِي مَنْ لَا أُحْصِي، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: أَنَّهُ رَفَعَ يَدَيْهِ فِي بَدْءِ الصَّلَاةِ فَقَطْ، وَحَكَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (مسند الامام اعظم رحمه الله رقم ٩٦). يعنې بې شميره خلكو ماته د عبد الله بن مسعود رضى الله عنه څخه روايت كړى دى چې هغه به صرف دلمانځه په شروع كې رفع اليدين كول او د لمانځه دا طريقه به يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت كوله . ددې حديثونو معنى تقريباً يو شانتې ده، خلاصه يې داده چې: عبدالله بن مسعود رضى الله عنه اعلان وكړ، چې آيا زه تاسو ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم په شان لمونځ ونه كړم؟

نو عبدالله بن مسعود ﷛ لمونځ وكړو : او په لمانځه كې يې په اول كې يو ځلې رفع اليدين وكړل او بل يې په هيڅ ځاى كې ونكړل، په دې حديث كې ديو رفع اليدين اثبات او د پاتې ټولو نفى ده، ځكه چې ادوات د حصر په كې دى .

## امام ترمذى ددې حديث په باره كې داسې فيصله كړې ده چې:

(وَفِي الْبَابِ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷛. قَالَ أَبُوعِيسٰى حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ ﷛ حَدِيثٌ حَسَنٌ.
وَبِهِ يَقُولُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالتَّابِعِينَ ﷭.
وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ. [ترمذى ،ج ١ ص ٥٨].

يعنې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ حديث حسن دى ددې (ترک د رفع اليدين ) قائلين بى شميره اهل علم دي د صحابه وو ﷹ او د تابعينو څخه او هم دا مذهب د سفيان ثوري او د ټولو اهل كوفه وو دى.

**مولنا عبدالحی لکهنوی رحمه الله فرمائی چي:**

دامذهب دامام ابو حنيفه ،سفيان ثوری ،حسن بن متی ،اود کوفی دټولو متقدمينو اومتاخرينو فقهاوو دی. [التعليق الممجد ص ۹۱ ص۱۳۳ طبع مکتبة البشری]. په کوفه کې دحضرت عمر ﷛ په دوره دخلافت کې دحضرت سعد بن ابی وقاص ﷛ سره څلويښت صحابه رضی الله عنهم اوتابعين رحمهم الله اوسيدلي دی. (تاريخ طبری ، ج ۴ ص ۴۱۱) . نود سعد بن ابی وقاص په شمول دڅلويښتو واړو صحابه وو رضی الله عنهم او دتابعينو مسلک هم ترک درفع اليدين وو ، وروسته بيا دحضرت سعد ﷛ سره نهه نوي (۹۹) بدري صحابه رضی الله عنهم اودرې سوه ديارلس (۳۱۳) بيعة الرضوان والاصحابه شول نو ترک درفع اليدين ددوی مسلک هم وو .

بيا تعداد نورهم زيات شو مورخ عجلی ﷬ فرمائی چې په کوفه کې يوزرو پنځه سوه صحابه رضی الله عنهم اوسيدل : نزل الکوفة الف وخمس مأة من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم (تاريخ الثقات للعجلي ص۵۱۱۷، باب فيمن نزل الکوفة وغيرها من الصحابة (فتح القدير، ج ۱۲ ص ۷۲ ) نوددې يوزرو پنځوسو صحابه وو رضی الله عنهم مسلک هم ترک درفع اليدين وو .

دحضرت عبد الله بن مسعود ﷛ دکوششونو په نتيجه کې په کوفه کې څلورزره محدثين او څلورسوه فقهاء تيارشوي وو. باب مدينة العلم خليفة الراشد حضرت علی ﷛ چې کله کوفی ته تشريف راوړونووي فرمايل چې: (الله تعالی دی په عبد الله بن مسعود ﷛ باندې رحمتونه نازل کړي چې داښاريې دعلم څخه ډک کړی دی او دده اصحاب او شاګردان ددې امت په ډيوو باندې ونومول. (مقدمه نصب الرايه ص ۳۰ / لعلامه زاهد الکوثری/ وانوار الباري ج۱۵/ ۳۲۹] .

علامه ابو محمد الرامهرمزی په (المحدث الفاصل بين الراوی والواعي) کې دانس بن سيرين رحمه الله مقوله نقل کړی ده چې: (اتيت الکوفة فوجدت بهااربعة الاف يطلبون الحديث واربع ماة قدتفقهوا) نوددې څلورو زرو محدثينو او څلوروسووفقهاوو مسلک هم ترک درفع اليدين وو .

اوچې کله حضرت علی ﷛ کوفه خپله دارالخلافه وټاکله نود حضرت علی ﷛ په ملګرتيا په زرګونو صحابه هلته اباد شول .

نو ددې ټولو صحابه وو مسلک ترک درفع اليدين وو، چې په دوی کې د حضرت علی ﷺ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه علاوه د حضرت ابوموسی اشعری ﷺ، حضرت حذيفة اليمان ﷺ سلمان فارسی ﷺ، عماربن ياسر ﷺ عبدالله بن ابی اوفی ﷺ، او عبدالله بن الحارث ﷺ، په شان جليل القدر صحابه شامل وو. حضرت مسروق بن اجدع رحمه الله فرمائی چې : درت في الصحابة فوجدت علمهم ينتهي الي ستة ثم نظرت فوجدت علمهم ينتهي الي اثنين علي ﷺ وعبدالله.[طبقاة ابن سعد، ج ٢ ص ٥٢/ ومنهاج السنة لابن تيمية ج٤/ ١٥٧]. يعنې زه په صحابه وورا وګرځيدم نو ما وليدل چې ددوی علم په شپږو صحابه وو رضی الله عنهم کې راجمع شوی وو .

(١) حضرت علی ﷺ. (٢) حضرت عمر ﷺ.

(٣) حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ. (٤) حضرت زيدبن ثابت ﷺ.

(٥) حضرت ابوالدرداء ﷺ (٦) حضرت ابی ابن کعب رضوان الله عليهم.

بيامې وکتل چې ددې شپږو وا ړو علم په دوو کې راجمع شوی دی چې حضرت علی ﷺ او حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دی او دا دواړه حضرات په کوفه کې اوسيدل نو کوفه د ټولو صحابه وو رضی الله عنهم د علم مجموعه وه او د کوفی د ټولو خلکو مسلک ترک درفع اليدين وو . ( ترمذی، ج ١ ص ٥٨. باب رفع اليدين عند الركوع، والتعليق الممجد ص ٩١ ) .

**محمد بن نصر المروزی الشافعی ليکلي دي چې:** ماأجمع مصرمن الامصارعلي ترک رفع اليدين ماأجمع عليه اهل الكوفة . (التعليق الممجد ص ٩١/وص١٣٣ طبعة مكتبة البشـرى ، التمهيد لابن عبدالبر ج ٤صـ ١٨٧، الاستذكار لابن عبدالبر ج ١صـ ٤٠٨، باب افتتـاح الصـلوة) يعنې د هيڅ ښار د خلکو دومره اجماع په ترک درفع اليدين نه وه لکه څومره چې د کوفی د خلکو وه ، نو ددومره زرګونو صحابه وو رضی الله عنهم، تابعينو رحمهم الله محدثينو رحمهم الله، او فقهاوو رحمه الله، مسلک ترک درفع اليدين وو او په داسې ښار کې عبدالله بن مسعود ﷺ اعلان کوي چې د رسول الله ﷺ لمونځ دادی چې صرف د لمانځه په اول کې يې رفع اليدين کړی دي او په نور لمونځ کې يې نه دي کړي او هيڅ صحابی ورباندې اعتراض ونه کړو .

ابو اسحق تابعي رحمه الله فرمائی چې د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه او د حضرت علي رضی الله عنه ملگرو به صرف د تکبیر تحریمه سره رفع اليدين کول او په نورلمونځ کې به يې نه کول (ابن ابی شیبه. ج ۱ ص ۲٦۷) تذکرة الحفاظ نمبر ۹۹)

يعنې په زرگونو صحابه و ورضی الله عنهم څلور زرو محدثينو رحمهم الله څلور وسو و فقهاوو رحمهم الله او په زرگونو مجاهدينو رفع اليدين نه کول او دا حديث مسلسل بالعمل هم دی ځکه چې ټولو راويانو:

(۱) حضرت وكيع بن الجراح رحمه الله . (۲) حضرت سفيان ثوری رحمه الله .

(۳) حضرت عاصم بن كليب رحمه الله . (٤) حضرت عبدالرحمن بن الاسودرحمه الله .

(٥) حضرت علقمه رضی الله عنه رحمه الله.

دې ټولو به ددې حديث موافق لمونځ کولو يعنې رفع اليدين يې نه کول. [معارف السنن، ج ۲ص ۴۸۵/ مصنف ابن ابی شیبة رقم ۲۴۶۸].

د مدينې منوری صحابه و ورضی الله عنهم او تابعينو رحمهم الله هم رفع اليدين نه کول، امام مالک رحمه الله چې د مدينې منوری مفتی وو. فرمائی چې زه د تکبير تحريمه درفع اليدين څخه بغير نور په لمانځه کې هيڅ رفع اليدين نه پيژنم، امام ابن القاسم رحمه الله د(امام مالک رحمه الله خاص شاگرد) فرمائی چې امام مالک رحمه الله به د تکبير تحريمه څخه وروسته په بل ځای کې درفع اليدين کول ضعيف گڼل او فرمايل به يې چې زه د تکبير تحريمه څخه بغير په بل ځای کې رفع اليدين نه پيژنم. (المدونة الكبرى، ج ۱ ص ۷۱).

د امام مالک رحمه الله درفع اليدين د نه پيژندلو مطلب داندی چې درفع اليدين احاديث ورته نه وورسيدلي بلکه مطلب يې دادی چې څوک يې عملاً په رفع اليدين نه کولو باندې وولیدلی.

د مکې مکرمې خلکو هم رفع اليدين نه کولو لکه څرنگه چې د ميمون مکي رحمه الله دروايت څخه معلوميږي. (ابو داود ج ۱ ص ۱۱۲).

## د عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث دتصحيح په باره کې

## د محدثينو اقوال

۱- د ابوداود روايت چې د څلورم نمبر لاندې تير شو او د نسائي روايت چې ددريم نمبر لاندې تير شو او د مسند احمد روايت چې د شپږم نمبر لاندې تير شو او د مصنف ابن ابی شيبة روايت چې د اتم نمبر نه لاندې تير شو دا ټول صحيح علی شرط الشيخين دی، ځکه چې د مسند احمد او د ابن ابی شيبه په روايت کې پنځه راويان دي وکيع بن الجراح ، سفيان ثوری رحمه الله ، عاصم بن کليب رحمه الله ، عبد الرحمن بن الاسود رحمه الله ، او علقمه بن قيس رحمه الله ، تلميذ عبد الله بن مسعود رضی الله عنه او دا پنځه واړه : بخاری او د مسلم او د سنن اربعه وو راويان دي البته د عاصم بن کليب روايات په بخاری کې تعليقاً راغلي دي په سنن ابی داؤد کې يو اوی عثمان بن ابی شيبه زايد راغلی دی، دا د ترمذی څخه علاوه نور د ټولو صحاح سته وو راوي دی دنسائی په روايت کې چې په دريم نمبر کې وليکل شود عثمان بن ابی شيبه په ځای محمد بن غيلان دی دا د بخاری او د مسلم راوي دی بلکې د ابوداؤد څخه ماسوا د ټولو صحاح سته وو راوي دی د ترمذی په روايت کې چې په دوهم نمبر کې وليکل شو د عثمان بن ابی شيبه رَحِمَهُ اللَّهُ په ځای باندې هناد رَحِمَهُ اللَّهُ دی چې د بخاري څخه ماسوا د نورو ټولو صحاح سته وو راوي دی نو دا حديث بې شکه صحيح حديث دی .

۲- شاه صاحب فرمايي چې : علی شرط مسلم (العرف الشذی ص۱۲۸) يعنې دا په شرط د مسلم صحيح دی.

۳- همدا رنګه شاه صاحب رحمه الله فرمايي : و رجاله رجال مسلم كذا فی الجوهر النقی و قال الشيخ انور شاه الكشميری رحمه الله ان هذا الخبر مع هذه الزيادة صحيح فكل ما اوردوه عليه فمدفوع .

يعنې ددې حديث راويان د مسلم راويان دي همدا رنګه په جوهر النقی کې دي چې دا حديث ددې زيادت سره صحيح دی په دې حديث چې څومره اعتراضونه شوي دي دا ټول مردود دي . همدا رنګه فرمايي چې (رواه الثلاثة وهو حديث صحيح ،نيل الفرقدين صـ ٥٦)

۴- وقال الشيخ النيموی رحمه الله رواه الثلاثة وهو حديث صحيح ( اثار السنن ص۱۵۲) دا حديث دريو ترمذی ، ابوداؤد او نسائی روايت کړی دی او دا صحيح حديث دی .

۵- مولانا ظفر احمد عثمانی فرمايي چې ولا يخفى ان الحديث مرفوع ولوحكماً وان قول الصحابى الاصلى بكم صلوة رسول الله صلى الله عليه وسلم فى حكم الرفع كما ثبت فى الاصول (اعلاء السنن ج۳ ص ۵۸) دا خبره پټه نه ده چې دا حديث مرفوع دی اګر چې حکماً مرفوع دی ځکه چې د صحابي دا وينا چې الا اصلى بكم صلوة رسول الله صلى الله عليه وسلم د مرفوع په حکم کې ده لکه څرنګه چې د اصولو په کتابونو کې دي.

۶- الباني فرمايي چې : هذا سند صحيح، رجاله رجال مسلم، و قد حسنه الترمذی وصححه ابن حزم. اصل صفة صلوة النبى صلى الله عليه وسلم ص ۶۱۰ وص ۶۱۱) دا سند صحيح دی، ددې سند راويان د مسلم شريف راويان دي او په تحقيق سره امام ترمذی ورته حسن او ابن حزم ورته صحيح ويلی دی.

۷- الباني په بل ځای کې د سخت تاکيد سره وايي چې وقال الشيخ البانى والحق انه حديث صحيح و اسناده صحيح على شرط مسلم و لم نجد لمن اعله حجة يصلح التعلق بها ورد الحديث من اجلها ( مشكاة بتحقيق الشيخ الالبانى ج۱ ص ۲۵٤ تحت حديث رقم ۸۰۹ )

يعني حقه خبره داده چې دا حديث صحيح دی او ددې سند په شرط د مسلم صحيح دی او کومو خلکو چې دې حديث ته معلول ويلی دی نو د هغوی سره موږ هيڅ داسې دليل پيدا نکړ چې د هغې څخه استدلال صحيح شي او د هغې په وجه حديث رد کړی شي.

۸- په بل ځای کې البانی ليکي چې: دا حديث صحيح دی، صحيح سنن ترمذی رقم ۲۱۱ ورقم ۲۵۷ صحيح ابی داؤد رقم ۶۸۳ و۷۴۸ )

۹- مشهور غير مقلد احمد محمود شاکر هم دې حديث ته صحيح ويلي دي و قال احمد شاكر وهذا الحديث صحيح صححه ابن حزم و غيره من الحفاظ و ما قالوا فى تعليله ليس بعلة (ترمذی بتحقيق احمد شاكر ج۲ ص ۴۱) دا حديث صحيح دی د ابن حزم په شمول ټولو حفاظو ورته صحيح ويلي دي کومو خلکو چې ددې حديث د تعليل په باره کې څه ويلي دي هغه هيڅ شی هم نه دی.

۱۰- ددې زمانې مشهور محقق شعيب ارناؤط او غير مقلد عالم زهير الشاويش هم ورته صحيح ويلي دي حاشيه شرح السنة ج۳ ص ۲۴)

١١-علامه ابن حزم هم ورته صحيح ويلي دي فرمايي چې: ان هذا الخبر صحيح (محلی ج١ ص ٨٨ ،المحلی شرح المجلی ج٤ ص٥٨).

١٢- الحافظ ابن القطان الفارسي رحمه الله د امام دار قطنی څخه ددې حديث تصحيح را نقل کړې ده فرمايي چې: و ممن قال ذلک الدار قطنی قال انه حديث صحيح وانما المنکر فيه علی وکيع زيادة ثم لا يعود قالوا انه کان يقولها من عند نفسه -بيا ددې الفاظو په باره کې خپل تحقيق په دې الفاظو بيانوي چې والحديث عندی لعدالة رواته اقرب الی الصحة و ما به علة سوی ما ذکرت (بيان الوهم والايهام ج٣ ص ٣٦٥).

١٣- امام ترمذي ورته حسن ويلي دي او په يوه نسخه کې حسن صحيح ص١٥٩ ج١)

١٤- دارقطني ورته صحيح ويلي دي (کتاب العلل للدارقطني سوال ص ٨٠٤)

## په دې حديث کې د (ثُمّ لاَ يَعُودُ) لفظ مدرج نه دی

بعضې محدثين مثلاً امام دار قطنی رحمه الله او ابن القطان رحمه الله چې په دې حديث کې کوم علت رايستلی دی هغه د محققينو محدثينو په نيز قابل د اعتبار نه دی، د لا يعود دلفظ څخه انکار او دې لفظ ته د وکيع له طرفه اضافه ويل بلا دليله بلکې ددليل څخه مخالف دي، ځکه چې د لايعود لفظ يوازې د وکيع په حديث کې نه دی، بلکې د نسائی په روايت کې چې د اول نمبر شمارې لاندې موږ ليکلی دی عبد الله ابن المبارک دا لفظ ذکر کړی دی او همدا رنګه د ابوداؤد په روايت کې چې دپنځم نمبر لاندې موږ ليکلی دی معاويه بن هشام رحمه الله خالد بن عمرو رحمه الله او ابو حذيفه رحمه الله هم د سفيان څخه د لايعود هم معنی الفاظ را نقل کړي دي ددې څخه معلوميږي چې د لا يعود په بيان کې وکيع متفرد نه دی بلکې قوي متابعات يې موجود دي همدا رنګه د امام دار قطنی په کتاب العلل کې دا دعوا هم د واقع څخه مخالفه ده چې د وکيع رحمه الله مشهورو شاګردانو لکه امام احمد رحمه الله، ابوبکر بن ابی شيبه رحمه الله او ابن نمير رحمه الله دا حديث روايت کړی دی او دا لفظ يې پکې نه دی ذکر کړی او دا دعوا ځکه د واقع څخه مخالفه ده چې موږ د امام احمد رحمه الله څخه ددې هم معنی لفظ د شپږم او د اووم نمبر لاندې احاديثو کې رانقل کړی دی او همدا رنګه مو د ابن ابی شيبه رحمه الله څخه داتم نمبر

لاندې ددي لفظ هم معنى لفظ را نقل كړى دى او په دې هم معنى لفظ كې ددې دوارو متابعت په ابوداؤد كې عثمان بن ابى شيبه رحمه الله، په ترمذى كې هناد بن سرى رحمه الله، په نسائى كې محمد بن غيلان رحمه الله او په شرح معانى الاثار كې نعيم بن حماد رَحِمَهُ اللَّهُ او يحى بن يحى رَحِمَهُ اللَّهُ كړى دى دوى ټولو دثم لا يعود هم معنى لفظ يعنې فلم يرفع يديه الا مرة او يا ددې نور هم معنى الفاظ را نقل كړي دي، خپله امام دار قطنى فرمايي چې: وَسُئِلَ عَنْ حَدِيثِ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: أَلَا أُرِيكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ، ثُمَّ لَمْ يَعُدْ. فَقَالَ (الدارقطنى): يَرْوِيهِ عَاصِمُ بن كليب، عن عبد الرحمٰن بن الأسود، عَنْ عَلْقَمَةَ. حَدَّثَ بِهِ الثَّوْرِيُّ عَنْهُ.

وَرَوَاهُ أَبُو بَكْرٍ النَّهْشَلِيُّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عن عبد الرحمٰن بن الأسود، عن أبيه، وعلقمة، عن عبد الله.

وكذلك رواه ابن إدريس، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ.

وَإِسْنَادُهُ صَحِيحٌ، وَفِيهِ لَفْظَةٌ لَيْسَتْ بِمَحْفُوظَةٍ، ذَكَرَهَا أَبُو حُذَيْفَةَ فِي حَدِيثِهِ، عَنِ الثَّوْرِيِّ، وَهِيَ قَوْلُهُ: "ثُمَّ لَمْ يَعُدْ" (كتاب العلل الوارده ج۵ ص ۱۷۱ تا ص ۱۷۳ طبع شارع عمير الرياض).

## د سفيان ثورى رحمه الله توثيق او عدالت

۱- سفيان ثورى رَحِمَهُ اللَّهُ بخارى او د مسلم او د باقى سنن اربع وو اتفاقي راوي دى، په ده باندې اعتراض په ټوله بخاري او په مسلم باندې اعتراض دى، دده څخه په بخاري او په مسلم كې بې شميره روايات دي.

۲- علامه جزايرى رحمه الله د علامه ابن حزم څخه د هغو مدلسينو فهرست را نقل كړى دى د كومو روايتونه چې د تدليس سره سره صحيح دي او ددوى تدليس د حديث په صحت باندې هيڅ اثر نه كوي فرمايي چې: وَهٰذَا النَّوْعِ مِنْهُ كَانَ جلة أَصْحَاب الحَدِيث وأئمة المُسلمين كالحسن البَصْرِيّ وَأَبي إِسْحَاق السبيعِي وَقَتَادَة بن دعامة وَعَمْرو بن دِينَار وَسليمَان الْأَعْمَش وَأَبي الزبير وسُفْيَان الثَّوْرِيّ وسُفْيَان بن عيينة رَحِمَهُمُ اللّٰهُ تَعَالٰى. (توجيه النظر ص۲۵۱). په دې مدلسينو كې ډېر جليل القدر محدثين او د مسلمانانو امامان داخل دي، لكه حسن بصرى رحمه الله ابو اسحق السبيعى رحمه الله قتادة بن دعامه رحمه الله، عمرو بن دينار رحمه الله، سليمان الاعمش رحمه الله، ابو الزبير رحمه الله سفيان ثورى رحمه الله او سفيان بن عيينه رحمه الله دي.

٣- حافظ صلاح الدين ابو سعيد العلائی رحمه الله د امام حاكم رحمه الله څخه د مدلسينو اقسام را نقل كړي دي، وګوره جامع التحصيل فی احكام المراسيل ص ٩٩ په دې كې يې سفيان ثوري په قسم ثالث كې ذكر كړى دى، لكن بيا يې په همدې كتاب ص ١١٣ كې په طبقه ثانيه كې ذكر كړى دى (وثانيهما من احتمل الايمة تدليسه وخرجوا له فی الصحيح، وان لم يصرح بالسماع و ذلک اما لامامته او لقلة تدليسه فی جنب ماروی او لانه لا يدلس الا عن ثقة و ذلک كالزهری و سليمان الاعمش و ابراهيم النخعی و اسماعيل بن ابی خالد وسليمان التيمی وحميد الطويل والحكم بن عتيبه و يحی بن ابی كثير و ابن جريج والثوری وابن عيينه الخ...

دوهمه طبقه هغه ده چې امامانو د حديثو د هغوى تدليس برداشت كړى دى او په صحيح بخاري يا مسلم كې يې ترينه روايات كړي دي اګرچې هغوى په سماع باندې تصريح نه ده كړې او دا الوجه د امامت فی الحديث د دوى څخه او يا له وجې د كم والي د تدليس د هغوى څخه په مقابله د رواياتو كې او يا د دې وجې څخه چې هغوى د ثقاتو څخه تدليس كوي، لكه زهری سليمان الاعمش رحمه الله، ابراهيم نخعی رحمه الله، اسماعيل بن ابی خالد رحمه الله، سليمان التيمی رحمه الله، حميد الطويل رحمه الله، حكم بن عتيبه رحمه الله يحی بن ابی كثير رحمه الله، ابن جريج رحمه الله، سفيان ثوری رحمه الله او سفيان بن عيينه رحمه الله الخ.

حافظ ابن حجر هم د مدلسينو په دوهمه طبقه كې ليكلي دي، طبقات المدلسين لابن حجر صـ ٦٤، همدارنګه وګوره جزء منظوم فی اسماء المدلسين لبديع الدين غير مقلد صـ ٨٩) او سفيان الثوري په دې روايت كې متفرد هم ندى بلكې نورو ثقاتو يې متابعت تامه كړى دى، لكه:

١- ابو بكر النهشلي، و رواه ابوبكر النهشلي عن عاصم بن كليب عن عبدالرحمن بن الاسود عن ابيه وعقلمة عن عبدالله بن مسعود كتاب العلل للدارقطني ، سوال ٨٠٤)

٢-امام وكيع بن الجراح ،حدثنا عبدالوارث بن سفيان قلا حدثنا قاسم بن اصبع قال حدثنا عبدالله بن احمد بن حنبل قال حدثني ابی قال حدثنا وكيع عن عاصم بن كليب ، عن عبدالرحمن بن الاسود عن علقمة قال،قال ابن مسعود الخ (التمهيد لابن عبدالبر ج ٤صـ ١٨٩)

٤ -مشهور غير مقلد عالم حافظ محمد ګوندلوى فرمايي چې د مدلسينو طبقات، حافظ ابن حجر رحمه الله په طبقات المدلسين كې د دوي پنځه مراتب بيان كړي دي، اول د كومو څخه چې ډير كم تدليس

ثابت دی لکه یحی بن سعید الانصاری رحمه الله، دوهم: د کومو مدلسینو تدلیس چې د حدیثو امامانو برداشت کړی دی او په خپلو صحیحنو کې یې ترینه روایت بیان کړی دی ځکه چې ددوی مرویات ددوی د تدلیس په مقابله کې کم دي او فی نفسه امامان دي لکه سفیان ثوری رحمه الله او یا هغوی د ثقاتو څخه تدلیس کوي لکه سفیان ابن عیینه رحمه الله خیر الکلام ص ۴۷ طبع دوم).

۵- علامه سیوطی رحمه الله فرمایي چې: روی البیقی فی المدخل عن محمد بن رافع قلت لابی عامر کان الثوری یدلس؟ قال لا (تدزیب الراوی ج۱ ص ۲۳۱)

محمدبن رافع فرمایي چې ما ابو عامر ته وویل چې ایا سفیان ثوری مدلس دی؟ هغه وفرمایل چې نه.

## دلامذهبانو د بد ترین منافقت یو مثال

کله چې سفیان ثوری د امین بالجهر په سند کې راشي او په عن سره روایت وکړي: سفیان الثوری عن سلمة بن کهیل عن حجر بن عنبس الخ نو بالکل صحیح ورته وایي وګوره ابکار المنن ص ۱۹۸) د غیر مقلد مبارکپوری کتاب، متعصب لا مذهبه زبیر علی زئی لیکي چې ابن حجر په التلخیص الحبیر ج۱ ص ۲۳۶ او امام دار قطنی ج۱ ص ۳۳۴ کې دې حدیث ته صحیح ویلي دي نماز نبوی ص ۱۹۳ حاشیه او هدیة المسلمین ص ۳۴ همدا رنګه یو بل سخت متعصب لا مذهبه یحی ګوندلوي د سفیان ثوری رحمه الله په باره کې لیکي چې: سفیان الثوری، الامام المشهور، الفقیه، العابد، الحافظ، الکبیر، وصفه النسائی و غیره بالتدلیس و قال البخاری ما اقل تدلیسه. امین بالجهر ص ۲۵ همدا رنګه مخکې لیکي چې ہر انصاف پسند کیلئے ضروری ہے کہ اسے معلوم ہو کہ امام بخاری کا اپنے صحیح سے کسے راوی کی روایت کو بیان کرنا اسکے عدالت صحت، ضبط اور عدم غفلت کا تقاضا کرتا ہے یہ بات ان راویوں کی بارے میں ہے جن کی روایت وواصول میں لیتا ہے[امین بالجہر ص ۳۱].

یو بل ګستاخ متعصب لا مذهبه نیاز محمد کونړی مشهور په امین الله پشاوري د امین بالجهر په مسئله کې د سفیان ثوری رحمه الله سخت صفت کړی دی او په پوره دوه مخونو کې یې دولس حوالې دده د ثقه والي له پاره را نقل کړي دي هغه دولس حوالې چې امین الله لیکلي دي په لاندې ډول دي:

(۱) امام ابن عیینه فرمائي (مابالعراق احد یحفظ الحدیث الاسفیان)

**ترجمه:** پـه عراق کې د سفيان نه علاوه بل هيڅوک هم د احاديثو حافظ نه شته. (شرح علل الترمذی، ص۱۲۵)

(۲) امام احمد بن حنبل فرمائي : (سفيان احفظ للاسنادواسماء الرجال من شعبه وبقول سفيان اخذ).

**ترجمه :** د شعبه په نسبت سفيان ډيرزيات ښه يادونکی دی د سند ونو د سفيان خبره اخلم.

(۳) اسحق بن هانی فرمائي : ما د امام احمد نه تپوس وکړو چې که چيرې په يو حديث کې د سفيان او شعبه اختلاف راشي نو د چا په حديث به عمل کولې شي ؟ نو امام احمد جواب ورکړو د سفيان په حديث به عمل کوم. (شرح علل الترمذی ، ص ۱۲۵)

(۴) امام يحيی بن سعيد فرمائی : مارايت احدااحفظ من سفيان ثم شعبه ثم هشيم وذكرشعبه وسفيان، فقال سفيان اقل خطاء لانه يرجع الي كتاب وقال سفيان اثبت من شعبة واعلم بالرجال.

**ترجمه:** ما د سفيان نه غټ حافظ بل څوک نه دی ليدلې د هغه وروسته بيا شعبه د هغه نه وروسته د هشيم درجه ده . سفيان ډيره کمه غلطي کوي ځکه هغه به خپل کتاب ته رجوع کوله د غه شان سفيان د شعبه نه زيات قوي او عالم الرجال وو. [شرح علل الترمذی ،ص ۱۲۵].

(۵) امام ابن معين رحمه الله فرمائی : اذاخالف شعبه وسفيان فالقول قول سفيان .

**ترجمه :** کله چې شعبه د سفيان خلاف وکړي نو خبره به د سفيان معتبره وي . (نصب الرايه ، ۳۶۹/۱)

(٦) د امام صالح جزره تحقيق : (سفيان احفظ من شعبه) .

**ترجمه :** سفيان د شعبه نه زيات حافظ دی . (تذكرة الحفاظ ، ص ٢٠٦).

(۷) د امام ابوداود رحمه الله رايه : وليس يختلف سفيان وشعبه في شي الا ينظر به سفيان وخالفه في اكثرمن خمسين حديثا القول فيهاقول سفيان .

**ترجمه :** په هيڅ ځيز کې د سفيان او شعبه اختلاف ندې راغلی مګر چې سفيان وربانديې کامياب شوی دی او امام شعبه په پنځوسو حديثونو کې د سفيان نه خلاف کړی دی چې په هغې کې خبره د سفيان معتبره ده . (سير اعام النبلاء ، ج ۷/ ۲۴۰ ) و شرح علل الترمذی ص ۱۲۵).

(۸) امام ابوذرعه فرمائی : كان الثوري احفظ من شعبه في اسنادالحديث ومتنه . (مقدمة الجرح والتعديل ،ص ٦٦) .

(۹) دامام ابو حاتم رحمه الله فيصله : هواحفظ من شعبه واذا اختلف شعبه والثوري فالثوري . (مقدمة الجرح والتعديل ،ص ٦٦)

(۱۰) دامام ابن حجر محققانه تبصره : هواتقن واحفظ من شعبه . (فتح الباری ، ج ۴٦٨/٩).

(۱۱) دامام شعبه خپله فيصله دسفيان په حق کې سفيان مانه زيات حافظ او يادونکی دحديثو دی . (تذکرالحفاظ).

(۱۲) دامام ابو حنيفه رحمه الله فيصله : لوكان سفيان الثوري في التابعين لكان فيهم له شان فقال ياباحنيفه مايقول في الاخذعن الثوري ؟ فقال اكتب عنه فانه ثقة ماخلااحاديث ابي اسحاق عن الحارث وحديث جابرالجعفي . ترجمه : که چيرې سفيان ثوری په تابعينو کې وي نو دده به په هغوی کې ډير غټ مقام وو ، بيا دامام ابو حنيفه نه تپوس وشو چې دسفيان ثوری نه روايت نقل کول څنګه دي ؟ نو امام ابو حنيفه ورته وفرمايل : دسفيان نه احاديث ليکه ځکه هغه ثقه دی البته کله چې هغه دا سحق روايت دحارث نه نقل کوي يا دجابر جعفي نه نقل کوي نو هغه مه ليکه . [دلايل النبوه للامام لبهيقی ،ج ۴۵/۱] (ددې دواړو نه درو ايت نه ليکلو وجه داده چې دا دواړه رافضي او کذاب وو) (امين الفتاوی ،ج ۱_ ۲۷۸) او چې کله همدا سفيان ثوری رحمه الله د ترک د رفع اليدين په دې حديث کې راغلو نو ټولو لا مذهبانو پرې سخت اعتراضونه وکړه د عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه ددې حديث په سند باندې امين الله بحث کوي او په سفيان ثوری رحمه الله باندې لاندې اعتراضونه کوي .

سفيان ثوري مدلس دی او لاندې علماء وورته مدلس ويلي دي (عبدالله بن مبارك تهذيب السنن ، ۱۰۲/٤/يحي بن سعيدالقطان تهذيب السنن ، ۱۱_ ۱۹۲/ الامام البخاری العلل الكبيرللترمذی ۲ _ ٩٦٦/ والتمهيد، ۱_ ۳٤/ يحي بن معين الكفاية الخطيب/ ۳٦۱/ ابو محمودالمقدسی قصيدة فی المدلسين دويم شعر،ص ٤٧ /ابن التركمافی الجوهرالنقی ، ۸ _ ۲٦۲/ ماهنامه اهلحديث شماره ۱۲ ص ۳۸ ابن حجرطبقات المدلسين ، ص ۳۲ تقريب ص ۱۹۷).

امام ذهبی فرمائي انه كان يدلس عن الضعفاء ميزان الاعتدال ، ص ۱٦٩ _ ج ۲ كان يحدث عن الضعفاء سيراعلام النبلاء ، ۷ /۲۷٤) وربمايدلس عن الضعفاء سيراعلام النبلاء ، ۷ _ ۲٤۲/ الحق الصريح، ج ٤ص ٨٦) بحث رفع اليدين د امين الله كتاب.

## دعبدالله بن المبارک رَحِمَهُ اللّٰهُ دقول تحقيق

داحديث صحيح هم دی او داحنافو د مسلک لپاره صريح هم دی ځکه چې په دې، حديث کې حصر درفع اليدين دی په تکبير تحريمه کې او حصر (مايوجد فيه ولايوجد في غيره) ته وايي نو دتکبير تحريمه په وخت کې رسول الله ﷺ رفع الدين کړي دي (داشو مايو جد فيه) او نورې دلمانځه په داخل کې ندی کړی (دايي شو لايوجد في غيره)، لکن بعضوپرې يو څو اعتراضونه کړي دي، يو اعتراض يې دا هم کړی دی چې امام ترمذي دعبدالله بن مبارک رحمه الله قول نقل کړی دی چې:

(قدثبت حديث من يرفع، وذكرحديث الزهري عن سالم عن ابيه، ولم يثبت حديث ابن مسعود ﷺ ان النبي ﷺ لم يرفع الا في اول مرة) (ترمذي ج۱ص۵۸ باب رفع اليدين عند الركوع)

يعنى درفع اليدين حديث ثابت دی او دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ حديث ندی ثابت چې رسول الله ﷺ رفع اليدين ندي کړي مګر په اول ځل کې يې کړيدي.

دا اعتراض زمونږ دزمانې لامذهبه امين الله پشاوري په الحق الصريح /ج۴/ص۸۴ص۸۵ کې او زبير علی زئی ديوبل لامذهبه دکتاب تحفه الاحوذي ج۱ص۲۲۰ څخه رانقل کړی دی او دشلو کسانو حوالې يې رانقل کړی دی او ځان يې په شرک تقليدي کې غورزولې دی، لکن مشهور متل دی چې سل پاپړيو لوړ. په يو حنفي جواب به ددوي ټول پاپړ زره زره شي ان شاء الله.

**جواب:** دلامذهبانو ددې اعتراض درانقلولو او په دې حديث باندې دچسپانولو څخه دلمر په شان داخبره ظاهريږي چې کوم حديث ددوي درايې څخه مخالف وي که څه هم هغه يقيني صحيح حديث وي، او دجليل القدروصحابه وو رضي الله عنهم، تابعينو رحمهم الله او تبع تابعينو رحمهم الله څخه ثابت وي بيا يې هم شاته غورزوي، اعراض ترينه کوي، بې ځايه تاويلات په کې کوي، دحقايقو څخه ستر ګې پټوي، او ددې صحيح حديث سره داسې دشمني کوي لکه هندويې چې دکلمې سره کوي او ددې صحيح حديث او ريدل ورباندې داسې بدلګيږي لکه په هندوباندې چې کلمه بده لګيږي.

**حاصل دجواب :** دترک درفع اليدين په باره کې دعبدالله بن مسعود ﷺ څخه دوه حديثونه روايت شوي دي، يو قولي دی يعنې دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه په قول سره پکې د رسول الله صلى الله

عليه وسلم د ترک رفع اليدين حکايت شوی دی او بل فعلی دی يعني عبد الله بن مسعود ﷺ په فعل سرا په کې د نبي ﷺ د ترک درفع اليدين نقشه وړاندې کيږي.

**داول قولي حديث الفاظ:** أن النبي ﷺ لم يرفع الا في اول مرة . [تعليقات اثارالسنن ص ۱۰۴/ دا امام ترمذي د عبد الله بن المبارک څخه تعليقا او امام طحاوي رقم ۱۳۱۶، باب التکبير للرکوع والتکبير للسجود والرفع من الرکوع مسنداً ذکر کړی دی.

**ددوهم فعلي حديث الفاظ:** (الا اصلي بکم صلوة رسول الله ﷺ فصلي فلم يرفع يديه الا في اول مرة) ( مسنداحمد، ج ۱ ص ۳۸۸ ص ۴۴۲) ( ترمذی ، ج ۱ ص ۵۸ ) ( نسائی ، ج ۱ ص ۱۶۱) ( ابوداود، ج ۱ ص ۱۰۹) (جامع المسانيد، ج ۱ ص ۳۵۲ ، ص ۳۵۳/مسندامام اعظم ص ۵۰ ص ۱۲۱/معارف السنن ، ج۱ ص۱۲۱).

د عبد الله بن مبارک ﷺ په قول کې د اول حديث په الفاظو تصريح ده، نو دده اعتراض د اول حديث په باره کې دی، ددوهم حديث په باره کې نه دی ځکه چې دوهم حديث خپله د عبد الله بن مبارک ﷺ څخه روايت شوی دی.

(أَخْبَرَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، قَالَ: أَنْبَأَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «فَقَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ ثُمَّ لَمْ يُعِدْ. (نسائي ج ۱ ص۱۵۸) باب ترک ذلک).

**دوهم جواب:** ددې اعتراض راوي د عبد الله بن مبارک پخوانی شاګرد سفيان بن عبد الملک المروزي دی من کبار اصحاب ابن المبارک تقريب التهذيب لابن حجر ص ۲۷۸، او بيا د عبد الله بن المبارک په اخري شاګردانو کې سويد بن نصر المروزي همدا حديث د عبد الله بن المبارک څخه بلا اعتراضه رانقلوي کما مرّ بحوالة النسائي چې دا د رجوع دليل دی.

**دريم جواب:** د طحاوي د قولي روايت په باره کې هم دا اعتراض صحيح نه دی، ځکه چې د طحاوي د قولي روايت سند صحيح دی او ددغو اعتراضونو سند نه دی صحيح.

په ترمذي کې ددې اعتراض سند داسې دی چې: حدثنا بذلک احمدبن عبدة الاملی حدثنا وهب بن زمعة حدثنا سفيان بن عبدالملک عن عبدالله بن المبارک. په دې سند کې د امام ترمذي د استاد

عبدة الاملى حالات نه دي معلوم تردې پورې چې دده د ولادت او دوفات تاريخ هم نه دی معلوم غالباً چې په دريمه صدی کې به تېر شوی وي د دريمې صدی هيچا هم دده توثيق او تعريف نه دی کړی تر اتمې صدی پورې يې چا تعريف نه دی کړی يو اځې علامه ذهبي ورته صدوق ويلي دي. [تهذيب/ج۱ /ص۵۹ / کاشف ج۱ / ص ۲۳].

او صِدق ثِقه والي لره مستلزم نه دی، کله راوي صدوق وي خو بيا يې هم روايت ضعيف وي. امام ابوحاتم د حماد بن ابی سليمان په باره کې فرمايي چې: (صدوق لايحتج به) [التعليق المغنی/ج۳/ص۳۶۹].

په بيهقی ج۲ ص ۷۹ کې ددې اعتراض سند داسې دی چې حدثنا عبد الله بن محمود حدثنا عبد الكريم بن عبد الله عن وهب بن زمعة حدثنا سفيان بن عبد الملک عن عبد الله بن المبارک. په دې سند کې عبد الكريم مجهول دی او د عبد الله بن مبارک څخه ترک د رفع اليدين په داسې سند باندې ثابت دی چې په صحت يې هيڅ اعتراض نشته سند داسې دی چې : اخبرنا سويد بن نصر حدثنا عبد الله ابن المبارک عن سفيان عن عاصم بن كليب عن عبد الرحمن بن الاسود عن علقمة عن عبد الله.

۲–په اعتراض کې الفاظ د لم يثبت ذکر شويدي او حافظ بن حجر رحمه الله فرمايي چې نفی د ثبوت ضعف لره نه دی مستلزم ځکه چې د نفی دثبوت څخه کله نفی د صحت مراد وي او نفی د صحت نفی د حسن نه راولي. لا يلزم من نفی الثبوت ثبوت الضعف لاحتمال ان يراد بالثبوت الصحة فلا ينفی الحسن . (نتايج الافکار بحواله نور العين ص ۵۳ وراحة العين ص ۱۷۳).

(۳) امام ترمذی چې د عبدالله بن مبارک دا قول را نقل کړی دی، نو ددې قول څخه وروسته يې په مستقل سند سره د عبدالله بن مسعود ﷺ دوهم حديث را نقل کړی دی، او ددې دوهم حديث په باره کې يې خپله فيصله داسې ليکلي ده. (قال ابوعيسي حديث ابن مسعود حديث حسن). يعنې د عبدالله بن مسعود ﷺ حديث حسن دی، لوی ظاهري عالم ابن حزم په المحلی کې ورته صحيح ويلی دی. (المحلي كتاب الصلوة حكم رفع اليدين ج۳ ص ٤ دارالكتب العلمية ) د نور زيات تفصيل لپاره (معارف السنن ،ج ۲ ص ۸۳) وګورئ.

څلورم جواب: که دا اعتراض ددې فعلي حديث په باره کې شي نو بيا هم د حديث صحت ته هيڅ نقصان نه رسوي ، ځکه چې دا جرحه غير مفسره او غير مبين السبب ده او د محدثينو د اصولو مطابق داسې جرحه د قبلولو قابله نه وي، لا يقبل الجرح الا مفسرا ، الكفاية في علم الرواية للخطيب ص–

(۱) اذا كان الجرح غير مفسر السبب فانه لا يعمل به، صيانة صحيح مسلم لابن الصلاح صـ ۹٦، (لايقال إن الجرح مقدم على التعديل لأن ذلك فيما إذا كان الجرح ثابتا مفسر السبب وإلا فلا يقبل الجرح إذا لم يكن كذلك)( توجيه النظر الى اصول الاثر لطاهر الجزائری ج ۲صـ ۵۰۰)

**دلامذهبانو مزيد شبهات:**

**لومړی اعتراض:** لامذهبان دا اعتراض کوي چې ددې حديث په سند کې يو راوي عاصم بن کليب دی. لامذهبانو ليکلي دي چې عاصم بن کليب ضعيف دی، زمونږ د زمانې لامذهبه امين الله پشاوری هم ليکلي دي په الحق الصريح ،ج ۴ص ۹۵) کې.

**اول جواب:** (۱) عاصم بن کليب ﷺ ته امام نسائی ثقه ويلی دی او امام ابوداود ورته افضل اهل الکوفه يعنې د کوفی د ټولو محدثينو څخه بهتر ويلی دی. (تهذيب التهذيب ،ج ۵ ص ۵٦).

(۲) امام ترمذی دده احاديثو ته حسن ويلي دي. (ترمذی ،ج ۱ ص ۵۹ وص ۲۱۰).

(۳) امام بخاری رحمه الله دعاصم بن کليب تعليق ذکر کړی دی او دده تعليق ته يې اصح يعنې ډېر صحيح ويلی دی. [بخاری ،ج ۲ ص ۸٦۸ /باب لبس القيس]

(۴) دمسلم شريف په ،ج ۲ ص ۱۹۷ وص ۳۵۰ /وص ۴۱۴ /کې دعاصم بن کليب ﷺ احاديث دي او په بخاری/ج ۲/ص ۸٦۸ کې هم دي نو ايا دابلعم بن باعورا په خره باندې سپاره لامذهبان ددې احاديثو ضعيف والي اعلان هم کوي او که نه؟ که کوي يې نو بيا به بخاري او مسلم څرنګه اصح الکتب شي؟

**دوهم جواب:** همدغه لامذهبانو چې درفع اليدين دثابتولو لپاره کومې رسالې ليکلي دي: په دې ټولو رسالو کې درفع اليدين دثابتولو لپاره دحضرت وائيل ﷺ حديث دابوداود شريف په حواله باندې پيش کوي، حالانکه ددې حديث په سند کې هم عاصم بن کليب رحمه الله شته هلته څرنګه لامذهبان دده حديث دستر کو تور ګرزوي؟

درفع اليدين په حديث کې چې قوي دی نو د ترک درفع اليدين دحديث دبيانولو په وخت کې يې څرنګه ماغذه دلاسه ورکړل؟ دوي چې په سينه باندې دلاسونو دتړلو لپاره کوم روايت دابن خزيمه په حواله باندې پيش کوي په هغې کې هم راوي عاصم بن کليب دی نود وضع اليدين على الصدر او دامين بالجهر په باره کې هم دده د احاديثو څخه استدلال کوي، نو څرنګه هلته قوي او دلته ضعيف شو؟

**دريم جواب:** دعبدالله بن مسعود ﷺ دا حديث په ډيرو طريقو روايت شوی دی:

(۱) يو ه هغه طريقه ده چې په هغې كې د امام ابو حنيفه او امام اوزاعي د مناظرې ذكر دى، په دغه طريقه كې نه عاصم شته ، نه سفيان ، او نه وكيع رحمهم الله بلكه د حماد عن ابراهيم عن علقمه په طريقه روايت شوى دى او سنديې بالكل سلسلة الذهب ده .

(۲) بله طريقه: د عاصم بن كليب رحمه الله طريقه ده په دې طريقه باندې د لامذهبانو سره هيڅ معقول اعتراض نه شته صرف د يو څو كسانو بې دليله اقوال رانقلوي، لامذهبان د بل چابې دليله خبرې منقول تقليد او شرک وائي او د لته بيا پخپله په راويانو باندې د اعتراض لپاره د يو څو كسانو بې دليله خبرې رانقلوي او د ځان لپاره تقليد او شرک رواكوي .

(۳) د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حديث بله طريقه د ابراهيم نخعي والا ده چې د هغې څخه د ترک د رفع اليدين تواتر ثابتيږي .

(۴) د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حديث بله طريقه د حضرت محمد بن جابر رحمه الله طريقه ده. چې د ۴۷ ، شمارې لاندې يې تحقيق را روان دى، نو د لامذهبانو څخه خپلو مشرانو د ارهټ غوايان جوړ كړي دي، سترګو ته يې داسې پوښونه وراچولي دى چې د خپلو شيطان صفته مشرانو د ورښود ل شوى لارې څخه ورته نور هيڅ نه ښكاري .

غير مقلدين د حديث په دې طريقه دا اعتراض كوي چې محمد بن جابر ضعيفه دى، لكن دا اعتراض صحيح نه دى د محمد بن جابر حافظه په ځوانۍ كې قوي وه په بوډاوالي كې ړوند شو او حافظه يې خرابه شوه، او د بوډاوالي احاديث يې يقيناً چې ضعيف دي، لكن دده دا حديث د ځوانۍ د زمانې روايت دى، ځكه چې د دې حديث په سند كې دده څخه روايت كونكى اسحاق بن اسرائيل دى اسحاق بن اسرائيل محمد بن جابر ته ډير فضيلت وركوي او همدارنګه د محمد بن جابر رحمه الله څخه لوى لوى محدثين روايتونه كوي لكه ابن عون، سفيان ثورى ، شعبه، او ابن عيينه او د دوي په شان نور لوى لوى محدثين ( نصب الرايه ،ج ۱ ص ۳۹۷ ) التعليق الصبيح ،ج ۱ ص ۴۷۳ حافظ ورته صدوق ويلى دى او د مسلم راوي دې ورجحه ابو حاتم علي ابن لهيعه وهو قد روى له البخاري والنسائي ولم يصرحا باسمه فما ظنك بمحمد التعليق الصبيح ،ج ۱ ص ٤٧٣ )

**۲- اعتراض:** اعتراض داكيږي چې په دې حديث كې د عاصم بن كليب څخه په روايت كولو كې سفيان او د سفيان څخه په روايت كولو كې وكيع متفرد دى .

**اول جواب** : دسفيان څخه دوکيع دتفرد اعتراض دلاعلمۍ نتيجه ده ځکه چې دده متابعات ډيرزيات دي لکه څرنګه چې په نسائي کې عبدالله بن مبارک دده متابعت کړی دی .(نسائی ،ج ۱ ص ۱۵۸ باب ترک ذلک). او په ابوداود شريف کې حضرت معاوية ، حضرت خالد بن عمرو ، حضرت ابوحذيفه اونورو ډيرو دده متابعت کړی دی. (ابوداود ، ج ۱ ص ۱۰۹ ) باب من لم يذکر الرفع عند الرکوع .

**دوهم جواب** : دامام ابوحنيفه رحمه الله په طريقه کې خو نه سفيان شته او نه وکيع .

**دريم جواب** : که ومنو چې دسفيان رحمه الله څخه په روايت کولو کې وکيع متفرد دی، نو دا دواړه خو ثقه راويان دي او که دسفيان او دوکيع په شان د حديثو داماما نو تفردات هم ردشي نو په دنيا کې به هيڅ تفرد دقبلولو قابل نه شي .

ډير تعجب خبره داده چې کله سفيان ثوري دامين بالجهر په روايتونو کې راشي نو بيا ورته احفظ الناس وائي او چې کله په هغې رواياتو کې راشي چې ددوی درائ څخه مخالف وي نو بيا ورته انسی الناس وائي .

**۳- اعتراض** : اعتراض داشوی دی چې دعبدالرحمن بن الاسو رحمه الله دسماع د علقمه رحمه الله څخه ثابته نه ده .

**جواب** : عبدالرحمن بن الاسود رحمه الله دابراهيم نخعي رحمه الله معاصر دی، او دابراهيم نخعي رحمه الله سماع دعلقمه رحمه الله څخه ثابته ده لهذا عبدالرحمن بن الاسود رحمه الله هم دعلقمه رحمه الله معاصر شو او دامام مسلم رحمه الله په نيز د حديث دصحت لپاره نفس معاصرت کافي دی، نو دا حديث دامام مسلم په شرط صحيح دی امام ابوحنيفه رحمه الله دا حديث دعبدالرحمن بن الاسو رحمه الله د په ځای دابراهيم نخعي رحمه الله څخه روايت کړی دی او دعلقمه رحمه الله څخه دده سماع دشک څخه بالاتره ده .

**۴- اعتراض:** په اخر کې ابوبکر بن اسحق الشافعي داعتراض په ډول دا ويلي دي چې عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه ته درفع اليدين په مسئله کې معلومات نه وو او ياترينه سهوه شويده، لکه څرنګه چې دتطبيق الرکوع نسخه ورته نه وه معلومه .دا اعتراض دلامذهبو په هره رساله کې رانقل شوی دی او ډير فخر پرې کوي

لامذهبو څخه مخکې لاړوا و وی ویل چې د ابن مسعود رضی الله عنه ،لامذهبه نیاز محمد په خپل رافضیت کې دنورو لامذهبو څخه مخکې لاړوا و وی ویل چې دابن مسعود
څخه نورهم ډېرمسایل هیرشوي وو او پنځه اعتراضه یې پرې کړی دي. (الحق الصريح ج ٤ ص ۸۸).

**الجواب** :دنیازمحمد عرف امین الله پشاوری ددې نه ادبه اعتراض بې ځایه والې دومره ښکاره دی چې جواب ته یې ضرورت نه شته ځکه چې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته ددې نسبت دمعترض شیعه توب اورافضیت را ښکاره کوي.

(۱) رسول الله ﷺ دقران په پوهانو کې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اول نمبر ګرځولې دی. [مشکوة ج ۲ | ۵۷٤/بخاری ج ۱ ص ۵۳۱/مسلم ج ۲ ص ۲۹۳]. لکن در مذهبانو ددې بی ادبه اعتراض څخه معلومیږي چې دوی عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته دقران څخه منکروائې.

(۲) رسول الله ﷺ فرمائي چې: زه خپل امت ته هغه څه خوښوم چې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه یې ورته خوښوي. (مجمع الزوائد، ج ۲ ص ۲۹۰/مستدرک، ج۳ص ۳۱۹ والاستیعاب ج ۱ص ۳۵۹ ). لکن لامذهبان دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه بیان کړی لمونځ هم نه خوښوي.

رسول الله ﷺ فرمائی چې: دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په عهدباندې کلکې منګولې ولګوئ. (ترمذی ،ج ۲ ص ۲۲۱ ) . لکن غیرمقلدین وائی چې دده احادیث مه منه ځکه چې ده ته په مسائلو کې معلومات نه وو لکه دتطبیق الرکوع په نسخه کې چې ورته معلومات نه وو.

(۴) الناطق بالحق والصواب حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه فرمائی چې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دعلم مکمله خزانه ده. [تذکرة الحفاظ ، ج ۱ ص ۱۴ / بغداد ،ج۱ص ۱۴۷ / همدارنګه رسول الله ﷺ هیڅکله دده څخه حجاب ندی کړی، مسلم ج ۲ص ۲۹۳ ].

لکن لامذهبان وایي چې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته نه دقران علم وو او نه دحدیث

(۵) زه ددې لامذهبو څخه پوښتنه کووم چې ستاسو دنسیان څخه څه شي مراددی ؟ که محض نسیان مو مرادوي نو بیا خودټول دین څخه منکرشئ ځکه چې نسیان خودرسول الله ﷺ څخه هم کیدلو ،رسول الله ﷺ فرمائي چې ( انما انا بشر انسی کما تنسون ، مشکوة ج ۱ص ۹۲) اوکه دبعضې احادیثو او دمسایلو څخه لاعلمي مو مرادوي ،نو بیا خو دااعتراض یواځې په ابن مسعود رضی الله عنه ولې کوي؟

ځکه چې ددې تصور ځخه خو هيڅوک هم خلاص ندي، درفع اليدين مرکزي راوي حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما هم د مسح على الخفين په باره کې اظهار دلاعلمی کړی وو.

حافظ ابن حجر فرمائي چې (لان ابن عمر رضي الله عنه انكر المسح على الخفين مع قديم صحبته وكثرة روايته اھ) فتح الباری ج ۱ ص ۲۴۵/طبع مصر وكذافي الموطا ص ۱۲]. همدارنګه حضرت ابوبکر صدیق د وراثت د جدی او حضرت عمر رضي الله عنه د طاعون د حکم په باره کې اظهار دلاعلمی کړی وو، همدارنګه د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ځخه تطبیق فی الرکوع هیر شوی نه وو، بلکې دده په نیز دا هم جایز وو، لکه څرنګه چې حضرت علی رضی الله عنه په زنګنونو باندې ذلاسونو کیښودلو او تطبیق دواړو ته جایز ویلي. [مصنف ابن ابی شیبة رقم ۲۵۵۳، اسناده حسن/ فتح الباري ج ۲/ ص ۲۲۷ طبع قدیم].

علامه انور شاه کشمیري رحمه الله فرمايي چې: د حضرت علي رضی الله عنه ځخه د تطبيق نقل يې پخواني نقل دی ځکه چې، دا تر حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه پورې ورسيد و نو کيدای شي چې دادده د کوفې د ولايت زمانه وه چې سنه ۱۷ هـ ځخه تر سنة ۲۱ هـ پورې وه. [وګوره فتح الباري د تصبيق بحث] د زيات تفصيل لپاره وګوره. [نيل الفرقدين ص ۸۵ و ص ۸۶/ اثار السنن ص ۱۵۲/ و ص ۱۵۳/ فتح الملهم ج ۳/ ص ۳۰۹ تا ص ۳۱۶/ اعلاء السنن ج ۳/ ص ۵۷ تا ۶۱].

**الحاصل:** لامذهبو ته چيلينج دی چې که په دې حديث يې يو مفسر اعتراض وکړو او ثابت يې کړونو يو لکهه دينار انعام دې واخلي او که نه د حديثو او د صحابه و وسره د دشمنۍ ځخه دی توبه اوباسي.

## د امام ابو حاتم د قول تحقيق

**فانقيل :** امام ابو حاتم رحمه الله فرمايي چې دا حديث خطا دی، داسې ويل کيږي چې د سفيان ثوری رحمه الله ځخه په دې اختصار کې وهم شوی دی، ځکه چې يو جماعت دا حديث د عاصم بن کليب ځخه په داسې الفاظو روايت کړی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ شروع کړو او لاسونه يې اوچت کړل، بيا يې رکوع وکړه او تطبيق يې وکړو او خپل دواړه لاسونه يې د زنګنونو په منځ کې کيښودل کوم بل محدث د سفيان ثوری والا الفاظ نه دي ذکر کړي (علل الحديث ج ۱ ص ۹۶ بحواله نور العينين علی زئی ص ۱۳۱).

**قلنا :** ۱-په اعتراض کې چې کوم حديث ذکر شوی دی هغه جدا دی او مونږ چې د کوم حديث څخه استدلال دی هغه جدا دی، ځکه چې په دې حديث کې داسې دي چې رسول الله ﷺ لمونځ شروع کړو الخ نو دلته خپله رسول الله ﷺ دريدلی دی او صحابه کرامو ته يې د لمونځ نقشه بيان کړه.
او زموږ استدلال چې د کوم حديث څخه دی هلته عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه دريدلی دی او خپلو شاګردانو ته يې د نبوي لمونځ نقشه بيان کړي ده، نو دا د سفيان ثوری رحمه الله وهم نه دی، بلکې د امام ابو حاتم وهم دی، چې د دواړو حديثونو څخه يې يو جوړ کړی دی (نور الصباح ج۱ ص۱۰۹ و ص۱۱۰).

۲-د معترض دا خبره بالکل غلطه ده چې يو جماعت د عاصم بن کليب رحمه الله څخه د تطبيق والا روايت بيان کړی دی، لکه څرنګه چې په اعتراض کې ذکر شو ځکه چې دا روايت يو جماعت نه بلکې صرف او صرف عبد الله ابن ادريس بيان کړی دی لهذا د ابو حاتم رحمه الله جرحه مردوده ده (نور الصباح ج۲ ص۳۳۵).

۳-لا مذهبان د امين بالجهر په حديث کې سفيان الثوری ته احفظ الناس وايي او دلته د رفع اليدين په مسئله کې ورته وهمي وايي.

۴-لا مذهبان د امين بالجهر په مسئله کې د امير المؤمنين فی الحديث امام شعبه رحمه الله په مقابله کې سفيان الثوری رحمه الله ته احفظ الناس وايي او اعتماد ورباندې کوي لکن د رفع اليدين په مسئله کې د عبد الله ابن ادريس په مقابله کې ورته انسی الناس وايي حالانکې ابن ادريس نه امام دی، نه حافظ دی او نه حجة دی او په حقيقت د سفيان ثوری رحمه الله او د عبد الله ابن ادريس رحمه الله په روايتونو کې هيڅ تعارض نشته ځکه چې د سفيان ثوری رحمه الله روايت د رفع اليدين سره تعلق لري او د عبد الله بن ادريس روايت د تطبيق فی الرکوع سره تعلق لري.

۶-ابن حزم الظاهری رحمه الله فرماي چې که څوک دا ووايي چې په دې حديث کې سفيان ثوری رحمه الله خطا شوی دی ځکه چې زهير بن معاويه دده مخالفت کړی دی نو موږ دې شخص ته خطا کار وايو چې بلا دليله يې سفيان ثوری رحمه الله ته د خطا يي نسبت کړی دی ځکه چې سفيان ثوری رحمه الله د زهير بن معاويه څخه غټ حافظ دی. (محلی ج۱ ص۸۷ محلی ج۲ ص۲۲۱ بتحشيه احمد شاکر).

## دابن حبان رحمه الله د قول تحقيق

فانقيل : حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چې ابن حبان رحمة الله عليه په كتاب الصلوة كې فرمايلي دي چې دا روايت په حقيقت كې دتهولو ځخه زيات ضعيف دى ځكه چې په دې كې علتونه دي.

نورالعينين زبيرعلي زئى صفحه ۱۳۱.

قلنا : ددنيا په هيڅ كتاب خانه كې دابن حبان رحمة الله عليه دكتاب الصلوة په نوم باندې كتاب نشته دادابن حجر رحمة الله عليه وهم دى كه نه ځوك دې په دې نوم باندې كتاب ثابت كړي نورالصباح (ج) ۲ صفحه ۳۳۶.

(۲) دامام ابن حبان رحمة الله عليه دې جرحې ته ځكه اعتبار نشته چې دحضرت عبدالله ابن مسعود رضى الله عنه حديث په ډيرو سندونو باندې روايت شوى دى او س دا نه ده معلومه چې دحضرت ابن حبان رحمة الله عليه اعتراض په كوم سند باندې دى ؟

(۳) علامه شبيراحمد العثماني رحمة الله عليه فرمايي چې مونږ ته دهغو علتونو هيڅ پته ونه لګيده كوم چې په اعتراض كې ذكرشوي دي نوكيدى شي چې علت داوى چې داحديث دابن حجر رحمة الله عليه دمذهب ځخه مخالف دى، فتح الملهم (ج) ۳ صفحه ۳۱۳ طبع مكتبه دارالعلوم كراچي.

## دامام ابوداودرحمة الله عليه طرف ته دمنسوب عبارت تحقيق

متعصب لامذهبه زبيرعلى زئى ليكي چې امام ابوداود رحمة الله عليه په رقم (۷۴۸) طبع دار السلام فرمايلي دي چې : هذاحديث مختصرمن حديث طويل وليس هو بصحيح على هذا اللفظ ) نورالعينين صفحه ۱۳۱ وصفحه ۱۳۲ .

**جـــواب : (۱)** دعبدالله ابن مسعود رضى الله عنه داحديث ابوداود ، ترمذى ،نسايى اونورو ډيرمحدثينو ذكركړى دى اوعبدالله ابن مسعود رضى الله عنه ددې نبوى صلى الله عليه وسلم لمونځ نقشه په هغه كوفه كې بيان كړى وه چې په هغې كې په زرګونو صحابه رضى الله عنهم اوتابعين رحمة الله عليه اوسيدل اوهيچا هم ورباندې اعتراض ونه كړونوعملي تواتردې حديث مطابق وو .

**(۲)** ک د ابو داود ډیرې نسخې دي ، مشهورې نسخې یې پنځه دي: ۱- نسخة ابو علي الؤلؤي مکتبة امدادیه وغیره وو چاپ کړې دی او زمونږ په مدرسو کې متداوله نسخه ده دا اخري او په ټولو کې صحیح نسخه ده دا امام ابوداود رحمه الله د وفات دکال نسخه ده هو دابو داؤد محشي لیکي چې: (الامام الحافظ ابو علي محمد بن احمد بن عمرو الؤلؤي البصري روى عن ابى داؤد هذا السنن فى المحرم سنة خمس وسبعين ومأتين وروايته من أصح الروايات لانها من أخر ما املى ابوداؤد وعليها مات ، حاشية ابى داود ج ۱صـ ۲) په دې نسخه کې دا اعتراض نشته.

۲- نسخة ابوبكر بن داسة: دېته نسخه ابن داسة وايي، ددې شرح هم شته د معالم السنن په نوم پدې نسخه کې اعتراض نشته.

۳- نسخة ابى علي الرملي: د اد ابن داسة د نسخې سره مشابه ده او المنذر خالد بن ابراهيم المصري فرمايي ، ورواية ابن داسة اكمل الزوايات ورواية الرملي تقاربها ،مقدمة التحقيق شرح سنن ابى داود للعينى ج ۱صـ ۳۳) پدې کې هم دا اعتراض نشته.

۴- نسة ابن الاعرابي: د انسخه ناقصه ده ډیر کتب پکې نشته ، قال ابو المنذر خالد بن ابراهيم المصري : رواية الاعرابي يسقط منها كتاب الفتن والملاحم والحروف والخاتم ونحوا لنصف من كتاب اللباس وفاته ايضا من كتاب الوضوء والصلوة والنكاح اوراق كثيرة (مقدمة التحقيقى شرح سنن ابى داود للعيين ج ۱صـ ۳۳)

۵- نسخة ابن العبد : دده نوم ابو الحسن ابن العبد الانصاري دی ، دا اعتراض پدې نسخه کې دی امام مغلطائي رحمه الله فرمايي چې اعتراض على هذا بما ذكره ابود اود فى رواية ابن العبد قال: هذا حديث مختصر من حديثه وليس بصحيح على هذا اللفظ شرح سنن ابن ماجه للمغلطائي صـ ۱۴۶۷)، نو دا اعترض دابن العبد په زړه نسخه کې دی او په اخري نسخه د لؤلؤي کې نشته دا ددې دلیل دی چې امام ابو داود ددې اعتراض څخه روع کړې ده په عربو کې د دار الفکر بیروت والا تحقیق عبد الحمید ابوداود چاپ کړی وو په هغې کې یې دا اعتراض په قوسونو کې لیکلي دی بیا وروسته د دار اسلام غیر مقلدینو قوسونههم لرې کړل او دا اعتراض یې په متن کې داخل کړو وروسته غیر مقلدینو همدا نسخې شایع کړې ، لکه نسخه حمیصه ، نسخه بیت الافکار الا لية او نسخة مکتبة المعارف.

(۵) دلامذهبو شيخ الكل شمس الحق عظيم ابادی ليکي چې واعلم ان هـذه العبارة موجودة فی نسختين عتيقتين عندی وليست فی عامة نسخ ابی داود الموجودة عندی.عون العبود (ج)۳ صفحه ٤٤٩

(۶) امام اهل سنت حضرت مولنا سرفراز خان صفدر رحمة الله عليه فرمايی چې کله په عاماو متداولو نسخو کې داعبارت نه وو نوشاذ و اوغير مطبوعو نسخو ته څه اعتبار دی؟ خزاين السنن (ج)۲ صفحه ۹۷۰.

او مخکې ليکي چې صاحب د مشکوة چې په رقم ۸۰۹ کې ليکلي دي چې (قال ابوداود ليس هو بصحيح علی هذا المعنی) دا د صاحب د مشکوة عجيب وهم دی، ځکه چې دا حديث په ابوداود (ج)۱ صفحه ۱۰۹ کې مذکور دی او په هغه کې دليس هو بصحيح علی هذا المعنی هيڅ ذکر نشته، بلکې دا الفاظ د حضرت براء بن عازب د روايت سره متعلق دی ابوداود (ج)۱ صفحه ۱۱۰ خزاين السنن (ج)۲ صفحه ۹۷ د صاحب مشکوة ډيراوهام مولنا حبيب الله ډيروي رحمة الله عليه ذکر کړي دي نور الصباح (ج)۱ صفحه ۱۲۲ تا صفحه ۱۲۴

(۷) علامه انور شاه کشميري رحمة الله عليه او علامه شبير احمد العثماني رحمة الله عليه ليکي چې داعبارت کوم چې د ابوداود طرف ته منسوب دی غير مناسب دی، مناسب داسې وو چې (هذا حديث مختصر من الحديث الطويل) مقصدا دادی چې دلته د معرفو ذکر کول په کار وو، ځکه چې دده مطلب دادی چې دا حديث ديو معين اوږد حديث څخه مختصر دی، نه د غير معين څخه، علاوه لادا چې که دا څه مهم عبارت وي نو دابو داؤد په ټولو نسخو کې به وي (فليس مافی بعض نسخه من الغبارة مناسباً قال انه مختصر من حديث طويل ـ المقام مقام التعريف ـ ولوکان لکان فی کل النسخ ،لکونه مهماً کعامة مايقوله فی کتبه . نيل الفرقدين مع بسط اليدين صفحه ٨٤ فتح الملهم (ج)۳ صفحه ۳۱۰.

(۸) دا حديث د کوم اوږد حديث څخه مختصر شوی دی؟ مونږ خو دلسو څخه دزياتو کتابونو په حوالې را نقل کړی دی او هيڅ کوم معتبر محدث دا د کوم لوی حديث جزء نه دی ګرزولی. نور الصباح (ج)۱ صفحه ۱۲۴.

(۹) که بالفرض والتقدير د امام ابوداود دا جرحه ثابته شي نو بيا هم مفسره نه ده نو دا اعتبار وړ نه ده.

(۱۰) علامه محمد انور شاه کشميري رحمة الله عليه فرمايي چې: وهذ الذی اراده ابوداود ان کان فی النسخة انه مختصر مـن حـديث طويـل، وهـو لـيس بصـحيح علی هـذا المعـنی ،يريـد ان اراءة ابـن

مسعودرضی الله عنه صلوته صلى الله عليه وسلم لم يكن مقتصراً ومنحطاً على ترک الرفع فقط ،بل فيه امور فاختصروا ،وهو مسوق للترک فقط ،لا انه غلط ومثله فى كثير من الاحاديث . نيل الفرقدين مع بسط اليدين صفحه ۹۱ که دا عبارت داسې ومنو چې ( هذاحديث مختصر من حديث طويـل ولـيس هوبصحيح على هذا المعنى ) نو دا امام ابوداود رحمة الله عليه مقصد دادی چې عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه چې دنبوی صلی الله علیه وسلم لمونځ کومه نقشه عملاً بیان کړې ده، نو په هغې کې یوازې ترک درفع الیدین راغلی دی، حالانکه په هغې نقشه کې یوازې ترک درفع الیدین نه وو، بلکې نورامورهم وو، نو راویانو اختصار کړی دی او صرف ترک درفع الیدین یې بیان کړی دی، دامعنی نه ده چې داغلط دی، په احادیثو کې ددې ډیر مثالونه دي.

(۱۱) امام ابوداود رحمه الله چې ا دکوم حدیث څخه اختصار ګڼي دهغې الفاظ داسې دي : (حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ رحمه الله ,حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ رحمه الله ,عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ رحمه الله ,عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ رحمه الله , حَدَّثَنَا عَلْقَمَةُ رحمه الله أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: "عَلَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ: فَقَامَ فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ, ثُمَّ رَكَعَ, فَطَبَّقَ يَدَيْهِ جَعَلَهُمَا بَيْنَ رُكْبَتَيْهِ فَبَلَغَ ذَلِكَ سَعْدًا فَقَالَ: صَدَقَ أَخِي قَدْ كُنَّا نَفْعَلُ ذَلِكَ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ ثُمَّ أُمِرْنَا بِهَذَا". قَالَ الْبُخَارِيُّ: "وَهَذَا الْمَحْفُوظُ عِنْدَ أَهْلِ النَّظَرِ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (جـزء رفـع اليدين للبخاري رقم ۳۳)

مولنا خليل احمد السهار نفوري رحمه الله فرمايي چې: ولو سـلم أنـه مختصرـ مـن هـذا الحـديث الطويل ففى المختصر زيادة لفظ (لم يعد وغيره) ليس فى الطويل وزيادة ثقة مقبولة عند اهل الحـديث (بذ المجهول ج ۲صـ ۲۲، باب من لم يذكر الرفع عند الركوع)

## د امام احمد رحمة الله عليه او د يحى بن ادم رحمهما الله دقول تحقيق

فانقیل: چې امام احمد رحمه الله او یحی بن ادم رحمه الله په دې حدیث باندې کلام کړی دی (نور العين ص۱۳۱ و ص ۱۳۳ لزبير علی زئی).

قلنا : ۱- امام احمد رحمه الله د ثم لا يعود په زیادت کلام کړی دی او باقي حدیث یې په مسند احمد رقم ۳۶۷۲ کې د فلم یرفع یدیه الا مرة په الفاظو باندې خپله روایت کړی دی، همدا رنګه امام وکیع رحمه الله د ثم لا یعود په لفظ کې متفرد نه دی بلکې عبد الله بن مبارک رحمه الله وغیره یې متابعین دي.

۲- امام احمد رحمه الله او يحى بن آدم رحمه الله په دې حديث کومه جرحه نه ده کړې او نه د دنيا د کومې کتابخانې په کوم کتاب کې د کومې جرحې څرک لګيږي . البته حافظ ابن حجر رحمه الله په تلخيص الحبير کې د امام بخاری د جزء رفع اليدين په حواله باندې ليکلي دي چې (قال احمد و شيخه يحى بن آدم هو ضعيف) تلخيص الحبير ج۱ ص ۲۲۲ لکن داد حافظ ابن حجر رحمه الله مغالطه ده علامه انور شاه کشميری رحمه الله فرمايي چې (فهو من الحافظ عجلة تاخذ المرأ عند الظفر بالمقصود) نيل الفرقدين مع بسط اليدين ص۸۲ د حافظ ابن حجر دا غلطي د ده د چالاکۍ نتيجه ده ، کومه چې د مقصود د حاصلولو په وخت کې کيږي ، ځکه چې په جزء رفع اليدين د بخاری کې د تضعيف هيڅ ذکر نشته ، اصل الفاظ د جزء رفع اليدين للبخاری وګورئ قال احمد بن حنبل عن يحى بن ادم قال نظرت فى كتاب عبد الله بن ادريس عن عاصم بن كليب ليس فيه ثم لم يعد فهذا اصح لان الكتاب احفظ عند اهل العلم لان الرجل يحدث بشئ ثم يرجع الى الكتاب فيكون كما فى الكتاب جزء رفع اليدين رقم ۳۲ .

محترمو په دې عبارت کې د هيڅ کومې جرحې ذکر نشته ، صرف دومره يې ليکلي دي چې د عبد الله ابن ادريس رحمه الله په حديث کې د (ثم لم يعد) جمله نشته ، موږ هم داسې وايو چې د عبد الله ابن ادريس رحمه الله په حديث کې دا جمله نشته که په دقيق نظر باندې وکتل شي نو دا په عبد الله ابن ادريس باندې اعتراض دی چې عبد الله ابن ادريس کوفي دی او په ترک د رفع اليدين باندې عمل کوي نو ده ولې دا جمله نه ده رانقل کړې ؟

علامه انور شاه کشميری رحمه الله فرمايي و ليس فى جزء رفع اليدين الا انه قال و قال احمد بن حنبل ويحى بن ادم قال نظرت فى كتاب عبد الله ابن ادريس عن عاصم بن كليب ليس فيه ثم لم يعد اه ثم تكلم البخارى من قبل نفسه ولا دخل لاحمد وشيخه فيه و العجلة تعمل العجايب و اصل ذلک فى المسند نيل الفرقدين مع بسط اليدين ص ۸۳ و كذا فى فتح الملهم ج۳ ص ۳۱۲ )

تنبيه : مولنا حبيب الله ډيروی رحمه الله فرمايي چې حافظ بن حجر په تلخيص الحبير کې محتاط نه دی خپله حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې زه خپله په تلخيص الحبير باندې ناراضه يم ( نور الصباح ج۲ ص ۳۳۷ ) .

من شئ من تصانيفی لانها عملتها

قاضی شوکاني ليکي چې لا نقل عنه انه قال لست راضيا عن شئ من تصانيفی لانها عملتها في ابتداء الامر ثم لم يتهيأ لی من يحرر معی سوی شرح البخاری و مقدمته والمشتبه والتهذيب و لسان الميزان وروی عنه فی موضع اخر انه اثنی علی شرح البخاری، والتعليق، والنخبة (البدر الطالع ص٨٩ طبع اول سنه ١٣٤٨ هـ.

## د لا مذهبه زبيرعلی زئی د نورو اعتراضاتو تحقيق

١- امام شافعي رحمه الله د ترک د رفع اليدين په احاديثو رد کړی. (نور العينين ص ١٣١)

**ځواب :** ددې جرحې سند منقطع دی، ددې سند يو راوي هم د امام شافعي سره ملاقات نه دی کړی (نور الصباح /ج٢/ص٣٣٤).

٢- امام دار قطنی دې حديث ته غير محفوظ ويلی دی (نور العينين ص ١٣١)

**ځواب :** دامام دا رقطنی څخه په هيڅ کتاب کې هم دا جرحه نه ده ثابته، بلکې امام دار قطنی په کتاب العلل کې فرمايي چې اسناده صحيح دار قطنی ص ١٤٣ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې و کذا قال دار قطنی انه صحيح الا هذه اللفظة (الدرايه ج١ ص ١٥٠) حالانکې دا لفظ هم صحيح ثابت دی.

٣- ابو بکر احمد بن عمر (و) البزاز په دې حديث جرحه کړي ده (نور العينين ص ١٣٢).

**ځواب :** ددې نسبت امام بزاز ته غلط دی ځکه چې محشی ليکلي دي چې فی الاصل عمرو البراء والثواب ما اثبته. همدارنګه د امام بزار رحمه الله جرحه د يزيد بن ابی زياد په روايت باندې ده (عمدة القاری ج٥ ص ٣٩٨ تلخيص الحبير ج١ ص ٢٢١ نيل الفرقدين مع بسط اليدين حاشيه ص ٧٦)

٤- محمد بن وضاح د ترک د رفع اليدين ټولو احاديثو ته ضعيف ويلي دي (نور العينين ص ١٣٣)

**ځواب :** لامذهب زبير علی زئی د عبارت په رانقلولو کې خيانت کړی دی اصل عبارت داسې دی چې محمد بن وضاح يقول الاحاديث التی تروی عن النبی صلی الله عليه وسلم فی رفع اليدين ثم لا يعود ضعيفة کلها. نو اول ددې د سند صحت ثابت کړه، دوهم د ثم لا يعود څخه علاوه رواياتو ته يې تناول ثابت کړه.

۵-دسفيان په روايت کې نفی ده او د صحيحينو په متواترو احاديثو کې اثبات دی او اثبات مقدم وي په نفی باندې (نور العينين ص ۱۴۰).

**ځواب**: که مطلقاً مثبت مقدم کوې، نو بيا رفع اليدين بين السجدتين مثبت دی او ترک د رفع اليدين بين السجدتين نافی دی، حالانکې غير مقلدين دلته نافي مقدم کوي په مثبت باندې فما هو جوابک فهو جوابنا.

مثبت په هغه نفی باندې مقدم وي چې کله نفی مدلوله د نص نه وي، کله چې نفي هم مدلوله د نص وي بيا د نفی او د اثبات په مابين کې تعارض راتلای شي خپله د لا مذهبو شيخ الکل فی الکل نذير حسين دهلوي په معيار الحق ص ۲۱ کې ليکي چې لان الاثبات لا يکون الا بالدليل فاذا کان النفی ايضا بالدليل کان مثله فيتعارضان. همدا رنګه په قواعد الفقه (ص ۵۳ کې هم دي) همدا رنګه د رفع اليدين روايات هيڅکله متواتر نه دي.

۶-احناف ولې په وترو او په عيدينو کې رفع اليدين کوي؟

**ځواب**: د وترو او د عيدينو د رفع اليدين ترک په هيڅ حديث کې نه دی ثابت او د رکوع د رفع اليدين ترک په سلګونو احاديثو کې ثابت دی، تفصيلي ځواب مخکې د قولي احاديثو د دريارلسم حديث څخه په وروستني تشريح کې ليکلی شوې دی.

۷- که بالفرض دا حديث صحيح شي نو بيا هم منسوخ دی (نور العينين ص ۱۴۱)

**ځواب**: د دريم باب لاندې به موږ تفصيلي دا خبره را نقل کوو چې رفع اليدين منسوخ دی او ترک د رفع اليدين ناسخ دی فانتظر.

## دلامذهبه نياز محمد عرف امين الله اعتراضونه

د امين الله پشاوري کتاب دی په نامه د (الحق الصريح) هغه د عبد الله بن مسعود ﷺ د دې حديث څخه د انکار لپاره يوولس حيلې لټولې دي، چې د ټولو جواب مخکې وشو لکن د زيادت احساء لپاره يې دده په ترتيب بيا را نقلووم.

(١) لامذهبه خناس ليکي : ج. ۴ ص ۸۳ کې اول جواب دا حديث ضعيف دی ځکه چې شيخ الاسلام المجاهد الثقه عبد الله بن مبارک وائي چې لم يثبت حديث ابن مسعود ﷺ. ترمذی ج١ ص٥٩) اوددې ځخه وروسته دي لامذهبه شل خوالې نورې ددې په تائيد کې رانقل کړي دي .

**الاخســاء:** ١- لامذهبه ! عبد الله بن مبارک خو حنفي مقلد وو. [تاريخ بغداد ج٣/ ص٢٥٥/ مناقب موفق ج١/ ص٢٢٦/ شرح المؤطأ ج٧/ ص٣٠٠]. او تا په القول السديد کې تقليد ته کفر، شرک، فتنه، فساد، حرام او ګمراهي ويلې ده. [القول السديد لامين الله ص٥۴/ ص٦٩/ ص١٦/ ص١٧ ص١٩ دوهم چهاپ] نو ستا دفتوی مطابق خو (معاذ الله) عبد الله بن المبارک کافر، مشترک، بدعتي، ګمراه او مفسد وو، نو د داسې سړي قول په کومه خوله رانقلوئ؟ نور تفصيل مخکې تير شوی دی.

(٢) لامذهبه خناس ليکي ، ج ۴ ص ۸۵ ص ٨٦ ). ددې حديث ټول دارمدار په سفيان ثوري دی... او سفيان ثوري مدلس دی او بيائي په يوولسو حوالو دده مدلس والې او ضعف پيش کړی دی .

**الاخساء:**

**الف :** لامذهبه خناسه ! دامين بالجهر په روايت کې خو دې دسفيان په صفتونو دري مخه په امين الفتاوی/ج ١ص ٢٧٨ ) کې ډک کړي دي چې احفظ دی اقل خطا دی اثبت دی اعلم دی وغيره . (شرح علل الترمذی ص ١٢٥ ) .

**بـاء :** اوپه همدې نام نهاد الحق الصريح کې دی ، ج ۴ ص ٢٦٣ کې د امين بالجهر په مسئله کې دهمدې سفيان روايت دستر ګوتور ګرزولی دی حالانکه هغه دسفيان عنعنه ده .

**ج :** په همدې الحق الصريح کې ، ج ۴ ص ١٢٠ ) کې دقبيصه بن هلب په روايت کې په باره د وضع اليمين على الصدر کې دسفيان او دعاصم روايت ستا دستر ګوتور او قوي ولې دی؟ نور تفصيل مخکې شوی دی.

لامذهبه خناس : چې کله دخپل اجتهاد رباب ترنګوي نو بيا دا امام ترمذی تحسين هم نه مني او دخپل مشرظاهري ابن حزم تصحيح هم نه مني او ليکي ، ج ۴ ص ٨٦ کې چې هرچې تحسين د ترمذی دی نو په هغې باندې اعتماد نه شته او ابن حزم چې ورته صحيح ويلي دي نو هغه يې ورته دسند په وجه صحيح ويلی دی .

**الاخساء :** ۱- ددې حديث توثيق يوائې دې دواړو نه دی کړی، مخکې مونږ دولس حوالې ددې حديث د تصحيح لپاره زانقل کړې.

۲- خناسه ! دلته دې اقرار وکړو چې ستا داهل ظواهرو لوی امام هم ددې حديث سند ته صحيح ويلي دی او امام صاحب وربانديې استدلال کړی دی او کله چې مجتهد د کوم حديث څخه استدلال وکړي نو د هغې حديث متن بالکل صحيح وی ( المجتهد اذا استدل بحديث كان تصحيحاً له/امعان النظر ص ۳۹ شاولی الله اکيډمي) مقدمه اعلاء السنن الفصل الثانی او همدا رنګه دې حديث ته تلقی بالقبول حاصله ده او د تلقی بالقبول په وجه حديث صحيح وي .(الباعث الحثيث ص ۲۹ ، ۳۰) او تاته دا وايو چې دا په قران او حديث ثابته کړه چې صحت د سند مستلزم نه دی صحت د متن لره .

۳- لامذهبه خناس ليکي ،ج ۴ ص ۸٦ ص ۸۷ دريم جواب په دې حديث د ابن مسعود ﷺ کې خو دا خبره ده چې رفع اليدين يې په نورو ځايونو کې ونه کړل، نو احناف په وترو او دارنګه په عيدينو کې ولې رفع اليدين کوي .

**الاخساء:** په حديث د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ کې چې د کوم لمونځ بيان دی په همدغه لمونځ کې يې په بل ځای کې رفع اليدين ونه کړل .

او حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ د عيدينو او د وترو د لمونځ طريقه نه ده بيان کړې بلکې دور ځې د پنځه وخته فرض لمونځ طريقه يې وخودله ، ددې اعتراض داسې مثال دی لکه خناس چې و وايې چې په دې لمانځه کې خو عبد الله بن مسعود ﷺ قلب الرداء ونکړه حالانکه قلب الرداء د استسقاء په لمانځه کې راغلی ده .

نو جاهلـه ! د استسقاء لمونځ خو د پنځه وخته فرض لمونځ څخه جدا دی، همدا رنګه د وترو او د عيدينو رفع اليدين چې په کومو احاديثو کې راغلي دي د هغې احاديثو سره هيڅ معارض نه شته .

(۵) لامذهبه خناس ليکي ،ج ۴ ص ۸۷ /په دې حديث کې د رکوع او د رکوع نه بعد والا رفع اليدين ذکر نه دي.

**الاخساء :** لامذهبه خناسه ! ستا سر د علم څخه داسې خالي دی لکه د خره سر چې د ښکرونو څخه خالي دی. په دې حديث کې د لمانځه د رفع اليدين ذکر دی (الاصلي بکم صلوة رسول الله ﷺ) . او د رکوع

رفع اليدين دلمانځه رفع اليدين دی او په (فلـم يرفـع يديـه) کې دلمانځه دټولو رفع اليدينو نفی راغله او په (الافی اول مرة) باندې اثبات ديو رفع اليدين راغلو چې دتکبير تحريمه سره دی.

جاهله! ديته استثناء مفرغه وائي (ای فلم يرفع يديه في شي من الصلوة الا في اول مرة).

پـه دې حـديث کـې دپنځـه ويشـتو رفع اليـدينو دنفي ذکـر دې، چـې د رکـوع وي او کـه نـورو وي او ديو رفع اليدين داثبات ذکر دی، ځکه چې په څلور رکعته لمانځه کې دجلسو داستراحت سره (۲۸) خفضه او رفعه دي او بغير د جلسو د استراحت څخه ۲٦ دی.

(٦) لامذهبه خناس ليکي/ ج ۴ ص ۸۷:

**پنځم جواب:** دسفيان په دې حديث کې نفی ده او صحيحينو وغيره متواترو احاديثو کې ددې اثبات دی او دااصولي مسلمه قاعده ده چې مثبت مقدم وي په نافی باندې.

**الاخساء : ۱-** لامذهبه خناسه! ستاخو نور خوله وشکيده چې د اهل حديثو صرف دوه اصول دي يو قرآن او بل حديث او دا قاعده نه په قرآن کې صراحة شته او نه په حديث کې او دبل شي منلو ته خو تاسې تقليد، کفر، شرک او بدعت وايي نو دلته د امتيانو د جوړې کړې قاعدې په منلو باندې ځان ته کافر، مشرک او بدعتي وايې او کنه؟

۲- دامسئله دې دقواعد الفقه څخه رانقل کړې ده چې (المثبت مقدم علي المنفي) لکن هغه بيا دې په تشريح کې ليکلې دي چې اثبات په نفي په هغه وخت کې مقدم وی چې نفی مدلوله دنص نه وي ،يعنې عدم اصلي په کې وي ،او که نفي مدلوله دنص وه ، نو بيا دانفي داثبات سره معارضه کيدلی شي قواعد الفقه ص۵۳ الصدف پبلشرز).

دغير مقلدينو شيخ الکل د معيار الحق ص۲۱ په حاشيه کې ليکي چې: لأن الاثبات لا يكـون الا بدليل، فاذا كان النفي أيضاً بالدليل كان مثله، فيتعارضـان .او د نفی درفـع اليدين صرف دليل نه دی بلکې دلايل دي.

۳- لامذهبه ! يو حديث دمتعې مثبت دی بل حديث يې نافي دی نو ايادلته هم مثبت مقدم کوئ په نافي باندې؟ همدارنګه يو نص دخمرو دحلالوالي مثبت دی او بل يې نافي دی نو ايادلته هم مثبت مقدم کوئ په نافي باندې ؟ يو حديث پـه لمانځه کې دخبرو دکولو مثبت دی او بل يې نافي دی نو ايادلته هم مثبت مقدم کوی په نافي باندې ؟

٤ ـ همدارنگه مونږ داوايو چې ستامکمله دعوه په هيڅ دليل باندې ثابته نده نوچې اثبات دسره ته نه دی نومقدم به څرنگه شي ،اول خوخپله دعوه واضحه کړه، په لاندې روايتونوکې دسجدوپه وقت ې هم درفع اليدين ذکرراغلی دی.

(۱) دمالک بن حويرث په حديث کې [نسائی/ج ۱/ص ۵٦/مسند احمد/ج ۳ .ص ۴۳٦/ بوعوانه، ج ۲ ص ۹۵].

(۲) دوائل بن حجرپه حديث کې ابوداود، ج ۱ص ۷۳).

(۳) دمالک بن انس په حديث کې دارقطنی، ج ۱ص ۱۰۸].

(۴) دابوهـ يره په حديث کې ابن ماجه ص ٦۲].

(۵) د عمربن حبيب په حديث کې ابن ماجه، ص ٦۲)

(٦) جابربن عبدالله په حديث کې مسند احمد، ج ۳/ص ۳۱۰).

(۷) دعبدالله بن زبير ﷺ په حديث کې ابوداود، ج ۱ ص ۷۴ /مسند احمد ،ج ۱ ص ۲۵۵ص ۲۸۹)

(۸) دعبدالله بن عباس په حديث کې ابوداودنسائی ابن ماجه.

(۹) دعبدالله بن عمرپه حديث کې جمع الزوائد،ج ۲ ص ۱۰۲).

(۱۰) حضرت جابر ﷺ فرمائی چې دصلحي حديبي په ورځ څوارلس سوه صحابه وودرسول الله ﷺ سره لمونځ وکړو. (وکان رسول الله ﷺ يرفع يديه مع کل تکبيرة من الصلوة. [مسنداحمد، ج ۳ص ۳۱۰/تاريخ کبيرامام بخاری، ج ٤ ص ۱۰۵)

يعنې رسول الله ﷺ دهرالله اکبرسره رفع اليدين کولواوبخاری، ج ۱ ص ۱۱۰ باندې دی چې نبی ﷺ په څلورورکعتونوکې دوه ويشت تکبيرونه کړي دي اوڅلورتسميعه دي، د جلسوداستراحت سره ټول اته ويشت جيګيدل اوټيټيدل دي، نوټول شپږويشت اودجلسو د استراحت سره ۲۸ رفع اليدينه شو.

لامذهبه خناسه! ته صرف رکوع ته دتللواودرکوع څخه دجيګيدلوپه وخت کې رفع اليدين کوې، چې په څلورورکعتونوکې اته رفع اليدينه داشو اويورفع اليدين دتکبيرتحريمه په وخت کې کوې اويودريم رکعت ته دپاڅيدوپه وخت کې کوې، نوټول لس رفع اليدينه شو نوستاپه نيزلس رفع اليدينه دائيمي سنت دي اوپاتې شپاړلس رفع اليدينونه منسوخ دي ځکه چې که هغوی ته هم فرض ،سنت ،اوياواجب وائې نوبيااولې ددې فرض ياسنت اوياواجبوترک کوې؟ معلومېږي داچې داستاسوپه نيزمنسوخ ،حرام ،يامکروه دی.

نو که ته رشتيا دذري په مقدار علم لري، نو صرف يو صرف يو حديث پيش کړه چې لسو رفع اليدينو ته يې دائيمي سنت ويلي وي او پاتې شپاړسو يا اتلسو رفع اليدينو ته يې منسوخ، يا مکروه او يا حرام ويلي وي.

**محترمولوســــتونکو!** لامـذهبانو چې هر حـديث پـش کولو نـو ددوی ددعـوې څلورتکي پکې خامخا ګورئ اول دلسو رفع اليدينو ذکر، دوهم ددې لسو رفع اليدينو سره دسنت لفظ، يا ددې لسو رفع اليدينو سره ددوام او هميشوالې ذکر، دريم دشپاړسو يا اتلسو رفع اليدينو نفي څلورم د دوی کراهة او يا حرمت ان شاء الله تعالی چې هيڅ لامذهبه به بيا درسره خوله نه شي وازولی.

**لامذهبـه خناسـه!** چې يو حديث هم درسره نه شته نو شرميږي نه او په کومه خوله وائي چې دصحيحينو وغيره په متواترو احاديثو کې ددې اثبات دی؟

۵- تاليکلي دي چې مثبت مقدم وي په نافی باندې، ج۱ص ۸۷ ].

لامذهبه! که بيا هم ته په خپل ضد ټينګ يې، نو بيا ولې په مکمل مثبت باندې عمل نه کوې او دهرو ټيټيدلو او دجيګيدولو سره ولې رفع اليدين نه کوئ؟

٦- داثبات يو ه معنی داهم ده چې امر جديد او امر حادث ثابتوي، مونږ وايو چې مخکې کوم يونيم ځلې رفع اليدين شوي دي او وروسته مکمل پريښودل شوي دي. نو مونږ يو امر جديد ثابتوو چې ترک درفع اليدين دی او تاسو دترک درفع اليدين نفي کوئ، نو ددې قاعدې مطابق ترک درفع اليدين راجح شو ځکه چې دا اثبات ديو امر جديد دی.

۷- الـزام: غيـر مقلد مولوی عبدالتواب ملتـاني دسجدو درفـع اليـدين پـه بـاره کې ليکي چې (تعارضت فيه رواية الفعل والترک والاصل العدم) همدارنګه مـونږ درکوع درفع اليدين په باره کې وايو چې (تعارضت فيه رواية الفعل والترک والاصل العدم)

۸- شـوکانی هم همداخبره ليکلې ده، نيـل الاوطـار مـواضع رفع اليدين ج۲ ص۱۹٦ چې دسجدو درفع اليدين په باره کې روايات متعارض دي (فالواجب البقاء علي النـفي السـابق) نو همدارنګه مونږ درکوع درفع اليدين په باره کې وايو چې درکوع درفـع اليـدين روايـات متعـارض دي (فالواجـب البقـاء علی النفي).

۹- : دتکبیرتحریمه څخه علاوه نوررفع اليدينونه دتعارض د روایاتو له وجهې دسنتيت اودنسخ د سنتيت په مينځ کې دائر دی اوپه کوم شي کې چې دسنتوالي يادبدعتوالي شبه وي نود بدعت والي طرف نه به يې ترجيح ورکول کيږي عبد الله ابن عمر ﷺ په رفع اليدين باندې دوام ته صراحة بدعت ويلی دی (رواه ابن عدي في الكامل، رقم ۲۸۱۵ ميزان الاعتدال تحت ترجمة بشر بن حرب.

۱۰- داحنافو احاديث په ترک درفع اليدين ناطق دي اودلامذهبو پيش کرده احاديث ددوام اوبقاء درفع اليدين څخه ساکت دي اود ناطق اوساکت په مينځ کې هيڅ تعارض نه شته بلکې عمل به بلامعارضه په ناطق باندې کيږي .

۱۱- مونږ دعدم درفع اليدين قائلين نه يو بلکې دترک درفع اليدين قائلين يو، دعدم او ترک په منځ کې فرق دادی چې عدم دشي مقدم وي په وجود دشي باندې اول يوشی معدوم وي وروسته بيا موجود يږي او ترک دشي مؤخر وي دوجود دشي څخه لکه اصلوتک تأمرک ان نترک مايعبد اباءنا،نو اول عبادت دبتانو دی وروسته ترک دی او ترک دنسخ دليل وي لهذا ترک ته ترجيح وي که زمونږ په اکابرو کې چا دعدم عنوان لګولی وي نو دهغې څخه ترک مراد دی .

(۷) لامذهبه خناس ليکي ،ج ۴ ص ۸۷ ) چې:

**شپږم جواب:** بالفرض که حديث دابن مسعود ﷺ صحيح شي نوبيا ددې مطلب دادی چې دتکبيرتحريمه سره يې صرف يوځل رفع اليدين وکړل اوبار بار يې لاسونه پورته نه کړل .

**الاخساء:**

**الف :** مخکې تاوپيژندل چې په( فلم يرفع يديه) کې دهررفع اليدين نفی راغله . دلامذهبودرفع اليدين هم ،اودشيعه ګانو درفع اليدين هم ،اوپه (الافی اول مرة )باندې صرف ديوتکبيرتحريمه سره درفع اليدين اثبات راغلو په دې حديث کې لامذهبان اوشيعه ګان دواړه په يوه تله کې اچول شوي دي .

**با:** لامذهبه خناسه ! تاچې دامطلب بيان کړو دا قراني ايت وو اوکه د رسول الله ﷺ حديث وو ؟ ستا په نيز خودلائل صرف قران او حديث دي حقيقت دادی چې دانه قران اونه حديث وو بلکې ستا دمعدې غلاظت وو چې په خوله دې راووته .

**ج:** دعبد الله بن مسعود ﷺ دحديث په بعض طرقو کې دتعميم الفاظ ديرزيات دي لکه (ولايعودلشي من ذلک). [جامع المسانيد،ج ۱ ص۲۵۲] .اولکه په فلم يرفعوا ايديهم الاعند التکبيرة

الاولي في افتتاح الصلوة . [دارقطني ج ۱ ص ۲۹۵] . کښې چې ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائي چې : وَقَدْ حَدَّثَنِي مَنْ لَا أُحْصِي، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: أَنَّهُ رَفَعَ يَدَيْهِ فِي بَدْءِ الصَّلَاةِ فَقَطْ، وَحَكَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (مسندامام اعظم ،ص ۱۱۹). لامذهبه ! پدې الفاظو ستا خيالي برج بالکل راونړيدو.

**د:** او داتاويل په قران کې دی او که په حديث کې دی ؟ اوکه نه په قران کې وي او نه په حديث کې وي بلکې ته دخپل اجتهاد رباب ترنګوي نو بيا ته دمجتهد تعريف او شرائط په قران او حديث کې وښايه بيا به مونږ وګورو چې ته دمجتهد په تول برابريې او که نه .

(۸) لامذهبه خناس ليکي ج ۴ ص ۸۸ ) :

که حديث د ابن مسعود رضي الله عنه بالفرض صحيح شي نو دا منسوخ دی او په دی باندې ډير شواهد دي. چې درسول الله ﷺ نه رفع اليدين مالک بن حويرث او وائل بن حجر رضي الله عنه نقل کړي دي او دوی درسول الله ﷺ په (۹ او ۱۰) هـ کې وافدين وو .

**الاخساء:** لامذهبه خناسه ! ستايو کتاب دی په نامه د (التحقيق السديد يعنې دتقليد حقيقت) هلته تا عنوان لګولی دی د (تقليد صورتونه) د دريم صورت لاندې دې داسې ليکلې دي چې داحنافو دمذهب په مقابل کې چې حديث راشي نو دوي ورله څلور محملونه ګوري . (معاذالله) .

۱ - داچې داحديث منسوخ دی .

۲ - دا واقعة حال لاعموم لها دی .

۳ - دادخصوصياتو دنبی عليه السلام نه دی .

۴ - داحديث بياناً للجواز راغلی دی . معاذالله . [دتقليد حقيقت ص ۱۲۱ دوهم چهاپ].

نوچې دلته دابن مسعود رضي الله عنه حديث ستا په مقابل کې راغلو څرنګه دې ورباندې دنسخ حکم ولګولو ، ستاسره لکه چې دنسخې دحکم دلګولو جواز شته دی ؟ وايل رضي الله عنه دوه ځلې راغلې دی په اول ځلې يې دسجدو درفع اليدينو ذکر هم کړی دی يعنی دشپږويشتو رفع اليدينو ذکر يې کړی دی . (ميزان الاعتدال ،ج ۱ ص ۱۱۲) .

اوپه دوهم ځل يې يوائې داول تکبير سره رفع اليدين ذکر کړی دی چې : ( ثم اتيتهم فرايتهم يرفعون ايديهم الي صدورهم في افتتاح الصلوة ) . [ابوداود ،ج ۱ ص ۱۱۲]. دحضرت وايل رضي الله عنه دحديث

څخه خودرکوع او دسجد و درفع الیدین منسوخیدل رامعلومیږي . په دې حدیث باندې به پوره تفصیلي بحث دلامذهبو د دلائلو لاندې راشي

او د مالک بن حویرث په حدیث کې یو راوي ابو قلابه دی چې د ناصبیت طرف ته مایل وو (تقریب ص ۱۷۴) بل راوي نصربن عاصم دی چې خارجي وو (تهذیب) ابو قلابه مدلس وو (میزان الاعتدال ج ۲/ص۴۲۶). ددې حدیث پوره تفصیل به هم د لامذهبو په دلایلو کې راشي .

**لامذهبه خناسه !** د حضرت مالک بن حویرث رحمه الله په همدې حدیث کې خود لاسونو پورته کول ترغوږونو پورې راغلي دي او ستاسو لامذهبان هیڅکله دې ته سنت نه وائي او د مالک بن حویرث په حدیث کې د سجدو درفع الیدین ذکر هم شته نسائي ، ج ۱ ص ۱۶۵) مسند احمد ج ۳ ص ۴۳۶ ص ۴۳۷/فتح الباري ج ۲ ص ۱۷۷ صحیح ابو عوانه ج ۲ ص ۹۵ ) نو ایا د سجدو رفع الیدین هم د نبی ﷺ اخری عمل وو ؟

(۹) لامذهبه خناس لیکلي دي ، ج ۴ ص ۸۸).

**اتم جواب:** د رفع الیدین احادیث متواتر دي او د پنځوس صحابه کرامو نه ثابت دي، لکن د ابن مسعود نه داهیر شوي وو او دا یو اخې نه بلکې د ابن مسعود ﷺ نه نور هم ډیر مسائل هیر شوي وو .

(۱) د حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ نه داهیر شوي وو چې یو امام او یو مقتدي وي دا به څنګه او دریږي؟

(۲) حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ به تطبیق کولو سره ددینه چې دا منسوخ وو لکن داترې هیر وو .

(۳) په سجده کې لاسونه څنګه کیخول کیږي داترینه هم هیر وو .

(۴) جمع بین الصلوتین په عرفات کې د هغې طریقه ترینه هم هیره وه

(۵) معوذتین یې هم د خپل مصحف نه ورانول .

نو هر کله چې دده نه دغه مسائل هیر شوي وو نو ایا رفع الیدین ترینه نه شي هیریدلې ؟ (معاذ الله)

**الاخساء:**

**الف** : لامذ هبه خناسه! ستامشر صادق سيالكوټي خو وائي چې رفع اليدين د څلورسوه صحابه وو څخه ثابت دي اوته وائي چې د پنځوسو صحابه وو څخه ثابت دي په تاسو دوا ړو کوم يو دروغژن دی؟

او مهرباني وکړه صرف يو ضعيفه حديث کې خپله مکمله دعوه وښايه يعنې چې په لسو ځايونو کې رفع اليدين دائمي سنت دي او په پاتې شپاړلسو ځايونو کې خلاف سنت دي په پنځوسو کې صرف يو پيش کړه

**بـاء:** مهرباني وکړه د دې پنځوسو صحابه وو نومونه وښايه او په کوموکوم کتابونو کې د دوی روايات دي؟ د دومره دروغو حوصله په يهودو کې هم نه وه لکه ته يې چې په يوه ساه باندې وائي.

**ج** : په حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ باندې جرحه کول ستاد باطني خباثت علامه ده رسول الله ﷺ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د قران په پوهانو کې اول نمبر ګرځولی دی .بخاری ، ج ۱ ص ۵۳۱).

رسول الله ﷺ فرمائی زه خپل امت ته هغه څه خوښوم چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ يې ورته خوښوي. (مجمع الزوائد ،ج ۲ ص ۲۹۰).

رسول الله ﷺ فرمائی دعبدالله بن مسعود ﷺ په عهد کلکې منګولې ولګوئ (ترمذی ،ج ۲ ص ۲۲۱).
حضرت عمر ﷺ فرمائی چې عبدالله بن مسعود ﷺ دعلم مکمله خزانه ده . (تذکرة الحفاظ ج ۱ ص ۱۴).

لکن د دې خبيث ،رافضی ،لامذهبه، داعتراض څخه معلوميږي چې عبد الله بن مسعود ﷺ باندې نه په قران کې اعتبار شته او نه په حديثو کې، ځکه چې دده نه مسئلې هيری شوې وې .لامذهبه دخطاء ګانو او علمي تسامحاتو څخه خو عبدالله بن عمر ﷺ بلکې هيڅ صحابي هم نه دی مستثنی عبدالله بن عمر ﷺ دخفينو دمسح څخه انکار کولو ،موطا ،ص ۱۲ فتح الباری ،ج ۱ ص ۲۴۹ حالانکه مسح علی الخفين په تواتر ثابته ده .

نو بيا خو ديو صحابي درو ايت منل هم نه دي پکار . اين کار ازتوآيد ....دانکار د حديثو لپاره دې خه لويه دروازه خلاصه کړه.

لامذهبه خناسه ! دادی هم دعبدالله بن مسعود ﷺ پورې افتراء وکړه چې عبدالله بن مسعود ﷺ معوذتين په قرآن کې نه حسابول ابن حزم ليکي ،کل ماروی عن ابـن مسـعود ﷺ مـن ان المعوذتين وام القرءان لم يکونافی مصحفه فکذب موضوع لايصح. (محلی ابن حزم ،ج ۱ ص ۱۳).

همدارنګه امام نووی او علامه سيوطی فرمائي چې : ( مانقل عن ابن مسعودؓ باطل ليس بصحيح) عبدالله بن مسعودؓ ته چې په دې مسئله کې روايتونه منسوب دی هغه ټول باطل او دروغ دي شرح المهذب واتقان ،ج ١ص ٧٩) .

دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه يوائې دترک درفع اليدين روايات راغلي دي ، درفع اليدين هيڅ روايت ترينه نه دی راغلي او دحضرت عبدالله بن عمرؓ څخه دواړه قسمه روايات راغلي دي (واذا تعارضا تساقطا) او دحضرت عبدالله بن مسعودؓ روايات دتعارض څخه خالي دي اوهمدارنګه محدثين فرمايي چې : واذا اجتمع ابن مسعودؓ وابن عمرؓ واختلفا فابن مسعودؓ اولي ان يتبع . (مستدرک حاکم ج ١ ص ١٣٩/دارقطني ج ١ ص ٥٥/بيهقي ج١ ص١٣٦).

کله چې دحضرت عبدالله بن مسعودؓ او حضرت عبدالله بن عمرؓ اختلاف راشي نو بهتر داده چې دعبدالله بن مسعودؓ پيروي وشي .

(١٠) لامذهبه خناس ليکي ج ۴ ص ٨٩ )

**نهم جواب:** مخکې تير شو چې درفع اليدين داحاديثو عاملين عشره مبشره او خلفاء راشيدين دي .

**الاخساء:** (چه دلاوراست دزدی که بکف چراغ دارد)

آياتا مخکې دعشره و ومبشره وو لس حديثونه دتوثيق دسند سره پيش کړي دي ؟ چې تاوويل چې مخکې تيرشو ، اياددنيادکومې کتابخانی دحديثو په کوم کتاب کې ددوي هريو حديث درفع اليدين په باب کې شته ؟ که رشتيا مسلمان يې دالس حديثونه پيش کړه ، دسند دتوثيق سره او ددوي په متن کې دسنت لفظ او ددوام لفظ وښايه او که نه يې شي خودلې نو بيا دخپل رافضيت څخه توبه وباسه او د اهل السنة والجماعة مسلک قبول کړه.

(١١) لامذهبه خناس ليکي ج ۴ص ٨٩:

**لسم جواب** دعبدالله بن مسعودؓ حديث نص ندی بلکې ظاهردی .

**الاخساء:** (الا اصلی بکم صلوة رسول الله ﷺ) نص دی او که ظاهردی. لامذهبه بيادی دخپل اجتهادباب راواخستلو لامذهبه ! دنص او دظاهر جامع او مانع تعريف دقران او دحديث څخه پيش کړه د

مقلدينو د كتابونو څخه غلا مه كوه ، او دهغې څخه وروسته دقران ايت اويا صحيح حديث پيش كړه چې په هغې كې صراحةً راغلي وي چې ظاهر حجت نه دى ،اوبيا ووايه چې دظاهر اودنص په مينځ كې تعارض راشي نوپه كوم ايت اويا حديث كې صراحةً فيصله وښايه چې په كوم يوبه عمل كيږي؟

په يوولسم جواب كې دي هم دخپل اجتهاد رباب ترنگولى دى چې عبدالله بن مسعودﷺ داكاربيانا للجواز كړى دى، لامذهبه !دقران اود حديث په مقابل كې خپله رايه مه پيش كوه، تاخوپخپل كتاب دتقليد حقيقت ص ۱۲۱ دوهم چاپ كې په دې جواب ډيرسخت رد ونه كړي دي اود انكار د حديث سره دى مرادف گرزولې دي.

## ۴۶ - څوارلسم حديث

### دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ او د امام اوزاعى رَحِمَهُ ٱللَّهُ مناظره:

د امام اعظم رحمه الله اودامام اوزاعى رحمه الله په مينځ كې يوه ورځ مناظره داسې وشوه، چې يوه ورځ دمكى مكرمى په دارالحناطين كې فقيه امت، امام ابوحنيفه رحمه الله او امام اوزاعى رحمهما الله سره يوځاى شول ،ددواړوپه مابين كې درفع اليدين مسئله دبحث لاندې راغله امام اوزاعي امام ابوحنيفه رحمه الله ته وفرمايل چې: مابالكم وفي رواية مابالكم يااهل العراق لا ترفعون ايديكم في الصلوة عنــدالركوع وعنــدالرفع منـــه. څه وجه ده اى عراقيانو !چې تاسوركوع ته دتللو اودركوع څخه دجيگيدلو په وخت كې رفع اليدين نه كوئ .

امام ابوحنيفه رحمه الله جواب وركړوچې : (لاجل انه لم يصح عن رسول الله ﷺ فيه شئ).

يعنې لدې وجهې څخه چې درفع اليدين عندالركوع په باره كې د رسول اللهﷺ څخه كوم صحيح حديث نه دى روايت شوى (اي لم يصح سالماعن المعارض) اولم يصح بمعنى لم يثبت حديث معمول به للصحابة.

ددې په اوريدلو سره امام اوزاعى رحمه الله وفرمايل چې : (كيف لا يصح ؟ وقد حـدثني الزهري عن سالم عن ابيه عن رسول الله ﷺ انه كان يرفع يديه اذاافتتح الصلوة وعندالركوع وعندالرفع منه.

يعنې څرنګه صحيح حديث نه دی روايت شوی؟ او حال داچې په تحقيق سره ماته زهري رحمه الله، هغه دسالم رحمه الله او هغه دعبد الله بن عمرﷺ څخه، او هغه درسول اللهﷺ څخه روايت کوي: چې رسول اللهﷺ به داول تکبير اورکوع ته دتللو او درکوع څخه دجيګيدلو په وخت کې رفع اليدين کول.

ددې په اوريدلو سره امام ابوحنيفه رحمه الله جواب ورکړو چې: (حدثنا حماد، عن ابراهيم، عن علقمة، والاسود عن ابن مسعودﷺ ان رسول الله ﷺ كان لا يرفع يديه الا عندافتتاح الصلوة و لا يعود لشئ من ذلک)

يعنې ماته حديث بيان کړي حماد رحمه الله دابراهيم نخعي رحمه الله څخه، هغوی داسود رحمه الله اوعلقمه رحمه الله څخه روايت کوي، اوهغوی دحضرت عبد الله بن مسعودﷺ څخه، چې بې شکه رسول اللهﷺ نه پورته کول لاسونه مګرداول تکبير په وخت کې اوپه لمانځه کې يې نوربه هيڅ ځای کې هم رفع اليدين نه کول.

ددې په اوريدلو سره امام اوزاعی رحمه الله اعتراض وکړو چې :أُحَدِّثُک عن الزهري عن سالم عن ابيه وتقول حدثني حماد عن ابراهيم ؟ يعنې زه دزهری، سالم، اوابن عمرسند پيش کوم اوته دحماد، اوابراهيم، سند پيش کوي.

خلاصه داعتراض داده چې امام اوزاعی رحمه الله وفرمايل چې زماسند ستادسند څخه بهتردی، ځکه چې زماپه سند کې صحابی ته درسيدلوپورې دوه واسطي دي چې زهری رحمه الله، اوسالم رحمه الله دی اوستاپه سند کې صحابی ته درسيدلوپورې درې واسطي دي چې حماد رحمه الله، ابراهيم رحمه الله اوعلقمه رحمه الله دی نودسند په لحاظ زماروايت راجح دی، نوامام ابوحنيفه رحمه الله جواب ورکړو:

كان حمادافقه من الزهري ،وكان ابراهيم افقه من سالم ، وعلقمة ليس بدون ابن عمرفي الفقه وانكانت لابن عمرصحبة وله فضل صحبة، فالاسودله فضل كثير، وعبدالله هوعبدالله.

يعنې امام حماد رحمه الله دزهری رحمه الله څخه غټ فقيه دی، اوابراهيم رحمه الله دسالم رحمه الله څخه غټ فقيه دی ،اوحضرت عبد الله بن عمررضی الله عنهما اګرچې دصحابيت د شرافت له وجهې دعلقمة رحمه الله څخه بهتردی ليکن علقمه په فقه ( تفقه في الدين ) کې دابن عمر رضی الله عنهما څخه کم نه دی

.او ... رسول الله ﷺ دے ډیر فضیلت حاصل دی ،اوعبدالله ابن مسعود ﷺ خو عبدالله بن مسعود ﷺ دی

نو ددې جواب په اوریدلو امام اوزاعی رحمه الله چپ پاتې شو . [مبسوط للسرخسي ص ۱۴ /فتح القدیر، ص ۲۱۹ /جامع المسانید، ج ۱ ص ۳۵۲وص ۳۵۳ الباب الخامس الفصل الثالث/ معارف السنن، ج ۱ ص ٤۹۹ /مسندامام اعظم ، ص ۵۰ \ص ۱۲۱).

امام سرخسی او شیخ ابن همام ددې مناظری دنقل کولو څخه وروسته لیکي چې : ان اباحنیفة رجح روایته بفقه الرواة کمارجح الاوزاعي بعلو الاسناد وهو المذهب المنصورعندنالان الترجیح بفقه الرواة لا بعلوالاسناد.

امام ابو حنیفه رحمه الله دامام اوزاعی رحمه الله توجه ددې خبرې طرف ته راواړوله چې دمحدث او دفقیه په مابین کې دفرق لحاظ وساته ،ځکه چې محدث صرف اوریدلي احادیث رانقلوي، صحیح وي او که ضعیف ،ناسخ وي او که منسوخ ،ددې بالعکس فقیه صرف هغه احادیث رااخلي چې په کوم باندې دخیرالقرون عمل وي اوداخبره چې :( الترجیح بفقه الرواة لا بعلوالاسناد)

یعنې ترجیح هغه روایت ته ده چې په روایانو کې یې فقاهت زیات وي ،علوی داسنادته نه ده، داصرف دامام ابو حنیفه رحمه الله اصل نه دی بلکې نورمحدثین یې هم مني لکه څرنګه چې امام حاکم په خپل کتاب (معرفة علوم الحدیث ،ص ۴۹) کې دخپل سند سره دعلی بن خشرم رحمه الله داقول نقل کړی دی چې : (قال لناوکیع اي الاسنادین احب الیک).

(۱) الاعمش عن ابي وایل عن عبدالله)

(۲) اوسفیان عن منصورعن ابراهیم عن علقمة عن عبدالله)

یعنې په دې دواړو سندونو کې دی کوم خوښ دی ؟ علی بن خشرم رحمه الله فرمائی چې ماجواب ورسره ... چې: (الاعمش عن ابی وائل) یعنې اول سند عالی دی ځکه چې صحابي ته بلاواسطه رسیدلې دی له دې وجهې مې هغه خوښ دی ،نو وکیع رحمه الله تعجب وکړو اووی فرمایل چې : یا سبحان الله! (الاعمش شیخ، وابو وایل شیخ ، وسفیان فقیه، ومنصورفقیه، وابراهیم وعلقمه فقیه، وحدیث یتداوله الفقهاء خیرمن حدیث یتداوله الشیوخ). یعنې داول سند راویان محدثین اوددوهم سند راویان فقهاء دي اود فقهاء وسند بهتروي . نو ددې څخه هم معلومه شوه چې دعامو محدثینو په نیز هم حدیث

مسلسل بالفقهاء دعلو داسناد په مقابل کې راجح دی. دلته یو څو خبرې وی چې دهغې له وجهې امام صاحب رحمه الله دا مناظره وګټله.

(۱) دعلوی داسناد په مقابله کې دراويانو افقه کیدلو ته ترجیح ده او دترجیح داطریقه دنبی کریم ﷺ ددې ارشاد څخه را اخستل شوی ده چې: (فربَّ حامل فقه غيرفقيه رب حامل فقه الي ماهوافقه منه (مشكوة ص ۳۵ ص ج ۱) كتاب العلم الفصل الثانی]. او دادعامو محدثینو رایه هم ده، امام ترمذی رحمه الله فرمايي: (الفقهاء هم اعلم بمعاني الحديث/ سنن الترمذی ج۱ ص ۱۹۳ ابواب الجنائز باب ماجاء في غسل الميت].

امام وکیع رحمه الله فرمايي چې: (وحديث يتداوله الفقهاء خير من أنْ يتداولَه الشيوخ. [معرفة علوم الحديث للحاكم قبيل ذكر النوع الثاني ص ٤٩ )

په كتاب الجرح والتعديل کې یې داسې لیکلي دي چې: كان حديث الفقهآء احب اليهم من حديث المشيخة. [كتاب الجرح والتعديل باب في اختيار الاسانيد ج۱ ص ۳۱۵ ].

(۲) علقمه رحمه الله د حضرت ابن عمر ﷺ څخه په فقه کې کم نه دی اګرچې حضرت ابن عمر ﷺ ته دصحابیت فضیلت حاصل دی) او ددې تائید ددې څخه کیږي چې قابوس ابن ابی ظبیان فرمائی چې. مادخپل پلار څخه پوښتنه وکړه چې ته ولې دمسئلو دپوښتنې لپاره علقمه رحمه الله ته ورځې او درسول الله ﷺ صحابه وو ته نه ورځې؟ نو هغه راته په جواب کې وفرمایل: چې ما درسول الله ﷺ صحابه کرام لیدلي دي چې هغوی به خپله دعلقمه ﷺ څخه پوښتنې کولې او دده څخه به یې فتوی غوښتې. [حلية الاولياء، ج ۲ ص ١٦٤/تهذيب التهذيب، ج ۷ ص ۲۷۸].

او داڅه لږې خبره نه ده بلکې کیدی شي چې دیو غیرصحابي فقهي مهارت دیو صحابي سره برابر او یا دهغه څخه هم زیات وي او دا د رسول الله ﷺ ددې ارشاد څخه معلومیږي چې (فرب حامل فقه غيرفقيه رب حامل فقه الي ماهوافقه منه [مشكوة، ج ۱ ص ۳۵ /الفصل الثاني من كتاب العلم)

(۳) دحماد رحمه الله سیرت بعینه دابراهیم رحمه الله سیرت وو او دابراهیم سیرت بعینه دعلقمه رحمه الله سیرت وو او دعلقمه رحمه الله سیرت بعینه دعبدالله بن مسعود ﷺ سیرت وو او عبدالله بن مسعود ﷺ ب

درسول الله ﷺ دسیرت کامل عکس وو . (مسـندالامام الاعظـم . ص ۱۸۹) . نو دامام صاحب دیان کړی حدیث ټول راویان دخپلو استاذانو سره کثیر الملازمة وو او دامام اوزاعی رحمه الله حدیث داسې نه وو، ځکه چې داوزاعي رحمه الله ملازمت دزهري رحمه الله سره نه وو امام ذهبي رحمه الله فرمائي ثقـة ولـیس هـو فی الزهري کمالک وعقیل ،میزان الاعتـدال ج ۲ص ۵۸۰ )همدارنګه عبد الله بن عمر رضی الله عنهما هم درسول الله ﷺ سره دومره کثیر الملازمة نه و ولکه څومره چې عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وو ځکه چې عبد الله بن عمر رضی الله عنه کشرو وپخپله فرمائي چې کنت اصُغرالقوم بخاري ج۱ص ۱۷) او عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به همیشه درسول الله ﷺ سره وو او رسول الله ﷺ ترینه هیڅکله حجاب نه کولو ،مسلم ج۲ص ۲۹۳).

(۴) ددې حدیث دسند ټول راویان کوفیان دي او دټولو کوفیانو په ترک درفع الیدین باندې اجماع وه. قال الترمذي وهوقول سفیان واهل الکوفة . (ترمذی ،ج ۱ص ۵۹/التعلیق الممجد ص۹۱).

نو داحدیث مسلسل بالعمل دی ځکه چې عبد الله بن مسعود رضی الله عنه داول تکبیر څخه وروسته رفع الیدین نه کول .( موطا امام محمدص ۹٤ ) بلکه درفع الیدین څخه به یې منع کوله موطا امام محمدص ۸۸ مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ص ۲۳۶) حضرت اسود رحمه الله او حضرت علقمه رحمه الله هم نه کول.( مصنف ابن شیبه رقم ۲٤٦۸، ج ۱ ص ۲٦۸) حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله هم نه کول( ابن ابي شیبه رقم ، ۲٤٦۰ ورقم ۲٤٦۳ورقم ۲٤٦۲ موطا امام محمد رقـم ۱۰٦ ، ج ۱ ص ۲٦۸ ) او امام حماد رحمه الله او امام ابو حنیفه رحمه الله هم نه کول .(کتاب الاثار للامـام محمـد، رقـم ۷۳) ځکه چې دده په نیز درفع الیدین کول منسوخ وو .(تنسیق النظام فی مسند الامام ص۵۲ ) او بالعکس داوزاعی حدیث مسلسل بالعمل نه دی ځکه چې عبد الله بن عمر رضی الله عنه رفع الیدین نه کول.( طحاوي ،ج ۱ ص ۱۵۵ رقـم ۱۳۲۳) ابن ابي شیبه ج۱ ص ۲۳۷ رقم ۲٤٦۷) او حضرت سالم رضی الله عنه هم نه کول . (مسنداحمدج۲ ص۴۵) .

ددې مناظری څخه مخکې امام اوزاعی درفع الیدین حمایت کولو .(الاستذکار، ج ۲ ص ۱۲٦). لکن وروسته یې ورتـه منسـوخ ویـل لکه څرنګه چې ابن سلیمان رحمه الله دامام اوزاعی رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چې دلمانځه دهرهغه تکبیرسره درفع الیدین څه حکم دی چې په قیام کې دي؟ هغه ورته وفرمایل چې دادتیری زمانې خبرې وې .(جزء رفع الیدین بخاری ص۱۸۳/والتعلیق الصبیح ج ۱ص ۱۷٤).

## ۴۷- پنځلسم حدیث

### نبی کریم صلی الله علیه وسلم، ابوبکر رضی الله عنه، عمر، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه:

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ حَمَّادٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ رحمهم الله تعالى، عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ وَمَعَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَلَمْ يَرْفَعُوا أَيْدِيَهُمْ إِلَّا عِنْدَ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ". قَالَ إِسْحَاقُ رحمه الله: بِهِ نَأْخُذُ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا. (دارقطنی، ج ۱ ص ۳۹۹/ رقم ۱۱۲۰/ ابویعلی ج ۸ ص ۴۵۳/ رقم ۵۰۱۷/ بهیقی، ج ۲ ص ۷۹ مجمع الزوائد ج ۲ ص ۱۰۱/ رقم ۲۵۸۱/ المقصد العلی رقم ۲۶۶/ مسند ابی یعلی الموصلی ج ۸/ ص ۴۵۴ رقم ۵۰۳۷/ معجم الشيوخ لابی بکر الاسماعيلي ج ۱/ ص ۶۹۳/ رقم ۱۵۴].

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چې ما د رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه پسې لمونځونه کړي دي.

نو دې ټولو حضراتو د لمانځه د شروع ځخه وروسته په بل هیڅ ځای کې لاسونه نه دي پورته کړي.

دا حدیث د متواتر په حکم کې دی ځکه چې د دې حدیث مضمونونه دوه دي: اول دا چې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د نبی ﷺ د مانځه نقشه بیان کړې ده، دا مضمون په متعددو سندونو روایت شوی دی، دوهم دا چې په مانځه کې یې رفع الیدین نه دي کړي او دا هم په متعددو سندونو سره روایت شوی دی.

امام اسحق فرمائی چې مونږ په ټولو لمونځونو کې په همدې حدیث عمل کوو او رفع الیدین نه کوو.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په دې حدیث کې د رسول الله ﷺ د اخری لمونځ بیان دی، ځکه چې په دې حدیث کې دي چې د رسول الله ﷺ ځخه وروسته په مسجد نبوي کې ابوبکر صدیق رضی الله عنه د ترک رفع الیدین والا لمونځ کړی دی او د ابوبکر صدیق رضی الله عنه ځخه وروسته حضرت عمر رضی الله عنه د ترک درفع الیدین والا لمونځ کړی دی.

او دا حدیث مسلسل بالعمل هم دی، یعنې د دې حدیث ټولو راویانو په دی حدیث عمل کولو او رفع الیدین یې نه کول.

اسحق ابن ابراهیم، محمد بن جابر، حماد، ابراهیم، علقمه او عبدالله بن مسعود رضی الله عنهم د دې حدیث راویان دي د دوي ټولو په لمونځ کې رفع الیدین نه وو، ځکه چې دا ټول راویان کوفیان وو او د کوفیانو په ترک درفع الیدین باندې اجماع وه. (ترمذی، ج ۱ ص ۵۸/ التعلیق المجد ص ۹۱). په کوم حدیث کې چې

ثقه عمل وکړي او د اعتماد وړ يې وګڼي هغه صحيح وي او ددې حديث په باره کې اسحق ابن ابراهيم فرمائي چې: (وبه ناخذ) يعنې زمونږ تيولو په همدې حديث عمل دی (دارقطني ج ۱/ رقم ۱۱۲۰).

محمد انورشاه کشميري رحمه الله عليه فرمايي چې: قلت قد أخذ به اسحق راويه فيعتبر (نيل الفرقدين ص٩٤)، همدارنګه مخکې ذکر شو چې ددې حديث مضمون متواتر دی.

اعتراض: ددې حديث په سند کې محمد بن جابر دی په ده باندې جرحې شوې دي، همدارنګه يې په اخرعمر کې حافظه خرابه شوه او داختلاط ښکار شو او دده کتابونه ضايع شو او تلقين به يې قبلولو؟

قلنا ۱- محمد بن جابر عند الجمهور ثقه او صدوق دی ډيرو امامانو يې توثيق او مدحه کړې ده لکه امام عمرو بن علي الفلاس، قال الفلاس: صدوق كثير الوهم (شرح سنن ابن ماجه للمغلطائي ج ١صـ ٤٣٥، والجرح والتعديل ج ٧ص ٢١٩)

۲- امام ابو حاتم الرازي: قال: عبدالرحمن بن ابى حاتم الرازي وسئل أبى عن محمدبن جابر وابن لهيعه فقال محلهما الصدق ومحمد بن جابر احب الىّ من ابن لهيعه (الجرح والتعديل ج ٧صـ ٢١٩)

۳- ابو ذرعه: وقال عبدالرحمن بن ابى حاتم الرازي وسمعت أبى واباذرعه يقولان من كتب عنه باليمامة وبمكة فهو صدوق (تهذيب التهذيب ج ٩ص، ٧٧)

۴- امام نور الدين الهيثمي: قال الامام الهيثمي محمد بن جابر السحيمي وفيه كلام كثير وهو صدوق فى نفسه صحيح الكتاب ولكنه ساء حفظه (مجمع الزوايد ج ٢صـ ٤٧٩)

۵- امام عبدالله بن عدي الجرجاني: (وَقَالَ الامام ابواحمد عبدالله ابْن عدي الجرجاني: وَعند إِسْحَاق بن أبي إِسْرَائِيل عَن مُحَمَّد بن جَابر أَحَادِيث صَالِحَة، وَكَانَ إِسْحَاق يفضل مُحَمَّد بن جَابر على جمَاعَة شُيُوخ هم أفضل مِنْهُ وأوثق، وَقد روى عَن مُحَمَّد- من الْكِبَار- أَيُّوب وَابْن عون وَهِشَام بن حسان وَالثَّوْري وَشعْبَة وَابْن عُيَيْنَة وَغَيرهم، وَلَوْلَا أَنه فِي ذَلِك الْمحل لم يرو عَنهُ هَؤُلَاءِ الَّذين هُوَ دونهم، وَقد خَالف فِي أَحَادِيث، وَمَعَ مَا تكلم فِيهِ من تكلم يكْتب حَدِيثه (الكامل لابن عدي ج ٦صـ ١٥٣)

۶- قال الذهلى لا بأس به، (تهذيب التهذيب ج ٩صـ ٧٥.

۷- امام ابو الوليد: قال: ابو الوليد نحن نظلم محمد بن جابر بامتناعنا من التحديث عنه، (تهذيب التهذيب ج ٩صـ ٧٨)

ددې ټول تحقيق نتيجه داده چې د محمد بن جابر مرويات د حسن د درجې څخه کم ندي، پاتې شوه داختلاط او د کتابونو دضايع کيدلو او دتلقين د قبلولو اعتراض نو جواب دادی چې دداسې راويانو په باره کې محدثينو يو قانون بيان کړی دی :

(١) امام نووي فرمايي چې: وحكم المختلط ان لايحتج بما روى عنه فى الاختلاط اوشک فى وقت تحمله ويحتج بما روى عنه قبل الاختلاط (تهذيب التهذيب الاسماء واللغات للنووي ج١صـ ٢٤٢)

(٢) امام خطيب البغدادي : دمحمد بن خلاد الاسكدراني په تذکره کې فرمايي چې: (فَكُلُّ مَنْ سَمِعَ مِنْهُ قَدِيمًا قَبْلَ ذَهَابِ كُتُبِهِ فَحَدِيثُهُ صَحِيحٌ، وَمَنْ سَمِعَ مِنْهُ بَعْدَ ذَلِكَ فَلَيْسَ حَدِيثُهُ بِذَاكَ (الكفاية فى علم الرواية صـ ١٥٣)

او امام ابو ذرعه او امام حاتم الرازي فرمايي چې د محمد بن جابر څخه چې چا په مکه او يا يمامه کې روايات کړي دي نو هغه پدغه وخت کې صدوق وو، وقال عبد الرحمن بن ابى حاتم الرازي وسمعت ابا ذرعه يقولان من كتب عنه باليمامة وبمكة فهو صدوق (تهذيب التهذيب ج ٩صـ ٧٧)

زمونږ په ذکر شوي روايت کې امام اسحاق بن ابراهيم المروزي دده څخه په يمامه کې روايت کړي دي ١- (وَكَانَ رَحَلَ إِلَى مُحَمَّدِ بْنِ جَابِرٍ بِالْيَمَامَةِ فَكَتَبَ كُتُبَهُ، وَقَدِمَ الْبَصْرَةَ مِنَ الْيَمَامَةِ بَعْدَ مَوْتِ أَبِي عَوَانَةَ بِيَوْمَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٍ (طبقات ابن سعد ج ٧، صـ ٣٥٣).

٢- وقال ابو يعقوب اسحاق بن أبى اسرائيل لما انصرف من اليمامة من عندهـذا الشيخ يعنى محمد بن جابر (تاريخ بغداد ج ٥صـ ٣٥٧)

٣- (وَقَالَ الامام ابواحمد عبدالله بن عدى الجرجانى رحمه الله: وَعند إِسْحَاق بن أَبى إِسْرَائِيل عَن مُحَمَّد بن جَابر رحمه الله أَحَادِيث صَالِحَة، وَكَانَ إِسْحَاق يفضل مُحَمَّد بن جَابر رحمه الله على جمَاعَة شُيُوخ هم أفضل مِنْهُ وأوثق). (الكامل لابن عدي ج ٦صـ ١٥٣)

ددې څخه معلوميږي چې داحديث اسحق په هغه وخت کې روايت کړی ووچې دمحمد بن جابر حافظه قوي وه او په دغه وخت کې دده حافظه دشعبه رحمه الله او دسفيانينو رحمهما الله څخه هم بهتره وه، نودغې وخت احاديثو ته يې ضعيف ويل اسمان ته لاړي تو کول دي، علامه نور الدين هيثمي فرمايي چې: وقد وثقه غير واحد [مجمع الزوايد ج٤/ ص٢٩٥] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: ورجحه ابو حاتم على ابن لهيعة [تقريب ٣١٥] علامه ذهبى فرمايي چې: وفى الجملة قد روي عن محمد بن جابر ايمة وحفاظ. [ميزان الاعتدال ج٣/ ص٣٤] .

امام دار قطني ورته معتبر ويلى دى. [تهذيب التهذيب ج۵/ ص۵۹/ ص۶۰]. غير مقلد الباني دده احاديثو ته صحيح ويلي دي. [صحيح سنن ابى داؤد رقم ۱۶۸/ ورقم ۱۸۳]

فان قيل: چې ابن الجوزي رحمه الله دې حديث ته موضوعي ويلي دي. [الموضوعات ج۲/ ص۹۶]؟

قلنا: د ابن الجوزي رحمه الله دا عام عادت دى چې صحيح حديث ته موضوعي وايي: ۱- علامه سيوطي رحمه الله فرمايي چې (وابن الجوزي متاسهل في الحكم على الحديث بالوضع). [اللآلي المصنوعة ج۲/ ص۳۳].

۲- مولانا عبد الحي رحمه الله فرمايي چې: ابن الجوزي صحيح احاديثو ته موضوعي وايي. [التعليق الممجد ص۳۳.

۳- د بلوغ المرام د باب اللعان د شپږم نمبر حديث په باره کې حافظ ابن حجر رحمه الله ليکي چې: رواه ابوداؤد والترمذى ورجاله ثقات. علامه نووي هم ورته صحيح وايي [سبل السلام ج۲/ ص۱۰۹] لکن ابن الجوزى ورته موضوعي ويلي دي، قاضى شوکاني بيا وايي چې ابن الجوزي صحيحو احاديثو ته ضعيف وايي وګوره [الفوايد المجموعة ص۴/ ص۱۴۹/ ص۲۱۳/ ص۵۰۸] د بخاري او د مسلم يو حديث دى چې ان من عباد الله لو أقسم على الله لأبره [بخاري ج۱/ ص۳۷۲/ وص۳۹٤/ ج۲/ ص٦٤٦/ وص٦٦٤] مسلم رقم۲۶۲۲/ ترمذي ص۸٤/ مستدرک حاکم رقم ۸۰۰/ مشکوة رقم ۵۲۳۱/ لکن ابن الجوزي ورته موضوعي وايي.

## ٤٨- شپاړسم حديث

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ، وَقِيَامٍ وَقُعُوْدٍ، وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ رضي الله عنهما. [ترمذي/ باب ما جاء في التكبير عند الركوع والسجود رقم ۲۵۳] يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم او ابوبکر او عمر رضي الله عنهما به د هر ټيټيدلو او جګيدلو او په قيام او په قعود کې الله اکبر ويلو.

## ۴۹۔ اوولسم حديث

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رضي الله عنه قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ رَفْعٍ، وَوَضْعٍ وَقِيَامٍ وَقُعُودٍ»، وَأَبُوبَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ. [نسائي باب التكبير للسجود رقم ۱۱۵۰] يعني رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دري واړو خلفاوو به د هرتيټيدلو او دجګيدلو او قيام او دقعود سره الله اكبر ويلو.

## ۵۰۔ اتلسم حديث

عَنِ الْأَسْوَدِ، وَعَلْقَمَةَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رضي الله عنه قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ، وَقِيَامٍ وَقُعُودٍ، وَيُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ، وَعَنْ شِمَالِهِ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ، السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ، حَتَّى يُرٰى بَيَاضُ خَدِّهِ"، وَرَأَيْتُ أَبَابَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَفْعَلَانِ ذٰلِكَ. [نسائي رقم ۱۰۸٤ ورقم ۱۳۲۰]

يعني رسول الله به د هرو تيټيدلو او دجګيدلو اود قيام اود قعود سره الله اكبر ويلو او ښي او چپ طرف ته به يې دسلام ګرځولو په وخت كې السلام عليكم ورحمة الله، السلام عليكم ورحمة الله ويلې تردې چې د غومبري سپين والى به يې ليدل كيدلو او ما ابوبكر او عمر رضي الله عنهما هم پداسې عمل باندې ليدلي دى، ددې احاديثو څخه معلوميږي چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخري لمونځ او وروستي د خلفاؤ په مونځونو كې دهرو تيټيدلو او دجګيدلو سره صرف الله اكبر وو او رفع اليدين نه وه.

## د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه احاديث

**۵۱۔ اول حديث:** حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرَةَ قَالَ: ثنا مُؤَمَّلٌ، قَالَ: ثنا سُفْيَانُ قَالَ: ثنا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ لِافْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يَكُونَ إِبْهَامَاهُ قَرِيبًا مِنْ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ لَا يَعُودُ» طحاوي رقم ۱۳۱۳].

**۵۲ - دوهم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ إِلٰى قَرِيبٍ مِنْ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ لَا يَعُودُ» (ابوداؤد رقم ۷٤۹ باب من لم يذكر الرفع عند الركوع).

دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دى، چې رسول الله ﷺ به چې كله دلمانځه دشروع كولو لپاره الله اكبر كړو، نودغوږونو ترنرميو پورې به يې لاسونه جيګ كړل او بيا به يې په نورلمونځ كې نه جيګول.

په دې حديث کې دوه مسئلې دي اوله دا چې لاسونه به ترکوم ځای پورې پورته کولی شي؟ نو جواب پدې حديث کې دا سې دی چې ترغوږونو پورې به پورته کولی شي.

دوهمه دا چې په لمانځه کې به لاسونه څو ځلې جيګولی شي؟ نو جواب په دې حديث کې دی چې صرف دا ول تکبير په وخت کې به جيګولی شي او ددې څخه وروسته به په نور لمانځه کې نه شي جيګولی.

**٥٣ - دريم حديث :** وبه قال حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ، نَحْوَ حَدِيثِ شَرِيكٍ، لَمْ يَقُلْ: «ثُمَّ لَا يَعُودُ»، قَالَ سُفْيَانُ: قَالَ لَنَا بِالْكُوفَةِ بَعْدُ «ثُمَّ لَا يَعُودُ» قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ هُشَيْمٌ، وَخَالِدٌ، وَابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ يَزِيدَ رحمهم الله تعالى، لَمْ يَذْكُرُوا «ثُمَّ لَا يَعُودُ»، ( ابوداؤد رقم ٧٥٠ ) .

دا دمخکيني حديث ( رقم ٧٤٩ ) دوهم روايت دی، لکن په دې کې د (ثم لا يعود) لفظ نشته سفيان فرمايي چې يزيد بن ابی زياد چې وروسته دا حديث موږ ته په کوفه کې بيانولو نو هلته يې (ثم لا يعود) وويلې امام ابوداؤد رحمه الله فرمايي چې دا حديث هشيم رحمه الله خالد رحمه الله او ابن ادريس رحمه الله د يزيد بن ابی زياد څخه روايت کړی دی هغوی (ثم لا يعود) د نه دی ذکر کړی .

**٥٤- څلورم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ، وَخَالِدُ بْنُ عَمْرٍو، وَأَبُو حُذَيْفَةَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ رَحِمَهُمُ اللَّهُ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا قَالَ: «فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ»، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: «مَرَّةً وَاحِدَةً» ( سنن ابی داؤد رقم ٧٥١ بتحقيق شيخ مامون شيحا صحيح ابی داؤد رقم ٦٨٤ - ٧٥١ ) ناصرالدين البانی فرمايي چې دا حديث صحيح دی صحيح ابی داؤد ج١ ص ١٤٣ طبع مکتبه التربيه العربی لدول الخليج ، الرياض سنه ١٤٠٩هـ. زموږ په ملکونو کې چې کوم متداول ابو داؤد دی په هغې کې دا حديث د حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه د حديث څخه لاندې بيان شوی دی .

**٥٥ - پنځم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَخِيهِ عِيسَى، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رحمه الله، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا حَتَّى انْصَرَفَ» ( ابو داؤ د رقم ٧٥٢ ) يعنې رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمانځه د شروع په وخت کې رفع اليدين وکړل بيا يې د لمانځه څخه تر فارغيدو اوچت نکړل.

**٥٦ - شپږم حديث :** وبه قال حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي دَاوُدَ، قَالَ: ثنا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، قَالَ: أنا خَالِدٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عِيسَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ رَحِمَهُمُ اللَّهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. (طحاوی رقم ١٣١٤)

دا روايت هم د مخکيني روايت په شان دی.

**۵۷ - اوم حديث :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ النُّعْمَانِ، قَالَ: ثنا يَحْيَى بْنُ يَحْيَى، قَالَ: ثنا وَكِيعٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَخِيهِ، وَعَنِ الْحَكَمِ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. (طحاوی رقم ۱۳۱۵).

**۵۸ - اتم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُ اللهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُرٰى إِبْهَامُهُ قَرِيبًا مِنْ أُذُنَيْهِ» (مصنف عبد الرزاق ج۲ ص ۲۵۳۰).

يعنې نبی عليه السلام به د لمانځه د شروع کولو په وخت کې رفع اليدين کول تر دې پورې چې غټې ګوتې به يې غوږونو ته نږدې ښکاريدلې.

**۵۹- نهم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه مِثْلَهُ، وَزَادَ قَالَ: مَرَّةً وَاحِدَةً، ثُمَّ لَا تَعُدْ لِرَفْعِهَا فِي تِلْكَ الصَّلَاةِ. [مصنف عبد الرزاق (ج) ۲ صفحه ۱۷ رقم ۲۵۳۱].

يعنې سفيان بن عينيه د يزيد بن ابي زياد او عبد الرحمن بن ابي ليلى په واسطه د براء بن عازب رضی الله عنهم څخه د مخکينی روايت په شان روايت کړی دی او دا يې په کې زيات کړي دي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم صرف يو ځلې رفع اليدين وکړل بيا يې نور په همدې لمانځه کې په بل ځای کې ونه کړل.

**۶۰-لسم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللهُ عَنِ الْبَرَاءِ رضي الله عنه قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ كَبَّرَ، وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى كَادَتَا تُحَاذِيَانِ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ لَمْ يَعُدْ. [مسند ابی يعلی (ج)۳ صفحه ۲۴۸ وفی بعض النسخ ص ۴۰۰ رقم ۱۶۹۱].

يعنې رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمانځه د شروع کولو په وخت کې لاسونه دومره اوچت کړل چې د غوږونو سره برابر يد لو ته نژدې شول بيا يې او چت نه کړل.

**۶۱- يوولسم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، قَالَ: سَمِعْتُ يَزِيدَ بْنَ أَبِي زِيَادٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنِ الْبَرَاءِ رضي الله عنه قَالَ «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِينَ اسْتَقْبَلَ الصَّلَاةَ حَتّٰى رَأَيْتُ إِبْهَامَيْهِ قَرِيبًا مِنْ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا». [مسند ابی يعلی (ج)۳ صفحه ۲۴۹ رقم ۱۶۹۲.

ترجمه کې د مخکينی حد: ث ترجمې ته ورته ده.

**٦٢-دولسم حدیث** : وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْحَكَمِ، وَعِيسَى، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، عَنِ الْبَرَاءِ ﷺ، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ، ثُمَّ لَا يَرْفَعُ حَتّٰى يَنْصَرِفَ»[مسندابی یعلی (ج)۳ صفحه ۲۴۸].

**٦٣- دیارلسم حدیث** : وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ قَالَ: نَا وَكِيعٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْحَكَمِ، وَعِيسَى، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷺ، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ، ثُمَّ لَا يَرْفَعُهُمَا حَتّٰى يَفْرُغَ (مصنف ابن ابی شیبه رقم ۲٤٥٥).

**٦٤- څوارلسم حدیث**: وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَاعِدٍ، نَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ لُوَيْنٌ ثنا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، ثنا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رحمهم الله تعالى، عَنِ الْبَرَاءِ ﷺ، أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى حَاذَى بِهِمَا أُذُنَيْهِ، ثُمَّ لَمْ يَعُدْ إِلٰى شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ حَتّٰى فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ» ( المدونة الكبرى ج۱ ص ٦٩ طبع مصر المدونة الكبرى ج۱ ص ١٦٦ طبع بيروت سنه ١٤٢٦ ھ .

**٦٥- پنځلسم حدیث**: وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَاعِدٍ، نَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ لُوَيْنٌ ثنا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، ثنا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رحمهم الله تعالى، عَنِ الْبَرَاءِ ﷺ، أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى حَاذَى بِهِمَا أُذُنَيْهِ، ثُمَّ لَمْ يَعُدْ إِلٰى شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ حَتّٰى فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ» دار قطني ج۱ ص ۲۹۳ مترجم جزء سوم ص ۳۵۱ رقم ۱۱۱٤ ) .

**٦٦ - شپاړسم حدیث** : وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ صَاعِدٍ، نَا لُوَيْنٌ، نَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ يَزِيدَ يَعْنِي ابْنَ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ رحمهم الله تعالى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷺ، مِثْلَهُ. دار قطني مترجم جزء سوم ص ۳۵۱ رقم ۱۱۱۵).

**٦٧- اولسم حدیث** : وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْآدَمِيُّ أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَيُّوبَ الْمُخَرِّمِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷺ، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى سَاوٰى بِهِمَا أُذُنَيْهِ ثُمَّ لَمْ يَعُدْ. (الحديث . دار قطني ج۱ ص ۲۹٤ مترجم جزء سوم ص ۳۵۲ رقم ۱۱۱۷) .

**٦٨- اتلسم حدیث** : وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ الْعَلَاءِ، ثنا أَبُو الْأَشْعَثِ، ثنا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، ثنا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ ﷺ، فِي هٰذَا الْمَجْلِسِ يُحَدِّثُ قَوْمًا مِنْهُمْ كَعْبُ

بن عُجْرَةَ ﷺ, قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ» (دا رقطنی ج۱ ص ۲۹۳ مترجم جزء سوم ص ۳۴۹ رقم ۱۱۱۲).

**٦٩- نولسم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، قَالَ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ ﷺ يُحَدِّثُ، قَوْمًا فِيهِمْ كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ ﷺ قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، رَفَعَ يَدَيْهِ».. ( مسند احمد ج٤ ص ٣٠٣ رقم ١٨٢١٧ ورقم ١٨٨٩٦ ) .

**٧٠ - شلم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷺ قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ، حَتّٰى نَرٰى إِبْهَامَيْهِ قَرِيبًا مِنْ أُذُنَيْهِ. ( مسند احمد رم ١٨٢٢٧ ورقم ١٨٩٠٦ )

**٧١- يويشتم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷺ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى تَكُونَ إِبْهَامَاهُ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ».. ( مسند احمد رقم ١٨١٩٩ ورقم ١٨٨٧٧ ورقم ١٨٨٨٦ ).

**٧٢- دوه ويشتم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷺ، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، رَفَعَ يَدَيْهِ» مسند احمد رقم ١٨٠١٨ ورقم ١٨٦٧٩ ) .

**٧٣- درويشتم حديث :** وبه قال حدثنا هشيم عن يزيد بن ابى زياد عن ابن ابى ليلى عن البراء بن عازب رضى الله عنه قال رايت النبى صلى الله عليه وسلم حين افتتح الصلوة رفع يديه حتى كادتا تحاذيان اذنيه (مصنف ابن ابى شيبه رقم ٢٤٥٥).

**٧٤ - خلورويشتم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الْقَاسِمِ بْنُ بَالَوَيْهِ النَّيْسَابُورِيُّ، ثَنَا بَكْرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْحَبَّالُ الرَّازِيُّ، ثَنَا عَلِيٌّ، ثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ رَوْحِ بْنِ أَبِي الْحُرَيْشِ الْمِصِّيصِيُّ، سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، رَوْحِ بْنِ أَبِي الْحُرَيْشِ، سَمِعْتُ أَبَا حَنِيفَةَ، يَقُولُ الشَّعْبِيُّ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ يَقُولُ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ ﷺ، يَقُولُ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ مَنْكِبَيْهِ لَا يَعُودُ يَرْفَعُهُمَا حَتّٰى يُسَلِّمَ مِنْ صَلَاتِهِ». ( مسند الامام ابى حنيفه ص ١٥٦ مؤلف امام ابونعيم اصبهانى مسند ابى حنيفه برواية ابى نعيم ص ٣٤٤ رقم الحديث ٢٢٥ )

**٧٥- پنځويشتم حديث:** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا الْقَاضِي أَبُو أَحْمَدَ مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا رَجَاءُ بْنُ صُهَيْبٍ، سَمِعْتُ الْحُصَيْنَ بْنَ حَفْصٍ، عَنْ أَبِي يُوسُفَ وَعَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى عَنِ الْحَكَمِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللّٰهُ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ كَبَّرَ حَتّٰى رَأَيْتُ

إِبْهَامَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا حَتَّى يسلم. ( كتاب ذكر اصبهان تاليف الامام الحافظ ابی نعیم احمد بن عبد الله الاصبهانی باب الراء ج۱ ص ۳۱۵ )

**۷۶ - شپږویشتم حدیث:** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنَا قَاسِمُ بْنُ أَصْبَغَ قَالَ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ زُهَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مُحَمَّدٍ الْأَنْصَارِيُّ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ عَنْ عَبْدِ الرحمان بْنِ أَبِي لَيْلَى رَحِمَهُمُ اللَّهُ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ ﷺ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَبَّرَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى حَاذَى أُذُنَيْهِ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ لَمْ يَزِدْ عَلَيْهَا ( التمهيد لابن عبد البر ج۹ ص ۲۱۴ ) .

ددې ټول احادیثو ترجمه متقاربه ده حاصل یې دادی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم صرف د اول تکبیر سره رفع الیدین کړي دي او نوریې تر سلام پورې په بل ځای کې نه دي کړي،

## یزید بن ابی زیاد رحمه الله ثقه دی

لا مذهبان اعتراض کوي چې ددې حدیث مرکزي راوي یزید بن ابی زیاد رحمه الله شیعه وو او په اخر عمر کې یې حافظه خرابه شوی وه؟

**ځواب:** یزید بن ابی زیاد الکوفی القرشی الهاشمی ولاءً باندې اګرچې بعضې محدثینو د تشیع اود اختلاط الحافظه فی اخر العمر جرحه لګولې ده لکن علی الاطلاق ورته ضعیف ویل د انصاف څخه بعیده ده.

۱ - امام مسلم رحمه الله یې په هغو راویانو کې شماري چې په عدالت او په مروت باندې متصف وو او ده څخه روایت هم کوي ( ملخصاً مقدمه مسلم ج۱ ص ۵۳ طبع مکتبه بشری کراچي ) .

امام مزني رحمه الله فرمایي چې یزید بن ابی زیاد رحمه الله د امام مسلم رحمه الله شیخ دی ( تهذیب الکمال ج۱ ص ۳۲ خلاصة تهذیب الکمال ج۳ ص ۲۷۶ ) .

۲ - امام احمد بن صالح رحمه الله فرمایي : چې یزید بن ابی زیاد ثقة لا یعجبني قول من یتکلم فیه یزید بن ابی زیاد رحمه الله ثقه دی او په ده باندې د اعتراض کونکو کلام زه نه خوښوم ( تاریخ اسماء الثقات لابن شاهین ص ۱۹۷ وفی بعض النسخ صـ ۲۵۶ ) .

۳ - امام شعبه رحمه الله ده په باره کې فرمایي : چې د یزید بن ابی زیاد رحمه الله څخه د روایت کولو څخه وروسته زه ددې هیڅ پروا نه لرم چې د بل چا څخه حدیث و نه لیکم ( میزان الاعتدال ج۴ ص ۲۲۳ )

۴-امام ابوداؤد رحمه الله فرمايي چې ما ته داسې هيڅوک هم نه دي معلوم چې دده حديثونه يې پرېښې وي البته دده په مقابل کې مې بل متفق عليه قوي راوي خوښيږي . ( تهـذيب التهـذيب ج۱۱ ص ۲۸٦ لا اعلم احداً ترک حديثه ، سير اعلام النبلاء ج۵صـ ۳۸۱) .

۵-حضرت سفيان بن يعقوب رحمه الله فرمايي چې خلکو په ده باندې دا جرحه لګولې ده چې دده په حافظه کې تغير راغلی وو ، لکن بيا هم دا عادل او ثقه دی، اګرچې د حکم رحمه الله او د منصور رحمه الله په مرتبه کې نه دی : فهو على العدالة والثقة وان لم يكن مثل منصور ولاحكم والاعمش فهو مقبول القول ثقة (ج ۳صـ ۱۷۵، تهذيب التهذيب ج۱۱ ص ۲۸٦ المعرفة والتاريخ للفسوی ج ۳صـ ۱۷۵ ) .

۶-امام عجلي رحمه الله ورته جايزالحديث ويلي دي او په دې يې هم تصريح کړې ده چې په اخر عمر کې يې حافظه خرابه شوي وه . . تهذيب التهذيب ج۱۱ ص ۲۸۶ )

۷-امام ابن حبان رحمه الله فرمايي چې په بوډاوالي کې يې حافظه خرابه شوي وه او تلقن به يې تبلولو لکن د تغير څخه مخکيني روايتونه يې صحيح دي ۰ حواله بالا ) .

۸-امام ذهبی رحمه الله ورته الامام، المحدث، الثقه او اوعية العلم وايي او ليکي چې امام شعبه رحمه الله په نقد د رجالو کې د مهارت سره سره دده څخه روايت کوي (سير اعلام النبلاء ج۶ ص۱۳۹ و ص۱۳۰)

۹-امام بخاري رحمه الله دده څخه د يوې کلمې معنی تعليقا روايت کړې ده ( بخاري ج۲ ص ۷۶۸ )

۱۰-امام مسلم رحمه الله ترينه مقروناً روايتونه کوي ( تهذيب الكمال ج۱۱ ص ۳۲ )

۱۱-امام ترمذی رحمه الله دده روايتونو ته حسن وايي او فرمايي چې روى عنه سفيان ، وشعبه ، وابن عيينه وغير واحد من الائمة .( ترمذی ج۱ ص ۱٦ وص ۹٦ وج ۲ ص ۲۱۸ وص ۷۱ ، باب ماجاء فی المنی والمذي ، باب ماجاء من الرخصة فی ذلک ای الحجامة للصايم، بـاب ماجاء فی مواقيت الاحرام لاهل الافاق ، باب مناقب العباس بن عبد المطلب وغيره).

۱۲-حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې محدث جرير رحمه الله فرمايلي دي چې يزيد بن ابی زياد رحمه الله د عطاء بن سايب رحمه الله څخه زيات مضبوط او د حافظې والا دی ..(تهذيب التهذيب ج۸ ص ۴۶۶ وج۱۱ ص ۳۳۰ ) او عطاء بن سايب رحمه الله د صحيح البخاری راوي دی .

۱۳- علامه زيلعي رحمه الله د امام ابن دقيق العيد رحمه الله په حواله باندې ليکي چې يزيد بن ابی زياد الکوفی رشتينی دی او د امام ابو الحاث القروی رحمه الله په حواله باندې ليکي چې امام ابو الحسن رحمه الله ورته جيد الحديث ويلي دي (نصب الرايه ج۱ ص ۴۰۲).

۱۴- علامه احمد شاکر رحمه الله ليکي چې ويزيد هذا ضعفه بعضهم من قبل انه شيعی ومن قبل انه اختلط فی أخر حياته والحق انه ثقة، قال ابن شاهين فی الثقات قال احمد بن صالح المصری يزيدبن ابی زياد ثقة، ولا يعجبنی قول من تكلم فيه، وقال ابن سعد فی الطبقات وكان ثقة فی نفسه (جامع ترمذی بتحقيق وشرح احمد شاكر ج۱ ص ۱۹۵) همدا احمد شاکر رحمه الله په دويم جلد کې د يو حديث په تشريح کې فرمايي چې فمدار الحديث علی يزيد بن ابی زياد وهوثقة صحيح الحديث وقد تكلمنا عليه تفصيلا فيما مضی (جامع ترمذی بتحقيق احمد شاكر ج۲ ص ٤٠٩).

۱۵- علامه شوكانی فرمايي چې و قد اخرجه مسلم فی صحيحه ، والبخاری تعليقاً واهل السنن الاربع. (الفوايد المجموعه ص ۱۱۷).

۱۶- علامه هاشم بن عبد الغفور السندهی رحمه الله فرمايي چې د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه د حديث بعضې طرق د شيخينو په شرط باندې صحيح او بعض حسن دي، په صحيحو کې د عبد الرزاق والا سند دی، د عبد الرزاق په سند کې د عبد الرزاق څخه سوا درې راويان دي، سفيان بن عيينه، يزيدبن ابی زياد الهاشمی الكوفی او عبد الرحمن بن ابی ليلی . [كشف الرين فی مسئلة رفع اليدين، مترجم ص۵۷ تا ص ۶۵].

او مخکې ليکي چې يزيد بن ابی زياد رحمه الله مختلف فيه راوي دی امام بخاری رحمه الله ترينه په صحيح البخاري کې معلق روايت راوړی دی او نورو حفاظو د حديثو لکه امام مسلم رحمه الله او اصحاب السنن الاربع دده څخه روايتونه کوي، موږ به عنقريب د هغو محدثينو نومونه د بخارې د شرح عمدة القاري څخه رانقل کړو کومو چې دده توثيق کړيدی (كشف الرين فی مسئلة رفع اليدين ص ۶۷)

۱۷- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې : (ويزيد فيه ضعف يسير) تخليص حبير (ص۱۱۷.

۱۸- علامه ذهبی رحمه الله فرمايي چې وهو حسن الحديث همدارنګه فرمايي چې: (الامام المحدث ابو عبدالله الهاشمي سير اعلام النبلاء ج ۵ صـ ۳۸، العبر بحواله شذرات الذهب ج۱ص ۱۰۶)

۱۹-حافظ ابن حجر رحمه الله د يزيد بن زياد يو سند ته اسناد مقارب ليکلي دي (الدرايه ج۲ ص۶).

۲۰-علامه عيني رحمه الله د يزيد بن ابى زياد د توثيق څخه وروسته فرمايي چې ابن خزيمه په خپل صحيح کې دده څخه روايت را خيستی دی امام مسلم هم په خپل صحيح کې دده څخه د حديث تخريج کړی دی بخاری هم ترينه استدلال کړی دی (البنايه فی شرح الهدايه للعلامه عينی ج۲ ص ۱۹۶).

۲۱- داسماء الرجال په فن کې د شيعه لفظ دهغه چالپاره استعماليږي چې حضرت علی ﷺ په حضرت عثمان ﷺ باندې بهتر ګڼي او درافضي اويادرافضي خبيث لفظ دهغه چالپاره استعماليږي چې حضرت علی ﷺ په ابوبکر ﷺ اوعمر ﷺ باندې هم بهتر ګڼي او څوک چې حضرت عثمان بهتر ګڼي عثماني ورته وائي کمافی البخاري ،ج ۱ص ۴۳۳ دبخاري ډيرراويان په همدې معنی شيعه ګان دی او دمسلم په باره کې بعضې فرمائي چې (کتاب مسلم ملان من شيعه)، دغير مقلدينو شيخ شوکانی هم شيعه دی، مقدمة فتح القدير للشوکانی ،ص ۵ ،يزيدبن ابی زياد د مسلم شيخ دی ،تهذيب الکمال ،ج ۱۱ ص۳۲ وخلاصة تهذيب الکمال ،ج۳ص ۲۷۶ ،نو غير مقلدين دی د مسلم دضعف اعلان هم وکړی.

۲۲- غيرمقلدين چې درفع اليدين داثبات لپاره دحضرت براء بن عازب ﷺ کوم حديث پيش کوي په هغې کې هم همدا راوی دی هلته څرنګه حجت شو؟ حالانکه هلته ورسره کاذب راوی هم شته چې ابراهيم بن بشارنو ميږي.

۲۳- البانی په ظلال الجنة رقم الحديث ،۸۰۳ کې وغيره کې دده حديثو ته صحيح ويلي دي.

۲۴-امام جرير بن عبد الوليد فرمايي چې: احسنهم استقامة فی الحديث (الجرح والتعديل ج ۹ص ۳۲۷.

۲۵-امام احمد بن حنبل هم د جرير بن عبد الله په شان خبره کوي.(الجرح والتعديل ج ۹ص، ۳۲۷)

۲۶-الشيخ ابن دقيق العيد فرمايي: ويزيد بن ابی زياد معدود فی اهل الصدق کوفی يکنی ابا عبدالله (نصب الرأيه ج ۱ص ٤۷۷)

۲۷-امام ابو الحسن فرمايي چې: يزيد بن ابی زياد جيّد الحديث (نصب الرأيه ج ۱ص ٤۷۷)

**(۲۸)ضروري تنبيه :** دا خبره په یاد لرئ چې په دې نوم باندې بل راوي هم شته هغه ته یزید بن زیاد او د بعضو په قول ابن ابی زیاد القرشی الدمشقی وایي. د اسماء الرجال علماء په ده باندې سختې جرحې کوي نو شوکانی په نیل الاوطار ج۱ ص ۲۷۵ کې هغه جرحې په زیر بحث راوي (ابو عبد الله یزید بـن ابي زیـاد الکـوفی القـرشی الهاشـمی) باندې ورچسپولی دي، او دده په تقلید کې عبد الرحمن مبارکپوری په تحفة الاحوذی ج۲ ص ۹۶ کې لیکلي دي چې یزید بن ابی زیاد رحمه الله حسن الحدیث نه دی بعینه همدا وهم امام نووی رحمه الله ته هم پیښ شوی دی او د مسلم د مقدمې په شرحه کې یې ذکر کړي دي په کوم باندې چې حافظ ابن حجر رحمه الله په تهذیب التهذیب کې ج۱۱ ص ۲۸۷ او علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله په مقد مه د مسلم مع شرحه فتح الملهم ص۱۱۶ کې نقد کړي دي، حقیقت دادی چې یزید بن ابی زیاد حسن الحدیث دی او په اخر کې یې په حافظه کې تغیر راغلی وو لکن د ترک د رفع الیدین روایت کونکو ترینه د تغیر څخه مخکې روایتونه کړي دي امام بخاری رحمه الله په جزء رفع الیدین رقم ۳۴ کې لیکي چې د شعبه رحمه الله د سفیان ثوری رحمه الله او د زهیر رحمه الله سماع د یزید بن ابی زیاد څخه په اول وخت کې وه، وهکذا فی البیهقی ج۲ ص ۷۶)

امام ابن حبان رحمه الله فرمایي چې: وکان یزید صدوقا الا أنه لما کبر ساء حفظـه وتغیر، فـکان یتلقن مالقن فوقع المناکیر فی حدیثه .... فسماع من سمع منه قبل دخول الکوفة فی اول عمره سماع صحیح (کتاب المجروحین لابن حبان ج ۳ صـ ۱۰۰)

۲۹-د څلور ویشتم نمبر لاندې چې کوم سند ولیکل شو په هغې کې دا راوي نشته همدارنګه د دولسم او د پنځه ویشتم نمبر لاندې چې کوم حدیثونه ولیکل شو په هغه کې هم دا راوي نشته.

**بل اعتراض دا کیږي چې:** امام ابوداود رحمه الله دا حدیث ضعیف ګڼلی دی او فرمایلي یې دي چې : (قال ابوداود هذا الحدیث لیس بصحیح)

**جواب :** امام ابوداود رحمه الله دا حدیث په ډیر طریقو ذکر کړی دی، په دریمه طریقه کې پکې یو راوی محمد بن عبد الرحمن دی او هغه ضعیف دی، امام ابوداود چې :هذا الحدیث لیس بصحیح) ویلی دی نو د دریمې طریقې په باره کې یې ویلي دي او د اولو دواړو طریقو په سند هغه کلام نه دی کړی بلکه چپ پاتې شوی دی، همدارنګه لیس هو بصحیح ضعف لره ندی مستلزم، ځکه چې صحیح دې نه وي

بلکې حسن دې وي، همدارنګه دا راوي هم بالاتفاق ضعيف نه دی، بلکې ډيرو محدثينو ورته ثقه ويلی دی. وګوره بذل المجهود ج۴/ ص۲۷۹].

**بل اعتراض دا کيږي چې:** ددې حديث په اخرکې د. (ثم لايعود) زيادت صرف د شريک تفرد دی، ځکه چې امام ابوداود رحمه الله ليکلي دي چې: (روي هذا الحديث هشيم وخالدوابن ادريس عن يزيدولم يذكرواثم لايعود)؟

**جواب:** شريک ددې زيادت په روايت کې متفرد نه دی، بلکې ددې ډيرزيات متابعات موجود دي شاه صاحب په (نيل الفرقدين فی رفع اليدين، ص ۹۵ وص ۹۶) کې فرمايلي دي چې حافظ ماردينی رحمه الله په (الجواهرالنقي ج۲/ ص۷۶) کې نقل کړي دي چې په (کامل بن عدی) کې هشيم رحمه الله لايعود ذکر کړی دی کما مر تحت رقم(۶۰) او اسرائيل بن يونس رحمه الله هم دا زيادت ذکر کړی دی امام ابن عيينه هم ذکر کړي دي کما مرّ تحت رقم (۵۹) امام اسماعيل بن ذکريا هم ذکر کړی دی کما مرّ تحت رقم(۶۶) امام ابن ادريس هم ذکر کړی دی کا مرّ تحت رقم (۶۱) او همدارنګه په دارقطنی او په معجم طبرانی اوسط کې حمزة الزيات رحمه الله د شريک متابعت کړی دی او خپله سنن ابوداود رحمه الله دغه روايت دلايعود د زيادت سره د سفيان رحمه الله د طريقه هم روايت کړی دی نوله دی وجهې د شريک د تفرد اعتراض غلط دی.

علامه عيني رح فرمايې چې: قلت تعارض قول أبی داود قول ابن عدی فی الکامل. رواه هشام وشريک وجماعة معهما عن يزيد باسناده قالوا فيه (لم يعد) يظهران شريکاً لم يتفرد برواية هذه الزيادة فسقط أيضاً بذلک کلام الخطابی لم يقل فی هذا (لم يعد) غيرشريک، لان شريکاً قد توقع عليها کما أخرجه الدار قطني من اسماعيل بن زکريا ثنا يزيد بن أبی زياد نحوه، أخرجه البهيقی فی الخلافيات من طرق النضر بن شميل عن اسرائيل هو ابن يونس بن اسحق عن يزيد بلفظ: رفع يديه حذو أذنيه ثم لم يعد- وأخرجه الطبراني في الأوسط من حديث حفص بن عمر ثنا حمزة الزيات کذلک وقال لم يروه عنه الاحفص، تفرد به محمد بن حرب. [البناية في شرح الهداية ج۲/ ص۲۹۵].

**بل اعتراض:** چې د حضرت سفيان بن عيينه قول دی چې يزيد بن ابی زياد چې کله په مکه مکرمه کې وو نو د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دغه روايت يې د (ثم لايعود) د زيادت څخه بغيرذکرکولو او ددې څخه وروسته چې کله کوفی ته راغلو نو هلته يې ددې جملې روايت شروع کړو.

امام بهيقي رحمه الله ددې زياتوالي په باره کې د سفيان بن عيينه دامقوله نقل کړې ده چې: (اظن ان اهل الكوفة لقنوه فتلقن) يعنې اهل کوفه وودې جملې تلقين ورته کړی وو اوددې جملې په زياتولو يې مجبور کړي وو.

امام ابوداود رحمه الله هم دااعتراض اشارةً په دې الفاظو ذکر کړی دی چې (حدثنا عبدالله بن محمد الزهري ناسفيان عن يزيد نحو حديث شريک لم يقل ثم لا يعود قال سفيان قال لنا بالكوفة بعد ثم لا يعود)

**الجواب:** شاه صاحب رحمه الله په نيل الفرقدين کې جواب ورکړی دی چې خلاصه يې را نقلوو.

(۱) حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه په کوفه کې اوسيدلو حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دا حديث د کوفې په غټ جامع جومات کې خلکو ته واورولو چې په دغه مجلس کې حضرت کعب بن عجرة رضي الله عنه هم موجود وو. (دارقطني. ج ۱ ص ۲۶۳) مترجم جزء سوم رقم ۱۱۱۲.

(۲) د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه دا حديث دريو ثقه راويانو روايت کړی دی، حضرت عبدالرحمن بن ابی ليلی رحمه الله حضرت عدي بن ثابت رحمه الله کما مر تحت رقم ۱۶ دارقطني مترجم رقم ۱۱۱۵ حضرت شعبی رحمه الله کما مر تحت رقم ۲۴ ومسند امام ابی حنيفة رحمه الله ص ۱۵۶]. حضرت ابن ابی ليلی لوی جليل القدر تابعي وو او ددې حديث مطابق يې رفع اليدين نه کول [مصنف ابن ابی شيبه رقم ۲۴۶۶]..

(۳) د حضرت ابن ابی ليلی رحمه الله په همدغه مسجد کې د شلو انصاري صحابه وو سره ملاقات شوی وو. (جامع ترمذی ج ۲ ص ۱۸۳).

(۴) او داهغه لوی مسجد وو چې يو زور پنځوسو صحابه وو رضی الله عنهم په کې لمونځونه کول، چې څلرويشت په کې بدري صحابه وو. (معارف السنن، ج ۲ ص ۴۹۰).

(۵) حضرت عبدالرحمن ابن ابی ليلی به د همدې حديث موافق رفع اليدين نه کول، يعنې تارک درفع اليدين وو. (مصنف ابن ابی شيبه، رقم ۲۴۶۶] او حضرت عبدالرحمن بن ابی ليلی د صحاح سته وو اجماعی شيخ دی په بخاری او په مسلم کې ترې بې شميره روايات دي.

(۶) دا حديث د شعبي څخه امام ابو حنيفه روايت کړی دی او د حضرت عدي بن ثابت څخه يزيد بن ابی زياد روايت کړی دی د حضرت عبدالرحمن ابن ابی ليلی څخه دا حديث دريو شاگردانو روايت کړی دی نو يزيد بن ابی زياد رحمه الله پکې متفرد ندی.

**اول :** دعبدالرحمن ابن ابی لیلی ځوی عیسی رَحِمَهُ اَللَّهُ چې بالاتفاق ثقه دی دده حدیث ددولسم نمبر لاندې تیر شو.

**دوهم :** حضرت حکم بن عتیبه رَحِمَهُ اَللَّهُ چې دا هم بالاتفاق ثقه دی دده حدیث ددولسم او دپنځه ویشتم نمبر لاندې تیر شو.

**دریم :** یزیدبن ابی زیاد رَحِمَهُ اَللَّهُ.

(۷) دحضرت یزیدبن ابی زیاد رَحِمَهُ اَللَّهُ څخه لسو شاګردانو دحدیث مکمل متن رانقل کړی دی.

**اول :** حضرت سفیان بن عیینه رَحِمَهُ اَللَّهُ لکه څرنګه چې د نهم نمبر لاندې تیر شو. (عبدالرزاق، ج۱ ص۷۱).

**دوهم :** حضرت سفیان ثوری رَحِمَهُ اَللَّهُ لکه څرنګه چې د اول د اتم او دشلم نمبر لاندې تیر شو.

**دریم :** حضرت شریک رَحِمَهُ اَللَّهُ رقم ۲ لاندې تیر شو.

**څلورم :** حضرت هشیم رَحِمَهُ اَللَّهُ رقم ۱۰/ ورقم۲۲/ ورقم ۲۳ لاندې تیر شو.

**پنځم :** حضرت اسماعیل بن زکریا رَحِمَهُ اَللَّهُ درقم ۱۵ لاندې تیر شو.

**شپږم :** حضرت شعبه رَحِمَهُ اَللَّهُ د نولسم رقم لاندې تیر شو.

**اووم :** محمدبن بن ابی لیلی رَحِمَهُ اَللَّهُ د اولسم لاندې تیر شو.

**اتم :** حضرت اسرائیل رَحِمَهُ اَللَّهُ الجوهر النقی ج۲ص۷۶/عمدة القاری بحواله خلافیات بهیقی).

**نهم :** حضرت حمزة الزیات رَحِمَهُ اَللَّهُ (عمدة القاری بحواله اوسط طبرانی /نیل الفرقدین ص۱۱۳)

**لسم :** حضرت عبدالله بن ادریس رَحِمَهُ اَللَّهُ د ۱۱ نمبر لاندې تیر شو.

دې لسو شاګردانو مکمل متن رانقل کړی دی چې خلاصه یې دوه خبرې دي (۱) - لاسونه ترغوږونو پورې پورته کول. (۲) اوداول تکبیر څخه وروسته نورپه لمانځه کې رفع الیدین نه کول. اوشپږو شاګردانو اختصار کړی دی یعنې مکمل متن یې نه دی رانقل کړی هغه شپږ شاګردان.

**اول :** حضرت علی بن عاصم رَحِمَهُ اَللَّهُ دی (دارقطنی، ج۱ ص۲۹۴)

**دوهم :** حضرت خالدبن عبدالله رَحِمَهُ اَللَّهُ دی. (دارقطنی، ج۱ ص۲۹۴)

**دریم :** حضرت اسباط بن محمد رَحِمَهُ اَللَّهُ دی، د ۲۱ نمبر لاندې تیر شو.

**خلورم :** حضرت جراح رَحِمَهُ اللَّهُ والد حضرت وکیع رَحِمَهُ اللَّهُ دی (کتاب العلل احمج ۱ص ۱۱۷)

**پنځم :** حضرت صالح بن عمر رَحِمَهُ اللَّهُ دی (مسند ابویعلی ،ج ۱ص ۹۵)

**شپږم :** حضرت زهیر رَحِمَهُ اللَّهُ دی (جزء بخاری)

## دمکمل او مختصر متن معنی

دحضرت براء بن عازب ﷺ دحدیث مکمل متن په دوو مسئلو مشتمل دی.

**اول :** په لمانځه کې به لاسونه ترکوم ځای پورې پورته کیږي؟ په دې حدیث کې دي چې ترغوږونو پورې به پورته کولای شي.

**دوهم:** په لمانځه کې به لاسونه څوځلې پورته کولې شي؟ په دې حدیث کې دي چې صرف داول تکبیرپه وخت کې به پورته کولی شي. ددې څخه وروسته به په نورلمونځ کې نه پورته کیږي.

محدثین کله مکمل متن بیانوي، لکه دیزیدبن ابی زیاد لسو شاګردانو چې بیان کړی دی ،اوکله کله دیوې خاصې مسئلې بیانول مقصودوي نوبیامحدثین دحدیث څخه صرف همغه مقصودې مسئله رااخلي اوټول حدیث نه بیانوي. لکه دیزیدبن ابی زیاد ﷺ پاتې شپږوشاګردانو چې اختصارکړی دی.

## دصحیح حدیث په مقابله کې غلطه قصه

زمونږدزماني لامذهبه ملانیاز محمدعرف امین الله پشاوری هم دخپلو کاذبو اکابرو په تقلید کې یوه قصه رانقل کړی ده [الحق الصریح ،ج ۴ص ۹۲ص ۹۳].

ددې حدیث په مقابله کې چې په اعتراض کې کومه افسانه دسفیان بن عیینه په حواله باندې ذکرشوه چې زمااستاذیزیدبن ابی زیادچې کله په مکه مکرمه کې وونودحدیث اوله جمله به یې ذکرکوله او د(لایعود) جمله به یې نه ذکرکوله کومه چې ددوهمې مسئلې سره تعلق لري اوچې کله کوفې ته راغلونودکوفې خلکو مجبورکړوچې په حدیث کې د(لایعود)جمله ورزیاته کړي.

ددې دارمې بنیادپه دې خبره دی چې سفیان بن عیینه رَحِمَهُ اللَّهُ اویزیدبن ابی زیاد رَحِمَهُ اللَّهُ دواړه اول په مکه مکرمه کې اوسیدل اوهلته سفیان رَحِمَهُ اللَّهُ دیزید رَحِمَهُ اللَّهُ څخه داحدیث واوریدلوچې داجمله په

کې نه وه اوبیادواړه کوفی ته راغلل او دلته یې هم ترینه داحدیث واوریدلو چې داجمله په کې وه.حالانکه داخبره دتاریخ له لحاظه بالکل غلطه ده . ځکه چې یزیدبن ابی الزیادپه سنه ۴۷ ۰هـ ) کې په کوفه کې زیږیدلې دی اوپه سنه ۱۳۶ ۰هـ ) کې په کوفه کې وفات شوی دی، په مکه کې دده قیام د تاریخ له لحاظه ثابت نه دی. اوسفیان بن عیینه په سنه ۱۰۷هـ ) کې په کوفه کې زیږیدلی دی او تر سنه ۱۶۳هـ ) پورې په کوفه کې اوسیدلو ددې څخه وروسته مکی مکرمی ته لاړو اوپه سنه ۱۹۸هـ کې په مکه مکرمه کې وفات شو . (معارف السنن ،ج ۲ص ۴۹۱ /ومثله فی نیل الفرقدین ص۱۱۴/ وص۱۱۵].

نومعلومه شوه چې سفیان بن عیینه دیزیدبن ابی زیاددوفات څخه اوه ویشت کاله (۲۷) وروسته مکی مکرمی ته تللی دی، نوداڅرنګه کیدی شي چې سفیان بن عیینه دې داحدیث دیزیدبن ابی زیادڅخه په مکه کې هم اوریدلی وي اوددې څخه وروسته دی یې په کوفه کې هم اوریدلی وي ؟

**فانقیل :** چې داافسانه خوامام بیهقی رحمه الله رانقل کړې ده؟

**قلنا:** امام بیهقی داافسانه دمحمدبن حسین البربهاری او دابراهیم بن بشار الرمادی په واسطه رانقل کړی ده سنن کبری ج۲/ ص۷۷/ مستدرک ج۲/ ص۲۵۸/ نصب الرایة ج۱/ ص۴۷۷/ البنایة ج۲/ ص۲۹۶ اودادواړه ډیرسخت کذابان وو، حافظ ذهبي دبربهاری په باره کې دبرقاني داقول رانقل کړی دی چې داډیرسخت دروغژن وو .

اودرمادی په باره کې خپله امام ذهبي رحمه الله په میزان الاعتدال کې لیکلي دي چې رمادي دسفیان بن عیینه طرفته هغه اقوال منسوب کړي دي چې هغه نه دي ویلي.

په الجوهر النقی ج۲/ ص۷۷ کې ابن الترکماني فرمایي چې: قلت لم یرو هذا المتن بهذه الزیادة غیر ابراهیم البشار قضی حکاه صاحب الایمان عن الحاکم وابن البشار قال فیه النسائي لیس بالقوي وذمه احمد ذمه شدیداً وقال ابن معین لیس بشيء لم یکن یکتب عند سفیان ومارأیت في یده قلماً قط، وکان یملي علی الناس ما لم یقله سفیان.

خلاصه داچې امام سفیان رحمه الله چې کله مکې مکرمې ته لاړونوپه دغه وخت کې دیزیدبن ابی الزیاد رحمه الله دمرګ څخه اوه ویشت کاله تیرشوي وو. ددې افسانی مطابق یزیدبن ابی الزیاددخپل وفات څخه اوه ویشت (۲۷) کاله وروسته دقبرڅخه راایستل شوی دی اوسفیان ته یې داحدیث وراورولی دی.

**فانقيل** : امام ابوداود رحمه الله خوهم دې اعتراض ته اشاره کړې ده.

**قلنـا**: امام ابوداود رحمه الله چې کوم الفاظ ذکر کړي دي په هغې کې دا افسانه صراحةً نده ذکر شوی بلکې دهغې معنی داده چې دا حدیث په دواړو طریقو روایت شوی دی مکمل او مختصر.

## د حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه حدیثونه

**۷۷- اول حدیث** :وبه قال حَدَّثَنَا عَبْدُ الْقُدُّوسِ بْنُ بَكْرِ بْنِ خُنَيْسٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا حَجَّاجٌ، عَنْ عَامِرٍ رحمه الله بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى جَاوَزَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ» (مسند احمد رقم ۱۵۶۶۷ و مسند احمد رقم ۱۶۱۹۷) د حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه څخه روایت دی چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدلو چې کله یې لمونځ شروع کړو نو لاسونه یې اوچت کړل تر دې پورې چې د غوږونو څخه یې واړول. عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه په دې حدیث کې د رفع الیدین مسئله بیانوي او دا نه ده ممکنه چې د رفع الدین مسئله نیمه او ناقصه بیان کړي فلهذا رفع الیدین صرف د تکبیر تحریمه په وخت کې شو او بس، بلکې د عبد الله بن زبیر څخه د رفع الیدین فی الصلوة په باره کې ممانعت روایت شوی دی. وګوره را روان حدیث:

**۷۸- دوهم حدیث** : أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما رَأَى رَجُلًا رَافِعًا يَدَيْهِ يَدْعُو قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهَا قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وسلم لَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ ( رواه الطبرانی ورجاله ثقات ،، المعجم الکبیر للطبرانی ج۱۳ ص۱۰۲ تحفة الاحوذی ج۲ص ۱۲۳ طبع بیروت ) .

عبد الله بن زبیر رضی الله عنه یو سړی ولیدلو حال دا چې لاسونه یې اوچت کړي وو دعا یې کوله مخکې له دې چې له لمانځه څخه فارغه شي، نو کله چې د لمانځه څخه فارغ شو ورته وې فرمایل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به لاسونه نه اوچتول تر دې پورې چې د لمانځه څخه به فارغ شو د دې حدیث ټول راویان ثقه دي (تحفة الاحوذی ج۲ ص ۱۲۳) .

همدا روایت مبارکپوری په لاندې الفاظو باندې بیانوي .

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى الْأَسْلَمِيِّ قَالَ رَأَيْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَرَأَى رَجُلًا رَافِعًا يَدَيْهِ قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهَا قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ، قَالَ رِجَالُهُ ثِقَاتٌ (تحفة الاحوذی لعبد الرحمن المبارکپوری ج۲ ص ۲۲۱ ) .

**۷۹- دريم حديث :** أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ رضي الله عنه رَأٰى رَجُلًا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الصَّلَاةِ عِنْدَ الرُّكُوْعِ وَعِنْدَ رَفْعِ رَأْسِهِ مِنَ الرُّكُوْعِ، فَقَالَ لَهُ: لَا تَفْعَلْ! فَإِنَّ هٰذَا شَيْءٌ فَعَلَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَرَكَهُ.

عبد الله بن زبير رضی الله عنه يو سړی وليدلو چې رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د راجګيدلو په وخت کې يې رفع اليدين کول نو عبد الله ابن زبير رضی الله عنه ورته وفرمايل چې داسې مکوه ځکه داداسې يو شی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم کړي و بيا يې پرېښو دل.

(عمدة القاری ج٥ ص ۳۹۸ و ص ۳۹۹ مکتبه رشيديه کوئټه).

والتعليق الصحيح ج١ ص ٤٧٥ علامه عينی رحمه الله فرمايي چې وَالَّذِيْ يَحْتَجُّ بِهِ الْخَصْمُ مِنَ الرَّفْعِ مَحْمُوْلٌ عَلٰى أَنَّهُ كَانَ فِي ابْتِدَاءِ الْإِسْلَامِ ثُمَّ نُسِخَ. وَالدَّلِيْلُ عَلَيْهِ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ رضي الله عنه رَأٰى رَجُلًا الحديث (عمدة لقاری ج٥ ص ۳۹۸)

## د حضرت وايل بن حجر رضی الله عنه حديثونه

حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه دوه ځلي د رسول الله صلی الله عليه وسلم ملاقات ته راغلی وه کله چې اول ځلې راغلو نو د رکوع او د سجدو د رفع اليدين ذکر يې وکړو او کله چې دوهم ځلي راغلو نو خپله مشاهده يې صرف د اول تکبير سره د رفع اليدين په باره کې بيان کړه او بس.

**۸۰ - اول حديث :** عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «حِيْنَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِيَالَ أُذُنَيْهِ»، قَالَ: ثُمَّ أَتَيْتُهُمْ فَرَأَيْتُهُمْ يَرْفَعُوْنَ أَيْدِيَهُمْ إِلٰى صُدُوْرِهِمْ فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ وَعَلَيْهِمْ بَرَانِسُ وَأَكْسِيَةٌ (ابوداؤد رقم ۷۲۸).

وايل بن حجر رضی الله عنه فرمايي : چې ما نبي عليه السلام وليدلو چې د لمانځه په شروع کې يې لاسونه تر غوږونو پورې اوچت کړل فرمايي چې زه بيا دوهم ځلې راغلم نو ما وليدل چې تر سينو پورې يې لاسونه اوچتول، د لمانځه په شروع کې او دوی کوټونه او شړې اغوستې وې. که وايل بن حجر رضی الله عنه په دوهم ځلې څوک په رفع اليدين کولو باندې ليدلي وای نو ضرور به يې بيان کړي وای لکه څرنګه يې چې اول ځل بيان کړل وايل بن حجر رضی الله عنه هيڅ صحابی هم نه دی مستثنی کړی معلوميږي چې د دوهم ځلې راتللو په وخت کې تمامو صحابه وو رضی الله عنهم بلا استثنا رفع اليدين نه کول ددې واضح دليل څخه ښکاره شوه چې رفع اليدين عند الرکوع منسوخ و.

**۸۱- دوهم حديث :** ويه حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الْجَبَّارِ بْنُ وَائِلٍ، حَدَّثَنِي أَهْلُ بَيْتِي رحمهم الله تعالى، عَنْ أَبِي رضي الله عنه أَنَّهُ حَدَّثَهُمْ، أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيرَةِ» ابوداود رقم ۷۲۵ ناصرالدين البانى ليكي چې دا حديث صحيح دى سنن ابى داود رقم ۶۶۵- ورقم ۷۲۵.

عبدالجبار بن وايل رحمة الله فرمايي چې زما دكور خلكو ماته زما دپلار څخه بيان كړى دى چې ده رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدلو چې داول تكبيرسره يې لاسونه اوچتول حضرت مولنا خليل احمد السهارنپورى ددې حديث په تشريح كې فرمايي چې يرفع يديه مع التكبيرة ،اى التكبيرة الافتتاح .بذل المجهور (ج) ٤ صفحه ٢٩٠.

**۸۲- دريم حديث:** ويه قال حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْمَسْعُودِيِّ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ، حَدَّثَنِي أَهْلُ بَيْتِي رحمهم الله، عَنْ أَبِي رضي الله عنه، «أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيرَةِ، وَيَضَعُ يَمِينَهُ عَلَى يَسَارِهِ فِي الصَّلَاةِ» [مسند احمد رقم ۱۹۰۵۷].

عبدالجبار بن وايل فرمايي چې : زما دكور خلكو ماته زما دپلار څخه بيان كړى دى چې ده رسول الله صلى الله عليه وسلم داول تكبيرسره په رفع اليدين كولو باندې وليدلو! وپه لمانځه كې به يې ښى لاس په چپ لاس باندې كيښودلو.

**۸۳- څلورم حديث:** حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا فِطْرٌ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ رحمهم الله تعالى عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، حَتَّى حَاذَتْ إِبْهَامُهُ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ [مسند احمد رقم ۱۹۰۵۷ نسايي رقم ۸۷۹].

وايل بن حجر رضى الله عنه فرمايي چې : ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدلو چې دلمانځه دشورع كولو په وخت كې به يې لاسونه دومره اوچت كړل چې دغوږونو نرميو سره به يې برابر كړل.

**۸۴- پنځم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْبَخْتَرِيِّ الطَّائِيَّ يُحَدِّثُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْيَحْصُبِيِّ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ الْحَضْرَمِيِّ، «أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَ يُكَبِّرُ إِذَا خَفَضَ، وَإِذَا رَفَعَ، وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ عِنْدَ التَّكْبِيرِ، وَيُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ» [مسند احمد رقم ۱۸۳۷٤ مسند ابى داود الطيالسى رقم ۱۰۲۱].

وايل بن حجر رضي الله عنه فرمايي چې: ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره لمونځ وكړو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به د تيتهدلو او د جيګيدلو سره الله اكبر ويلې، او صرف د تكبير تحريمه سره به يې رفع اليدين كول او ښي او چپ طرف ته به يې سلام ګرزولو.

په دې حديث كې صرف د اول تكبير سره د رفع اليدين ذكر دى او باقي صرف د تكبيراتو ذكر دى په اخر كې حضرت وايل بن حجر رضي الله عنه په كوفه كې اوسيدلو او هم دلته وفات شو او په كوفه كې د ټولو په ترک رفع اليدين باندې اجماع وه، له دې وجې به هيڅوک ثابته نه كړي چې وايل بن حجر رضي الله عنه دې په كوفه كې صرف يو ځلې رفع اليدين عند الركوع كړى وي.

## ۸۵ـ ابراهيم نخعي رحمه الله

يوه ورځ حضرت عمر بن مرة رحمه الله د كوفې په مسجد كې د حضرت وايل بن حجر رضي الله عنه د رفع اليدين والاحديث بيان كړو، نو حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله ورته وفرمايل (مَا أَدْرِي لعلّه لَمْ يَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يصلي إلاّ ذٰلك اليوم فحفظ هذا مِنْهُ، وَلَمْ يَحْفَظْهُ ابْنُ مَسْعُودٍ وَأَصْحَابُهُ مَا سَمِعْتُهُ مِنْ أَحَدٍ مِنْهُمْ، إِنَّمَا كَانُوا يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ فِي بَدْءِ الصَّلَاةِ حِينَ يكبّرون. (موطا امام محمد ص٥٤).

زه نه پوهيږم كيدى شي چې حضرت وايل رضي الله عنه نوي ليدلى رسول الله صلى الله عليه وسلم چې لمونځ يې كولو مګر په دغه ورځ كې او رفع اليدين يې ياد كړل او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه او نورو صحابه وو (چې هميشه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره اوسيدل) په هغوى كې هيچا هم ياد نكړل، ما په دوي كې د هيچا څخه هم د لاسونو پورته كول نه دي اوريدلي.

دوي ټولو به صرف د لمانځه په ابتداء كې لاسونه پورته كول، د دې څخه معلوميږي چې په خير القرون كې هيچا رفع اليدين نه كول رفع اليدين خو لا پريږده صحابه وو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله عنهم ته دا مسئله وراورولي هم نه وه.

**په بل روايت كې داسې دى:** فذكرت ذلک لابراهيم فغضب قال راه هوولم يره ابن مسعود رضي الله عنه ولا أصحابه. (طحاوى ج ١ ص ٣١٢).

يعني چې كله ما د رفع اليدين روايت بيان كړو نو امام ابراهيم سخت په غوصه شو او وى فرمايل چې (عجيبه خبره ده چې وايل بن حجر رضي الله عنه چې صرف يوه نيمه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلى دى) او ده رسول الله صلى الله عليه وسلم په رفع اليدين ليدلى دى او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه او نور صحابه رضي الله عنهم (چې ټول عمر د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره اوسيدل) هغوى رسول الله صلى الله عليه وسلم په رفع اليدين نه دى ليدلې.

حضـرت مغيـرة ﷺ فرمـائي چې يـوه ورځ مـاد وايـل بـن حجـر ﷺ د رفـع اليـدين د كولـو والا حديث
د حضرت ابراهيم نخعي ﷺ په مخ كې بيان كړونو هغه وفرمايل : إِنْ كَانَ وَابِلٌ رَآهُ مَرَّةً يَفْعَلُ ذٰلِكَ ، فَقَدْ رَآهُ عَبْدُ اللهِ ﷺ خَمْسِينَ مَرَّةً ، لَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ (طحاوى ج ۱ص ۳۱٦).

لكه حضـرت وايـل ﷺ يـو ځلې رسـول الله ﷺ پـه رفـع اليـدين ليـدلى دى، نو پـه تحقيق سره حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ پنځوس ځلې ليدلى دى چې رسول الله ﷺ رفع اليدين نه كول . (پنځوس تعبير د تكثير ښخه دى يعنې ډيرې ليدلى دى).

حمادعن ابراهيم انه قال في وايل بن حجر ﷺ اعرابي لـم يصـل مـع النـبي ﷺ صـلوة قبلهافلـ اهواعلم من عبدالله واصحابه حفظ ولم يحفظوا (يعني رفع اليدين).

امام حماد رحمه الله فرمائى چې ابراهيم نخعى رحمه الله فرمائى چې وايـل ابن حجر ﷺ يوبانډه چې صحابى ﷺ دى هغـه ده رسـول الله ﷺ سره يـو نيم ځلې لمـونځ كـړى دى، نو ايـا داد (حاضرباش) صحابه وو ﷺ عبدالله بن مسـعود ﷺ او ده دملګرو (خلفـاء اربعـه وغيره وو) ښخه زيـات لوى عالم وو؟ چې دا رفع اليدين يادكړي دي او هغوى نه دي يادكړي .(مسندامام اعظم ص ۱۱۹).

امـام ابـراهيم نخعـى رحمـه الله تـابعي دى او مرجـع دخلايقـووو ده صـحابه رضـوان الله عليهم هم په لمانځـه كـولـو ليـدلي دي او تـابعين او تبـع تـابعين يـې هـم ليدلي دي، نو دامبـارک دخپلو ستر ګو مشاهده داسې بيانوي چې نه يې څوک په رفع اليدين ليدلى دى او نه يې دچا ښخه اوريدلي دي .

كلـه يـې چې ديـو كس ښخـه وا وريدلـه نوډيريـه غوصـه شـوا و دايې دعملي تواتر ښخه بالكل خلاف وګڼله ګويا چې د رفع اليدين روايت داسې دى لكه شاذ قرائت په مقابل د متواتر قرائت كې .

## دحضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه حديثونه

**۸٦ـ اول حديث:** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَيُّوبَ الْمُخَرِّمِيُّ، وَسَعْدَانُ بْنُ نَصْرٍ، وَشُعَيْبُ بْنُ عَمْرٍو فِي آخَرِينَ قَالُوا: ثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا» وَقَالَ بَعْضُهُمْ: حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَا يَرْفَعُهُمَا، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: وَلَا يَرْفَعُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ، وَالْمَعْنَى وَاحِدٌ. [مسند ابى عوانـة رقـم الحـديث ۱۵۷۲ دارالمعرفـه بيروت لبنان] بيان رفع اليدين فى افتتاح الصلوة قبل التكبير بحذاء منكبيـه وللركـوع ولـر فـع رأسـه من الركوع وأنه لا يرفع بين السجدتين.

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمايي چې: ما رسول الله صلی الله علیه وسلم وليدلو چې کله به لمونځ شروع کړونو لاسونه يې اوچت کړل او فرمايلي دي بعضو چې تر اوګورپوري يې اوچت کړل، او چې کله يې د رکوع اراده وکړه او د رکوع څخه يې سر را اوچتولو نو رفع اليدين يې ونه کړل او بعضو ويلي دي چې د سجدو په مابين کې يې هم لاسونه نه اوچتول د (والمعنى واحد) مطلب دادی چې په رکوع او بين السجدتين دواړو ځايونو کې راويانو د ترک درفع اليدين روايت کړی دی.

**۸۷۔ دوهم حديث:** وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنِ الشَّافِعِيِّ، عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ رحمهم الله تعالى، بِنَحْوِهٖ: وَلَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ. [مسندابی عوانه رقم الحديث ۱۵۷۳ دارالمعرفه بيروت]. ترجمه يې د مخکيني حديث په شان ده.

**۸۸۔ دريم حديث:** وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُودَاوُدَ قَالَ: ثَنَا عَلِيٌّ قَالَ: ثَنَا سُفْيَانُ، ثَنَا الزُّهْرِيُّ، أَخْبَرَنِي سَالِمٌ رحمهم الله تعالى، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهٖ. [مسندابی عوانه رقم الحديث ۱۵۷۴ دارالمعرفه بيروت].

**۸۹۔ څلورم حديث:** وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنَا الصَّائِغُ بِمَكَّةَ قَالَ: ثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ: ثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ: أَخْبَرَنِي سَالِمٌ رحمهم الله تعالى، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. [مسندابی عوانه رقم الحديث ۱۵۷۵ دارالمعرفه بيروت].

ددې څلورو واړو احاديثو ترجمې يو شان دی، امام ابوعوانه رحمه الله ددې حديث ترمرکزي راوي سفيان بن عينيه رحمه الله پورې څلور سندونه ذکر کړي دي، څلورم سند د استاذ البخاري رحمه الله حميدي رحمه الله دی دا حديثونه په ترک درفع اليدين کې صحيح دي او د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه د عمل سره موافق دي، ځکه چې حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه به رفع اليدين نه کول. [مصنف ابن ابی شيبه رقم ۲۴۶۷ طحاوی رقم ۱۳۲۳ موطا امام محمد رقم ۱۰۸].

نو کوم حديث چې د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه د عمل سره موافق دی لامذهبان يې نه مني او په کوم حديث چې خپله د عبد الله بن عمر رضی الله عنه عمل نشته هغه مني.

## دصحيح ابی عوانه د حديث په باره کښې د وسوسو دفع

(۱) : لامذهبه زبيرعلی زئی ليکي چې: امام ابوعوانه ددې حديث لپاره درفع اليدين باب لګولی دی نو دانه شي کيدلی چې باب درفع اليدين وي او روايت دترک درفع اليدين وي. [نور العينين صفحه ۸۲۸].

**جواب** : دباب عنوان داسې دی چې : رفع اليدين فى افتتاح الصلوة قبل التكبير بحذاء منكبيه، وللركوع ولرفع راسه من الركوع ،وانه لا يرفع بين السجدتين .

نو په دې باب کښې څلور اجزاء يعنې څلور دعوې دي.

**اول** : دتکبير الافتتاح په وخت کښې داوګو پورې دلاسونو پورته کول.

**دوهم** : درکوع په وخت کښې رفع اليدين.

**دريم** : مخکښې رفع اليدين کول او وروسته تکبير کول.

**څلورم** : په سجدو کښې درفع اليدين نه کول.

ددې څلورو دعوو داثبات لپاره امام ابوعوانه ډير احاديث ذکر کړي دي، داول حديث څخه ددوه دعوې ثابيتيږي اول رفع اليدين داوګو برابر کول .دوهم: په سجدو کښې درفع اليدين نه کول.

باقي دريمه دعوه پکښې په دې اول حديث کښې بالکل ذکر شوی نه ده او ددوهمې دعوې ضد پکښې ذکر شوی دی چې ترک د رفع اليدين دی، په دې ځای باندې د غير مقلدينو دا اعتراض دی لکن دا اعتراض د تعصب او د قلت فهمی نتيجه ده، ځکه چې ددې ډير مثالونه شته، مثلا اما ابو عوانه رحمه الله ددې عنوان پسې متصل بل عنوان لګولی دی (ذکر الاخبار المتضادة للباب الذى قبله فى رفع اليدين الخ) . يعنې په دې باب کښې هغه احاديث دي چې د مخکينې باب سره متضاد دي، حالانکه په دې باب کښې ټول روايات د مخکينې باب د رواياتو سره متضاد نه دي، بلکې بالکل ورسره موافق دي مثلاً دابو قلابه روايت رقم ۱۵۸۶ په دې حديث کښې د مخکينيو څلورو اجزاء و څخه صرف په يو جزء کښې مخالفت دی يعنې په دې کښې راغلي دي چې اول به تکبيروي او وروسته به رفع اليدين وي نو صرف د دريم جزء مخالف په کښې ذکر شوی دی داول جزء مخالف يا موافق په کښې نه دی ذکر شوی.

دځلورم جزء مخالف یاموافق هم په کې نه دی ذکرشوی اودوهم جزء موافق په کې ذکرشوی دی،
نو اوس که يو جاهل مرکب راشي او ووايي چې: دلته عنوان لګیدلی چې دمخکيني باب ضد به ذکرکوي
او په دې کې موافق جزءذکرشوی دی نودا به دده دکم علمی نتیجه وي .

همدا رنګه په ترمذی کې باب لګيدلی دی په نوم دباب (ماجاء فی وضع اليدين قبل الركبتين فی
السجود). [ترمذی مع تحفه الاحوذی (ج) ۱ صفحه ۲۲۸].

اولاندې په حدیث کې راغلي دي (وضع الركبتين قبل اليدين) همدا رنګه په مصنف ابن ابی شیبه
کې باب لګیدلی دی په نوم د (رفع اليدين بين السجدتين) اولاندې په اول حديث دعبدالله بن عمر
رضی الله کې نفی درفع اليدين بين السجدتين ده.

**دوهمه وسوسه:** زبيرعلی زئی ليکي چې دمسند ابی عوانه موجوده نسخه ديوبنديانو شايع کړې
ده، په اصل نسخه کې واوشته چې یاغورزیدلی دی اویا یې غورزه ولی دی، نورې ټولې نسخې ددې
ديوبندي نسخې نقل دی اصل صحيح نسخه داسې ده چې (وبعد مايرفع راسه من الركوع ولا يرفعهما،
وقال بعضهم ولا يرفع بين السجدتين. والمعنی واحد). [نور العينين صفحه ۸۰].

**جواب:** دلامذهبو مناظر اعظم سيد بديع الدين سندهی دابو عوانه دغې نسخې ته صحيح ويلي دي
په کومې کې چې داسې عبارت دی چې : واذا اراد ان يركع ، وبعد مايرفع راسه من الركوع لا يرفعهما ،
وقال بعضهم : ولا يرفع بين السجدتين والمعنی واحد.

همدا رنګه دار المعرفة بيروت لبنان الطبعة الاولى سنه ۱۴۱۹هـ. څخه چې کومه نسخه د ايمن بن
عارف الدمشقی د تحقيق سره شايع شوي ده په هغې کې هم همداسې عبارت دی .

همدا رنګه په الاعتصام هفت روزه ۲ محرم ۱۴۰۳هـ ۳ جولائی ۱۹۹۲ء ص ۲۱کې چې غير مقلد محمد
ايوب اثري حيدر ابادي سندي کومه قلمي نسخه پيش کړي ده په هغې کې هم همداسې عبارت دی .

**دريمه وسوسه :** لا مذهبه زبير علی زئی ليکي چې ددې زمانې څخه مخکينيو احنافو ددې حديث
څخه استدلال نه و کړی ځکه چې په هغه وخت کې دا حديث جوړ شوی نه وو نو ځرنګه به يې پيش کړی
وای (نور العينين ص ۸۱ ) .

**ځواب :** چې څومره فتنې زياتيږي دومره استدلالات او جوابات زياتيږي، د لا مذهبيت د پيداوار نيچريت، چکړالويت او دمرزائيت په خلاف چې کوم استدلالات کيږي دا يو هم اسلافو نه وو کړي، هم دا رنګه موږ وايو چې اوس خو احناف د ترک د رفع اليدين دپاره د بخاري او د مسلم د رواياتو څخه هم استدلالات کوي نو ايا دا روايات هم اوس چا د ځان څخه جوړ کړي دي ؟ .

**څلورمه وسوسه :** لا مذهبه زبير علی زئی ليکي چې بعضو کم عقلو خلکو د (لا يرفعهما) لفظ د مخکې (رکـوع ) سره لګولی دی نورالعين ص ۸۰ همدا رنګه ليکي چې د (ولا يرفـع) لفظ او د (لا يرفعهما ) لفظ د سجدو سره تعلق لري ( نور العينين ص ۲۸۲ ) .

غير مقلد ارشاد الحق اثري ليکي چې ددې حديث په اخر کې د (والمعـنى واحـد )لفظ راغلی دی يعنې لفظونه مختلف دي او معنی يوه ده نو معنی به هلته يوه شي چې د (لا يرفـع ) او د( لا يرفعهما) لفظ د سجدو سره متعلق شي ( مسئله رفع اليدين ص ۲۱ )

**ځواب:** د علم نحو څخه د دومره غفلت او دعناد تصور د غير مقلدينو څخه کيدی شي، په اصل کې بعضې راويانو حديث په دې ځای باندې تمام کړی دی چې (واذا اراد ان ركع ، وبعد مايرفع راسـه من الركوع لا يرفعهما ) مخکې يې څه نه دي بيان کړي نو چې مخکې يې څه نه دي بيان کړي نو څرنګه به ورسره متعلق شي .

او بعضې راويانو مخکې يوه بله جمله هم ذکر کړي ده (ولا يرفع بين السجدتين ) او دا ځاتته حکم دی نو په (وقال بعضهم )کې چې کوم اختلاف ته اشاره شوي ده هغه دا اختلاف شو، چې بعضې د رفع اليدين بين السجدتين نوم نه اخلي او بعضې يې ذکر کوي .

او د (والمعنى واحد ) ترجمه دا ده چې په رکوع او په بين السجدتين دواړو ځايونو کې راويانو ترک د رفع اليدين روايت کړی دی که بعضې راويان يوازې ترک د رفع اليدين عند الركوع روايت کوي نو هم هيڅ حرج نشته ځکه چې دوي هم ترک د رفع اليدين بين السجدتين مني او که د رکوع په وخت کې رفع اليدين وي او د سجدو په وخت کې ترک د رفع اليدين وي ، نو بيا به معنی څرنګه يوه شي ؟ د رفع اليدين د کولو او د نه کولو معنی څنګه يو کيدای شي ؟ .

لا مذهبانو ! د ( لا يرفعهما ) څخه وروسته واو راغلی دی او د معطوف او د معطوف عليه په مينځ کې تغير وي، همدا رنګه وروسته قال راغلی او د قال مقوله وروسته راځي مخکې نه وي تيره شوي .

**پنځمه وسوسه :** زبير علي زئی ليکي چې امام بهيقی په معرفة السنن ج۱ ص ۲۱۴ کې د امام شافعي روايت راوړی دی، په هغه کې د رفع اليدين ذکر دی ابو عوانة چې دا روايت ذکر کوي نو د ( بنحوه ) په لفظ ترينه تعبير کوي نو که د ابو عوانة په مخکې روايت کې ترک د رفع اليدين وي او په وروسته د الشافعی عن ابن عيينه په روايت کې رفع اليدين وي نو بيا د (بنحوه ) د لفظ څه معنی ده ؟ ( نورالعيينن ص ۸۰ ) .

**ځواب :** ابو عوانه اول د ترک د رفع اليدين روايت راوړی دی وروسته يې يو روايت د (بنحوه ) په لفظ او دوه نور روايتونه د (مثله ) او د ( بمثله ) په لفظ باندې راوړي دي نو امام ابو عوانه ولې په يو حديث کې د (بنحوه ) لفظ راوړي او په نورو روايتونو کې د ( مثله ) او د (بمثله ) لفظ راوړي ؟ نو ځواب دادی چې د محدثينو د اصولو مطابق د (بنحوه ) لفظ هلته ذکر کولی شي چې د وروستني روايت الفاظ د مخکيني روايت د الفاظو څخه مختلف وي او د (مثله ) او د ( بمثله ) لفظ په هغه ځای کې ذکر کولای شي، چې د وروستني روايت الفاظ د مخکيني روايت د الفاظو څخه مختلف نه وي . ( تدريب الراوی للعلامه السيوطی ج۲ ص ۱۲۰ المکتبه العلميه ) نو ددې قاعدې موافق امام ابو عوانه اول د ترک د رفع اليدين روايت راوړو بيا يې د الشافعی عن ابن عيينه د روايت څخه تعبير په (بنحوه ) باندې وکړو ځکه چې دده د روايت الفاظ بعينه د مخکيني روايت الفاظ نه دي او وروسته يې د دوو روايتونو څخه تعبير په (مثله) او په (بمثله ) باندې وکړو ځکه چې ددې دواړو حديثونو الفاظ بعينه د ترک د رفع اليدين د حديث الفاظ دي .

**۹۰- پنځم حديث:** ويه قال حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ: ثنا الزُّهْرِيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ رحمهم الله تعالیٰ، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ، وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَلَا يَرْفَعُ وَلَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ» [مسند حميدي (ج)۲ صفحه ۲۷۷ حديث نمبر ٦١٤ مطبوعه بيروت لبنان].

حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه فرمايي چې: ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدلو چې كله يې لمونځ شروع كړونو تراوګوپورې يې لاسونه اوچت كړل، او چې كله يې د ركوع اراده وكړه او د ركوع څخه يې سر راپورته كولو نو رفع اليدين يې ونه كړل او د دواړو سجدو په مابين كې يې هم نه كول.

مستخرج صحيح ابى عوانه په هغو كتابونو كې دى د كوموچې ټول احاديث صحيح دي- دا كتاب په صحيح مسلم باندې تخريج دى.

په صحيح البخارى او په مسلم كې بعضې حديثونه داسې دي چې په الفاظو كې يې كمې او زياتې دى او بعضې الفاظ په كې نه دي ذكر شوي، د كوم په وجه چې د حديث مطلب پوره نه واضح كيږي، ددې مخرجينو حضراتو مقصد دادى چې دا محذوفات ذكر كړي تر څو چې د حديث مقصد واضح شي.

او د امام بخاري رحمه الله د استاذ حميدي رحمه الله په مسند كې ذكر شوى حديث هم د سند په اعتبار ډير اعلى او قوي دى.

په دې حديث كې دوه شرطونه دي، اول (اذا افتتح الصلوة) دوهم (واذا اراد ان يركع وبعد مايرفع راسه من الركوع) د اول شرط لپاره جزاء ټولو محدثينو په اتفاق سره (يرفعهما) اويا (رفع يديه) ذكر كړې ده.

او د دوهم شرط په جزاء كې محدثين درې ډلې شوي دي اوله ډله: په دې حديث كې د سفيان دوه ديرش شاګردان دي چې هغوى ورسره جزاء نه ده ذكر كړې په ابوداود رقم ٧٢١ كې روايت داسې دى چې:

عَنْ سَالِمٍ رحمه الله، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ - وَقَالَ سُفْيَانُ رحمه الله مَرَّةً: وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ وَأَكْثَرُ مَا كَانَ يَقُولُ: وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ - وَلَا يَرْفَعُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ".

نو دا محذوفه جزاء چا (رفع يديه) را ايستلې ده چا (يرفع يديه) بيان كړې ده چې دا دوهمه ډله شوه او امام ابوعوانه رحمة الله عليه او امام حميدي رحمهم الله عليه (لايرفعهما) بيان كړې ده چې دا دريمه ډله شوه راجح دا ده چې د سفيان بن عينيه رحمة الله عليه بالذات شاګرد امام حميدي رحمهم الله عليه چې په مكه كې ناست و او كومه جزاء (لايرفعهما) يې ذكر كړې ده دا راجحه ده.

دمسند حميدي دحديث اول داوړه راويان دمکې مکرمې محدثين وو او وروستني درې واړه راويان دمدينې منورې محدثين وو او په خير القرون کې په مدينه منوره کې رفع اليدين چانه پيژندل.

د مدينې منورې امام، امام مالک رحمه الله فرمائي : لَاأَعْرِفُ رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِى شَىْءٍ مِنْ تَكْبِيرِ الصَّلَاةِ لَافِى خَفْضٍ وَلَافِى رَفْعٍ اِلَّافِى اِفْتِتَاحِ الصَّلَاةِ. (المدونة الكبرى، ج ۱ ص ۷۱).

يعنې زه داول تکبير څخه وروسته دلمانځه په هيڅ کوم ټيټيدلو او جګيدلو کې رفع اليدين بالکل نه پيژنم.

ددې څخه معلوميږي چې دتابعينو او دتبع تابعينو په زمانه کې د مدينې منورې اوسيدونکو رفع اليدين نه کول او نه پاکې روضې مبارکې ته زاتلونکو مسلمانانو کول، کنه دمدينې منورې امام به ضرور پيژندلي وو، نو ددې حديث دوروستنيو درې واړو مدني راويانو عمل ددې حديث موافق ترک درفع اليدين وو په مکه مکرمه کې هم چارفع اليدين نه پيژندل لکه څرنګه چې ميمون مکى رحمه الله په مکه مکرمه کې يوه ورځ عبدالله بن زبير رضى الله عنهما په رفع اليدين وليدلو نو تعجب يې وکړو او عبدالله بن عباس رضي الله عنه ته يې وويل چې ما خونن عبدالله بن زبير رضى الله عنهما پداسې نوي او نااشنا لمونځ وليدلو چې ددې څخه مخکې مې هيڅوک وربانډې نه وو ليدلي (ابوداود ج ۱ ص ۱۱۵) نو داولو دواړو مکي راويانو عمل هم دهمدې حديث موافق ترک درفع اليدين وو. نو دا حديث مسلسل بالعمل هم شو.

## دمسند حميدي دروايت په باره کې دلامذهبانو وسوسې او دهغې جوابونه

**اوله وسوسه:** لامذهبه زبيرعلى زئى ليکي چې دمسند حميدي نسخه مولنا حبيب الرحمن اعظمى ديوبندي شايع کړې ده دا ديوبنديه هندوستانيه نسخه ده، نور العينين صفحه ۶۸ په دې نسخه کې داعبارت محرف او مصحف دى. [نور العينين صفحه ۷۵].

**جواب :** د ديوبند نسخه دخانقاه سراجيه کنديان ضلع ميانوالي دقلمي نسخې سره بالکل موافقه ده همدارنګه دموسى زئى شريف دنسخې سره هم موافقه ده يوه بله نسخه چې دغيرمقلدينو ده نسخه ظاهريه دمشقيه په هغې کې تحريف شوى دى، غيرمقلد بديع الدين السندى ليکي چې : كان البخارى اذا وجد الحديث عنده (الحميدى) لايخرجه الى غيره منَ الثقة كما فى التهذيب/ج٥ صفحه ٢١٦ جلاء العينين صفحه ٢٨ همدارنګه غيرمقلد مبارکپوري ليکي چې: كان البخارى اذا وجد الحديث عند الحميدى

لا يعدوه الى غيره كذا فى التقريب. [تحفة الاحـوذى (ج) ۳ صـفحه ۲٦۹] يعنې چې امام بخاري رحمة الله عليه ته به په يوه موضوع کې د حميدي رحمه الله روايت ملاويدلو نو صرف د همده څخه به يې رانقل کولو اوس که په مسند حميدي کې ورته دعبدالله بن عمر رضى الله عنه په حديث کې د (رفع يديه) روايت ملاو شوی وی نو ضرور به يې ذکر کړی وی حالانکه په صحيح بخاری کې درفع اليدين په موضوع د حميدي روايت نه رانقلوي، معلوميږي دا چې په دې موضوع کې يې دده روايت نه دی پيدا کړی.

**دوهمه وسوسه** :لامذهبه زبيرعلي زئی ليکي چې په دې روايت کې د دې حديث د مرکزي راوي سفيان بن عينيه رحمة الله عليه څخه ترک درفع اليدين روايت شوی دی حالانکه د سفيان بن عينيه رحمة الله عليه څخه درکوع رفع اليدين هم په صحيح سند باندې ثابت دي .[نورالعينين صفحه ۷۶]. او په يو ځای کې ليکي چې د سفيان بن عينيه رحمة الله څخه رفع اليدين په تواتر باندې ثابت دی . [نورالعينين صفحه ۲۸۴].

**جواب** : چې دلاوراست دزدی که بکف چراغ دارد

سفيان بن عينيه رحمة الله عليه څخه ترک درفع اليدين او رفع اليدين دواړه ثابت دي، له دې وجې نه به ده کله رفع اليدين کول او کله به يې ترک درفع اليدين کولو ، امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چې: وكان ابن عينيه رحمة الله عليه ربما فعله وربما لم يفعله . تمهيدلا بن عبـدالبر(ج) ۹ صـفحه ۲۲٦]. نو د سفيان بن عيينه څخه د ترک روايت بالکل صحيح دی .

**دريمه وسوسه** : لامذهبه زبيرعلی زئی ليکي چې: زمونږ د زمانې څخه مخکې هيڅ کوم حنفي دا روايت د ځان لپاره په دليل کې نه دی پيش کړی، نورالعينين صفحه ۲۸۴.

**جواب** : کله چې فتنه تيزه شي نو دهغې د دفع کولو لپاره د زياتو جوابونو او دلائلو ضرورت پيښيږي – د مرزايت فتنه ،د چکړالويت فتنه ، و دنيچريت فتنه دا ټول دلامذهبو اهل حديثو څخه راوتلي دي د دوي په مقابله کې چې کوم دلائل پيش کولی شي دومره دلائل اسلافو نه وو پيش کړي .

**۲ جواب** : ايا دانګريزانو د زمانې څخه مخکې کوم لامذهبه دا حديث د ځان لپاره په دليل کې پيش کړی دی؟ که پيش کړی يې وي نو مهرباني وکړه حواله راکړه .

**خلورمه وسوسه :** زبيرعلی زئی ليکي چې : ددې تحقيق ثخه وروسته راته دالمستخرج لابی نعيم الاصبهانی (ج)۲ صفحه ۱۲ دکتلو موقـع پـه لاس راغلـه هلتـه هم دمسند حميدي دسند سره اثبات درفع اليدين ملا وشو نفي په کې نشته. نورالعينين صفحه ۷۶.

**جـواب : ۱-** لعنة الله على الكذبين ) همدې لامذهبه دنورالعينين اول چاپ پـه اخرکې ددې فوټوکاپي لګولي ده په هغې کې دحميدي روايت د محمدبن ادريس الشافعی رحمة الله عليه ثخه دی. دابن عينيه رحمة الله ثخه نه دی...!

۲ - همدا رنګه ددې په سندکې ابوطاهر عبدالغفار بن محمدبن جعفردی حافظ ابن حجر رحمة الله خطيب بغدادی رحمه الله او محدث صوری رحمه الله پرې اعتراض کړی دی.

لسان الميزان (ج) ۴ صفحه ۴۳ نورراويان يې هم دتحقيق قابل دي چې معلوم دی او که مجهول.

**پنځمـه وسوسـه :** زبيرعلی زئی ليکي چې : مسند حميدي دعبدالله بن عمررضی الله عنه هغه روايت هم ذکرکړی دی چې درفع اليدين نه کوونکي به يې په کاڼو باندې ويشتلو.

نورالعينين صفحه ۷۴.

**جـواب:** محـديثين هـم هررنګـه روايتونـه رانقلـوي مخـالف وي اوکـه موافـق، همدارنګـه ددې اثرتحقيق دلامذهبانو ددلائلو لاندې را روان دي چې ددې روايت مدار په ولیدين مسلم باندې دی چې مختلط الحديث او ضعيف راوي دی.

**۹۱ - شپږم حديث :** قَالَ ابْنُ وَهْبٍ وَابْنُ الْقَاسِمِ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِيهِ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ التَّكْبِيرَ لِلصَّلَاةِ» ( المدونـة الكـبرى ج۱ ص ٦٩ مطبوعه مصر المدونة الكبرى ج۱ ص ١٦٥ طبع دار الكتـب العلميـه بـيروت سـنه ١٤٢٦هـج)

حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به د لمانځه په شروع کې لاسونه تر اوګو پورې اوچتول.

**فانقيل :** په دې حديث کې خو يـوائې د تکبير تحريمه د رفع اليدين ذکر راغلی دی، د نورو نفی اخو پکې نشته؟

**قلنــا :** مشـهور قـانون دی چې تقديم دماحقه التاخير حصر راولي، په دې حديث کې (كان يرفع يديه) جمله جزاء ده چې مقدمه ذکرشوې ده اود (اذا افتتح التكبير) جمله شرط دی چې مؤخره ذکرشوی ده، نو حصر په کې راغلو اوحصر (مايوجد فيه ولايوجد فى غيره) ته وايي، نومعنى يې داشوه چې صرف دتکبيرتحريمه سره رفع اليدين دی داشو (مايوجد فيه) اونورنشته داشو (لايوجد فى غيره).

(۲)مشـهورمحدث امام عبـدالرحمن بن قاسم رحمه الله دا حديث دترک درفع اليدين عندالرکوع لپاره په دليل کې پيش کړی دی.

حافظ ابن عبدالبر المالکی رحمة الله ليکي چې : وَاخْتَلَفَ الْعُلَمَآءُ فِىْ رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِى الصَّلٰوةِ فَرَوَى ابْنُ الْقَاسِمِ وَغَيْرُهُ عَنْ مَالِكٍ اَنَّهٗ كَانَ رَفْعُ الْيَدَيْنِ فِى الصَّلٰوةِ ضَعِيْفًا اِلَّا فِىْ تَكْبِيْرَةِ الْاِحْرَامِ وَحْدَهَا وَتَعَلَّقَ بِهٰذِهِ الرِّوَايَةِ عَنْ مَالِكٍ رحمه الله اَكْثَرُ الْمَالِكِيِّيْنَ(. التمهيد(ج) ۹ صفحه ۲۱۲].

يعنې په لمانځه کې درفع اليدين په باره کې دعلماوو اختلاف دی، ابن القاسم رحمة الله دامام مالک رحمة الله څخه روايت کوي چې په لمانځه کې رفع اليدين ضعيفه دي سوی دتکبيرتحريمه درفع اليدين څخه اکثره مالکيانو ددې حديث څخه استدلال کړی دی.

همدارنګه په المدونة الکبری (ج) ۱صفحه ۶۸ کې دي چې :وَقَالَ مَالِكٌ رحمه الله: لَا أَعْرِفُ رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِى شَىْءٍ مِنْ تَكْبِيْرِ الصَّلَاةِ لَا فِى خَفْضٍ وَلَا فِى رَفْعٍ اِلَّا فِى افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، قَالَ ابْنُ الْقَاسِمِ: وَكَانَ رَفْعُ الْيَدَيْنِ عِنْدَ مَالِكٍ رحمه الله ضَعِيْفًا اِلَّا فِى تَكْبِيْرَةِ الْاِحْرَامِ.

امام مالک رحمه الله فرمايي چې زه دتکبيرتحريمه څخ بغيرنورپه تيټيدلو او جګيدلو کې رفع اليدينونه نه پيژنم، ابـن القاسم رحمه الله فرمـايي چې دامـام مالـک رحمه الله پـه نيزدتکبيرتحريمه څخه بغيرنوررفع اليدينونه ضعيف وو.

**۹۲ـ اووم حديث:** عَنْ سَالِمٍ رحمه الله عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ ـ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ. خلافيات للبيهقى ، نصب الراية (ج)۱ صفحه ۴۷۹ موضوعات کبير صفحه ۵۹۴ الاسرارالمرفوعة صفحه ۳۵۶]. يعنې نبي عليه السلام به صرف دلمانځه دشروع کولو په وخت کې رفع اليدين کولو بيابه يې دوهم ځل نه کولو.

ددې حديث سند اصح الاسانيد دی، اول راوي يې عبدالله بن عـون الخـراز رحمه الله دامام مالک رحمه الله شاګرددی اوثقه دی، تهذيب التهذيب (ج)۵ صفحه ۳۴۹ تقريب التهذيب صفحه ۱۸۶ باقي

راويان مالک رحمه الله ،زهری رحمه الله ، سالم رحمه الله او عبد الله بن عمر رضی الله عنه دبخاری راویان دي اوپه بخاري (ج) ۱ صفحه ۱۰۲ کې په همدې ترتيب ذکرشوي دي .

امام زيلعي رحمة الله دسند اولـه حصه نه ده ذکر کړې، نوکه ضعيفه وي ضرور به يې ذکر کړې وی، محدث المکة حضرت ملاعلی ن القاری دا روايت صحيح گڼلی دی او په موضوعات کبير کې يې داسې فرمايلي دي چې : وَحَدِيثٌ أَوْرَدَهُ الْبَيْهَقِيُّ رحمه الله فِي الْخِلَافِيَّاتِ مِنْ رِوَايَةِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَوْفٍ الْخَرَّازِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ... ثُمَّ لَا يَعُودُ، قُلْتُ وَقَدْ صَحَّ عَنْهُ خِلَافُ ذَلِكَ فَيُحْمَلُ عَلَى نَسْخِ الْأَوَّلِ- موضوعات کبير مع تذکرة الموضوعات صفحه ۱۵۷. يعنې دعبد الله بن عمر رضی الله عنه دا حديث دهغو احاديثو لپاره ناسخ دی کوم چې دعبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه درفع اليدين په باره کې روايت شوی دی .صاحب دتعليق الصبيح ج ۱ صـ ۴۷۴ کې فرمايي چې : قلت تضعيف الحديث لايثبت بمجرد الحکم وانما يثبت ببيان وجوه الطعن وحديث ابن عمر رجاله رجال الصحيح فما اری له ضعفا.... فهذا الحديث صحيح.

**فانقيل:** چې امام ابو عبد الله الحاکم رحمه الله فرمايلي دي چې : دا حديث باطل او موضوع دی - نور العينين صفحه ۸۳ لزبير علی زئی.

**قلنا:** دمدينې منورې محدث الشيخ محمد عابد السند هی رحمه الله فرمايي چې : زه (عابد سندهی) وايم چې تش په دعوی دموضوعيت او بطلان باندې حديث موضوعي او باطل نه گرزي، ترڅو چې دباطلوالي او موضوع والي دليل يې نه وي پيش کړی - ددې حديث رجال دصحيحينو رجال دي [الامام ابن ماجه وکتابه السنن مع حاشيه صفحه ۲۵۲ ومثله معارف السنن (ج)۲ صفحه ۲۹۸].

بعضو ورته له دې وجې موضوع او مقلوب ويلي دي چې دعبد الله بن عمر رضی الله عنه په بعضې احاديثو کې اثبات درفع اليدين دی، نو دنفي والا به خامخا موضوع او مقلوب وي، لکن دا توجيه ځکه غلطه ده چې بيا به مونږ ووايو چې : په دې حديث کې ترک درفع اليدين دی نو په کوموا حاديثو کې چې ددې په خلاف رفع اليدين دی هغه موضوع او مقلو دي، نو ايا دا فيصله به هم صحيح وي او که نه ؟

خپله دعبد الله ابن عمر رضی الله عنه عمل ددې حدیث موافق ترک درفع اليدين وو(عَنْ مُجَاهِدٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَلَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ.
[طحاوی رقم ۱۳۲۳مؤطا امام محمدرقم۱۰۸ مصنف ابن ابی شیبه رقم ۲٤٦۷].

امام مجاهد رحمة الله فرمايي چې : مادعبد الله ابن عمر رضی الله عنه په اقتداء کې لمونځ کړی دی نو هغه به صرف دتکبیرتحریمه په وخت کې رفع اليدين کول .

**فانقيل** :چې علامه ناصر الدين الباني ليکلي دي چې ددې دباطلوالي اوموضوعوالي لپاره وجه شته چې شذوذ دی . [سلسة الاحاديث الضعيفية والموضوعة (ج)۲صفحه ۳٤٦].

**قلنا** :اول خودشذوذ دعوه غلطه ده -دوهم داچې شذوذ عندالسيوطی رحمه الله وابن حجررحمه الله دصحت سره منافي نه دی پاتي خولاداچې موضوعيت اوبطلان لره مستلزم شي په صحيحينو کې دشاذ حديث لپاره ډير مثالونه شته .

(۱)مثلاً دحضرت جابررضی الله عنه داوښ قصه، په يو روايت کې راځي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ترينه په يوه اوقيه باندې واخيستلو (فاشتراه منى باوقية) بخاري (ج) ۱صفحه ۲۸۲ بعضې راويانو دوه سوه درهم ذکرکړي دي اوبعضو څلور اوقې ذکر کړي دي اوبعضو شل ديناره ذکرکړي دي بخاري (ج)۱صفحه ۱۷۵ اوبعضو څلورديناره ذکرکړي دي بخاري (ج) ۱صفحه ۳۰۹ اوپه بعضو رواياتو کې راغلي دي چې حضرت جابر رضی الله عنه درکوب شرط هم په کې لګولی وو چې زه به دمدينې منورې پورې پرې ځم بخاري (ج)صفحه ۳۷۵ اوپه بعضو کې راځی چې داشرط يې نه و لګولی -امام بخاري ديوې اوقې والا حديث ته راجح وايي همدارنګه هغه روايت ته راجح وايي چې درکوب شرط ذکرکوي، باقي دواړه قسمه روايات ذکرکوي، دا ددې دليل دی چې مخالفت اوشذوذ عدم صحت دحديث لره مستلزم نه دی .

(۲)امام مسلم د (مالک عن الزهری عن عروة عن عائشه رضی الله عنها ) له طريقه دسهار ددوو رکعتونو څخه مخکې دسول الله صلى الله عليه وسلم خوب رانقل کوي حالانکه دزهری په شاګردانو کې عام اصحاب لکه - معمر رحمه الله ، يونس رحمه الله ، عمروبن الحارث، اوزاعی رحمه الله ، ابن ابی ذئب رحمه الله اوشعيب رحمه الله وغيره داخوب دسنتو څخه وروسته ذکرکوي جمهورمحدثين ددې حضراتو

ایتونوته راجح وایي، ددې باوجود محدثین دواړه قسمه روایات ذکر کوي. ددې څخه علاوه نورهم
مثالونه دي چې په (الامام ابن ماجه وکتابه السنن صفحه ۲۹۹ تا صفحه ۳۰۱ پورې یې کتلی شئ.

(۳)علامه سخاوی رحمة الله فرمایي چې: صحیح اوشاذ سره جمع کیږي داسې ویلي شي چې
صحیح وشاذ - فتح المغیث (ج) ۱ صفحه ۱۸.

(۴)دفقهاوو په نظر کې هم دحدیث دصحت لپاره عدم شذوذ نه دی شرط، اقتراح صفحه ۱۸۶ په
دې باره کې دشبیراحمد العثماني رحمة الله کلام دکتلو قابل دی. فتح الملهم مقدمه صفحه ۱۳۲ تا
صفحه ۱۴۰.

**فانقیل:** چې بیادا داصح او دصحیح مقابله شوه نو عمل بیاهم په اصح په کار دی.

**قلنا:** حافظ ابن حجر رحمة الله فرمایي چې: اصح والی معمول به والي لره نه دی مستلزم، لکه
منسوخ حدیث چې داصح والي باوجود معمول به نه وي.

**فانقیل:** چې علامه ناصرالدین الباني لیکلي دي چې په دې حدیث کې غلطي محمدبن غالب
تمّام کړې ده کوم چې داحمد بن محمد البرتی څخه روایت کوي. سلسلة الاحادیث الضعیفیه الخ (ج)۲
صفحه ۳۴۶.

**قلنا:** چې صرف داعتراض په وجه سړی نه علامه کیږي، دمحمد بن غالب په باره کې خطیب
بغدادی رحمه الله علیه فرمایي چې: کان کثیرالحدیث صدوقاً حافظا) تاریخ بغداد(ج) ۳ صفحه
۱٤٤ امام دارقطني رحمه الله فرمایي چې: واما لزوم تمتام کتابه وتثبته فلاینکر ولاینکرطلبه وحرصه
علی الکتابة) دتفصیل لپاره اوګوره میزان الاعتدال (ج) ۳ صفحه ٦٨١ لسان المیزان (ج) ٥ صفحه
۳۳۷ تاریخ بغداد(ج)۳ صفحه ١٤٤.

**فان قیل:** چې دحضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت کوونکی دده ځوی حضرت
سالم رحمه الله دی او دحضرت سالم رحمه الله عمل ددې حدیث په خلاف باندې درفع الیدین کول وو.

**قلنا:** دمسند احمد رقم الحدیث ۵۰۳۴ کې راځي چې حضرت سالم رحمه الله علیه په رفع الیدین
کولو باندې اعتراض اوکړو ددې څخه معلومیږي چې حضرت سالم رحمه الله رفع الیدین نه کول، حضرت

سالم رحمه الله يوه ورځ خپل پلار حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه په رفع اليدين عند الركوع باندې ولیدلو ، نو دی فرمايي چې: ماترينه ددې په باره کې پوښتنه وکړه هغه راته وفرمايل چې ما رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په داسې کولو باندې ليدلی و.

دارفع اليدين ربيع بصري ،ليث كوفي . طاوس يمني ،سالم مدني ،ابوزبير مكي، محارب بن دثار كوفي اونافع مدني رحمهم الله ليدلی وو. ( جزء رفع اليدين للبخاری ص ۱۷ ) اوظاهره ده چې كوفي، مكي، مدني، بصري، اويمني، دحج په موسم کې سره جمع کيږي .

بهرحال دحج په موسم کې دغه (اوو ۷)کسانو حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په رفع اليدين کولو وليدلو نو دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما خپل ځوی سالم رحمه الله اود کوفې قاضي محارب بن دثار رحمه الله، ترينه سوال وکړو چې ماهـذايا ابن عمـر؟ (مسند احمد رقم ۵۰۳۴) يعنې داڅه شی دی ؟يا ابن عمره ! ددوی دا سوال په دې دلالت کوي چې درکوع رفع اليدين ددوي په مينځ کې يو نابلده شی وو.

مثلاً په اودس کې که يو سړی مخ اولاسونه اوپښې ومينځي اوپه سر مسحه وکړي نو هيڅوک سوال نه کوي چې داڅه شی دی ؟ ځکه دا اعمال نااشنا اونابلده نه دي . اوكه يو سړی په اودس کې ددې سره خپله ږيره هم ومينځي نو هر سړی ورباندې سوال کوي چې داڅه شی دی ؟ ځکه دږيرې مينځل په اودس کې يو نااشنا اونابلده کار دی . نو همدارنګه دکوفې قاضي اودده خپل ځوی حضرت سالم رضی الله عنهما ته دا کار ډير نابلده کار ښکاره شو او سوال يې وکړو چې داڅه شی دی ؟ ددې نه صفا معلوميږي چې په خير القرون کې رفع اليدين بالكل رواج نه وو . اوداسې مثال يې لرلو لکه شاذ قرائت چې د تلاوت رواج ورباندې نه شته.

که څوک دمتواتر قرائت په مقابل کې په شاذ قرائت باندې تلاوت وکړي نو اوريدونکي سمدستي اعتراض کوي چې ماهذا ؟ داڅه شی دی ؟

خلاصه دا چې په خير القرون کې ترک درفع اليدين عملا متواتر وو اورفع اليدين كول عملا يو شاذ كار وو. دده دځوی حضرت سالم رحمه الله دا اعتراض څخه معلوميږي چې ده رفع اليدين نه کول اونه دمدينې منورې نورو خلکو کول کنه ده ته به دا کار نااشنا اونابلده نه ښکاريدو او سوال به يې نه کولو اوددې سوال څخه دا هم معلوميږي چې خپله دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما عادت هم ترک درفع

اليدين (درفع اليدين نه كول) وو ځکه که دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما عادت رفع اليدين كول وي، نو خامخا به يې ځوی ته داعادت معلوم وو او نا بلده به ورته نه ښكاريدو.

حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما يو بل ځلې هم رفع اليدين كړی وو چې حضرت جابر ﷺ زرنه سوال كړی وو فرمائی (فسالت عن ذلک [طحاوی ،ج ۱ ص ۱۵۳]. ددې څخه معلوميږي چې دصحابه وو ﷺ تابعينو رحمهم الله او تبع تابعينو په زمانو كې درفع اليدين پوزيشن داسې وو لكه دمتواتر قرائت په مقابل كې چې دشاذ قرائت كوم پوزيشن دی.

(۲) كه بالفرض حضرت سالم رحمه الله رفع اليدين كړی وي، نو هم اعتراض صحيح نه دی، ځكه چې كيدی شي چې رفع اليدين دده په نيز صرف اولیٰ او بهتروي، نو ددې څخه خود ترک درفع اليدين ناجائزوالی نه لازميږي.

امام رامهر مزنی رحمه الله په خپل كتاب په المحدث الفاصل بين الراوی والواعی صفحه ۳۲۳ و صفحه ۳۲۴ كې فر مايي چې: وَلَيْسَ يَلْزَمُ الْمُفْتِيَ أَنْ يُفْتِيَ بِجَمِيعِ مَا رَوٰى وَلَا يَلْزَمُهُ أَيْضًا أَنْ يَتْرُكَ رِوَايَةً مَا لَا يُفْتِي بِهِ.

**فانقيل**: چې كه امام مالک رحمه الله ته دترک درفع اليدين حديث معلوم وی نو ولې يې په خپل كتاب مؤطا كې نه ذكر كولو دا اعتراض هم البانی په سلسة الاحاديث الضعيفه (ج) ۲ صفحه ۳۴۶ كې ذكر كړی دی.

**قلنا**: په مؤطا كې دامام مالک دنه ذكر كولو څخه دانه لازميږي چې ده ته معلوم نه وو و داسې ډير حديثو نه دي چې په كتب متداوله وو كې دامام مالک رحمة الله څخه روايت شوی دی او په مؤطا كې نشته، بلكې ركوع ته دتللو او دركوع څخه دراجگيدلو په وخت كې رفع اليدين هم په مؤطا كې نشته.

داپه ياد لرئ مؤطا دامام مالک رحمه الله مذهب نه دی بلكې دامام مالک مذهب دامام مالک رحمه الله هغه فتوی ده چې ابن القاسم رحمه الله دامام مالک رحمه الله څخه روايت كړی دی، برابره خبره ده چې دمؤطا سره موافقې وي او كه دمؤطا څخه مخالفې وي، حافظ ابن حجر رحمة الله فرمايي چې: المعتبر عند المالكية رواية ابن القاسم، وافقت رواية المؤطا او خالفت تعجيل المنفعة صفحه ۱۸.

**۹۳۔ اتم حديث: چې دنسخې درفع اليدين لپاره صريح دى:** وَبِهٖ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: قَالَ لِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ يَحْيٰى حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ سَوَادَةَ بْنِ عِبَادٍ، عَنْ حَفْصِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ رحمهم الله تعالى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ نَرْفَعُ اَيْدِيَنَا فِيْ بَدْءِ الصَّلٰوةِ وَفِيْ دَاخِلِ الصَّلٰوةِ عِنْدَ الرُّكُوْعِ -فَلَمَّا هَاجَرَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ الْمُنَوَّرَةِ تَرَكَ رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِيْ دَاخِلِ الصَّلٰوةِ عِنْدَ الرُّكُوْعِ وَثَبَتَ عَلٰى رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِيْ بَدْءِ الصَّلٰوةِ توفى اخبار الفقهاء والمحدثين صفحه ۲۱۴ رقم ۳۷۸ و اسناده صحيح، دحضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه څخه روايت دى مونږ به درسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مکه مکرمه کې دتکبير تحريمه اورکوع ته دتللو او درکوع څخه دراجيګيدلو په وخت کې رفع اليدين کول، کله چې نبى عليه السلام مدينې منورې ته تشريف راوړو نو درکوع رفع اليدين يې پريښودل او دتکبير په رفع اليدين باندې ثابت پاتې شو.

**فائده:** پـه دې صحيح حديث کې دمکې اودمدينې په عمل باندې تصريح ده، يعنې رفع اليدين دمکې څخه شروع وو او ترهغه وخته پورې جاري وه څو مره چې دالله جل جلالـه اراده وه، بيا په مدينه منوره کې په اخرو ورځو کې متروک او منسوخ شول او دتکبير تحريمه رفع اليدين په خپل حال باندې پاتې شول.

## د اخبار الفقهاء والمحدثين دحديث دسند تحقيق

(۱) امام ابوعبدالله محمد بن حارث قيرواني المالكي المتوفى ۳۶۱ هجري: دالوى امام اومحدث وو او امامانو ورتـه ذالحافظ، ابوعبدالله الخشنى، القـيرواني، المغربي، الحـافظ نزيـل قرطبـه، الحـافظ، الامام، صاحب التواليف من اهل العلم والفضل، فقيه محدث — وكان حافظاً عالماً بالفتيا، حسن القياس، ولى الشورى، الحافظ القيرواني وصنف فى الفقه والتاريخ وغيرهـا القاب ورکوي دا راوي با لاجماع ثقه دى (تذكرة الحفاظ ج۳ ص ۱۳۸ وص ۱۳۹ .العبر ج۱ ص۳۵۹ ،سير اعلام النبلاء ج۱۰ ص ۴۲۹ ،جذوة المقتبس ص ۴۷ ،بغيـه المقتـبس ص۶۱، تـاريخ علمـاء الانـدلس ص۳۸۳ وص ۳۸۴، الديباج للسـمعانى ج۵ ص۱۳۰، ترتيـب المـدارک ج۴ ص ۵۱۳، معجـم الادبـاء ج۸ ص۱۱۱/ طقات الحفاظ للسيوطى ص۳۹۸).

۲-الامام عثمان بن محمد القبرى رحمه الله المتوفى سنـــه ۳۲۰ هـ.

دا هم مشهور امام دی، محدثینو دده توثیق کړی دی. (عثمان بن محمد من اهل قبره.... ممن عنى بطلب العلم ودرس المسايل وعقد الوثايق مع فضله وكان مفتى اهل موضعه ،من اهل قبره، كان معتنيا بالعلم حافظا للمسايل، عاقداً للشروط، مفتى اهل موضعه). [اخبار الفقهاء والمحدثين للقروانى ص ۲۱۶ بغية الملتمس ص ۳۵۹، تاريخ علماء الاندلس لابن الفرضى ص۲٤۳، جذوة المقتبس للحميدى ص۲۷۰).

۳-امام عبيد الله بن يحى القرطبى المتوفى (۲۹۸ھ). الفقيه، الامام، المعمر، القرطبى ، مسند قرطبه ... وكان كبير القدر وافرالجلالة، وكان كريما، عاقلاً، عظيم الجاه والمال، ماضى الشورى، منفرداً برئساسة البلاء غير مدافع ، فقيه قرطبه، و مسند الاندلس، و كان ذا حرمة عظيمة و جلالة وكان عقلاً وقوراً وافرالحرمة عظيم الجاه.... تام المرؤة ، عزيز النفس، عزيز المعروف وكان محمد بن ابراهيم بن حيون ثنى عليه ويوثقه) دا هم بالاجماع ثقه دی. [سير اعلام النبلاء ج۹ ص ۲۹٤ ، العبر ج۱ ص ۲۷۱ ، اخبار الفقهاء والمحدثين للقيروانى ص۱۷۰ الى ص ۱۷۳ ، جذوة المقتبس للحميدى ص ۲۳۷ ، تاريخ علماء الاندلس لابن الفرضى ص ۲۰٦ ، تاريخ الاسلام للذهبى ج ۲۲ ص ۲۰۰، بغية الملتمس للضبى ص ۳۵۵، الوفيات ص۱۹۷ ، شذرات الذهب ج۲ ص ۲۳۱].

۴-امام عثمان بن سوادة القرطبى المتوفى تقريباً سنــه ۲۳۵ھ ( ثقة مقبول عند القضاة والحكام و كان من اهل الخير والفضل، وكان من اهل الزهد والعبادة و كثرة التلاوة). [اخبار الفقهاء والمحدثين ص ۲۱٤ ، تاريخ علماء اندلس ص ۲٤۲ ].

۵-امام حفص بن ميسره الصنعانى المتوفى سنــه ۱۸۱ھ. داد بخاری او د مسلم راوي دی، دا بالاجماع ثقه دی. [ العبر ج۱ ص ۲۱٦ ، تهذيب التهذيب ج۱ ص ۵۷۰ ].

۶-امام زيد بن اسلم المدنى المتوفى سنــه ۱۳۶ھ. دا هم د بخاري او د مسلم راوي دی دده ته محدثينو لاندې القاب ورکړي دي ( الحافظ ، الفقيه ، المدنى ، و كان من العلماء الابرار ، ثقة من اهل الفقه ، والعلم ، وكان عالماً بتفسير القرآن، و كان كثير الحديث [ تذكرة الحفاظ ج۱ ص ۹۹ وص۱۰۰ العبر ج ۱ ص ۱٤۱ ، تهذيب التهذيب ج ۲ ص ۲۳۱وص ۲۳۲ ].

۷-حضرت عبد الله بـن عمـر رضـی الله عنـه المتـوفی سنـــه ۷۴هـ . دا خـو جليـل القدر مشـهور صحابي دی [ تذكرة الحفاظ ج١ص ٣١ ، تهذيب التهذيب ج ٣ ص ٢١٣ ] خلاصه دا چې دا حديث د سند په اعتبار سره بالكل بې غباره دی .

## په دې حديث باندې دلامذهبو د اعتراضونو ځخه جوابونه

١-زبير على زئی اعتراض کوي چې ددې کتاب سند نه دی ذکر شوی [ نور العينين ص ٢٠٥ ] .

**ځواب :** حاصل د ځواب دادی چې د مشهور امام ،مشهور کتاب د سند ضرورت نلري، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: لان الكتاب المشهور الغنی بشهرته عن اعتبار الاسـناد منـا الی مصـنفه [ النكت علی كتاب ابن الصلاح لابن حجر ص ٥٦ ] .

٢-زبير على زئی ليکي چې ددې کتاب په اخر کې داسې دي چې (تم الكتـاب فی شعبان عام ۴۸۳ هجری) او ددې کتاب مصنف محمد بن حارث القيروانی په سنه ۳۶۱ هجري کې وفـات شـوی دی نو ددې کتـاب تکميـل دده د مصـنف د وفـات ځخـه ۱۲۲ کالـه وروسـته شـوی دی، لهـذا دانـه ده ثابتـه چې ددې ليکونکی ځوک دی .[ نور العينين صفحه ۲۰۶]

**اول جواب :** ۴۸۳ هجري په حقيقت کې د کمپوز غلطي ده، چې د ۳ هندسه يې ديو طرف ځخه بل طرف ته وړی ده، په اصل کې ۳۴۸ هجري ده يعنې (تم الكتـاب فی شعبـان مـن عـام ۳۴۸ هجری) د کاتب داسې غلطيانې متواترې دي .

**دوهم جواب :** ددې کتـاب تکميـل خو پـه ۳۴۸ هجري کې د مصنف د وفـات ځخـه ۱۳ کاله مخکې شوی دی ممکنه ده چې دا بياض کوم کاتب په ۴۸۳ هجري کې پـه ترتيبي شـکل باندې مکمل کړی وي، مثلاً : امام حبان المتوفی ۳۵۴ هجري د صحيح ابن حبان تصنيف کړی و و لکن دده د وفات ځخه ۳۲۱ کاله وروسته ابن بلبان رحمة الله المولـود ۶۷۵ هجري المتـوفی ۷۳۹ هجري دې بياض ته ترتيب ورکړ او ددې نوم يې الاحسان بترتيب صحيح ابن حبان کيښودلو . همدارنګـه امـام طحـاوی رحمة الله المتوفی ۳۲۱ هجـري مشـکل الاثـار وليکلـو او اوس اوس دې بيـاض تـه ترتيبـی شـکل د وکتور ابو الحسـن خالـد

محمود ورکړو اونوم يې ورته کېښودلو. [تحفة الاخيار بترتيب شرح مشكل الاثار] او ترننه پورې هيڅ کوم محقق عالم ددې دواړو کتابونو د نسبت څخه خپلو مصنيفينو ته انکار نه دی کړی.

**دريم ځواب :** امام بخاری رحمة الله المتوفی ۲۵۶ هجري دصحيح البخاري تصنيف وکړو، بيا دا کتاب امام محمد بن يوسف الفربری المتوفی ۳۲۰ هجري وغيره مرتب کړو، لکن دا موجوده صورت کوم کاتب ليکلی دی؟ کله يې ليکلی دی؟ ددې معلومات نشته.

۳.زبيرعلی زئی ليکي چې ددې حديث راوي عثمان بن محمد معلوم نه دی، بعضو بې دليله دده څخه عثمان بن محمد بن احمد بن مدرک جوړ کړی دی او د ابن مدرک سره د مصنف د ملاقات ثبوت نشته. [نورالعينين صفحه ۲۰۶]

**ځواب :** چې عثمان بن محمد هم دغه عثمان بن محمد بن احمد بن مدرک المتوفی ۳۲۰ هجری من اهل قبره دی اوګوره [اخبار الفقهاء للقيروانی صفحه ۹۷ وصفحه ۱۲۲ وصفحه ۱۰۳ او لقاء او سماع يې هم ثابته ده اوګوره اخبار الفقهاء صفحه ۹۰]

۴. زبيرعلی زئی ليکي چې : حافظ ذهبی رحمه الله ليکلي دي چې : (عثمان بن محمد بن خشيش القيروانی، عن ابن غانم قاضی افريقه اظنه كان كذابا) – المغنی فی الضعفاء نو ده عثمان بن محمد قيروانی ته کذاب ويلی دی. [نورالعينين صفحه ۲۰۶]

**جواب :** عثمان بن محمد بن خشيش جدا سړی دی او عثمان بن محمد بن احمد بن مدرک جدا سړی دی صرف د قروانيت له وجې ددواړو څخه يو جوړول حماقت دی.

۵-زبيرعلی زئی ليکي چې : دعثمان بن محمد بن احمد بن مدرک ثقاهت معلوم نه دی .[نورالعينين صفحه ۲۰۶]

**جواب :** دکوم امام مدحه چې محدثين وکړي دادده توثيق او تعديل وي او دده د مدحې په باره کې حوالې مخکې دسند په تحقيق کې وليکل شوې.

۶-زبيرعلی زئی ليکي چې : دعثمان بن سوادة بن عباد حالات يو اځنې دا خبا الفقهاء والمحدثين په نوم کتاب کې ذکر شوي دي، په بل کتاب کې يې څرک نه لګيږي. [نورالعينين صفحه ۲۰۷]

**اول جواب**: دامام عثمان بن سوادة بن عباد القرطبی حالات داخبار الفقهاء والمحدثین څخه علاوه په تاریخ علماء الاندلس لابن الفرضی صفحه ۲۴۲\رقم ۲۳۵۱\ طبع بیروت مع التوثیق موجود دی دیو راوي دوفات دنیټې دنه معلوموالي نه وجې هغه مجهول الحال نه ګرزي دبخاري اودمسلم بې شمیره راویان داسې دي چې دپیدائښت اودوفات نیټه یې نه ده معلومه ده.

**دوهم جواب**: مذکور راوي یقیني صدوق اوثقه او معلوم الحال دی، ځکه چې دده مدحه امام الجرح والتعدیل المحدث، الناقد، خالدبن سعد المتوفی ۳۵۲ هجري، اوامام محمد بن الحارث المتوفی ۳٦۱ هجري اوالامام الحافظ، المحدث الناقدابن الفرضی المتوفی ٤۰۳ هجري، اوالامام الحافظ والمحدث الناقدحمیدي المتوفی ۳۸۸ هجري او امام عبیدالله بن یحیي المتوفی ۲۹۸ هجري صراحة کړې ده وګوره: اخبار الفقهاء صفحه ۲۱٤ وتاریخ علماء الاندلس صفحه۲٤۲ وغیرهما.

لامذهبان دې په دې راوي باندې یوه مفسره جرحه پیش کړې او دانګریزانو ددورې څخه په کوم مخکیني کتاب دې حواله ورکړې.

۷-زبیرعلی زئی لیکي چې: دعثمان بن سوادة ملاقات دحفص بن میسرة سره نه دی ثابت، دحفص وفات په ۱۸۱هجري کې شوی دی. [نور العینین صفحه ۲۰۷]

**جواب**: عثمان بن سوادة دامام عبیدالله بن یحیی القرطبی المتوفی ۲۹۸ هجري استاذ دی اودامام حفص المتوفی ۱۸۱ هجري شاګرد دی دامام عثمان وفات تقریباً په ۱۳۵ هجري کې شوی دی اودا معاصرت دامکان دلقاء لپاره کافي دی اوامام مسلم رحمة الله فرمایي چې: معاصرت اوامکان دلقاء دحدیث داتصال لپاره کافي دی اوداد جمهورو مذهب دی [مقدمه مسلم صفحه ۲۱\].

۸-زبیرعلی زئی لیکي چې: په کتابونو کې دمحمد بن حارث ددې کتاب اخبار الفقهاء والمحدثین نوم نه ملاویږي بلکې داخبار القضاء والمحدثین په نوم کتاب کې ملاویږي. [نور العینین صفحه ۲۰۷]

**جواب**: ډیرو اسلافو ددې کتاب ذکر کړی دی: (۱) امام ابو محمد بن حزم الاندلسی القرطبی المتوفی ٤۵٦هجري جذوة المقتبس للحمیدي صفحه ٤۷. (۲) امام ابوعمرابن عبدالبر الاندلسی القرطبی المتوفی ٤٦۳ هجري بغیة الملتمس صفحه ۳۵۹. (۳) امام ابومحمدالحمیدي الاندلسي المتوفی

٤٨٨ هجري جذوة المقتبس صفحه ٤٧. (٤) الامام الحافظ المحدث احمد بن يحيى الضبي المتوفى ٥٩٩ هجري بغية الملتمس في تاريخ رجال اهل الاندلس صفحه ٦١].

دابن ماكولا رحمه الله المتوفى ۴۷۶ هجري اودامام ابو سعد السمعاني رحمه الله المتوفى ۵۶۲ هجري عدم ذكر نفي لره نه دى مستلزم وعلامه عمر رضا حالة كحالهما او علامه خير الدين الزركلي چې ددې كتاب كوم ذكر كړى دى نو بالكل يې صحيح كړى دى وګوره : معجم المؤلفين ج/۳/صفحه ۲۰۴/ والاعلام ج/ ۶ / ۷۵]:

(۹)زبيرعلى زئى ليكي چې داحديث غريب دى اودا شاذ روايت ضعيف دى [نور العينين/صفحه/ ۲۰۸].

**اول جواب** :كله چې ددې حديث راويان ثقه شونو بيا صحت والى دغريب والي منافي نه دى ځكه چې غرابت دضعف وجه نه وي مثلاً : (قَالَ الْإِمَامُ الْحَاكِمُ رحمه الله: فَنَوْعٌ مِّنْهُ غَرَائِبُ الصَّحِيحِ، مِثَالُ مَا رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي الْجَامِعِ الصَّحِيحِ، عَنْ خَلَّادِ بْنِ يَحْيَى الْمَكِّيِّ، عَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ بْنِ أَيْمَنَ رحمهم الله تعالى، فَهَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ وَقَدْ تَفَرَّدَ بِهِ عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ أَيْمَنَ، عَنْ أَبِيهِ، وَهُوَ مِنْ غَرَائِبِ الصَّحِيحِ). معرفة علوم الحديث صفحه / ٩٤].

قال الحاكم رحمه الله رواه مسلم في المسند الصحيح عن ابى بكر بن ابى شيبه وغيره، عن سفيان وهو غريب الصحيح. ايضاً صفحه/١٩٥ وعلامه سيوطي رحمه الله فرمايي چې : دبخاري اول او اخر حديث هم غريب دى. [تدريب الراوى ج/ ٢/ صفحه ١٦٤/وص/١٦٥]

**دوهم ځواب** : د شاذ حديث دوه تعريفه دي اول : قَالَ الْحَاكِمُ رحمه الله فَأَمَّا الشَّاذُّ فَإِنَّهُ حَدِيثٌ يَتَفَرَّدُ بِهِ ثِقَةٌ مِنَ الثِّقَاتِ، وَلَيْسَ لِلْحَدِيثِ أَصْلٌ مُتَابِعٌ لِذَلِكَ الثِّقَةِ، يعني چې ثقه راوي وربانديې متفرد وي أو متابع ونه لري معرفة علوم الحديث [ص١١٩ تدريب الراوى ج١ /ص ١٩۴ وص ١٩۵].

او ددې حديث متابع موجود دي، لهذا د شاذ دا تعريف په دې حديث باندې نه دى صادق. دوهم : قَالَ لِيَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله: «لَيْسَ الشَّاذُّ مِنَ الْحَدِيثِ أَنْ يَرْوِيَ الثِّقَةُ مَا لَا يَرْوِيهِ غَيْرُهُ، هَذَا لَيْسَ بِشَاذٍّ، إِنَّمَا الشَّاذُّ أَنْ يَرْوِيَ الثِّقَةُ حَدِيثًا يُخَالِفُ فِيهِ النَّاسَ، هَذَا الشَّاذُّ مِنَ الْحَدِيثِ» يعني چې ثقه راوي په كې د نورو ثقاتو څخه مخالفت وكړي [معرفة علوم الحديث ص ١١٩ / تدريب الراوى ج١ / ص ١٩۴] او په دې حديث كې د ثقاتو څخه مخالفت نشته لهذا دا په يو معنى باندې هم شاذ نه دى.

۱۰-زبير علي زئی ليکي چې د دې حديث متن غلط دی، ځکه چې په دې حديث کې راغلي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مدينې منورې ته د راتللو څخه وروسته د رکوع رفع اليدين پرېښودل، حالانکې په صحيح احاديثو کې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په مدينه منوره کې هم رفع اليدين کړي دي، بيا يې د مالک بن حويرث رضى الله عنه او د وايل بن حجر رضى الله عنه حديثونه ليکلي دي او ليکلي يې دي چې وايل بن حجر يو ځل په ۹ هـ او بيا په ۱۰ هـ کې مدينې منورې ته راغلی دی او د رفع اليدين د مشاهدې ذکر يې کړی دی [نور العينين ص ۲۰۹].

**اول ځواب** : امام احمد بن حنبل رحمه الله يوه قاعده ذکر کړې ده چې : اَلْحَدِيثُ إِذَا لَمْ تَجْمَعْ طُرُقَهُ لَمْ تَفْهَمْهُ وَالْحَدِيثُ يُفَسِّرُ بَعْضُهُ بَعْضًا [الجامع الاخلاق الراوی للخطيب ج۲ ص ۲۱۲] لهذا د عبد الله بن عمر رضى الله عنه د حديث طرق به را جمع کړو چې خبره واضحه شي مثلاً:

۱ - عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ مَرْفُوعًا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ [مصنف ابن ابی شيبه ج۱ ص ۲٦٦].

۲ - وَعَنْهُ مَرْفُوعًا كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ وَرُكُوعٍ وَسُجُودٍ وَقِيَامٍ وَقُعُودٍ (وَ) بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ [مشكل الاثار للطحاوی ج۱ ص ٤٦، بيان الوهم والايهام لابن القطان ج٥ ص٦١٣].

۳ - وَعَنْهُ مَرْفُوعًا إِذَا رَكَعَ وَإِذَا سَجَدَ [جزء رفع اليدين ص ٤٨].

٤ - وَعَنْهُ مَرْفُوعًا كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي كُلِّ تَكْبِيرٍ [فتح المغيث للسخاوی ج۲ ص ۳۲۳].

يعني عبد الله ابن عمر رضى الله عنهما د رسول الله صلى الله عليه وسلم مدنی عمل رفع اليدين عند الرکوع، و عند السجود، و عند کل تکبير، بيان کړی دی او دده دا بيان د مالک بن حويرث رضى الله عنه او د وايل بن حجر رضى الله عنه د بيان سره بالکل موافق دی ځکه چې هغوی دواړو هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم مدنی عمل رفع اليدين عند الرکوع و عند السجود ذکر کړی دی.

۱ - عَنْ مَالِكِ بْنِ حُوَيْرِثٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مَرْفُوعًا وَإِذَا سَجَدَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ [المجتبی نسائی ج۱ ص ۱٦٥ سنده صحيح، سنن الکبری للنسائی ج ۱ ص ۲۲۸ سنده صحيح، مسند احمد ج۳ ص ۵۳۳ سنده صحيح].

۲ - وَعَنه مرفوعًا وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ كُلَّهُ يَعْنِي رَفْعَ يَدَيْهِ. [المجتبی نسائی ج۱ ص ۱۷۱ سنده صحيح، السنن الکبری نسائی ج ۱ص ۲۲٤ سنده صحيح، محلی ابن حزم ج٤ ص ۱۲۷ وص ۱۲۸ وقال صحيح].

۳ – وَعَنْهُ مَرْفُوعًا كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِيَالَ فُرُوعِ أُذُنَيْهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ [ مسند احمد ج۵ ص ٦٦ ، صحيح ابی عوانه ج۲ ص ۹۵] .

٤ – عَنْ وَآئِلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَرْفُوعًا وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ أَيْضًا رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ [ ابوداؤد ج۱ ص ۱۱۲ وسنده صحيح ، معجم الكبير للطبرانی ج۲۲ ص ۲۸ سنده صحيح ، تمهيد ج۹ ص ۲۲۷ ، المحلی لابن حزم ج٤ ص ۱۲٦ وقال صحيح ] .

۵ – وَعَنْهُ مَرْفُوعًا كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا رَكَعَ وَإِذَا سَجَدَ [ جزء رفع اليدين ص ٤۵ ، سنن دار قطنی ج۱ ص ۳۹٤ سنده صحيح ] .

٦ – وَعَنْهُ مَرْفُوعًا وَحِيْنَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَقَالَ حِيْنَ سَجَدَ هٰكَذَا [ صحيح ابن خزيمه ج۱ ص ۳٤٦ ، سنن طحاوی ج۱ ص ۱٤٤ ] لكن سيدنا مالک بن حويرث رضی الله عنه سنه ۹ هـ کې د بنو ليث د وفد سره مدينې منورې ته راغلی وو او د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره شل شپې پاتې شوی وو [ بخاری ج۱ ص ۸۸ ] او عبد الله ابن عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم تر وفاته پورې د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وو او د وفات څخه وروسته هم په مدينه منوره کې اوسيدلو نو د عبد الله بن عمر رضی الله عنه د ترک د رفع اليدين عند الركوع مشاهده د دې حضراتو د تللو څخه وروستنۍ ده نو علي زئي ساحب ته موږ وايو چې تاسو چې د سجدو د رفع اليدين له پاره کوم ځواب کوئ هماغه ځواب موږ د رکوع د رفع اليدين څخه کوو همدا رنګه وايل بن حجر رضی الله عنه د اول ځلې سنه ۹ هـ د راتللو په وخت کې د سجدو د رفع اليدين مشاهده ذکر کړې ده، لکن چې کله په سنه ۱۰ هـ کې بيا راغلو نو بيايې خپله مشاهده يواځې د تکبيرې تحريمه سره د رفع اليدين په باره کې بيان کړه [ ابوداؤد ج۱ ص ۱۱۲ سنده صحيح ، شرح السنة للبغوی ج۳ ص ۲۷ ، معجم الكبير ج۲۲ ص ۳۹ ] .

بيا حضرت وايل رضی الله عنه خپل وطن ته لاړو دده رضی الله عنه د تللو څخه وروسته تقريباً اتيا يا نوي ورځې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژوندی وو او ددې اخري ورځو مشاهده په دې حديث کې عبد الله ابن عمر رضی الله عنه او عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه ، حضرت علي رضی الله عنه ، حضرت براء بن عازب رضی الله عنه وغيره صحابه وو ترک د رفع اليدين عند الركوع و عند السجود بيان کړ ده.

۱۱-زبير علي زئی ليکي چې حضرت ابو هريره رضی الله عنه متاخر الاسلام صحابي دی او دده څخه هم د رفع اليدين روايت شوی دی [صحيح ابن خزيمه ج۱ ص ۳۴۴ سنده صحيح ، نور العينين ص ۲۰۹].

**اول ځواب** : د صحيح ابن خزيمه يو راوي ابن شهاب زهری مدلس دی او په دې حديث کې يې په عن ابی بکر سره روايت کړی دی او خپله علی زئی د زهري عنعنه نه مني، مثلاً په يو ځای کې ليکي چې د دې روايت سند د زهري د تدليس د وجې ضعيف دی [نور العينين ص ۱۱۸] په بل ځای کې ليکي چې زما په نزد د زهری د تدليس په وجه ضعيف دی [نور العينين ص ۲۷۱] په بل ځای کې ليکي چې امام زهري مدلس دی لهذا زما په تحقيق کې دا حديث ضعيف دی [نور العينين ص ۳۳۲ ]. نو چې دده د تصريح مطابق په بل ځای کې ضعيف ورته وايي او په دې ځای کې ورته حسن وايي دا تعصب نه دی نو څه دي ؟

**دويم ځواب** : په دې روايت کې د ( واذا سجد ) الفاظ هم شته وګوره [ ابو داؤد ج۱ ص ۳۴۴ ] (فما هوا جوبک فهو جوابنا).

**دريم ځواب** : د حضرت ابی هريره رضی الله عنه په صحيح روايتونو کې ترک د رفع اليدين دی دلته صرف يو روايت واوره ! (وَبِهٖ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، أَخْبَرَنِي نُعَيْمٌ الْمُجْمِرُ وَأَبُوجَعْفَرٍ الْقَارِءُ، أَنَّ أَبَاهُرَيْرَةَ: كان يصلي بهم، فكبّر كلما خفض ورفع، قَالَ أَبُوجَعْفَرٍ: وَكَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِينَ يكبِّرُ وَيَفْتَتِحُ الصَّلاةَ [موطا محمد رقم ١٠٤ - كتاب الاثار للامام محمد رقم ۷۵ ، كتاب الاثار لابی يوسف رقم ۱۰۸ ] حضرت ابو هريره رضی الله عنه به د هر ټيټيدلو او جګيدلو سره الله اکبر ويلو او رفع اليدين به يې د لمانځه په شروع کې د تکبير تحريمه په وخت کې کول.

۱۲-زبير علی زئي ليکلي چې: ابو هريره رضی الله عنه به د رسول الله صلی الله عليه وسلم د وفات څخه وروسته هم رفع اليدين کول [ جزر رفع اليدين ص ۲۲ ، نور العينين ص ۲۱۰ ].

**ځواب** : ددې په سند کې يو راوي دی سليمان بن حرب چې ثقه وو لکن د احاديثو په متونو کې به يې تغير کولو (قال الامام الحافظ المحدث ابوداؤد وكان سليمان بن حرب يحدث بحديث ثم يحدث به كأنه ليس بذالک ) [ تاريخ بغداد ج۳ ص ۱۳۹ ، سير اعلام النبلاء ج۷ ص ۵۰۰ ، تهذيب لابن حجر ج۲ ص ٣٩٦ ].

(وقال الامام الحافظ المحدث ابوبکر الخطیب کان سلیمان یروی الحدیث علی المعنی فتغیر الفاظه فی روایة [حواله بالا ] .

دا هم په یاد لرئ چې سلیمان به د سیدنا معاویه رضی الله عنه په شان کې گستاخي کوله [العبر ج۱ ص۱۹۴] . مخکې یو حدیث موږ ولیکلو چې حضرت ابو هریره رضی الله عنه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات څخه وروسته صرف د تکبیر تحریمه سره رفع الیدین کولو .

۱۳- زبیر علی زئی لیکي چې چا به چې رفع الیدین نه کولو حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنه به په کاڼو باندې ویشتلو [جزء رفع الیدین ص ۱۵ و نور العینین ص ۲۱۰] .

**ځواب** : دلامذهبو په دلایلو کې د اولسم دلیل لاندې دا اثر د تفصیل سره راروان دی هلته یې وګوره .

۱۴- زبیر علی زئی لیکي چې امام بخاری رحمه الله فرمایي چې د هیڅ صحابي رضی الله عنه څخه ترک درفع الیدین نه دي ثابت [جزء رفع الیدین ص ۴۰ و ص ۷۶]

**قلنا**: د امام بخاری په قول کې د تکبیر تحریه رفع الیدین مراد دی . کنه دده دا قول به د ډیرو احادیثو سره متعارض شي . [ماخوذ از راحة العینین و قرة العینین].

## ۹٤- د حضرت علی رضی الله عنه حدیث

**وَبِهِ قَالَ عَنْ عَبْدِ الرَّحِيمِ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي بَكْرٍ النَّهْشَلِيِّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِي رحمهم الله تعالى، عَنْ عَلِيٍّ ﷺ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ الصَّلَاةِ ثُمَّ لَا يَعُودُ.** (العلل الواردة فی الاحادیث النبویه للدار قطنی ج٤ ص ١٠٦ سوال نمبر ٤٥٧ قلت انفرد برفعه عبد الرحیم بن سلیمان وهو ثقة).

حضرت علی رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به صرف د لمانځه د شروع کولو په وخت کې رفع الیدین کولاو بیا به یې نه کول .

اعتراض: امام دارقطني فرمایي چې: وخالفه (عبدالرحیم) جماعة من الثقات فرووه عن ابی بکر النهشلي موقوفا علی علیّ وهو الصواب (کتاب العلل للدارقطني ج ٤صـ ١٠٦)؟

قلنا ١-: ددې حدیث مرفوع بیانونکی امام عبدالرحیم بن سیلمان دصحیحینو ثقه راوي دی او بالاجماع ثقة دی ، نود امرفوع بیانول ددې زیادت دی او زیادة دثقة مقبول دی، امام بخاري فرمایي

چې: والزيادة مقبولة (صحيح البخاري ج١صـ ٢٠١، باب العشر فيما يسقى من ماء السماء والماء الجاري)

٢- كله چې د حديث په مرفوع والى او موقوفو الي كې اختلاف راشي نو د جمهورو فقهاوو او محدثينو خصوصا د امام بخاري او امام مسلم په نيز به مرفوع گڼلى شي قال الامام النووي، والصحيح طريقة الاصوليين والفقهاء والبخاري ومسلم ومحققين المحدثين انه يحكم بالرفع والاتصال لانها زيادة ثقة (شرح مسلم للنووي ج ١صـ٢٨٢، صـ٢٥٦،اسناده صحيح رواته ثقات)

او ددې حديث تائيد د حضرت علی رضی الله عنه د عمل څخه كيږي، د حضرت علی رضی الله عنه عمل په [طحاوی رقم ١٣٢٠ مصنف ابن ابی شيبه رقم ٢٤٥٧ ، موطا امام محمد رقم ١٠٩ ] كې په صحيح سندونو باندې ذكر شوی دی چې ترک د رفع اليين دی، ددې څخه علاوه د حضرت علی رضی الله عنه داصحابو عمل په [مصنف ابن ابی شيبه رقم ٢٤٦١ ] كې هم ددې په تائيد ذكر شوی دی. او د اهل كوفه د اجماع څخه هم ددې تاكيد كيږي الامام المحدث ، الفقيه ، المجتهد حضرت محمد بن حسن الشيبانی رحمه الله فرمايي چې : جَآءَ الثبت عَن عَلیّ بن ابی طَالب وَعبد اللّٰهِ بْنِ مَسْعُود رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُمَا لَا يَرْفَعَانِ فِیْ شَیْء من ذٰلِكَ الا فِی تَكْبِيرَةِ الإِفْتِتَاحِ [ كتاب الحجة ج١ ص ٩٤ ] . د حضرت علی رضی الله عنه او د حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه څخه په مضبوطه طريقه باندې ثابته ده چې دوی د تكبير تحريمه څخه ماسوی په بل ځای كې رفع اليدين نه كول. د حضرت علی رضی الله عنه څخه په دې سلسله كې ډير روايات راغلي دي.

١- په [ كتاب الام ج١ ص ٩٦ ، مسند الشافعی ج١ ص ٨٨ ، ابو داؤد الطيالسی ج١ ص ٢٢، مصنف عبد الرزاق ج ٢ ص ١٥٥ رقم ٢٨٧٦ ، مصنف عبد الرزاق ص ١٦٣ وص ١٦٤ رقم ٢٩٠٢ رقم ٢٩٠٤ ، مسند احمد رقم ٧٣١ رقم ٨٠٥ ، مسلم ج١ ص ٢٦٣ رقم ١٨١١ ، ابو داؤد ج١ ص ١١٢ رقم ٧٦٠ ، نسائی رقم ٧٩٧ رقم ١٠٥٠ ، ترمذی رقم ٢٤٢١ ، ابو عوانه ج ٢ ص ١٠١ ص ١٠٢ ص ١٠٣ ص ١٦٨ ص ١٨٧ ص١٨٨ ، ابن خزيمه ج١ ص ٣٠٦ ، طحاوی رقم ١٣٢٢ ، دار قطنی رقم ١١٢٢ و ١١٢٣ ، بيهقی ج٢ ص ١١٨٧ ] كې د حضرت علی رضی الله عنه روايت چې په كومو سندونو راغلی دی په هغې كې د رفع اليدين نوم او نشان نشته.

۲-همدا رنګه په [موطا امام مالک ص ۲۵ رقم ۲۰۱] د حضرت على رضى الله عنه روايت چې په کوم سند دى په هغې کې د رفع اليدين نوم او نشان نشته.

۳-همدا رنګه په مصنف ابن ابى شيبه رقم ۲۴۹۹ کې د حضرت على رضى الله عنه روايت دى او د رفع اليدين نوم او نشان پکې نشته.

۴-همدا رنګه حضرت عکرمه او حضرت عبد الله ابن عباس رضى الله عنهما د حضرت على رضى الله عنه څخه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه لمونځ نقشه بيانوي لکن د رفع اليدين ذکر نه کوي [مسند احمد رقم ۳۰۰۷ بخاری رقم ۷۸۷].

۵-د حضرت على رضى الله عنه د لمانځه په نقشه کې هم د رفع اليدين هيڅ نوم او نشان نشته [مسند احمد رقم ۱۹۳۸۰].

۶-په اوم سند باندې په مصنف ابن ابى شيبه رقم ۲۵۰۶] کې د حضرت على رضى الله عنه چې کومه د لمانځه نقشه راغلې ده په هغه کې د رفع اليدين نوم او نشان نشته.

۷-د حضرت على رضى الله عنه څخه صرف په يوه روايت کې د رفع اليدين ذکر دى د کوم چې يو راوى عبد الرحمن ابن ابى زناد دى او هغه ضعيفه دى چې تفصيل به يې وروسته د لا مذهبو د دلايلو لاندې راشي ان شاء الله.

## مرسل احاديث

**۹۵- اول دحضرت على بن حسين بن على رضى الله عنهم حديث:** وَبِهٖ قَالَ مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الصَّلَاةِ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ. فَلَمْ تَزَلْ تِلْكَ صَلَاتَهُ حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ [موطا امام مالک رقم الحديث ۲۰۱ و موطا امام محمد رقم الحديث ۱۰۲، مصنف ابن ابى شيبه رقم ۲٤۹٤، بيهقى رقم ۲٤۹۳]. حضرت امام زين العابدين على بن حسين بن على فرمايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د هر ټيټيدلو او جګيدلو سره الله اکبر ويلو (رفع اليدين به يې نه کول) رسول الله صلى الله عليه وسلم همدا سې لمونځ کولو تر څو چې د الله سره ملاقې شو.

ددې حديث څخه معلومه شوه چې درسول الله صلى الله عليه و سلم اخرې لمونځونه بغير درفع اليدين څخه و.

**٩٦ - دوهم د حضرت عباد بن عبد الله بن زبير رضى الله عنه حديث:** (وَفِى الْمَوَاهِبِ اللَّطِيْفَةِ، وَاَخْرَجَ الْبَيْهَقِىُّ رحمة الله عليه فِىْ خِلَافِيَاتِهٖ عَنِ الْحَاكِمِ بِسَنَدِهٖ اِلٰى حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِىْ يَحْيٰى قَالَ صَلَّيْتُ اِلٰى جَنْبِ عِبَادِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَ فَجَعَلْتُ اَرْفَعُ اَيْدِىْ فِىْ كُلِّ رَفْعٍ وَّوَضْعٍ قَالَ يَا ابْنَ اَخِىْ! رَاَيْتُكَ تَرْفَعُ فِىْ كُلِّ رَفْعٍ وَخَفْضٍ، وَاَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ يَدَيْهِ فِىْ اَوَّلِ الصَّلٰوةِ ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا فِىْ شَيْئٍ حَتّٰى يَفْرُغَ [بسط اليدين حاشيه نيل الفرقدين ص ١٤٤ ادارة القرآن كراچي].

محمد بن يحى رحمه الله فرمايي چې: ما د عباد بن عبد الله بن زبير رضى الله عنه په څنگ كې لمونځ كولو او د هرو ټيټيدلو او جگيدلو سره به مې رفع اليدين كولنو عباد رحمه الله راته وفرمايل اى وراره! زه تا گورم چې د هر ټيټيدلو او جگيدلو سره رفع اليدين كوې او رسول الله صلى الله عليه وسلم به صرف د تكبير تحريمه په وخت كې رفع اليدين كول او بيا به يې د لمانځه څخه تر فارغيدو پورې په بل ځاى كې نه كول.

## ۹۷۔ دريم دحضرت عباد بن عبدالله ابن زبير رضي الله عنه حديث

حافظ ابن حجر په (الدراية في تخريج احاديث الهداية) كې د عباد بن عبد الله ابن زبير رضي الله عنه مرفوع روايت نقل كړى دى چې. اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَانَ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ يَدَيْهِ اَوَّلَ الصَّلٰوةِ ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا فِىْ شَيْئٍ حَتّٰى يَفْرُغَ. (زيلعى، ج ۱ ص ۴۰۴ وفى نسخة المطبع العلوى ص ۲۱۰ بحواله بهيقى فى الخلافيات بسط اليدين ص ۵۳)

حضرت عباد بن عبد الله ابن زبير رضي الله عنه روايت كړى دى چې رسول الله ﷺ به چې كله لمونځ شروع كړو لاسونه به يې پورته كړل، بيا به يې د لمانځه څخه تر فارغيدلو پورې نه پورته كول، حافظ ابن حجر ددې حديث د نقل كولو څخه وروسته ليكلي دي چې: لينظر في اسناده:

شاه صاحب رحمه الله فرمائي چې ما د حافظ په دې امر عمل وكړو او ددې حديث سند مې وكتلو د كتلو څخه وروسته راته معلومه شوه چې ددې حديث ټول راويان ثقه دي، مگر عباد بن عبد الله ابن زبير رحمه الله تابعي دى نو دا حديث مرسل دى او مرسل د حديث د جمهورو په نيز حجت دى، نو دا حديث هم قابل

داستدلال دی دوي او تائید دعبدالله بن عباس ﷺ حدیث څخه هم کیږي چې كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَرْفَعُ يَدَيْهِ كُلَّمَا رَكَعَ وَكُلَّمَا رَفَعَ ثُمَّ صَارَ اِلٰى اِفْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ وَتَرَكَ مَا سِوٰى ذٰلِكَ او دعبدالله بن زبير ﷺ دحديث څخه هم کیږي چې رَأَى ابْنُ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما رَجُلًا يَرْفَعُ يَدَيْهِ مِنَ الرُّكُوْعِ فَقَالَ: مَهْ! كَانَ هٰذَا شَيْءٌ فَعَلَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ ثُمَّ تَرَكَهُ. (التعليق الصبيح ،ج١/ ص ٤٧٥). عمدة القاري ج٥/ ص٣٩٨ مكتبة رشيديه].

۱- علامه نووی رحمه الله فرمايي چې امام ابو حنيفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله، امام احمد رحمه الله او اکثر فقهاء مرسل حديث حجت گڼي امام شافعی رحمه الله مرسل معتضد (چې په بل حديث يې تائيد شوی وي) حجت گڼي [نووی مقدمه شرح مسلم ج۱ ص۱۷].

۲- علامه زيلعی رحمة الله فرمايي چې: (والمرسل اذا وجدله مايوافقه فهو حجة بالاتفاق) نصب الرايه/ج/۱/ص/ ۳۵۳/ طبع قديم/ج/۱/ص/۴۳۰/ طبع مکتبه حقانيه پشاور يعنې چې دمرسل موافق کوم روايت پيدا شي نوهغه بالاتفاق حجت وي او ددې مرسل حديث ډير مؤيدات دي لهذا دا حديث بالاتفاق حجت دی.

**۹۸- خلورم**: د حضرت ابو جعفر محمد باقر رحمه الله بن علی رحمه الله بن حسين رضی الله عنه بن علي رضی الله عنه حديث: حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ، قَالَ: كَانَ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ رحمهم الله تعالى، «يُكَبِّرُ كُلَّمَا رَفَعَ، وَكُلَّمَا رَكَعَ» قَالَ: فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِأَبِي جَعْفَرٍ، فَقَالَ: «قَدْ عَلِمَ أَنَّهَا صَلَاةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» فَقَالَ سَعِيْدٌ: «إِنَّمَا هُوَ شَيْءٌ يَزَيِّنُ بِهِ الرَّجُلُ صَلَاتَهُ» (مصنف ابن أبي شيبه رقم / ۲۵۰۸ / هذا حديث مرسل واسناده حسن)

دعبدالملک رحمه الله څخه روايت دی چې حضرت سعيد بن جبير رحمه الله به دجيگيدلو او درکوع کولو په وخت کې الله اکبر ويلو عبدالملک رحمه الله فرمايي چې: چا داخبره ابو جعفر محمد باقر رحمه الله ته وکړه، نو هغه وفرمايل چې: په تحقيق سره دا په دې پوهيد لو چې دا درسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ دی نو حضرت سعيد بن جبير رحمة الله وفرمايل چې: دالله اکبر ويل داسې يو شی دی چې انسان وربانډې خپل لمونځ ښايسته کوي سعيد بن جبير رحمه الله تکبيرات و ته دلمونځ زينت وايي او درفع اليدين نوم نه اخلي او محمد باقر رحمه الله دې ته درسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ وايي.

خلاصه دا چې ترک درفع اليدين په قوي صحيح او صريحو روايتو باندې ثابت دی او درفع اليدين عند الرکوع روايت مبهم او مضطرب دی، البته د تکبير تحريمه سره رفع اليدين بلا معارضه ثابت دی او ٥٠ صحابه وو روايت کړی دی.

## دجماعت دلمانځه ښودلو والا احاديث

**۹۹ـ اول قولي حديث :** حضرت حطان بن عبد الله الرقاشي فرمايي چې : ما دابو موسى اشعري رضی الله عنه سره لمونځ کولو کله چې مونږ په قعده باندې کښيناستلو نو شاته يوه سړي ووېل چې لمونځ دنيکۍ او دزکات سره فرض شوې دی، حضرت ابو موسى اشعري رضی الله عنه دلمانځه د ختميدلو څخه وروسته پوښتنه وکړه چې په تاسو کې چا خبرې وکړې؟ نو ټول خلک چپ شول، نو ابو موسى اشعري رضی الله عنه بيا وفرمايل چې دا خبرې چا وکړې؟ نو بيا ټول خلک چپ شول، بيا يې وفرمايل چې يا حطانه رحمه الله کيدی شي دا تا ويلي وي؟ ما ورته ووېل چې نه ما نه دي ويلي، زه د اريدم چې هسې نه چې په ابو موسى اشعري رضی الله عنه باندې خفا رانه شي او په ما يې را وانهړوي، چې په دې کې يو کس ووېل چې دا ما ويلي دي او دخير په نيت مې ويلي دي نو ابو موسى اشعري رضی الله وفرمايل چې تاسو نه پوهيږی چې په لمانځه کې دڅه شي ويل په کار دي؟ بې شکه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم يوه ورځ مونږ ته خطبه ولوستله نو مونږ ته يې سنت را وښودل او دلمانځه طريقه يې راته بيان کړه، نو ويې فرمايل چې: کله مو لمونځ کولو نو صفونه مو برابر کړئ، بيا دې يو کس درته امامتي درکړي، نو چې کله امام الله اکبر ووايي تاسو هم الله اکبر ووايئ او چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووايي نو تاسې امين ووايئ، الله جل جلاله به درسره مينه وکړي، پس کله يې چې الله اکبر ووېلې او رکوع يې وکړه نو تاسو هم الله اکبر ووايئ او رکوع وکړئ، بې شکه چې امام ستاسو نه مخکې رکوع کوي او ستاسو څخه مخکې د رکوع څخه را جيګيږي، بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې دا د دې په بدله کې دی (يعنې که امام مخکې رکوع ته لاړ او تاسو وروسته لاړئ نو امام مخکې د رکوع څخه پورته شو او تاسو وروسته پورته شوئ) چې کله امام سمع الله لمن حمده ووايي نو تاسو ربنا ولک الحمد ووايئ الله جل جلاله ستاسو دعا قبلوي، ځکه چې الله جل جلاله دخپل پيغمبر صلی الله عليه وسلم په ژبه ويلي دي چې : څوک چې د الله جل جلاله تعريف

وکړي او دعا وغواړي الله جل جلاله يې دعا قبلوي او چې کله امام الله اکبر ووايي او سجده وکړي نو تاسو هم الله اکبر ووايئ او سجده وکړئ، ځکه چې امام ستاسو څخه مخکې سجدې ته ځي او ستاسو څخه مخکې د سجدې څخه راجيګيږي نو دادې په بدله کې شو. [صحيح مسلم رقم/۹۰۳].

په دې حديث کې د رفع اليدين حکم نشته، رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوو شيانو حکم کوي، يو د رکوع او بل د تکبير، او لامذهبان خلکو ته د دريو شيانو امر کوي تکبير، رکوع او رفع اليدين، د احاديثو په ټوله ذخيره کې دا سې يو حديث هم نشته چې د رفع اليدين امر په کې وي.

**۱۰۰- دوهم فعلي حديث:** حضرت عبدالرحمن بن غنم رحمه الله فرمايي چې: حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ بَهْرَامَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ غَنْمٍ، أَنَّ أَبَا مَالِكٍ الْأَشْعَرِيَّ ﷺ جَمَعَ قَوْمَهُ فَقَالَ: "يَا مَعْشَرَ الْأَشْعَرِيِّينَ! اجْتَمِعُوا وَاجْمَعُوا نِسَاءَكُمْ، وَأَبْنَاءَكُمْ أُعَلِّمْكُمْ صَلَاةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي صَلَّى لَنَا بِالْمَدِينَةِ [الْمُنَوَّرَةِ] فَاجْتَمَعُوا، وَجَمَعُوا نِسَاءَهُمْ وَأَبْنَاءَهُمْ، فَتَوَضَّأَ وَأَرَاهُمْ كَيْفَ يَتَوَضَّأُ، فَأَحْصَى الْوُضُوءَ إِلَى أَمَاكِنِهِ حَتَّى لَمَّا أَنْ فَاءَ الْفَيْءُ، وَانْكَسَرَ الظِّلُّ قَامَ، فَأَذَّنَ فَصَفَّ الرِّجَالَ فِي أَدْنَى الصَّفِّ، وَصَفَّ الْوِلْدَانَ خَلْفَهُمْ، وَصَفَّ النِّسَاءَ خَلْفَ الْوِلْدَانِ، ثُمَّ أَقَامَ الصَّلَاةَ، فَتَقَدَّمَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ وَكَبَّرَ، فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ يُسِرُّهُمَا، ثُمَّ كَبَّرَ فَرَكَعَ فَقَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَاسْتَوَى قَائِمًا، ثُمَّ كَبَّرَ، وَخَرَّ سَاجِدًا، ثُمَّ كَبَّرَ فَرَفَعَ رَأْسَهُ، ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ، ثُمَّ كَبَّرَ فَانْتَهَضَ قَائِمًا، فَكَانَ تَكْبِيرُهُ فِي أَوَّلِ رَكْعَةٍ سِتَّ تَكْبِيرَاتٍ، وَكَبَّرَ حِينَ قَامَ إِلَى الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ، فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ أَقْبَلَ إِلَى قَوْمِهِ بِوَجْهِهِ، فَقَالَ: احْفَظُوا تَكْبِيرِي، وَتَعَلَّمُوا رُكُوعِي وَسُجُودِي، فَإِنَّهَا صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي كَانَ يُصَلِّي لَنَا كَذِي السَّاعَةِ مِنَ النَّهَارِ "الحديث، مسند احمد: رقم الحديث/ ۲۲۳۹۹ /وَفِي رِوَايَةٍ عِنْدَهُ فَصَلَّى الظُّهْرَ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَكَبَّرَ اثْنَتَيْنِ وَعِشْرِينَ تَكْبِيرَةً، مسند احمد: رقم/ ۲۲۳۸٦ /وَفِي رِوَايَةٍ عِنْدَهُ أَيْضًا: عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يُسَوِّي بَيْنَ الْأَرْبَعِ رَكَعَاتٍ فِي الْقِرَاءَةِ وَالْقِيَامِ، وَيَجْعَلُ الرَّكْعَةَ الْأُولَى هِيَ أَطْوَلُهُنَّ لِكَيْ يَثُوبَ النَّاسُ، وَيُكَبِّرُ كُلَّمَا سَجَدَ وَكُلَّمَا رَكَعَ، وَيُكَبِّرُ كُلَّمَا نَهَضَ بَيْنَ الرَّكْعَتَيْنِ إِذَا كَانَ جَالِسًا. [مسند احمد رقم الحديث/ ۲۲٤۰٤].

رواها كلها احمد، وروى الطبرانى بعضها فى الكبير وفى طرقها كلها شهر بن حوشب، وفيه كلام وهو ثقه ان شاء الله .[مجمع الزوايد رقم الحديث/۲۷۸۸ /ورقم /۲۷۸۹ / ورقم / ۲۷۹۰].

حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه خپل قوم راجمع کړو او ورته يې ورته وفرمايل چې: ای اشعری قومه! تاسو پخپله او خپلې ښځې او خپل بچي راجمع کړئ، چې زه تاسو ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه لمونځ در وښايم چې مونږ ته يې په مدينه منوره کې کولو، نو اشعريانو خپلې ښځې او خپل بچي راجمع کړل نو ابو موسی اشعري رضی الله عنه او دس وکړو او دوي ته يې دا او دس طريقه وروښودله

نوپه کامله طريقه يې داودس اوبه انداموته ورسولې بيا چې کله دزوال څخه وروسته سورې راوګرزېدلو اوسورې مات شو نو ودريدلو او اذان يې وکړو، بيا يې په نزدې صف کې سړي ودرول، وروسته يې هلکان ودرول، او دښځو صف يې دماشومانو پسې ودراوه، بيا يو سړي دلمانځه لپاره اقامت وکړو نو ابوموسى اشعري رضى الله عنه مخکې شو لاسونه يې اوچت کړل او الله اکبر يې وويلو بيا يې سورة فاتحه او يو سورت په پټه وويلو بيا يې الله اکبر وويلو اورکوع ته لاړو په رکوع کې يې درې وارې سبحان ربى العظيم وويلې او بيا يې سمع الله لمن حمده وويلې او نيغ ودريدلو، بيا يې الله اکبر وويلې او په سجده پريوت بيا يې الله اکبر وويلې او سريې راپورته کړو، بيا يې الله اکبر وويلې او سجده يې وکړه بيا يې الله اکبر وويلې او ودريدلو نو په اول رکعت يې شپږ تکبيره وکړل چې کله دوهم رکعت ته جګ شونو الله اکبر يې وويلې، بيا چې کله دلمانځه څخه فارغ شو نو خپل قوم ته يې مخ راواړولو او ورته يې وفرمايل چې : اى قومه ! زما تکبيرونه ياد کړئ او زما رکوع او سجده زده کړئ، بې شکه چې داد رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه لمونځ دى چې مونږ ته به يې دورځې په دې ساعت کې کولو او په يو روايت کې راځي چې دماسپښين لمونځ يې وکړو او دوه ويشت تکبيرونه يې وکړل او په يوه روايت کې راځي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به په څلورو رکعتونو کې قيام او قرأت يو برابر کولو او اول رکعت به يې اوږداوه ترڅو چې اول رکعت ته ډير خلک راورسيږي په رکوع او په سجده کې به يې الله اکبر ويلې او چې کله به ددوو رکعتونو لپاره ناست و نو ددوو رکعتونو څخه دپاڅيدلو په وخت کې به يې الله اکبر ويلې.

په دې حديث کې دلمانځه دافعالو ذکر دى او دتکبير تحريمه درفع اليدين څخه ماسوى په کې دهيڅ رفع اليدين ذکر نشته همدارنګه څوک درکوع درفع اليدين سره ځانته الله اکبر وايي نو بيا ددې حديث په خلاف تکبيرونه د دوه ويشتو څخه زياتيږي او که نه يې وايي نو بيا د (اقم الصلوة لذکرى) څخه مخالفت راځي.

**١٠١ـ دريم حديث:** وبه قال حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ أَنَّهُ قَالَ لِقَوْمِهِ: «قُومُوا حَتَّى أُصَلِّيَ بِكُمْ صَلَاةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»، قَالَ: «فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ، فَكَبَّرَ، ثُمَّ قَرَأَ، ثُمَّ كَبَّرَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَكَبَّرَ، فَصَنَعَ ذَلِكَ فِي صَلَاتِهِ كُلِّهَا».. [مصنف ابن أبي شيبه رقم / ٢٥٠٥].

ابومالک اشعري رضى الله عنه خپل قوم ته وويل چې : پاڅيږئ چې زه تاسو باندې دسول الله صلى الله عليه وسلم لمونځ وکړم، عبدالرحمن بن غنم رحمه الله فرمايي چې : مونږ دابومالک اشعرى رضى

الله عنه شاته صفونه جوړ کړل، نو الله اکبر یې وویلو بیا یې قرائت وکړو، بیا یې الله اکبر وویلو بیا یې رکوع او بیا یې د رکوع څخه سر راپورته کړو الله اکبر یې وویلو نو همدا سې یې په ټول لمونځ کې وکړل په دې حدیث کې راغلل چې ابو مالک اشعری رضی الله عنه دلمونځ تکبیرات ادا کړل مګر رفع الیدین یې ذکر نه کړل، او دغه لمونځ ته چې رفع الیدین په کې نه وو نبوي لمونځ یئ ورته وویلې.

**۱۰۲- څلورم حدیث :** عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ: قَالَ أَبُو مُوسَى رضي الله عنه: "لَقَدْ ذَكَّرَنَا عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صَلَاةً كُنَّا نُصَلِّيهَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِمَّا نَسِينَاهَا، وَإِمَّا تَرَكْنَاهَا عَمْدًا يُكَبِّرُ كُلَّمَا رَكَعَ، وَكُلَّمَا رَفَعَ، وَكُلَّمَا سَجَدَ (مسنداحمد رقم /۱۹۰۰۰].

حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه فرمایي چې : حضرت علي رضی الله عنه مونږ ته هغه لمونځ راياد کړو چې مونږ به د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره کولو، هغه لمونځ یا مونږ هیر کړی دی او یا مو عمداً پریښی دی، هغه صلی الله علیه وسلم به چې کله هم رکوع کوله او چې کله به یې د رکوع څخه سر راپورته کولو او چې کله به یې سجده کوله نو الله اکبر به یې ویلې . په دې حدیث کې ابو موسی اشعری رضی الله عنه تکبیرات ذکر کوي او د رفع الیدین نوم نه اخلي. همدا سې الفاظ په مسند احمد رقم /۱۹۲۲۳/ په مجمع الزوايد رقم /۲۷۹۵/ په کشف الاستار رقم /۵۳۵ کې هم شته.

**۱۰۳- پنځم حدیث :** عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضي الله عنه، قَالَ: صَلَّى مَعَ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِالْبَصْرَةِ فَقَالَ: «ذَكَّرَنَا هَذَا الرَّجُلُ صَلَاةً كُنَّا نُصَلِّيهَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ أَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ كُلَّمَا رَفَعَ وَكُلَّمَا وَضَعَ» (بخاری رقم /۷۸٤].

حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه فرمایي چې : حضرت علي رضی الله عنه مونږ ته په بصره کې لمونځ راکړو نو مونږ ته یې هغه لمونځ را یاد کړو چې مونږ به د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره کولو، هغه مونږ ته راوښودل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به د هر و ټیټیدلو او د جیګیدلو سره الله اکبر ویلې، نو کوم لمونځ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دلمونځ سره مشابه دی په هغې کې صرف تکبیرات دي، رفع الیدین په کې نشته همدا مضمون په بخاري رقم /۸۷۳/ همدا رنګه په مسند احمد (ج) /۴/ ص /۴۲۹/ کې هم ذکر شوی دی.

## دحضرت انس رضى الله عنه حديثونه

**١٠٤ـ اول حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ الصَّفَّارُ, ثنا الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ ثنا الْعَلَاءُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْعَطَّارُ, حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ, عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ, عَنْ أَنَسٍ ﷺ, قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَبَّرَ حَتَّى حَاذَى بِإِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ, ثُمَّ رَكَعَ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ مَفْصِلٍ مِنْهُ فِي مَوْضِعِهِ, ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ مَفْصِلٍ مِنْهُ فِي مَوْضِعِهِ, ثُمَّ انْحَطَّ بِالتَّكْبِيرِ فَسَبَقَتْ رُكْبَتَاهُ يَدَيْهِ. [سنن دار قطنى باب ذكرالركوع والسجود ومايجزى فيهما ج/١/ص/٣٤٥ /مجمع المدينة المنورة / و /ج /٠١/ ص/٤٦٢ / رقم ١١٩٣ طبع ملتان مستدرك حاكم /ج /١/ ص /٢٢٦ /رقم / ٨٥٣ /وقال الحاكم هذا اسناد صحيح على شرط الشيخين سنن كبرى بيهقى /ج /٢/ ص / ٩٩].

حضرت انس رضى الله عنه فرمايي چې : مارسول الله صلى الله عليه وسلم وليدلو چې الله اكبر يې وويلو تردې چې غټې ګوتې يې دغوږونو سره برابرې کړې، بيايې رکوع وکړه تردې چې هربند په خپل ځاى برقرار شو، بيادرکوع څخه را اوچت شو تردې چې هربند په خپل ځاى ودريدلو، بيايې الله اکبر وويلو اوټيټ شونوزنګونونه يې دلاسونوڅخه مخکې په زمکه کيښودل شو.

په دې حديث کې حضرت انس رضى الله عنه يواځې دتکبير تحريمه سره درفع اليدين ذکرکړى دى اورکوع ته دتللو اودرکوع څخه دراپورته کيدلو ذکريې کړى دى لکن درفع اليدين ذکريې ورسره نه دى کړى.

همدارنګه په دې حديث کې (حتى استقر کل مفصل منه فى موضعه) ذکرشوى دى اودلاسونو خپل ځاى عدم رفع ده.

**١٠٥ـ دوهم حديث :** وَعَنْ أَنَسٍ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «أَنَّهُ كَانَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ أُذُنَيْهِ يَقُولُ: "سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ». [مجمع الزوايد رقم / ٢٦٢٢/ وقال الهيثمى رواه الطبرانى فى الاوسط ورجاله موثقون – اخرجه الطبرانى فى الاوسط برقم / ٣٠٣٩/ مسند أبى يعلى / ج / ٣ / ص / ٣١٠].

حضرت انس رضى الله عنه درسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې : رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله الله اکبر وويلو نولاسونه به يې دغوږونو په برابر اوچت کړل بيابه يې سبحانک اللهم وبحمدک ...الخ لوستله.

په دې حديث کې هم يوائځې دتکبير تحريمه سره درفع اليدين ذکر دی، معلوميږي چې د حضرت انس رضی الله عنه په صحيح حديث کې يوائځې دتکبير تحريمه رفع اليدين دي نورنشته.

**۱۰٦ دريم حديث :** نا أَبُو مُحَمَّدِ بْنُ صَاعِدٍ, نا الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ الْأَسْوَدِ الْعِجْلِيِّ, ثنا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّلْتِ, حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ, عَنْ حُمَيْدٍ رحمهم الله تعالى, عَنْ أَنَسٍ ﷺ, قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ كَبَّرَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ إِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ ثُمَّ يَقُولُ: «سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ».[دارقطني /ج/۱ / ص/ ٤٠٥ / رقم /١١٣٥].

حضرت انس رضی الله فرمايي چې : رسول الله صلى الله عليه وسلم به دلمانځه دشروع کولو په وخت کې لاسونه او چت کړل تردې چې غټې ګوتې به يې دغوږونو سره برابرې کړې، بيابه يې سبحنک اللهم الخ ولوستله په دې حديث کې هم حضرت أنس رضی الله عنه يوائځې دتکبير تحريمه سره درفع اليدين ذکر کړی دی .

**۱۰۷۔ خلورم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَصَمِّ رحمهم الله تعالى، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسًا ﷺ، يَقُولُ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ ﷺ، يُتِمُّونَ التَّكْبِيرَ إِذَا رَفَعُوا، وَإِذَا وَضَعُوا [ مسند احمد رقم ١٣٣٥٤ ] .حضرت انس رضی الله عنه به فرمايل چې رسول الله ابوبکر رضی الله عنه عمر رضی الله نه عثمان رضی الله به د هر ټيټيدلو او جګيدلو سره تکبير پوره ادا کولو .

**۱۰۸- پنځم حديث:** وبه قال حدثنا عبد الله حدثنى ابى حدثنا يحى عن سفيان عن عبد الرحمن الاصم قال سمعت انساً رضى الله عنه يقول ان النبى صلى الله عليه وسلم وابابكر وعمر وعثمان كانوا يتمون التكبير يكبرون اذا سجدو واذا رفعوا قال يحى او خفضوا [ مسند احمد رقم ۱۱۸۵۰ طيالسى ص ٢٧٦ ، عبد الرزاق رقم ٢٥٠١ ج ٢ ص ٦٤].

حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به فرمايل چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عمر رضی الله عنه عثمان رضی الله عنه ، به تکبيرات پوره ادا کول، چې کله به يې سجده کوله او چې کله به يې د سجدې څخه سر راپورته کولو نو تکبير به يې ويلو او حضرت يحی فرمايي چې د هر ټيټيدلو او دجګيدلو سره به يې تکبير ويلو نو حضرت انس رضی الله چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د خلفاء ثلاثه وو عمل دټيټيدلو او د جګيدلو سره بيانوي نو صرف د الله اکبر ذکر کوي د رفع اليدين نوم نه اخلي .

**١٠٩- شپږم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُوبَكْرِبْنُ نَافِعٍ الْعَبْدِيُّ، حَدَّثَنَا بَهْزٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ رحمهم الله تعالى، عَنْ أَنَسٍ ﷺ، قَالَ: مَا صَلَّيْتُ خَلْفَ أَحَدٍ أَوْجَزَ صَلَاةً مِنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَمَامٍ، كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَقَارِبَةً، وَكَانَتْ صَلَاةُ أَبِي بَكْرٍ ﷺ مُتَقَارِبَةً، فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ﷺ مَدَّ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا قَالَ: «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ» قَامَ، حَتَّى نَقُولَ قَدْ أَوْهَمَ، ثُمَّ يَسْجُدُ وَيَقْعُدُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ حَتَّى نَقُولَ قَدْ أَوْهَمَ [ مسلم رقم ١٠٦٠ ] . حضرت انس رضى الله عنه فرمايي : چې ما صرف په رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې داسې لمونځ کړی دی چې مختصر او پوره وي د رسول الله صلى الله عليه وسلم لمونځ متقارب و د ابو بکر رضى الله عنه لمونځ متقارب و او د حضرت عمر رضى الله عنه زمانه چې راغله نو د سهار په لمانځه کې يې اوږد والی راوستلو او رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله سمع الله لمن حمده وويله نو وبه دريدلو تر دې چې موږ به وويلې چې کيدای شي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وهم غورځيدلی وي، بيا به يې سجده کوله او د سجدو په منځ کې به دومره کيناستلو چې موږ به ويلې چې وهم ورته وغورزيدلو .

د متقارب ترجمه : د مسلم رقم ١٠٥٧ نمبر حديث کې ذکر شوي ده چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د رکوع ، قومې ، جلسې او سجدې په مينځ کې تقريباً برابر والی وو . په دې حديث کې حضرت انس رضى الله عنه د الله اکبر ذکر کوي او درفع اليدين نوم او نشان نه يادوي .

**١١٠- اووم حديث :** وَبِهِ قَالَ أَخْبَرَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَٰنِ بْنِ الْأَصَمِّ رحمهم الله تعالى قَالَ: سُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ ﷺ عَنِ التَّكْبِيرِ فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ: «يُكَبِّرُ إِذَا رَكَعَ، وَإِذَا سَجَدَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ، وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ»، فَقَالَ حُطَيْمٌ رحمه الله تعالى: عَمَّنْ تَحْفَظُ هَذَا؟ فَقَالَ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، ثُمَّ سَكَتَ، فَقَالَ لَهُ حُطَيْمٌ رحمه الله تعالى: وَعُثْمَانُ ﷺ؟ قَالَ: وَعُثْمَانُ ﷺ [ نسائى رقم ١١٨٠ ] د حضرت انس رضى الله عنه څخه د لمانځه د تکبيرونو په باره کې پوښتنه وشوه ؟ نو حضرت أنس رضى الله عنه ځواب ورکړو چې تکبيرويلی شي، چې کله رکوع کوي او چې کله سجده کوي او چې کله د سجدې څخه سر راپورته کوي او چې کله به د دوو رکعتونو په منځ کې ودريدلو ، نو حضرت حطيم ورته وفرمايل چې تاسو رضى الله عنه دا طريقه دا چا څخه ياده کړي ده ؟ نو حضرت انس رضى الله عنه ورته وفرمايل چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ابوبکر رضى الله عنه د عمر رضى الله عنه څخه، بيا چې

شو نو حضرت حطیم رحمه الله ورته وفرمایل چې او د حضرت عثمان رضی الله عه څخه؟ نو حضرت انس رضی الله عنه وفرمایل چې او د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه.

**۱۱۱۔ اتم حدیث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْأَصَمِّ رحمهم الله تعالى، قَالَ: سُئِلَ أَنَسٌ رضي الله عنه عَنِ التَّكْبِيرِ فِي الصَّلَاةِ وَأَنَا أَسْمَعُ، فَقَالَ: «يُكَبِّرُ إِذَا رَكَعَ، وَإِذَا سَجَدَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ، وَإِذَا قَامَ بَيْنَ الرَّكْعَتَيْنِ»، قَالَ: فَقَالَ لَهُ حَكِيمٌ رحمه الله تعالى عَمَّنْ تَحْفَظُ هٰذَا؟ قَالَ: عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، ثُمَّ سَكَتَ، فَقَالَ لَهُ حَكِيمٌ رحمه الله تعالى: وَعُثْمَانَ؟ قَالَ: وَعُثْمَانَ. [ مسند احمد رقم ۱۳۲۲٤ ورقم ۱۳۲۸۷]

ددې ترجمه هم د مخکینې حدیث په شان ده نو د حضرت انس رضی الله عنه څخه چې پوښتنه وشوه نو د رکوع او د سجدو په وخت کې او ددوو رکعتونو څخه بعدئې یوائې د الله اکبر ذکر کړی دی، د رفع الیدین نوم یې نه دی اخیستی او فرمایلي دي چې ما دا لمونځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د ابوبکر رضی الله عنه او د حضرت عمر رضی الله عنه او د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه زده کړی دی.

**۱۱۲- نهم حدیث :** عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ لَا يَنْتَقِصُونَ التَّكْبِيرَ وفي لفظ يتمون التكبير اذا ركعوا واذا رفعوا واذا وضعوا [ كنز العمال رقم ۲۲۰٦۵ ].

حضرت انس رضی الله عنه فرمایي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ابو بکر رضی الله عنه، عمر رضی الله عنه او عثمان رضی الله عنه به تکبیرات ناقص نه ادا کول او په یو روایت کې رائحي چې پوره به یې ادا کول او چې کله به یې رکوع کوله او چې کله به یې د رکوع څخه سر راپورته کولو. په دې حدیث کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ابوبکر رضی الله عنه، د عمر رضی الله عنه او د عثمان رضی الله عنه په لمونځ کې د رفع الیدین هیڅ نوم او نشان نشته.

**۱۱۳- لسم حدیث :** حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، قَالَ: حَدَّثَنَا ثَابِتٌ رحمهم الله تعالى، عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه، قَالَ: «وَصَفَ لَنَا أَنَسٌ رضي الله عنه صَلَاةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَامَ يُصَلِّي فَرَكَعَ فَرَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَاسْتَوٰى قَائِمًا»، حَتّٰى رَأٰى بَعْضُنَا أَنَّهُ قَدْ نَسِيَ، قَالَ: ثُمَّ سَجَدَ فَاسْتَوٰى قَاعِدًا حَتّٰى رَأٰى بَعْضُنَا أَنَّهُ قَدْ نَسِيَ [ مسند احمد رقم ۱۲۹۱۳، مصنف ابن ابی شیبه رقم ۲۹۷۸ ] حضرت انس رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمانځه صفت دا سې بیان کړی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمانځه له پاره ودریدلو، نو قیام یې

وکړ بیایې رکوع وکړو بیایې درکوع څخه سر راپورته کړو، نو د قومې په حالت کې دومره ډیر ودریدلو چې په موږ کې بعضو خلکو گمان وکړو چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه هیر شو بیایې سجده وکړه، بیا کیناستلو تردې چې په موږ کې بعضو خلکو گمان وکړو چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه هیر شو. په دې حدیث کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمانځه طریقه بیان شوې ده، د رکوع ذکر پکې شوی دی او د رفع الیدین نوم او نشان پکې نشته.

## هغه احادیث چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم

## د لمانځه کیفیت پکې بیان شوی دی

**۱۱٤- اول حدیث :** د حضرت علی رضی الله عنه.

د حضرت علی رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله لمانځه ته ودریدلو نو د تکبیر تحریمه څخه وروسته به یې دا دعا لوستله چې : **وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيفًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اِنَّ صَلٰوتِيْ وَنُسُكِيْ...** الخ. (بیا به یې قرات کولو او چې کله به د قرات څخه فارغ شو) نو رکوع ته به لاړو او په رکوع کې به یې دا دعا لوستله چې (**اَللّٰهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَلَكَ اَسْلَمْتُ، خشع لك سمعي وبصري ومخي وعظمي وعصبي**) او چې کله به یې درکوع څخه سر راپورته کولو نو سیده به ودریدلو دا دعا به یې لوستله چې ( اللّٰهُمَّ ربنا لک الحمد ملء السموات والارض وما بينهما و ملء ما شئت من شئ بعد ) او چې کله به سجدې ته تللو نو دا دعا به یې لوستله (**اَللّٰهُمَّ لَكَ سَجَدْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَلَكَ اَسْلَمْتُ سَجَدَ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ خَلَقَهٗ وَصَوَّرَهٗ وَشَقَّ سَمْعَهٗ وَبَصَرَهٗ تَبَارَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ**) بیا به یې د تشهد او د سلام په مینځ کې دا دعا لوستله چې (**اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ وَمَا اَسْرَفْتُ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ اَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ**) [ مسلم رقم الحديث ۱۸۱۱ ج ۱ ص ۲٦۳ ، مشکوة رقم الحديث ۸۱۳ ] په دې حدیث کې حضرت علی رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمونځ تفصیل او د رکوع، سجدې، قومې، وغیره وو دعا گانې بیان کړې دی لکن د رفع الیدین یې پکې بالکل ذکر ونکړو. شاه صاحب رحمه الله فرمایي : چې د ترمذی ج ۲ ص ۱۷۹ کې د ذکر او د افعالو د لمونځ په مینځ کې مطابقت

بیان شوی دی، دقیام په وخت (وجهت وجهی) درکوع په وخت کې (اللّٰهُمَّ لک رکعت) او د سجدې په وخت کې (اللهم لک سجدت) او همدا رنګه په مجمع الزوايد کې (سجد لک سوادی وخيالی) اذکار بیان شوي دي او د قومې فعل يې نه دی بیان کړی همدا رنګه رفع اليدين يې هم نه دی بیان کړی او دا دې له پاره چې رفع اليدين فقط د لمانځه په شروع کې دی. [نيل الفرقدين ص۸].

**۱۱۵- دوهم حديث :** عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ ﷺ قَالَ فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَحْفَظُكُمْ لِصَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «رَأَيْتُهُ إِذَا كَبَّرَ جَعَلَ يَدَيْهِ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا رَكَعَ أَمْكَنَ يَدَيْهِ مِنْ رُكْبَتَيْهِ، ثُمَّ هَصَرَ ظَهْرَهُ، فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ اسْتَوٰى حَتّٰى يَعُودَ كُلُّ فَقَارٍ مَكَانَهُ، فَإِذَا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيْهِ غَيْرَ مُفْتَرِشٍ وَلَا قَابِضِهِمَا، وَاسْتَقْبَلَ بِأَطْرَافِ أَصَابِعِ رِجْلَيْهِ الْقِبْلَةَ، فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ جَلَسَ عَلٰى رِجْلِهِ الْيُسْرٰى، وَنَصَبَ الْيُمْنٰى، وَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ قَدَّمَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى، وَنَصَبَ الْأُخْرٰى وَقَعَدَ عَلٰى مَقْعَدَتِهِ [بخاری رقم ۸۲۸، مشکوة رقم ۷۹۲]

د حضرت ابو حميد الساعدی رضی الله عنه څخه روایت دی چې ده د صحابه کرامو د يو جماعت په مخکې وويلې چې زه ستاسو ټولو څخه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمانځه ښه حافظ يم، ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدلو چې کله يې الله اکبر وويلې نو لاسونه يې تر اوګو پورې اوچت کړل او چې کله يې رکوع وکړه نو زنګنونه يې په لاسونو باندې ښه کلک ونيول، بیا يې خپله ملا مبارکه هواره کړه، پس کله يې چې د رکوع څخه سر را اوچت کړو نو نيغ ودريدلو تر دې چې د ملا د تير هډوکي يې خپل ځای ته واپس شول، پس کله يې چې سجده وکړه نو لاسونه يې په زمکه باندې داسې کېښودل چې نه يې څنګلې په زمکه باندې هوارې کړې وې او نه يې لاسونه راټول نيولي وو او د پښو د ګوتو مخ يې قبلې طرفته کړی وو پس کله چې په دوو رکعتونو کې کيناستلو نو په چپه پښه کيناستلو او ښی پښه يې ودروله پس کله چې په اخري رکعت کې کيناستلو نو ښي پښه پښه يې ودروله او چپه پښه يې د هغې لاندې څملوله بيا يې دواړه پښې يو طرف ته ويستلې او په کوناټيو باندې کيناستلو.

په دې حديث کې ابو حميد الساعدی رضی الله عنه صرف يو رفع اليدين بيان کړی دی، رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د را جګيدلو په وخت کې يې رفع اليدين نه دی ذکر کړی، دا ځکه چې د تکبير تحريمه رفع اليدين يې ليدلی و نو بيان يې کړو او د رکوع رفع اليدين يې نه و ليدلی نو بيان يې نکړو او دا قانون دی چې (اَلسُّكُوْتُ فِيْ مَعْرَضِ الْبَيَانِ بَيَانٌ) رفع اليدين (بيان) فانقيل چې په دې حديث کې خو ډير شيان نه دي بيان

او وغيره؟ قلنا : ددې ځواب په دې شوي د هغې به هم نه کول پکار وي لکه ثنا تعوذ، تسميه، سورة الفاتحه حديث کې بيان شوی دی ځکه چې په دې حديث کې (رأيته) ذکر شوی دی يعنې د کوم شيانو تعلق چې د ليدلو سره دی هغه پکې بيان شوي دي او د مذکورو شيانو تعلق د اوريدلو سره دی - حضرت ابو حميد الساعدی رضی الله عنه د (احفظکم) لفظ استعمال کړی دی او بيا يې صرف د تکبير تحريمه رفع اليدين ذکر کړی دی او د رکوع رفع اليدين يې نه دی ذکر کړی، معلوميږي دا چې صرف د تکبير تحريمه رفع اليدين محفوظ پاتې شوی دی ددې څخه علاوه هيڅ رفع اليدين محفوظ نه دي پاتې شوي.

**١١٦- دريم حديث :** ويه قال حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رَحِمَهُمُ اللهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، يَقُولُ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ» ثُمَّ يَقُولُ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ حِينَ يَرْفَعُ صُلْبَهُ مِنَ الرُّكُوعِ» ثُمَّ يَقُولُ: وَهُوَ قَائِمٌ «رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَهْوِي سَاجِدًا، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَسْجُدُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، ثُمَّ يَفْعَلُ مِثْلَ ذٰلِكَ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا حَتّٰى يَقْضِيَهَا وَيُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ مِنَ الْمَثْنٰى بَعْدَ الْجُلُوسِ» ثُمَّ يَقُولُ: أَبُو هُرَيْرَةَ رضي الله عنه «إِنِّي لَأَشْبَهُكُمْ صَلَاةً بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ مسلم رقم ٨٦٨].

ابو هريره رضی الله عنه فرمايي چې : رسول الله صلی الله عليه وسلم به چې کله د لمانځه اراده وکړه نو الله اکبر به يې وويلو چې کله به ودريدلو بيا به يې الله اکبر وويلو، چې کله به يې رکوع وکړه بيا به يې سمع الله لمن حمده وويلو چې کله به يې ملا د رکوع څخه را اوچتوله بيا به يې په قومه کې ربنا لک الحمد ويلو چې کله به سجدې ته تللو بيا به يې الله اکبر وويلو، چې کله به يې د سجدې څخه سر را پورته کولو بيا به يې الله اکبر وويلو چې کله به سجدې ته تللو بيا به يې الله اکبر وويلو، چې کله به يې د سجدې څخه سر را پورته کولو بيا به يې الله اکبر وويلو، همدا سې يې د لمانځه تر اخيره پورې کول او د قعده اولی څخه به چې دريم رکعت ته پورته کيدلو نو الله اکبر به يې وويلو، بيا ابو هريرة رضی الله عنه وفرمايل چې زما لمونځ ستاسو د ټولو په نسبت زيات مشابه دی د رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمونځ سره.

په دې صحيح حديث کې هم د رکوع سره د تکبير ذکر دی د رفع اليدين ذکر نشته.

**١١٧ - څلورم حديث :** حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رحمهم الله تعالى، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، "كَانَ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ مِنَ الْمَكْتُوبَةِ، وَغَيْرِهَا فِي رَمَضَانَ وَغَيْرِهِ، فَيُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ، ثُمَّ يَقُولُ: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، ثُمَّ يَقُولُ: رَبَّنَا وَلَكَ

الْحَمْدُ قَبْلَ أَنْ يَسْجُدَ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ حِينَ يَهْوِي سَاجِدًا، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَسْجُدُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ مِنَ الْجُلُوسِ فِي الِاثْنَتَيْنِ، وَيَفْعَلُ ذَلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ حَتَّى يَفْرُغَ مِنَ الصَّلَاةِ"، ثُمَّ يَقُولُ حِينَ يَنْصَرِفُ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، إِنِّي لَأَقْرَبُكُمْ شَبَهًا بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ كَانَتْ هَذِهِ لَصَلَاتَهُ حَتَّى فَارَقَ الدُّنْيَا. [بخاری رقم/۸۰۳، مسند احمد رقم /۸۲۷۳].

حضرت ابو هريره رضی الله عنه به په فرضي او نفلي، رمضان او غير رمضان کې الله اکبر ويلې چې وبه دريدلو نو الله اکبر به يې وويلې، چې رکوع ته به تللو الله اکبر به يې وويلو (د رکوع څخه به چې را جګيدلو) نو سمع الله لمن حمده به يې وويلې، بيا به يې ربنا لک الحمد وويلې د سجدې څخه مخکې بيا به يې الله اکبر وويلې چې کله به سجدې ته تللو بيا به يې الله اکبر وويلې چې کله به يې د سجدې څخه سر راپورته کولو، بيا به يې الله اکبر وويلې چې کله به سجدې ته تللو بيا به يې الله اکبر وويلې چې کله به يې د سجدې څخه سر راپورته کولو بيا به يې الله اکبر وويلې چې به د اولی قعدې څخه به پورته کيدلو او په هرکعت کې به يې د لمانځه تر فارغيدو پورې همداسې کول او د لمانځه څخه به چې فارغ شو نو فرمايل به يې چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې زما روح د هغه په قبضه کې دی چې زما لمونځ په اعتبار د مشابهت سره ډير نږدې دی د رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ ته. (خامخا داد رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ وو تر دې چې د دنيا څخه جدا شو).

په صحيح حديث کې د رکوع او دسجدې په وخت کې د تکبيراتو ذکر دی د رفع اليدين ذکر نشته ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمونځ نقشه عملاً بيان کړه او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د اخري لمونځ حواله يې ورکړه.

**۱۱۸- پنځم حديث :** وَبِهِ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ رحمهم الله تعالى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ ﷺ «كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ، فَكَبَّرَ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ، ثُمَّ انْصَرَفَ»، قَالَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأَشْبَهُكُمْ صَلَاةً بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [موطا محمد رقم ۱۰۳، موطا امام مالک رقم ۲۰۳، بخاری رقم ۷۸۵ ورقم ۷۸۹ ورقم ۷۹۵ ورقم ۸۰۳، مسلم رقم الحديث ۸۶۷، وابوداؤد رقم ۸۳۶، ترمذی رقم ۲۵٤، نسائي رقم ۱۱۵۵ و ۱۱۵۶، مسند احمد رقم ۷۲۱۹، دارمی رقم ۱۲٤۸، مصنف عبدالرزاق ۲٤۹۲ ورقم ۲٤۹٤].

حضرت ابو سلمة بن عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه فرمايي چې ابو هريرة رضی الله عنه به موږ ته لمونځ راکولو او د هرو ټيټيدلو او جګيدلو سره به يې الله اکبر ويلې (رفع اليدين به يې نه کول) بيا به

چې د لمانځه څخه فارغ شو نو په قسم سره به يې فرمايل چې زه په لمانځه کې ستاسو ټولو څخه زيات د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مشابه يم.

په دې صحيح حديث کې هم د ټيټيدلو او د جګيدلو سره د تکبير ذکر کړى دى د رفع اليدين ذکر نشته.

**١١٩- شپږم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ رحمهم الله تعالى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ رضي الله عنه «يُصَلِّي بِنَا، فَيُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ، وَحِينَ يَرْكَعُ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ بَعْدَ مَا يَرْفَعُ مِنَ الرُّكُوعِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ بَعْدَ مَا يَرْفَعُ مِنَ السُّجُودِ، وَإِذَا جَلَسَ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْفَعَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ، وَيُكَبِّرُ مِثْلَ ذَلِكَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ»، فَإِذَا سَلَّمَ، قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، إِنِّي لَأَقْرَبُكُمْ شَبَهًا بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعْنِي صَلَاتَهُ -، مَازَالَتْ هَذِهِ صَلَاتُهُ حَتَّى لَقِيَ اللهَ [مسند احمد رقم ٧٦٧٥]. ابو سلمة رضى الله عنه فرمايي چې ابو هريرة رضى الله عنه به موږ ته لمونځ راکولو نو د قيام، رکوع د رکوع څخه د راجګيدلو، سجدې د سجدو څخه د جګيدلو، د دوه رکعتونو څخه د پورته کيدلو په دې ټولو کې به يې الله اکبر ويلو او همداسې به يې په وروستنيو دوه رکعتونو کې الله اکبر ويلو، بيا به يې په قسم سره فرمايل چې زما لمونځ د رسول الله صلى الله عليه وسلم لمونځ ته په مشابهت کې ډېر ورنږدې دى او هميشه وو چې همداسې لمونځ يې کولو تر څو چې د دنيا څخه جدا شو.

په دې حديث کې هم يواځې د تکبيراتو ذکر دى که د رفع اليدين څه خاص اهميت وي نو ضرور به يې ذکر کړى واى.

**١٢٠- اووم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ رحمهم الله تعالى، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، يَقُولُ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ» فَذَكَرَ نَحْوَهُ [ مسند احمد رقم ٧٦٧٧ ]. دا روايت د مخکيني روايت يو بل سند دى په دې کې د ابو هريره رضى الله عنه لمونځ نه دى ذکر شوى بلکې د رسول الله صلى الله عليه وسلم عمل پکې رانقل شوى، فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې لمانځه ته ودريدلو نو تکبير به يې وويلې بيا يې مخکې د لمانځه پوره طريقه بيان کړه.

**١٢١- اتم حديث :** أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، أَخْبَرَنِي نُعَيْمٌ الْمُجْمِرُ وَأَبُو جَعْفَرٍ الْقَارِئُ رحمهم الله تعالى، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: كان يصلي بهم، فكبّر كلما خفض ورفع، قَالَ أَبُو جَعْفَرٍ: وَكَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِينَ يُكَبِّرُ وَيَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ. [ موطا محمد رقم ١٠٤،

کتاب الاثار للامام محمد رقم ۷۵ ، کتاب الاثار لابی یوسف رقم ۱۰۸ ] ابو جعفر القاری فرمایي چې ابوهریره رضی الله عنه دوی ته لمونځ ورکولو ، نو د هر ټیټیدلو او د جګیدلو سره به یې الله اکبر ویلو او د لمانځه د شروع الله اکبر سره به یې رفع الیدین کولو ، نو په دې حدیث کې دا واضح بیان شو چې رفع الیدین د تکبیر په شان د هر ټیټیدلو او جګیدلو سره نه وو بلکې یوائې دتکبیر تحریمه په وخت کې وو دا حدیث اګرچې موقوف دی لکن مرفوع هم شته .

**۱۲۲ – نهم حدیث :** **عَنْ أَبِي نُعَيْمٍ الْمُجْمِرِ وَأَبِي جَعْفَرٍ الْقَارِيِّ رحمهما الله تعالى عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ وَيُكَبِّرُ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ وَيَقُولُ أَنَا أَشْبَهُكُمْ صَلَاةً بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.** [ التمهید لما فی الموطا من المعانی والاسانید ج۹ ص ۲۱۵ ] . امام مالک رحمه الله فرمایي چې ماته ابو نعیم المجمر رحمه الله او ابو جعفر القاری رحمه الله و فرمایل د ابو هریره رضی الله عنه څخه چې ده رضی الله عنه به د لمانځه د شروع کولو په وخت کې رفع الیدین وکړل او نور به یې د هر ټیټیدلو او جګیدلو سره الله اکبر وویلې او فرمایل به یې چې زه په لمانځه کې ستاسو ټولو څخه ډیر مشابه یم د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره . حضرت علامة المتاخرین الشیخ المحدث محمد حسن السنبلی رحمه الله په خپل کتاب تنسیق النظام کې فرمایي چې :

(واخرجه محمد فی کتاب الحجه من طریق مالک عن نعیم بن عبد الله المجمر رحمه الله و ابی جعفر القاری رحمه الله انهما اخبراه ان اباهریرة رضی الله عنه کان یصلی بهم فیکبر کلما خفض ورفع قالا و کان یرفع یدیه حین یکبر لفتح الصلوة – فهذا سکوت فی معرض بیان رفع الیدین، فیدل علی عدم الرفع فیما عداه – قال محمد فهذا حدیثکم موافق لعلی رضی الله عنه و ابن مسعود رضی الله عنه و لا حاجة بنا معهما الی قول ابی هریرة ونحوه و لکن احتججنا علیکم بحدیثکم [ تنسیق النظام فی مسند الامام ص ۱۶۰/کتاب الحجة ج۱ ص ۹۵ وص ۹۶ ] .

امام محمد رحمه الله په خپل کتاب ( کتاب الحجة ) کې د امام مالک رحمه الله له طریقه روایت کوي چې امام مالک رحمه الله فرمایي چې ماته نعیم بن عبد الله امجمر رحمه الله او ابو جعفر القاری رحمه الله وویلې چې ابو هریرة رضی الله عنه به دوی ته لمونځ ورکولو او د هر ټیټیدلو او د جګیدلو سره به یې الله اکبر ویلې دا دواړه رحمهما الله فرمایي چې ابو هریره رضی الله عنه د لمانځه د شروع د الله اکبر .

سره رفع اليدين کول نو د رفع اليدين د بيان په وخت کې سکوت کول دد دې دليل دی چې د تکبير تحريمه څخه ماسوی په بل ځای کې رفع اليدين نشته . نو امام محمد رحمه الله فرمايي چې : ای (اهل مدينه!) ستاسو دا حديث د حضرت علی رضی الله عنه او د حضرت عبد الله بن مسعود ضی الله عنه د عمل سره موافق دی اگرچې دد دې دوو (علی رضی الله عنه او عبد الله بن مسعود رضی الله عنه) حضراتو د عمل څخه وروسته زموږ له پاره د ابو هريره رضی الله وغيره قول او دليل ته حاجت او ضرورت نشته لکن موږ ستاسو په روايت کړي حديث باندې د ترک د رفع اليدين له پاره په تاسو باندې دليل قائم کړو .

**۱۲۳- نهم حديث :** حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمايی چې زه يوه شپه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په کور کې ويده وم نو د ( تهجدو له پاره ) رسول الله صلی الله عليه وسلم پاڅيدلو مسواک يې ووهلو اودس يې وکړو او د سورة آل عمران د اخير دادعائيه اياتونه يې تلاوت کړل چې (ان فی خلق السموات والارض ...) د سورة تراخره پورې، بيا لمانځه ته ودريدلو دوه رکعته لمونځ يې داسې وکړو چې قيام رکوع او سجده يې پکې ډيره اوږده وکړله، بيا يې خپلې بسترې مبارکې ته تشريف راوړلو او اوده شو، تر دې چې د تنفس اواز يې اوريدل کيدلو، ددې څخه وروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم درې ځله داسې وکړل همداسې رسول الله صلی الله عليه وسلم ( داولو دوو رکعتونو څخه ماسوی ) شپږ رکعته وکړل، په هرځل به يې مسواک وهلو اودس به يې کولو، د سورت آل عمران اخري ايتونه به يې لوستل، بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم درې رکعته وتر وکړل، بيا مؤذن دسهار اذان وکړو، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم دسهار دلمانځه لپاره تشريف يوړو، په دغه وخت کې رسول الله صلی الله عليه وسلم دا دعا ولوستله چې (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا، وَفِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا، وَفِيْ لِسَانِيْ نُوْرًا، وَاجْعَلْ فِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا وَاجْعَلْ فِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا وَاجْعَلْ مِنْ خَلْفِيْ نُوْرًا وَمِنْ أَمَامِيْ نُوْرًا وَاجْعَلْ مِنْ فَوْقِيْ نُوْرًا وَمِنْ تَحْتِيْ نُوْرًا اَللّٰهُمَّ اَعْطِنِيْ نُوْرًا). مسلم رقم ۱۷۹۸ / مشکوة رقم / ۱۱۹۶ / .

دا حديث په مختلفو طريقو روايت شوی دی، لکن په هيڅ طريقه کې يې هم د رفع اليدين ذکر نشته که رفع اليدين ضروري وای نو حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما به ضرور ذکر کړی وو .

حضرت علامه محمد انور شاه کشميری رحمه الله فرمايي چې : وَلَمْ اَرَ فِيْ مَبِيْتِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عِنْدَ مَيْمُوْنَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اِلَّا الْاِسْتِفْتَاحَ وَدُعَآءَ النُّوْرِ [ نيل الفرقدين ص۹ ] يعنې د رسول الله صلی الله عليه

وسلم د شپې په لمونځ کې چې عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما د کوم شي مشاهده وکړه هغه د تکبير تحريمه سره رفع اليدين وو او دعاء وه نور هيڅ نه وه .

**١٢٤- لسم حديث :** حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ رحمه الله تعالى، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ رحمهما الله تعالى، عَنْ أَيُّوبَ رحمه الله تعالى، عَنْ أَبِي قِلاَبَةَ رحمه الله تعالى، أَنَّ مَالِكَ بْنَ الحُوَيْرِثِ ﷺ، قَالَ لِأَصْحَابِهِ: أَلاَ أُنَبِّئُكُمْ صَلاَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: وَذَاكَ فِي غَيْرِ حِينِ صَلاَةٍ، فَقَامَ، ثُمَّ رَكَعَ فَكَبَّرَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، فَقَامَ هُنَيَّةً، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ هُنَيَّةً، فَصَلَّى صَلاَةَ عَمْرِو بْنِ سَلِمَةَ رحمهما الله تعالى شَيْخِنَا هَذَا، قَالَ أَيُّوبُ رحمه الله تعالى: كَانَ يَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ أَرَهُمْ يَفْعَلُونَهُ كَانَ يَقْعُدُ فِي الثَّالِثَةِ وَالرَّابِعَةِ، قَالَ: فَأَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَقَمْنَا عِنْدَهُ، فَقَالَ: «لَوْ رَجَعْتُمْ إِلَى أَهْلِيكُمْ صَلُّوا صَلاَةَ كَذَا، فِي حِينِ كَذَا، صَلُّوا صَلاَةَ كَذَا، فِي حِينِ كَذَا، فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلاَةُ، فَلْيُؤَذِّنْ أَحَدُكُمْ، وَلْيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ [ بخاری رقم الحديث ٨١٨ ورقم ٨١٩ ] . د حضرت ابو قلابه څخه روايت دی چې حضرت مالک بن حويرث رضی الله عنه خپلو دوستانو ته وويلې چې ايا زه تاسو ته د رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمونځ کيفيت و نه ښايم ؟ ابو قلابه فرمايي چې : دا د کوم فرضي لمونځ وخت نه وو نو پاڅيدلو بيا يې رکوع وکړه او الله اکبر يې وويلو، ددې څخه وروسته يې سر را پورته کړو او يو څه وخت ودريدلو ، بيا يې سجده وکړه، بيا يې د سجدې څخه سر را پورته کړو او تر يو څه وخته پورې همداسې وه، ددې څخه وروسته يې بيا سجده وکړه، بيا يې تر څه وخته پورې سر را پورته کړو نو هغوی زموږ ددې شيخ عمرو بن سلمة په شان لمونځ وکړو د حديث راوی حضرت ايوب فرمايي چې ده يو کار داسې وکړو چې ما هيڅوک په داسې کار باندې نه وو ليدلي، په دريم او يا په څلورم رکعت کې کيناستلو ( جلسه د استراحت يې کوله ) حضرت مالک بن حويرث رضی الله عنه فرمايي چې زه د اسلام دراوړلو څخه وروسته د رسول الله صلی الله عليه وسلم خواته راغلم او ورسره ديره شوم، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې که تاسې خپل اهل او عيال ته واپس ورغلئ نو فلان لمونځ په فلان وخت کې وکړئ پس کله چې د لمانځه وخت راغلو نو يو کس دې درته اذان وکړي او په تاسو کې مشر دې درته امامت وکړي . په دې حديث کې مالک بن حويرث رضی الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمانځه نقشه بيانوي لکن د رفع اليدين ذکر پکې نه کوي ددې څخه معلوميږي چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لمونځ کې رفع اليدين نه و .

**١٢٥- يوولسم حديث :** وَبِهِ قَالَ عَنْ سَالِمٍ الْبَرَّادِ رحمه الله تعالى، قَالَ: أَتَيْنَا عُقْبَةَ بْنَ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيَّ أَبَا مَسْعُودٍ ﷺ، فَقُلْنَا لَهُ: حَدِّثْنَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، " فَقَامَ بَيْنَ أَيْدِينَا فِي الْمَسْجِدِ، فَكَبَّرَ، فَلَمَّا

رَكَعَ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَجَعَلَ أَصَابِعَهُ أَسْفَلَ مِنْ ذٰلِكَ، وَجَافَى بَيْنَ مِرْفَقَيْهِ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقَامَ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى الْأَرْضِ، ثُمَّ جَافَى بَيْنَ مِرْفَقَيْهِ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَجَلَسَ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، فَفَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ أَيْضًا، ثُمَّ صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ مِثْلَ هٰذِهِ الرَّكْعَةِ فَصَلَّى صَلَاتَهُ، ثُمَّ قَالَ: هٰكَذَا رَأَيْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي" [ ابوداؤد رقم ۸۶۳، نسائی رقم ۱۰۳۷ ورقم ۱۰۳۸ ، مسند احمد رقم ۱۶۶۲۸.ورقم ۱۶٦:۳، طحاوی رقم ۱۲۸۹، مصنف ابن ابی شیبه رقم ۲۹۷۹ ،مستدرک حاکم ج۱ ص۲۲٤ ] (وقال هذا حديث صحيح الاسناد ، ووافقه الذهبي على تصحيحه).

حضرت سالم البراد رحمه الله فرمايي چې : حضرت ابو مسعود انصاري رضى الله عنه زمونږ خواته تشريف راوړو نو مونږ ورته عرض وکړو چې مونږ ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د لمونځ کيفيت بيان کړه، نو په مسجد کې زمونږ په مخ کې ودريدلو، تکبير يې وکړو، پس کله يې چې رکوع وکړه نو لاسونه يې په زنګنونو باندې کيښودل او ګوتې يې (د زنګنونو څخه په) ښکته (د پونډۍ په پورتنۍ حصه باندې) کيښودلې او څنګلې يې د تشو څخه لرې وساتلې، تر دې چې هر اندام په خپل ځای باندې برقرار شو، بيايې سمع الله لمن حمده وويلې، د رکو څخه راپورته شو تر دې چې هر اندام په خپل ځای باندې برابر شو، بيايې الله اکبر ويلې او سجده يې وکړه او ورغوي يې په زمکه باندې کيښودل، بيايې څنګلې د (زمکې او د تشو څخه) لرې وساتلې بيايې د سجدې څخه سر راپورته کړو او په اطمينان باندې کيناستلو تر دې چې هر اندام په خپل ځاې باندې برابر شو بيايې په هر رکعت کې همداسې وکړل، بيايې د همدې (اول) رکعت په شان څلو رکعته وکړل، خپل لمونځ يې مکمل کړو، بيايې وفرمايل چې مونږ همداسې رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلى وو چې لمونځ يې کولو، په دې حديث کې د رفع اليدين نوم او نښان نشته که د رکوع په وخت کې رفع اليدين واى نو ضرور به يې بيان کړى و.

**۱۲۶- دولسم حديث :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ رحمه الله تعالى، حَدَّثَنِي أَبِي رحمه الله تعالى، حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ رحمهما الله تعالى، حَدَّثَنَا ضَمْرَةُ رحمه الله تعالى، عَنِ ابْنِ شَوْذَبٍ رحمه الله تعالى، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْقَاسِمِ رحمهما الله تعالى، قَالَ: جَلَسْنَا إِلَى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزَى رضي الله عنه فَقَالَ: أَلَا أُرِيكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: فَقُلْنَا: بَلَى. قَالَ: «فَقَامَ فَكَبَّرَ، ثُمَّ قَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، حَتَّى أَخَذَ كُلُّ عُضْوٍ مَأْخَذَهُ، ثُمَّ رَفَعَ حَتَّى أَخَذَ كُلُّ عُضْوٍ مَأْخَذَهُ، ثُمَّ سَجَدَ حَتَّى أَخَذَ كُلُّ عُضْوٍ مَأْخَذَهُ، ثُمَّ رَفَعَ حَتَّى أَخَذَ كُلُّ عَظْمٍ مَأْخَذَهُ،

ثُمَّ سَجَدَ حَتّٰى أَخَذَ كُلُّ عَظْمٍ مَأْخَذَهُ، ثُمَّ رَفَعَ فَصَنَعَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ كَمَا صَنَعَ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولٰى»، ثُمَّ قَالَ: «هٰكَذَا صَلَاةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ».[مسند احمد رقم ١٤٩٤٦ ج٣ ص ٤٠٧ ، مجمع الزوايد رقم ٢٧٩١ ]

حضرت قاسم رحمه الله فرمايي چې مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم د صحابى عبد الرحمن بن ابزى رضى الله عنه سره ناست وو نو حضرت عبد الرحمن بن ابزى رضى الله عنه و فرمايل چې ايا زه تاسو ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د لمونځ طريقه ونه ښايم؟ موږ ورته وويل چې وښايه! نو ودريدلو الله اكبر يې وويلو، بيايې قرات وكړو، بيايې ركوع وكړه، نو لاسونه يې په زنګنونو باندې كيښودل تر دې چې هر اندام په خپل خپل ځاى برابر شو، بيايې سر راپورته كړو تر دې چې هر اندام يې په خپل خپل ځاى برابر شو، بيا يې سجده وكړه تر دې چې هر اندام په خپل خپل ځاى برابر شو بيا د سجدې څخه راپورته شو تر دې چې هر اندام په خپل ځاى باندې برابر شو، بيا يې سجده وكړه تر دې چې هر اندام په خپل ځاى برابر شو بيا د سجدې څخه راپورته شو تر دې چې هر اندام په خپل ځاى برابر شو بيايې په دوهم ركعت كې همداسې وكړل لكه چې په اول ركعت كې يې كړي وو، بيايې وفرمايل چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم لمونځ همداسې و په دې حديث كې چې د لمونځ تعليم پكې وركول كيدلو د رفع اليدين ذكر يې پكې نه دى كړى همدارنګه په [ بخارى رقم ٨٢١ و مسلم رقم ١٠٥٩ ، مسند احمد رقم ١٢٢٤٢ ورقم ١٢٢٤٣ ، ابوداؤد رقم ٨٥٣ ، مسند احمد رقم ١٢٣٤٩ ورقم ١٢٦٩١ ، بخارى رقم ٨٢٥ ] وغيره ځايونو كې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د لمونځ نقشه بيان شوي ده لكن د رفع اليدين هيڅ نوم او نشان پكې نشته.

## ترک د رفع اليدين د صحابه وو رضوان الله عليهم د اثارو په رڼا كې

په منصوصي دلايلو كې د قرآن پاک څخه وروسته دوهمه درجه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د سنتو ده رسول الله صلى الله عيه وسلم د خپل ځان څخه وروسته د خلفاء راشدينو رضوان الله تعالى عليهم اجمعين د سنتو د اتباع تاكيد فرمايلى دى فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ خُلَفَآءِ الرَّاشِدِيْنَ الْمَهْدِيِّيْنَ تَمَسَّكُوْا بِهَا وَعَضُّوْا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ، الحديث.

[مشكوة ج١ ص ٢٩ رقم ١٦٥ ، ترمذى رقم ٢٦٧٦ ، وابوداؤد رقم ٤٦٠٧ ، وابـن ماجـه رقـم ٤٤، مسند احمد رقم ١٦٦٩٢] (وقال الالبـانى سـنده صـحيح وقـال الترمـذى : حـديث حسن صحيح وصححه جماعة).

لازم كړئ په ځانونو باندې زما سنت او زما د خلفاء راشدينو مهديينو سنت، منكولې ورباندې ولګوئ او د جامو په غاښونو يې كلک ونيسئ . همدا رنګه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې: (إِنِّيْ لَا أَدْرِيْ مَا بَقَائِيْ فِيْكُمْ فَاقْتَدُوْا بِالَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِيْ أَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا) [ ترمذى رقم ٣٦٦٢ ورقم ٣٦٦٣ وقال هذا حديث حسن ، ابن ماجه رقم ٩٧ ، مشكوة رقم ٦٠٦١ ] د حضرت حذيفه رضى الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې زه نه پوهيږم چې زه به په تاسو كې څو مره ژوندى يم لهذا تاسو زما څخه وروسته د ابوبكر او د عمر رضى الله عنهما پسې اقتدا وكړئ، همدا رنګه يو زنانه رضى الله عنها د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضره شوه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره يې د يوې مسئلې په باره كې خبرې وكړې، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته ديا راتللو امر وكړ، هغه زنانه ورته وويل چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم كه زه راغلم او تا پيدا نكړم؟ يعنې كه تاسو وفات شوي وى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې (فان لم تجدنى فأت أبا بكر رضى الله عنه) كه زه دې پيدا نكړم نو ابوبكر رضى الله عنه ته ورشه [بخارى رقم ٣٦٥٨ ورقم ٧٢٢٠ ورقم ٧٣٦٠ و مسلم رقم ٦١٧٩ ورقم ٦١٨٠ متفق عليه مشكوة رقم ٦٠٢٢ ] عام صحابه رضوان الله تعالى عليهم اجمعين هم د حق له پاره معيار دي او د دوي اجماع حجت ده الله جل جلاله فرمايي : «وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ۙ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ» او د مهاجرينو او انصارو څخه چې كومو خلكو مخكې ايمان راوړى دى او كومو خلكو چې د نيكۍ سره د دوي پيروي وكړه الله جل جلاله د دوى څخه راضي دى او دوي د الله جل جلاله څخه راضي دي .

د دې اياتونو او احاديثو په خلاف لا مذهبان خلفاء اربعه رضى الله عنهم او عام صحابه رضى الله عنهم د حق له پاره معيار نه ګڼي وګوره د لا مذهبانو كتابونه [فتـاوى نذيريـه ص٦٢٢ و ص ٣٤٠ ج١، والتاج المكلل ص ٢٠٧ ، عرف الجاديص ١٠١ وص ٢٠٧ وص ٨٠ ، سيرت ثنـائى ص ١٩٦ ، بـدور الاهلـه

ج۱ ص ۲۸وص ۹۵ وص ۱۲۹ وص ۱۳۹ وص ۳۹ ، فتاوى ستاريه ص ۸٦ ج۳ ،الحق الصريح ج۱ ص ٤۰ تحت قول صاحب المشكوة (كانى اسندت الى النبى صلى الله عليه وسلم).

## د خلفاء راشدينو رضى الله عنهم اثار

د حضرت عثمان رضى الله عنه څخه په دې مسئله کې نفيا او اثباتاً هيڅ نه دي روايت شوي د باقى خلفاوو اثار دادي.

**۱۲۷- اول اثر:** د حضرت ابو بکر صديق رضى الله عنه او د حضرت عمر رضى الله عنه لمونځ. عَنْ عَبْدِاللّٰهِ رضي الله عنه قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبِىْ بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لَمْ يَرْفَعُوْا اَيْدِيَهُمْ اِلَّا عِنْدَ اسْتِفْتَاحِ الصَّلٰوةِ [سنن دار قطنى ج۱ ص ۳۹۹ رقم ۱۱۲۰ طبع ملتان مترجم جزء سوم ص ۳۵۳ رقم ۱۱۱۸ ، سنن الكبرى للبيهقى ج۲ ص ۷۹ وص ۸۰ ، مجمع الزوايد رقم ۲۵۸۱ ، ابو يعلى فى مسنده رقم ۵۰۱۷ ، والمقصد العلى رقم ٢٦٦].

عبد الله ابن مسعود رضى الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د ابو بکر صديق رضى الله عنه او د عمر رضى الله عنه سره لمونځ کړى دى هغوي به صرف د لمانځه په شروع کې رفع اليدين کول او په بل هيڅ ځاى کې به يې نه کول. دا رقطنى فرمايي چې: (قال اسحق وبه ناخذ فى الصلوة کلها) اسحق فرمايي چې په ټولو لمونځونو کې زموږ عمل د دې حديث مطابق دى. ابن الجوزى رحمه الله دې روايت ته موضوعي ويلي دي، لکن حافظ ابن حجر رحمه الله په القول المسدود فى الذب عن المسند ص ۹۶ کې دا ثابته کړې ده چې دا حديث موضوعي نه دى، په دې حديث باندې د اعتراضونو څخه ځوابونه د عبد الله ابن مسعود رضى الله عنه د مرفوعو حديثونو په بيان کې د پنځلسم حديث لاندې کتلاى شئ.

**۱۲۸- دوهم اثر:** اثر دوم: عَنِ الْاَسْوَدِ رحمه الله قَالَ رَاَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِىْ اَوَّلِ تَكْبِيْرَةٍ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ. [ طحاوى رفع اليدين رقم الحديث ۱۳۲۹ ، صححه الزيلعى نصب الرايه ج۱ ص ٤۸۰ ، و هذا رجاله ثقات درايه ج۱ ص ۱۵۲ ، وهذا سند صحيح على شرط مسلم الجوهر النقى ج۲ ص ۷۵ ، وقال النيموى و هذا اثر صحيح ص ۱٥٤ وص ۱۵۵ رقم ٤٠٣ ] حضرت اسود رحمه الله فرمايي چې

ما حضرت عمر رض الله عنه وليدلو چې صرف د اول تكبير سره يې لاسونه او چتول او بيا يې هيڅكله نه او چتول. اما طحاوى رحمه الله ددې حديث پسې فرمايي چې : فَهَذَا عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ أَيْضًا إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى فِي هَذَا الْحَدِيثِ, وَهُوَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ لِأَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَيَّاشٍ رحمهما الله تعالى, وَإِنْ كَانَ هَذَا الْحَدِيثُ إِنَّمَا دَارَ عَلَيْهِ, فَإِنَّهُ ثِقَةٌ حُجَّةٌ, قَدْ ذَكَرَ ذَلِكَ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ رحمهما الله تعالى وَغَيْرُهُ. أَفَتَرَى عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خَفِيَ عَلَيْهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ, وَعَلِمَ بِذَلِكَ مَنْ دُونَهُ, وَمَنْ هُوَ مَعَهُ يَرَاهُ يَفْعَلُ غَيْرَ مَا رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ, ثُمَّ لَا يُنْكِرُ ذَلِكَ عَلَيْهِ, هَذَا عِنْدَنَا مُحَالٌ. وَفِعْلُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هَذَا وَتَرْكُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهُ عَلَى ذَلِكَ, دَلِيلٌ صَحِيحٌ أَنَّ ذَلِكَ هُوَ الْحَقُّ الَّذِي لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ خِلَافُهُ) [ طحاوى رقم ۱۳۲۹]

دا حضرت عمر رضى الله عنه دى چې د تكبير تحريمه څخه ماسوى په بل هيڅ ځاى كې رفع اليدين نه كوي، دا حديث صحيح دى، ځكه چې ددې حديث مدار اګرچې په حسن بن عياش رحمه الله باندې دى لكن هغه ثقه او حجت دى، يحى بن معين رحمه الله او نورو دا ذكر كړې ده، نو ستاسو څه فكر ده، چې ايا د حضرت عمر رضى الله عنه څخه دا خبره پټه پاتې شوې وه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په ركوع او په سجده كې رفع اليدين كړي دي ؟ د حضرت عمر رضى الله عنه په دې فعل باندې هغه حضرات خبر وو چې د حضرت عمر رضى الله عنه څخه په ټيټه درجه كې وو او هغه حضرات رضى الله عنه هم پرې خبر وو چې د حضرت عمر رضى الله عنه سره وو، نو دا محاله ده چې دوى حضرت عمر رضى الله عنه په داسې فعل باندې وګوري چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د فعل څخه مخالف وي او هيڅ اذكار پرې ونكړي، نو چې حضرت عمر رضى الله عنه داسې كوي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه يې په داسې فعل باندې پرېږدي، نو دا ددې واضح دليل دى چې د اترك د رفع اليدين هغه حقه خبره ده چې هيچاته يې هم مخالفت كول مناسب نه دى.

**۱۲۹- دريم اثر**: عَنِ الْأَسْوَدِ رحمه الله تعالى, قَالَ: «صَلَّيْتُ مَعَ عُمَرَ ﷺ, فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ صَلَاتِهِ إِلَّا حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ» قَالَ عَبْدُ الْـ رحمه الله تعالى: «وَرَأَيْتُ الشَّعْبِيَّ, وَإِبْرَاهِيمَ, وَأَبَا إِسْحَاقَ رحمهم الله تعالى, لَا يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَّا حِينَ يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ [ مصنف ابن ابى شيبه رقم ۲٤٦۹ ] .

د حضرت اسود رحمه الله څخه روايت دی چې ما د حضرت عمر رضی الله عنه سره لمونځونه کړي دي، هغه د تکبير تحريمه څخه ماسوی په بل هيڅ ځای کې هم رفع اليدين نه کول، عبد الملک فرمايي چې ما حضرت شعبی رحمه الله او حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله او ابو اسحق رحمه الله ليدلي دي چې هغوی به صرف او صرف د لمانځه د شروع په وخت کې رفع اليدين کول او په بل هيڅ ځای کې به يې نه کول.

د دې حديث راوي حضرت اسود بن يزيد رحمه الله مشهور تابعي دی، دوه کاله د حضرت عمر رضی الله عنه سره پاتې شوی دی، ده به مخکې په رکوع کې تطبيق کولو، بيا يې د حضرت عمر رضی الله عنه په امر باندې پريښود لو، حضرت اسود رحمه الله د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت د زمانې عمل رانقلوي او د حضرت عمر رضی الله عنه په دې عمل باندې د هيچا انکار نه دی را نقل شوی، نو دا د دې علامه ده چې په ترک د رفع اليدين باندې د صحابه وو اجماع وه، په دې صحيح اثر کې د دريو نورو مشهورو تابعينو عمل هم بيان شوی دی چې دوي هم رفع اليدين فی الصلوة نه کول.

## د حضرت علی رضی الله عنه اثار

**۱۳۰- خلورم اثر :** (عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ مِنَ الصَّلٰوةِ ثُمَّ لَا يَرْفَعُ بَعْدَهُ) [طحاوی رقم الحديث ۱۳۲۰ ، بيهقی من لم يذكر الرفع الا عند الافتتاح ج۲ ص ۸۰ ، مصنف ابن ابی شيبه رقم ۲۴۵۷ ، المدونة الكبری ج۱ ص ۶۹ مطبوعه مصر ، المدونة الكبری ج۱ ص ۱۶۵ طبع دار الكتب العلميه بيروت سنه ۱۴۲۶ ه، صححه الزيلعی ، نصب الرايه ج۱ ص ۴۰۶ ، قال ابن حجر رواته ثقات الدرايه فی تخريج الاحاديث الهدايه ج۱ ص ۱۵۲ قال العينی فی العمدة ، اسناد عاصم صحيح علی شرط مسلم عمدة القاری ج۵ ص ۴۰۰ طبع مكتبه رشيديه كوئټه ، قال النيموی و اسناده صحيح اثار السنن ص ۱۵۵ رقم ۴۰۴ طبع مكتبه البشری كراچي ] حضرت عاصم بن كليب د خپل والد (كليب بن شهاب الكوفی رحمه الله) څخه روايت كوي چې حضرت علی رضی الله عنه به د لمانځه د اول تكبير په وخت كې لاسونه اوچتول بيا به يې نه اوچتول.

**۱۳۱- پنځم اثر :** قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله تعالى، أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ النَّهْشَلِيُّ رحمهما الله تعالى، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ الْجَرْمِيِّ رحمهما الله تعالى، عَنْ أَبِيهِ، وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ عَلِيٍّ رضي الله عنه، أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ، كَرَّمَ اللّٰهُ

وَجْهَهُ، كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى الَّتِي يَفْتَتِحُ بِهَا الصَّلَاةَ، ثُمَّ لَا يَرْفَعُهُمَا فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَاةِ [ موطا امام محمد رقم الحديث ١٠٩ ] .

حضرت عاصم بن كليب رحمه الله د خپل والد كليب څخه روايت كوي كوم چې د حضرت على رضى الله عنه د اصحابو څخه وو چې حضرت على رضى الله عنه به صرف د اول تكبير سره رفع اليدين كولو، په كوم به يې چې لمونځ شروع كولو ددې څخه وروسته به يې د لمونځ په هيڅ حصه كې هم رفع اليدين نه كول.

ددې حديث راوي ابوبكر النهشلى رحمه الله باندې امام مسلم په صحيح مسلم كې استدلال كړى دى، امام يحى بن معين رحمه الله او امام عجلى رحمه الله دده توثيق كړى دى امام ذهبى رحمه الله ورته حسن الحديث او صدوق ويلى دى، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې (صدوق رمى بالارجاء) وګوره [خلاصة التهذيب الكمال للخزرجى ، ميزان الاعتدال، تقريب التهذيب ] امام بيهقى رحمه الله چې په دې راوي اعتراض كوي نو امام ابن تيميه ځواب وركوي چې امام بيهقى رحمه الله د تعصب څخه كار اخيستى دى [ بغية الالمعى ج٢ ص ٨ ] مشهور غير مقلد عبد الرحمن مباركپورى ليكي چې امام بيهقى اګرچې لوى امام دى لكن دده هيڅ قول هم بې دليله نه دى معتبر [تحقيق الكلام ج٢ ص ١٣٢] .

امام بخاري دعبد الرحمن بن مهدي قول رانقل كړى دى چې: وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ: ذَكَرْتُ لِلثَّوْرِيِّ حَدِيثَ النَّهْشَلِيِّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، فَأَنْكَرَهُ (جزء رفع اليدين صـ ٢٦٧)

قلنا ١-: د امام بخاري رحمه الله ملاقات دعبد الرحمن بن مهدي سره ثابت نه دى، امام بخاري په سنه (١٩٤هـ) كې په بخارى كې پيدا شوى دى او امام عبد الرحمن بن مهدي په سنه (١٩٨هـ) كې په بصره كې وفات شوى دى.

٢-جواب: امام بخاري رحمه الله د سفيان ثوري پورې ددې جرحې سند ندى ذكر كړى، لهذا ددې جرحې سند منقطع دى.

٣-جواب: جرح مبهمه لغوه وي.

**۱۳۲- شپږم حدیث :** قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله تعالى ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ رحمهم الله تعالى ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ الْجَرْمِيِّ رحمه الله تعالى ، عَنْ أَبِيهِ ، قَالَ : رَأَيْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ ﷺ «رَفَعَ يَدَيْهِ فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ ، وَلَمْ يَرْفَعْهُمَا فِيمَا سِوَى ذَلِكَ [ موطا امام محمد رقم الحديث ۱۰۵ ] .

د عاصم بن كليب پلار حضرت كليب رحمهما الله فرمايي چې : ما حضرت على رضى الله عنه وليدلو چې په فرضي لمونځ کې يې صرف د اول تكبير سره لاسونه اوچت کړل او ددې څخه وروسته يې ( د لمانځه په هيڅ ځاى کې هم ) اوچت نکړل د ابان بن صالح احاديث د استدلال قابل دي [ بيان الوهم والايهام ج۳ ص ۲۲۴ ] .

**۱۳۳- اووم اثر :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ رحمه الله تعالى ، عَنِ الْأَعْمَشِ رحمه الله تعالى ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ رحمه الله تعالى ، عَنْ عَلِيٍّ ﷺ ، «أَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ كُلَّمَا سَجَدَ ، وَكُلَّمَا رَفَعَ ، وَكُلَّمَا خَفَضَ [ مصنف ابن ابى شيبه رقم ۲٤۹۹ ] . حضرت على رضى الله عنه به د سجدې او د جګيدلو او د ټيټيدلو په وخت کې الله اكبر ويلې .

**۱۳٤- اتم اثر :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ أَبِيهِ رحمهم الله تعالى عَنْ جَدِّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى إِلَى فُرُوعِ أُذُنَيْهِ ثُمَّ لَا يَرْفَعُهُمَا حَتَّى يَقْضِيَ صَلَوتَهُ [ مسند زيد بن على ص ۹۰ وص ۸۸ رقم ۷٤ ] . حضرت زيد بن على بن حسين بن على رضى الله عنهم بن ابى طالب [ المتوفى ۱۲۲ هـ ] په خپل سند کې په خپل سند باندې روايت کوي چې بيشکه چې حضرت على رضى الله عنه به د اول تكبير سره د غوږونو تر پورتنۍ حصې پورې لاسونه اوچتول بيا به يې نه اوچتول تردې چې لمونځ به يې پوره کړو .

**۱۳۵- نهم اثر :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ أَبِيهِ رحمهم الله تعالى عَنْ جَدِّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ فِي رَفْعٍ وَخَفْضٍ [ مسند الامام زيد ص ۸۸ رقم ۷٦ ] حضرت على رضى الل عنه به د هر ټيټيدلو او جګيدلو سره الله اكبر ويلې .

**۱۳٦- لسم حديث:** بينظيره محدث ، مجتهد او فقيه ، امام محمد بن الحسن الشيباني رحمه الله فرمايي چې : جَاءَ الثَّبْتُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَعَبْدِ اللَّهِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُمَا كَانَا لَا يَرْفَعَانِ فِي شَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ إِلَّا فِي تَكْبِيرَةِ الْافْتِتَاحِ [ كتاب الحجة ج۱ ص ۹٤ ] . د حضرت على او د حضرت

عبد الله ابن مسعود رضی الله عنهما څخه په ډېره قوي طريقه باندې ثابته ده چې دوی به يواځې د تکبير تحريمه سره رفع اليدين کول.

امام طحاوی رحمه الله فرمايي چې: د حضرت علی رضی الله عنه شخصيت داسې نه دی چې دی د رسول الله صلی الله عليه وسلم رفع اليدين ليدلی وی او عمل پرې نه کوي، نو ددې ترک د رفع اليدين بله هيڅ وجه نشي کيدلای سوی ددې څخه چې رفع اليدين د حضرت علی رضی الله عنه په نيز منسوخ وو نو د حضرت علی رضي الله عنه دا صحيح حديث د ترک دفع اليدين والا ته ډېر پوخ دليل دی [شرح معانی الاثار ج۱ ص۲۹۱ وص ۲۹۲] مشـهور محـدث علامـه نيمـوی رحمـه الله د خپـل پـوره تحقيـق څخـه وروسته نتيجه بيانوي چې: (وَاَمَّا الْخُلَفَآءُ الْاَرْبَعَةُ فَلَمْ يَثْبُتْ عَنْهُمْ رَفْعُ الْاَيْدِيْ فِيْ غَيْرِ تَكْبِيْرَةِ الْاِحْرَامِ) [اثار السنن ص۱۵۹] يعنې د خلفاء اربعه رضی الله عنهم څخه يواځې د تکبير تحريمه سره رفع اليدين ثابت دی او ددې څخه ماسوی ترينه په بل هيڅ ځای کې هم رفع اليدين نه دی ثابت.

## د عشره مبشره وو رضی الله عنهم اثار

دا هغه لس صحابه رضی الله عنهم دي چې رسول الله صلی الله عليـه وسلم په دنيا کې ورتـه د جنت زيری ورکړی دی ۱ - ابو بکر رضی الله عنه ۲ - عمر رضی الله عنه ۳- عثمان رضی الله عنـه ٤- علی رضی الله عنه ٥- طلحه بن عبيد الله رضی الله عنه ٦- زبير بن عوام رضی الله عنـه ۷- عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنهم ۸- سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه ۹- سعيدبن زيد رضی الله عنه ۱۰ - ابو عبيدة بن الجراح رضی الله عنه [ترمذی رقم الحديث ۳۷٤۷ ورقم ۳۷٤۸].

**۱۳۷- يوولسم اثر**: عن ابن عباس رضی الله عنه انه قال: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُ قَالَ: اَلْعَشَرَةُ الَّذِيْنَ شَهِدَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْجَنَّةِ مَا كَانُوْا يَرْفَعُوْنَ اَيْدِيَهُمْ اِلَّا فِيْ اِفْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ [عمدة القاری شرح صحيح البخـاری ج٥ ص ۳۹۸ طبـع مکتبه رشيديه کويټه بـدايع الصـنايع ج۱ ص ٤٨٥]

حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنه فرمايي چې هغه لس صحابه رضی الله عنهم چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته د جنت زيری ورکړی وو هغوی ټولو به يواځې د تکبير تحريمه سره رفع اليدين کول په بل ځای کې به يې نکول.

## دبدري صحابه وو رضي الله عنهم اثار

په بدري صحابه وو کې د خلفاء راشدينو اثار مخکې وليکل شول، د پاتې بدري صحابه وو يو څو اثار لاندې وګورئ امام محمد رحمه الله فرمايي چې بدری صحابه رضی الله عنهم به په مخکې صف کې دريدل دوي د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لمونځ باندې تر ټولو ښه پوهيدل، په دوی کې د يوه څخه هم د تکبير تحريمه څخه وروسته د بل رفع اليدين ذکر صحت نه دی راغلی او موږ ته دا په صحيح طريقه رارسيدلې ده چې حضرت علی رضی الله عنه او حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه به د تکبير تحريمه څخه وروسته بل رفع اليدين نه کولو [کتاب الحجة ج۱ ص ۹۵].

## د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه اثار

**۱۳۸- دولسم اثر :** عَنِ الْأَسْوَدِ رحمه الله أَنَّ ابْنَ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ أَوَّلِ التَّكْبِيْرِ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ [جامع الاسانيد ج۱ ص ۳۵] حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به صرف د اول تکبير سره رفع اليدين کول وروسته نه کول.

**۱۳۹- ديارلسم اثر :** قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله تعالى أَخْبَرَنَا الثَّوْرِيُّ رحمه الله تعالى حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ رحمه الله تعالى عَنْ إِبْرَاهِيْمَ رحمه الله تعالى عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ [ موطا امام محمد رقم ۱۱۰]

حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله فرمايي چې: حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به د لمانځه د شروع کولو په وخت کې رفع اليدين کول.

**۱۴۰- خوارلسم اثر:** عَنْ إِبْرَاهِيْمَ رحمه الله قَالَ: كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ رضي الله عنه لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ شَيْءٍ مِّنَ الصَّلٰوةِ إِلَّا فِي الْإِفْتِتَاحِ. طحاوی رقم / ۱۳۲۸].

ابراهيم نخعی رحمه الله فرمايي چې : عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به صرف د لمانځه د شروع کولو په وخت کې رفع اليدين کول د دې څخه وروسته به يې په بل هيڅ ځای کې نه کول.

**۱۴۱- پنځلسم اثر :** عَنْ إِبْرَاهِيْمَ رحمه الله تعالى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ أَوَّلِ شَيْءٍ ثُمَّ لَا يَرْفَعُ بَعْدُ. (عبد الرازق رقم / ۲۵۳۲ /رقم ۲۴۳۴].

دابرهيم نخعي رحمة الله څخه روايت دی چې : عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به صرف داول تکبير سره رفع اليدين کول او بيا به يې نه کول.

فانقيل : چې دابراهيم نخعي رحمه الله ملاقات دحضرت علی رضی الله عنه سره نه دی شوی.

**قلنا** : دابراهيم نخعي رحمه الله څخه پوښتنه وشوه چې تاسو چې دحضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه حديث بيانوئ نوسند ولې نه ذکر کوئ ؟ ابراهيم نخعي رحمه الله جواب ورکړو چې کله چې زه سند ذکر کوم نو هلته ماته يو راوي معلوم وي او کله چې سند ذکر نه کړم نو هلته داحديث ماته يوجماعت ذکر کړی وي.

[ملخصاً طحاوی شرح معانی الأثار / ج / ۱ / ص / ۲۹۳ / رقم / ۱۳۲۷ / - ترمذی کتاب العلل / ج / ۲ / ص / ٦١٥ / طبقات ابن سعد / ج / ٦ / ص / ۱۹۰ / دار قطنی / ج / ۲ / ص / ۳٦۱].

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چې : مرسلات ابراهيم النخعی رحمه الله لابأس به ) تدريب الراوی / ص / ۱۲٤ / امام حاکم رحمه الله فرمايي چې : دابراهيم نخعي رحمه الله مراسيل صحيح دی تدريب الراوی / ص / ۱۲۳ / امام يحيی بن معين رحمه الله فرمايي چې : دابراهيم نخعي رحمه الله مراسيل دمراسيلو دشعبی رحمه الله او دمراسيلو دسالم رحمه الله څخه بهتر دی.

تدريب الراوی / ص / ۱۲۴ / . همدارنګه فرمايي چې : (مرسلات النخعی رحمة الله صحيحة الاحديث تاجر البحرين ) سنن کبری / ج / ۱ / ص / ۱٤۸ / نصب الراية / ج / ۱ / ص / ۵۲ / درايه / ص / ١٦ / مراسيل أبی داود / ص / ٤ /.

امام طحاوی رحمة الله فرمايي چې : ( کان ابراهيم لايرسل عن عبدالله ألا ماصح عنده وتواترت به الرواية عنده ) .[طحاوی شرح معانی الأثار / ج / ۱ / ص / ۲۹۳ / رقم / ۱۳۲۷].

امام دار قطنی رحمة الله فرمايي چې : دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه اقوال او فتوی دټولو څخه زياتې ابراهيم نخعي رحمة الله ته معلومې وې . انوار المحمود / ج / ۲ / ص / ۲۵۷ ].

## دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه اثار

**۱٤۲- شپاړسم اثر :** وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي دَاوُدَ رحمه الله تعالى، قَالَ: ثنا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ رحمه الله تعالى، قَالَ: ثنا أَبُوبَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ رحمه الله تعالى، عَنْ حُصَيْنٍ رحمه الله تعالى، عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله تعالى، قَالَ: «صَلَّيْتُ

خَلفَ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَلَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولٰى مِنَ الصَّلٰوةِ [ طحاوی باب رفع اليدين رقم ۱۳۲۳ ] امام مجاهد رحمه الله فرمايي چې ما د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په اقتدا کې لمونځ کړی دی نو هغه به صرف د لمانځه د اول تکبير په وخت کې رفع اليدين کولو، په بل ځای کې به يې نه کول. علامه ماردينی رحمه الله فرمايي چې وهذا سند صحيح الجوهر النقي ج ۲ صـ ۷۴ علامه عيني فرمايي چې (باسناد صحيح) [ عمدة القاری ج ۵ ص ۷۴ طبع مکتبه رشيديه ] علامه محمد انورشاه الکشميری رحمه الله فرمايي چې (وسنده صحيح) [ نيل الفرقدين ص ۱۳۲ ] امام طحاوی رحمه الله فرمايي چې وګوره عبد الله بن عمر رضی الله عنهما د رفع اليدين روايت کوي او بيا يې پخپله نه کوي، نو دايې ددې وجې څخه نه کوي، چې د رفع اليدين روايت منسوخ دی [ طحاوی تحت رقم ۱۳۲۳ ] دا سند په صحيح بخاري کې موجود دي (ج ۲ صـ ۷۲۵، باب قوله والذين تبوءوا النار والايمان)

**۱۴۳- اوولسم اثر :** وَبِهٖ قَالَ ابن ابی شيبة رحمه الله تعالى) حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ رحمه الله تعالى، عَنْ حُصَيْنٍ رحمه الله تعالى، عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله تعالى، قَالَ: «مَا رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ ﷺ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي أَوَّلِ مَا يَفْتَتِحُ [مصنف ابن ابی شيبه رقم ۲٤٦۷ ] امام مجاهد رحمه الله فرمايي چې ما عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما يوازې د تکبير تحريمه په وخت کې په رفع اليدين ليدلی دی. ددې حديث ټول راويان د بخاري راويان دي، د اطريقه په صحيح البخاري کې موجوده ده، حدثنا عبد الله بن ابی شيبه حدثنا ابوبکر بن عياش الخ ج ۱صـ صـ ۲۷٤، باب الاعتکاف فی العشر الاوسط من رمضان)

**١٤٤- اتلسم اثر :** قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله تعالى, أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ رحمهم الله تعالى، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ حَكِيمٍ رحمه الله تعالى، قَالَ: «رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ ﷺ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةِ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُمَا فِيمَا سِوٰى ذٰلِكَ [ موطا امام محمد رقم ۱۰۸ ] عبد العزيز بن حکيم فرمايي چې ما عبد الله بن عمر رضی الله عنهما ليدلو چې د اول تکبير سره به يې تر غوږونو پورې لاسونه پورته کول او ددې څخه ماسوی به يې نه اوچتول. دا حديث د امام مجاهد رحمه الله د حديث له پاره متابع دی اګرچې هغه حديث د خپل صحت له وجې متابع ته ضرورت نه لري لکن ددې حديث په وجه ورته نور هم تقويت حاصل شو.

**١٤٥- نولسم اثر** : (عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا كَانَ يُكَبِّرُ فِي الصَّلَاةِ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ.). [ موطا امام مالک رحمه الله رقم ٢٠٤ ]. سالم بن عبد الله فرمايي چې : عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به د هرو ټيټيدلو او جګيدلو سره الله اکبر ويلې .

**فانقيل** : چې امام مجاهد رحمه الله د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما عمل ترک درفع اليدين روايت کړی دی لکن دده په خلاف حضرت طاؤس رحمه الله د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما درفع اليدين عمل روايت کړی دی.

**قلنا**: امام طحاوی رحمه الله فرمايي چې : په اول کې عبد الله بن عمر رضی الله عنهما د خپل مرفوع روايت مطابق رفع اليدين کول، لکن چې کله وروسته ورته د رفع اليدين منسوخ والی معلوم شو نو بيايې رفع اليدين پرېښودل [طحاوی ج١ ص ٢٩٢ طبع دار الکتب العلميه بيروت] علامه عينی رحمه الله هم د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما د حديث څخه د رفع اليدين د منسوخ والی له پاره استدلال کوي فرمايي چې ( ويؤيد النسخ مارواه الطحاوی باسناد صحيح ) [ عمدة القاری ج٥ ص ٣٩٩ ]

**١٤٦- شلم اثر** : قَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رَأَيْتُكُمْ رَفَعْتُمْ أَيْدِيَكُمْ فِي الصَّلَاةِ وَاللهِ إِنَّهَا لَبِدْعَةٌ مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ هَذَا قَطُّ [الكامل فی ضعفاء الرجال/ حرف الباء/ رقم: ٢٨١٥/ج ٢/ص٣٩٩/ ميزان الاعتدال/حرف الباء تحت ترجمة بشر بن حرب].

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما يو څه خلک په رفع اليدين وليدل، نو ورته يې وفرمايل چې: ما وليدلئ چې د لمانځه په داخل کې مو رفع اليدين کول! په الله مې دې قسم وي چې دا بدعت دی. ما رسول الله صلی الله عليه وسلم په دغه رفع اليدين هېڅکله نه دی ليدلی.

**فايده**: رفع اليدين ته بدعت ويل داسې دي لکه : عبد الله بن مغفل رضی الله عنه چې (بسم الله بالجهر) ته بدعت ويلی دی. يعنې په دې فعل باندې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه مواظبت نه دی ثابت، نو په دې باندې مواظبت کول بدعت دی.

## ابوبکربن عیاش رحمه الله ثقه، عادل او د بخاری او د مسلم راوي دی

بعضې خلک اعتراض کوي چې د(۱۷) اثر په سند کې يو راوي ابوبکر بن عياش رحمه الله دی چې په اخر عمر کې يې حافظه خرابه شوي وه او ددابسې راوي روايت د محدثينو په نيز باندې ضعيف وي لهذا دا روايت ضعيف دی.

**ځواب :** ۱حضرت ابوبکر بن عياش رحمه الله د صحيح البخاری راوي دی ده د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما دا اثر د حافظې د خراب والي څخه مخکې روايت کړی دی، ځکه چې دده څخه ددې اثر را نقل کونکی احمد بن يونس عن ابی بكر بن عياش او ابن ابی شيبه عن ابی بكر بن عياش دی او دا سند په صحيح بخاري کې شته لکه حدثنا عبدالله بن ابی شيبه حدثنا ابوبكر (بن عياش) صحيح البخاري ج ۱صـ ۷٤، باب الاعتكاف فی العشر الاوسط، وحدثنا احمد بن يونس ، حدثنا ابو بكر (بن عياش) آه (صحيح البخاري ج ۲صـ ۷۲۵، باب قوله والذين تبؤالدار والايمان) او د مختلط په باره کې امام نووي رحمه الله فرمايي چې: وحكم المختلط ان لا يحتج بما روى عنه فی الاختلاط او شک فی وقت تحمله ويحتج بما روى عنه قبل الاختلاط وماكان فی الصحيحين عنه محمول على الأخذ عنه قبل ختلاطه،(تهذيب الاسماء واللغات للنووي ج ۱صـ ۲٤۲) قواعد فی علوم الحديث للعثماني صـ ۲۸۰)

بعضې حضرات د مجاهد رحمه الله د تفرد ذکر هم کوي لکن اول خو ددې متابع عبد العزيزبن حکيم رحمه الله موطا محمد رقم ۱۰۸ موجود دی، دوهم دا چې امام مجاهد ثقه دی او د ثقه تفرد بالاتفاق صحيح دی.

۲- مشهور سخت ترين متعصب لا مذهبه زبير علي زئی ليکي چې زما پخوانی تحقيق دا وو ابوبکر بن عياش رحمه الله د جمهورو په نزد ضعيف دی، وروسته را ته معلومه شوه چې دا د جمهورو په نزد صدوق او موثق دی لهذا زه د خپل پخواني تحقيق څخه علانيةً رجوع کوم [ ماهنامه الحديث خضرو ۲۸ ص ۵۴، تحرير ۲۲ ربيع الثانی سنه ۱۴۲۷ هـ ]

۳- د ابوبکر بن عياش رحمه الله توثيق د لاندې علماوو څخه ثابت دی.

[١ – بخاری رحمه الله ( اخرج عنه فی صحیحه ) ٢- ابن خزیمه ( اخرج عنه فی صحیحه ) ٣- ترمذی ( قال فی احادیثه حسن صحیح ) ٤- حاکم مستدرک رقم ٤٩٠٣ – ٥- ذهبی رحمه الله ( صحح له فی السیر ج١ ص ٤٦٥ ) ٦- الهیثمی مجمع الزوایـد ٩/ ١٨٠ ) کشف الاستار رقم ٢٦٢٣، الاحسان رقم ٦٩٧٠ ، الصحیحة رقم ٢١٩٧ ، ٧- ابن الجارود – المنقی ص ٣٣١ ، ٨- الضیاء المقدسی – المختاره ج١ / ٢٢٥ / ١١٤ ، ٩- ابو عوانه مسند ابو عوانه ٣/ ١٨٦ ، ١٠- البوصیری رحمه الله ١٥٩٦ ، ١١- العجلی رحمه الله معرفة الثقات ، ١٢- ابو حاتم الرازی – علل الحدیث ٢٢٣٣ ، ١٣ – احمد بن حنبل رحمه الله – الجرح والتعدیل ٩/ ٣٤٩ ، ١٤- عبد الرحمن بن مهدی رحمه الله- الجرح والتعدیل ٩/ ٣٤٩ ، ١٥- یحی بن معین – تاریخ عثمان بن سعید الدارمی رحمه الله من اهل الصدق والامانة ، ١٦ – مسلم رحمه الله روی عنه فی مقدمة صحیحه ، ١٧ – ابن الجوزی رحمه الله – المنتظم ٩/ ٢٣٢ ، ١٨- یزیدبن هارون – تاریخ بغداد ١٤/ ٣٨٠ ، ١٩- ابو نعیم الاصبهانی رحمه الله حلیة الاولیاء ٨/ ٣١٣ ، ٢٠- البغوی رحمه الله شرح السنة ٦/ ٣٩٦ رقم ١٨٣٥] امام ابن سعد: وکان ثقة، صدوقا، عارفا بالحدیث والعلم. امام ثوري، امام ابن المبارک، امام ابن مهدي یثنون علیه، امام یعقوب ابن شیبه فرمایي: شیخ قدیم معروف بالصلاح البارع وکان له فقه کثیر وعلم باخبار الناس وروایة الحدیث (تهذیب التهذیب)

۴ – او ابوبکربن عیاش ﷺ دبخاری شریف راوي دی په بخاری شریف کې ترینه روایتونه دي چې ځینې یې دادي :

| | | | |
|---|---|---|---|
| (١) ج١ ص ١٨٦ | (٦) ج ١ص ٤٩٦ | (١١) ج ٢ص ٩٠٣ | (١٦) ص ٤٠٤ |
| (٢) ج ١ص ٢٣٢ | (٧) ج ٢ص ٦٥٥ | (١٢) ج ٢ص ٩٥٢ | (١٧) ص ٢٦٠ |
| (٣) ج ١ص ٢٦٩ | (٨) ج٢ص ٧٢٥ | (١٣) ج ٢ص ٩٥٤ | (١٨) ص ١٠٥٢ |
| (٤) ج ١ص ٢٦٣ | (٩)ج٢ ص ٧٤٨ | (١٤)ج ٢ص ٩٦٣ | (١٩)ص ١١١٨ |
| (٥) ج ١ص ٢٧٤ | (١٠) ج ٢ص ٨٨٩ | (١٥) ص٩٧٧ | |

نو په حضرت ابوبکربن عیاش ﷺ باندې جرحه په بخاری شریف باندې جرح ابتداء ده نولامذهبان دي دبخاری شریف ددې ټولو احادیثو دضعف اعلان هم وکړي.

۵- د حضرت ابوبكر بن عياش رحمه الله خپل مذهب ترک د رفع اليدين وو او ددې سره يې دا ګواهي هم وركوله (مَا رَأَيْتُ فَقِيهًا قَطُّ يَفْعَلُهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي غَيْرِ التَّكْبِيرَةِ الْأُولٰى) [طحاوی رقم ۱۳۳۲] ما هيڅ په دين پوه سړی نه دی ليدلی چې د تكبير تحريمه څخه ماسوی يې په بل ځای کې رفع اليدين کړی وي.

۶- ناصرالدين البانی ليکي چې: (ابوبكر بن عياش رحمه الله فانه من رجال البخاری وحده وفيه كلام - لا ينزل به حديثه عن رتبة الحسن) [سلسلة الاحاديث الصحيحة ج۱ ص ۳٤۸].

۷- حضرت مولنا محمد امين صفدر اوكاړوی رحمه الله فرمايي چې د امام بخاری رحمه الله طرفته يو بله رساله هم منسوب ده په نوم د جزء البخاري، ددې رسالې راوي محمود بن اسحق الخزاعی مجهول دی په دې رساله کې د يحی بن معين رحمه الله په حواله باندې ليکلې شوي دي چې د ابوبكر بن عياش روايت د حصين څخه دده وهم دی، ددې روايت له پاره هيڅ اصل نشته كذا ذكره علی زی [نور العينين ص۱۶۸ لزبير علی زئی] لكن په صحيح البخاری ج۲ ص ۷۲۵ کې يې پخپله د ابوبكر رحمه الله عن حصين رحمه الله سند ذكر کړی دی، نو څرنګه په جزء رفع اليدين کې وهم شو او په صحيح البخاری کې نه شو؟

## د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما اثر

**۱٤۷- شلم اثر:** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: «تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ، إِذَا رَأَى الْبَيْتَ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَفِي الْعَرَفَاتِ، وَفِي جَمْعٍ، وَعِنْدَ الْجِمَارِ. [مصنف ابن ابی شيبه رقم ۲٤۶۵] حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي چې رفع اليدين په اوو ځايونو کې کيږي، کله چې لمانځه ته ودريدلې چې کله دې بيت الله وليدلو، په صفا، په مروه په عرفات، په مزدلفه او د رمی د جمراتو په وخت کې.

**۱٤۸- يويشتم اثر:** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: «تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ، إِذَا رَأَى الْبَيْتَ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَفِي جَمْعٍ، وَالْعَرَفَاتِ، وَعِنْدَ الْجِمَارِ [مصنف ابن ابی شيبه ج۱ ص ۲۶۷ وص ۲۶۸] يعنې رفع اليدين به صرف او صرف په مذكورو اوو ځايونو کې کيږي.

## د حضرت ابو هريرة رضى الله عنه اثار

**١٤٩- دوه ويشتم اثر**: أَخْبَرَنَا مَالِكٌ رحمه الله تعالى ، أَخْبَرَنِي نُعَيْمٌ الْمُجْمِرُ رحمه الله تعالى ، وَأَبُو جَعْفَرٍ الْقَارِئُ رحمه الله تعالى «أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ ﷺ كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ، فَكَبَّرَ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ»، قَالَ أَبُو جَعْفَرٍ رحمه الله تعالى: «وَكَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِينَ يُكَبِّرُ، وَيَفْتَتِحُ الصَّلاةَ [ موطا امـام محمـد رقـم ١٠٤، كتاب الاثار امام محمد رقـم ٧٥ ، كتـاب الاثـار لابى يوسـف رقـم ١٠٨] حضرت امام مالک رحمه الله فرمايي چې ماته نعيم المجمر رحمه الله او ابو جعفر القارى رحمه الله خبر راکړى دى چې ابو هريرة رضى الله عنه دوي ته لمونځ ورکولو نو د هر ټيټيدلو او جګيدلو سره به يې الله اکبر ويلې، ابو جعفر رحمه الله فرمايي چې رفع اليدين به يې د لمانځه د شروع د الله اکبر سره کولو ، فهذا حـديثكم (يـا اهـل المدينة) موافق لعلي رضى الله عنه و ابن مسعود رضى الله عنه لا حاجة بنا معهما الى قول ابى هريـرة ونحوه ولكن احتججنا عليكم بحديثكم (كتاب الحجة للامام محمد ج ١صـ ٧٥، باب افتتـاح الصلوة وترک الجهر ببسم الله)

**١٥٠- درويشتم اثر** : وَبِهِ قَالَ أَخْبَرَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ رحمه الله تعالى ، وَسَوَّارُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَوَّارٍ رحمه الله تعالى ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى رحمه الله تعالى ، عَنْ مَعْمَرٍ رحمه الله تعـالى ، عَـنْ الزُّهْـرِيِّ رحمه الله تعالى ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ رحمه الله تعالى ، وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ رحمه الله تعالى ، أَنَّهُمَا صَلَّيَا خَلْفَ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَلَمَّا رَكَعَ كَبَّرَ، فَلَمَّا رَفَعَ رَأْسَهُ قَالَ: «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ»، ثُمَّ سَجَدَ وَكَبَّرَ وَرَفَعَ رَأْسَهُ وَكَبَّرَ، ثُمَّ كَبَّرَ حِينَ قَامَ مِنَ الرَّكْعَـةِ، ثُـمَّ قَـالَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنِّي لَأَقْرَبُكُمْ شَبَهًا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا زَالَتْ هَذِهِ صَلَاتُهُ حَتَّى فَارَقَ الدُّنْيَـا [ نسـائى رقـم ١١٥٦] حضرت ابو بکر بن عبد الرحمن او ابو سلمة بن عبد الرحمن دواړه فرمايي چې : دوى د حضرت ابو هريره رضى الله عنه پسې لمونځ کولو ، نو چې کله يې سجده کوله الله اکبر يې ويلې، چې کله يې د رکوع څخه سر راپورته کولو نو سمع الله لمن حمده ربنا ولک الحمد يې ويلې بيايې سجده وکړه او الله اکبر يې وويلې، بيايې سر راپورته کړ او الله اکبر يې وويلې بيايې الله اکبر وويلې چې کله د رکعت څخه راپورته شو ، بيايې وفرمايل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې زما روح د هغه په قبضه کې دى چې زما لمونځ ستاسو ټولو څخه زيات مشابه دى د لمونځ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره، هميشه يې دا لمونځ کولو تر دې چې د دنيا څخه جدا شو .

**۱۵۱- خلورويشتم اثر :** حضرت امام محمد رحمه الله فرمايي چې : ان فقيههم مَالك بن انس رضي الله عنه قد روى عَن نعيم بن عبد الله المجمر وابي جَعْفَر الْقَارِي رحمهما الله تعالىٰ انهما اخبراه ان ابا هُرَيْرَة رَضِي الله عَنهُ كَانَ يُصَلِّي بهم فيكبر كلما خفض وَرفع قَالَا وَكَانَ يرفع يَدَيْهِ حِين يكبر ويفتتح الصَّلَاة فَهَذَا حديثكم مُوَافق لعَلي وَابْن مَسْعُود رَضِي الله عَنْهُمَا لَا حَاجَة بِنَا مَعَهُمَا الى قَول ابي هُرَيْرَة رضي الله عنه وَنَحْوه وَلَكنَّا احتججنا عَلَيْكُم بحديثكم [كتاب الحجة ج۱ ص/ ۹۵ وص/ ۹۶].

نعيم المجمر رحمه الله او ابو جعفر رحمه الله دواړو امام مالک رحمه الله ته خبر ورکړی دی، چې دوی ته ابوهريره رضی الله عنه لمونځ ورکولو نو د هر ټيټيدلو او جګيدلو سره به يې الله اکبر ويلې او دا دواړه فرمايي چې رفع اليدين به يې د تکبير تحريمه د الله اکبر سره کول امام محمد رحمه الله فرمايي چې (ای اهل مدينه وو) دا دابو هريره رضی الله عنه حديث چې ستاسو فقيه امام مالک رحمه الله روايت کړی دی دا حديث (په ترک د رفع اليدين کې) د حضرت علی رضی الله عنه او د حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه د حديث سره موافق دی او ددې دواړو د حديث سره نور بل د ابو هريره رضی الله عنه و غيره حديث ته (په اثبات د مطلوب کې) حاجت او ضرورت نشته لکن موږ په تاسو باندې ستاسو په حديث باندې استدلال وکړو.

## د حضرت جابر رضی الله عنه اثر

**۱۵۲- پنځويشتم اثر :** اثربيست وششم عَنْ جَابِرِبْنِ عَبْدِاللّٰهِ رضي الله عنهما اَنَّهٗ كَانَ يُعَلِّمُهُمُ التَّكْبِيْرَفِي الصَّلٰوةِ قَالَ فَكَانَ يَأْمُرُنَا اَنْ نُكَبِّرَ كُلَّمَا خَفِضْنَا وَرَفَعْنَا [موطا امام مالک رقم الحديث ۲۰۶، موطا امام محمد رقم الحديث ۱۰۱، مصنف ابن ابی شيبه رقم الحديث ۲۴۹۶] حضرت جابر رضی الله عنه به چې خپلو ملګرو ته لمونځ ورښودلو نو د انتقالاتو په وخت کې به يې صرف تکبير ورښودلو حضرت وهب بن کيسان رحمه الله فرمايي چې حضرت جابر رضي الله عنه به موږ ته د هر ټيټيدلو او دجګيدلو په وخت کې د تکبير حکم کولو، ددې څخه معلوميږي چې حضرت جابر رضی الله عنه به صرف تکبير کولو او صرف د همدې حکم به يې کولو، د حضرت جابر رضی الله عنه په اخري لمونځونو کې د رفع اليدين هيڅ ذکر نشته.

## د حضرت مالک بن انس رضی الله عنه اثر

**۱۵۳- شپږويشتم اثر** : عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: إِنِّي لاَ آلُو أَنْ أُصَلِّيَ بِكُمْ، كَمَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِنَا - قَالَ ثَابِتٌ رحمه الله تعالى: كَانَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رضي الله عنه يَصْنَعُ شَيْئًا لَمْ أَرَكُمْ تَصْنَعُونَهُ - " كَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ قَامَ حَتَّى يَقُولَ القَائِلُ: قَدْ نَسِيَ، وَبَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ حَتَّى يَقُولَ القَائِلُ: قَدْ نَسِيَ" [بخاری رقم ۸۲۱ مسلم رقم ۱۰۵۹ ] حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمايي چې زه په دې کې تقصير نه کوم چې زه تاسو ته هغه لمونځ وکړم کوم چې موږ ته نبی عليه السلام کولو ، حضرت ثابت فرمايي حضرت انس رضی الله عنه به يو کار داسې کولو چې ما تاسو ورباندې نه يې ليدلي، هغه به چې کله د رکوع څخه سر راپورته کړو نو دومره به ودريدلو چې ويونکي به ويلې چې دده څخه سجده هيره شوه او د دواړو سجدو په منځ کې به داسې کيناستلو چې ويونکي به ويلې چې دده څخه د وهمه سجده هيره شوه .

په دې حديث کې نه د رکوع د رفع اليدين ذکر راغلی او نه د سجدو د رفع اليدين .

## د حضرت عبد الله بن زبير رضی الله عنه اثر

**۱۵٤- ۲۷ اثر** : أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما رَأَى رَجُلًا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الصَّلَاةِ عِنْدَ الرُّكُوْعِ وَعِنْدَ رَفْعِ رَأْسِهِ مِنَ الرُّكُوْعِ، فَقَالَ لَهُ: لَا تَفْعَلْ! فَإِنَّ هٰذَا شَيْءٌ فَعَلَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَرَكَهُ. [ عمدة القاری ج٥ ص ۳۹۸ وص ۳۹۹ ] حضرت عبد الله بن زبير رضی الله عنه يو سړی وليدلو چې په لمانځه کې يې رکوع ته د تللو په وخت کې او د رکوع څخه د راجګيدلو په وخت کې رفع اليدين کول نو عبد الله بن زبير رضی الله عنه ورته وفرمايل چې داسې مه کوه ځکه چې دا داسې يو شی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم کړي وو بيا يې پريښي وو .

**۱۵۵ - ۲۸ - اثر: دحضرت علی رضي الله عنه**: وَعَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ رحمه الله تعالى عَنْ أَبِيْهِ رضي الله عنه أَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ.

عاصم بن کليب د خپل پلار څخه روايت کوي چې حضرت علی رضي الله عنه به د اول تکبير سره لاسونه پورته کول او نور به يې په هيڅ ځای د لمانځه کې نه پورته کول . ( مصنف ابن ابی شيبه ج ۱ ص ۱۲۱ و ص ۲۳۶ ).

**۱۵٦- په زرګونو صحابه او تابعين رضي الله عنهم:**

**۲۹۔ اثر** عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ رحمه الله تعالىٰ، قَالَ: «كَانَ أَصْحَابُ عَبْدِ اللّٰهِ ﷺ وَأَصْحَابُ عَلِيٍّ ﷺ، لَا يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَّا فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، قَالَ وَكِيعٌ رحمه الله تعالىٰ» ثُمَّ لَا يَعُودُونَ. دمحدث ابو اسحق څخه روايت دی چې دعبد الله بن مسعود ﷺ (پـه سـلګونو) ملګرو او دحضرت علی ﷺ (پـه زرګونو) ملګرو داول تکبير څخه بغير رفع اليدين نه کول. [مصنف ابن ابی شيبه ج ١ص ٢٦٧، ١٢١]. (اسناد صحيح جليل) ابو اسحق کوفي دی او نهايت ثقه راوي دی تذکرة الحفاظ، ج ١ص ١١۴ نمبر٩٩).

**۱۵۷- ۳۰ اثر : د حضرت علی بن الحسين ﷺ :** عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ ﷺ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُكَبِّرُ فِي الصَّلٰوةِ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ فَلَمْ تَزَلْ تِلْكَ صَلٰوتُهُ حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ.

دامام زين العابدين څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به الله اکبر ويلو (رفع اليدين به يې نه کول) هرکله به چې ټيټيدو او جيګيدو او همداسې لمونځ يې کولو ترهغې چې د الله ﷻ سره يې ملاقات وشو. (موطاء امام مالک ص ٧٣).

**۱۵۸ - ۳۱ اثر: دحضرت عمر ﷺ، حضرت شعبی رحمه الله ، حضرت ابراهيم رحمه الله، حضرت اسحق رحمه الله:** عَنِ الْأَسْوَدِ رحمه الله تعالىٰ ، قَالَ: «صَلَّيْتُ مَعَ عُمَرَ ﷺ، فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ صَلَاتِهِ إِلَّا حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ» قَالَ عَبْدُالْمَلِكِ رحمه الله تعالىٰ: «وَرَأَيْتُ الشَّعْبِيَّ، وَإِبْرَاهِيمَ، وَأَبَا إِسْحَاقَ رحمهم الله تعالىٰ، لَا يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَّا حِينَ يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ.

حضرت اسود تابعی ﷺ فرمائی چې ما دحضرت عمر ﷺ سره لمونځ کړی دی هغه به دلمانځه داول تکبير څخه علاوه په بل هيڅ ځای کې رفع اليدين نه کول او ما شعبی، ابراهيم، او ابو اسحق، هم ليدلي دي چې رفع اليدين به يې نه کولو مګر صرف داول تکبير په وخت کې. [مصنف ابن ابی شيبه ج ١ص ٢٦٨].

**۱۵۹- ۳۲ اثر:** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَرْفَعُ يَدَيْهِ كُلَّمَا رَكَعَ وَكُلَّمَا رَفَعَ ثُمَّ صَارَ إِلَى افْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ وَتَرَكَ مَا سِوٰى ذٰلِكَ ،(التعليق الصبيح على مشكوة ،ج ١ص ٤٧٥) يعنې عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي چې په ابتداء داسلام کې رسول الله ﷺ رفع اليدين کول بيا يې پريښودل.

**۱۶۰ - ۳۳ اثر:** رَأَى ابْنُ الزُّبَيْرِ ﷺ رَجُلًا يَرْفَعُ يَدَيْهِ مِنَ الرُّكُوْعِ فَقَالَ مَهْ! كَانَ هٰذَا الشَّيْءُ فَعَلَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ ثُمَّ تَرَكَهُ (التعليق الصبيح ،ج ١ص ٤٧٥).

عبدالله بن زبير ﷺ یوسړی په رفع اليدين وليدلو ،نوورتـه وی فرمایل چې داکارمکوه ځکه چې رسول الله ﷺ داپه ابتداء داسلام کې کړی ووبایې پریښی وو.

**١٦١- ٣٤ اثر:** امام بخاري په جزء رفع اليدين کې ليکلي دي چې: (كَانَ الثَّوْرِي وَوَكِيْعُ رَحِمَهُمَا اللهُ وَبَعْضُ الْكُوْفِيِيْنَ لَايَرْفَعُوْنَ اَيْدِيَهُمْ وَقَدْ رَوَوْا فِيْ ذٰلِكَ اَحَادِيْثَ كَثِيْرَةً (ص ٥٤)يعني امام ثوري ،اووكيع ،اوبعض اهل كوفه وورفع اليدين نه كولواوهغوى ددې لپاره ډيراحاديث روايت كړي دي.

**١٦٢- ٣٥ اثر:** امام بخاري دخپل استاذ حميدی ځخه رانقلوچې: وَإِنَّمَا يُؤْخَذُ بِالْآخِرِ فَالْآخِرِ مِنْ فِعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (بخاري ج ١ص٩٦)يعني درسول الله ﷺ په اخرى فعل عمل پكاردى اوامام بخاري پخپله بيا په جزرفع اليدين كې دامام اوزاعى قول رانقل كړی دی چې رفع اليدين مخكنى فعل دی) ص٥٦).

**١٦٣ - ٣٦ اثر:** امام ابراهيم نخعي فرمائي چې: وَقَدْ حَدَّثَنِي مَنْ لَا أُحْصِي، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: أَنَّهُ رَفَعَ يَدَيْهِ فِي بَدْءِ الصَّلَاةِ فَقَطْ، وَحَكَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (مسندامام اعظم ،ص ١١٩) ماته بيې شماره راويانو دعبدالله بن مسعود ﷺ ځخه روايت كړی دی چې هغوي به صرف دلمانځه په ابتداء كې رفع اليدين كول او داطريقه به يې درسول الله ﷺ ځخه روايت كوله.

په دې آثـارو كې صفا واضحه شوه چې: حضرت ابوبكر صديق، حضرت عمر، حضرت علي، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت ابوهريره، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت جابر بن عبدالله رضى الله تعالى عنهم او نورو فِدايانو صحابه وو د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم له رحلت ځخه وروسته په ترک د رفع اليدين باندې عمل كولو.

حافظ ابن عبدالبز رحمه الله د يوې مسئلې له تفصيل ځخه وروسته ليكي چې: لِاَنَّهُ مُحَالٌ اَنْ يَّكُوْنَ عِنْدَهُ فِيْ ذٰلِكَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئٌ وَيُخَالِفُهُ، وَلَوْكَانَ مُبَاحًا وَلَاسِيَّمَا ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما. [التمهيد/ ج ٩/ ص١٨٠]. ترجمه: دا محاله ده چې د صحابي په علم كې دې د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم كومه طريقه وي او بيا دې د هغې مخالفت وكړي، اگرچه هغه طريقه مباحه وي. خصوصاً له ابن عمر رضى الله عنهما ځخه خو بالكل ممكنه نه ده.

**۱٦٤-۳۷ دليل: ديو زرو پنځه سوه صحابه وو عمل:** په کوفه کې يو نيم زر صحابه او سيدل امام احمد بن عبد الله بن صالح العجلي الکوفي المتوفي (۲٦۱هـ ق) فرمايي: (نـزل الکوفـة ألـف وخمس مأة من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم (تاريخ الثقات للعجلي صـ ۵۱۷) باب فى من نزل الکوفة وغيرها مـن الصـحابة او د کوفې دټولو حضراتو عمل ترک د رفع اليدين وو، عنـد الخفـض والرفع، الامام الحافظ ابو عمر يوسف بن عبد الله ابن عبد البر القرطبي المتوفى سنه ٤٦۳ هـ فرمايي چې: قَالَ أَبُوعَبْدِ اللّٰهِ مُحَمَّدُ بْنُ نَصْرِ الْمَرْوَزِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي كِتَابِهِ فِي رَفْعِ الْيَدَيْنِ مِنَ الْكِتَابِ الْكَبِيرِ لَا نَعْلَمُ مِصْرًا مِنَ الْأَمْصَارِ يُنْسَبُ إِلٰى أَهْلِهِ الْعِلْمُ قَدِيمًا تَرَكُوا بِإِجْمَاعِهِمْ رَفْعَ الْيَدَيْنِ عِنْدَ الْخَفْضِ وَالرَّفْعِ فِي الصَّلَاةِ إِلَّا أَهْلَ الْكُوفَةِ

(التمهيد لابن عبدالبر ج ٤صـ ۱۸۷، الاستذکار لابن عبدالبر ج ۱صـ ۱۰۸، باب افتتاح الصلوة )

امام ترمذي رحمه الله فرمايي: وبه (ترک رفع اليدين) يَقُولُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالتَّابِعِينَ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ رحمه الله، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ (جامع الترمذي، باب رفع اليدين عند الركوع)

**۱٦۵-۳۸ دليل: د څلور زرو محـدثينو عمـل:** علامه ابو محمد الرامهرمزي په المحدث الفاصل بين الراوي والواعي کې فرمايي: په کوفه کې څلور زره محدثين اوسيدل. (انوار الباري ج ۱۵صـ ۳۲۹).

ابن سيرين فرمايي چې: اتيت الکوفة فوجدت بها اربعة الاف يطلبون الحديث واربع مـأة قـد تفقهوا، اود دوي ټولو عمل ترک د رفع اليدين وو (لانعلم مصرا من الامصار ينسـب الى اهلـه العلـم قديما ترکوا بأجمعهم رفع اليدين عند الخفض والرفع فى الصلوة الا اهل الکوفة) (التمهيـد ج ٤صـ ۱۸۷، الاستذکار ج ۱صـ ٤۰۸)

**۱٦٦- ۳۹ دليل : د څلور سوه فقهاؤ عمل:** مخکې ذکر شو چې په کوفه کې څلور سوه فقهاء اوسيدل او د کوفې دټولو خلکو عمل ترک د رفع اليدين وو نو ددې څلور سوه فقهاؤ عمل ترک د رفع اليدين وو. (انوار الباري ج ۱۵صـ ۳۲۹).

کله چې د نصوصو په منځ کې تعارض راشي نو په هغه وخت کې د صحابه وو تعامل زمونږ له پاره رڼا کرځي. لکه څنګه چې امام طحاوي رحمه الله فرمايي : ( فلما تضادت الاثار فى ذلـک وجـبَ ان

ننظر ما عليه عمل المسلمين الذى قد جرت عاداتهم فيُعمل على ذلك و يكون ناسخاً لما يخالفه.
[شرح معانى الاثار/ ج ۱/ ۳۲۵/ طبع مكتبه حقانيه ملتان ج۲/ ص۳۹/ باب الطفل يموت أيصلى عليه ام لا؟ تحت حديث ۲۹- ۲۸] يعني د احاديثو د تعارض په وخت کې به د مسلمانانو تعامل ته کتل کيږي، نو په کومه طريقه چې صحابه کرامو عمل کړی وي هغه به سنتِ باقيه وي او مقابل طرف به يې يا منسوخ او يا مخصوص وي، کوم خلک چې دغو آثارو ته د جوابونو کوشش کوي نو هغوی د صحابه وو خصوصاً د خلفاوو له محبت څخه غفلت کړی دی او د خپلې پارټۍ په محبت کې د ډير شغف له وجهې له غرونو سره سرونه جنګوي او ځان د هلاکت کندې ته غورځوي.

## ۱۶۷- دليل: ترک د رفع اليدين د خيرالقرون د تعامل په رڼا کې

امام نووی رحمه الله په شرح مسلم ج۲ ص ۳۰۹ کې فرمايي چې صحيح خبره داده چې خير القرون د صحابه وو رضی الله عنهم د تابعينو رحمهم الله او د تبع تابعينو رحمهم الله زمانه وه، د صحابه وو زمانه تر ۱۱۰ ه پورې وه، د تابعينو زمانه تر ۱۷۰ هجري پورې وه او د تبع تابعينو زمانه تر ۲۲۰ ه پورې وه او ددوی تعامل وګورئ او په اخر کې به اجمالاً دا خبره واورئ چې د خير القرون تعامل حجت دی او ددوی په نقش قدم باندې په تللو کې نجات او کاميابي ده علامه ابن القيم رحمه الله فرمايي چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه وروسته د نبوي علومو درې غټ غټ مرکزونه وو اول مکه مکرمه چې صدر المعلمين پکې حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما وو، دوهم مدينه منوره چې صدر المعلمين پکې حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما وو، دريم کوفه چې صدر المعلمين پکې حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وو [اعلام الموقعين]

## ۱۶۸- دليل: د مدينې د خلکو تعامل

حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمايي چې څوک چې د څلورو اړو مذهبونو په اصولو باندې خبروي هغه په دې کې شک نه کوي چې ددې څلورو واړو مذهبونو اصل د حضرت عمر رضی الله عنه اجماعي مسئلې دي او د حضرت عمر رضی الله عنه اجماعي مسئلې د څلورو واړو مذهبونو په مينځ کې يو مشترک شی دی، په دې باندې د فقهاوو صحابه وو لکه عبد الله بن عمر رضی الله عنهما او حضرت

عائشه رضی الله عنها او د مشرانو تابعينو، د مديني منورې فقهاء سبعه رحمهم الله او صغار تابعين، په مدينه منوره كې زهری رحمه الله او نورو حضراتو اعتماد دی او ددوي په تعامل باندې امام مالک رحمه الله د خپل مذهب بنياد ايښی دی [قرة العينين ص ١٧١].

فقهاء سبعه دا لاندې حضرات دي – سعيد بن المسيب رحمه الله المتوفى ٩٤ هـ عبيدالله بن عتبه بن مسعود رحمة الله المتوفى ٩٨ / - ابوبكر بن عبدالرحمن بن الحارث بن هشام المتوفى ٩٤ هـ - سليمان بن يسار المتوفى ١٠٩ هـ - خارجه بن زيد المتوفى ١٠٩ هـ الجوهر المضيه / ج / ٢ / ص / ٤٢١ / و ص/ ٤٢٢].

د خلافت په ابتداء كې د ټولې دنيا لوی مركز مدينه منوره وه بيا خلافت كوفی ته نقل شو، چې ددې په وجه بيا د مديني منورې هغه زور علمي حيثيت هم كمزوری شو، د امام مالک تر زمانې پورې بيا هم مدينه منوره په علم باندې اباده وه د امام مالک رحمه الله د مديني منورې په تعامل باندې دومره اعتماد وو چې دا دده په نزد مستقل حجت كڼل كيدلو. اعلام الموقعين /ج /١/ ص/٢٩٨].

## ١٦٩- دعبدالله بن عمر رضی الله عنه عمل ترک درفع اليدين و

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه يوه ورځ د حج په موسم كې رفع اليدين وكړل او دا د حج موسم ځكه وو چې امام بخاري رحمه الله فرمايي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه لاندې كسانو په رفع اليدين وليدلو

(١) ربيع ( بصري )
(٢) ليث ( كوفي )
(٣) طاوس ( يمني )
(٤) سالم ( مدني )
(٥) ابوزبير ( مكي )
(٦) محارب بن دثار (كوفي)
(٧) نافع ( مدني ) (جزء بخاري ص ١٧٩)

او ظاهر ده چې بصري، يمني، مكي او كوفي، د حج په موسم كې سره يوځای كيږي. بهرحال د حج په موسم كې دغې (او و ٧) كسانو حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه په رفع اليدين كولو باندې وليدلو، نو پدوي

کې دوه کسانو ترې پوښتنه وکړه چې ماهذا؟ دا څه شی دی؟ او دا دوه پوښتنه کونکې یو دحضرت ابن عمرﷺ ځوی حضرت سالمﷺ وو اوبل دکوفي قاضي محارب بن دثار وو. (مسند احمد رقم الحديث ٥٠٣٤ ورقم الحديث ٦٩٩٢ ج٢\ ص٤٥ وج٢)\ص١٤٥)

ظاهره وه چې په مانځه کې درکوع رفع اليدين اودريم رکعت ته د پاڅيدلو رفع اليدين دوي ته يونابلده اوناآشناکاربنکاره شو، ځکه د پوښتنې ضرورت پيښ شو، مثلاً که يو سړی په اودس کې مضمضه اواستنشاق وکړي نو هيڅوک ترينه دا پوښتنه نه کوي چې ماهذا ؟ دا څه شی دی؟

ځکه دانابلده اوناآشناکارندی اوکه يوسړی په اودس کې ګيډه هم ومينځي نو خلک ترينه پوښتنه کوي چې ماهذا ؟دا څه شی دی ؟

ځکه چې په اودس کې دګيډې مينځل يو ناآشنا او نابلده کار دی، يا مثلاً يو سړی په شاذ قرات باندې تلاوت وکړي نوخلک ترينه سوال کوي چې ماهذا ؟ دا څه شی دی؟ اوپه متواتر قراءت باندې دا اعتراض نه کيږي، ددې څخه صفامعلوميږي چې دصحابه وو رضي الله عنهم اوتابعينو رحمهم الله په زمانه کې رفع اليدين بالکل رواج نه وو اوددې پوزيشن داسې وولکه دمتواترقراءت په مقابل کې چې دشاذ قراءت کوم پوزيشن دی خلاصه داچې ترک درفع اليدين عملاً متواتر وو او درفع اليدين کول عملاً شاذ وو، حضرت محارب بن دثار دکوفي قاضي وواو د مکې اومدينې او دبصرې وغيره علمي سفرونه يې کړي وو، ليکن هيڅوک يې په رفع اليدين نه وو ليدلی ځکه ورته د عبدالله بن عمرﷺ فعل نابلده ښکاره شواوپوښتنه يې وکړه چې ماهذا؟ دا څه شی دی؟

او حضرت سالم مدني وواو خپله دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما ځوی وو ده هم هيڅوک په رفع اليدين نه وو ليدلی او خپله دعبدالله بن عمرﷺ عادت هم ترک درفع اليدين وو، که په مدينه کې يې څوک په رفع اليدين ليدلی وای اويا دعبدالله بن عمرﷺ عادت درفع اليدين کول وي نوځوی ته به يې نابلده نه ښکاريدلو اودپوښتنې ضرورت به نه پيښيدلو نو دصحابه وواو دتابعينو په دورکې په مکه، مدينه، کوفه، وغيره ښارونو کې رفع اليدين کول بالکل يونا آشنا اونابلده کاروو او هيچا هيڅوک په رفع اليدين نه وو ليدلی.

حضرت عبدالله بن عمرﷺ يو ځلې وکړل اوکله چې اعتراض ور باندې وشو نو هغه په جواب کې ورته حديث پيش کړو چې (ان رسول الله ﷺ کان يرفع ) الحديث

دحضـرت سـالم عـادت هـم تـرک درفـع اليـدين وو ځکـه خوورتـه نابلده کاربنـکاره شواو سـوال يـې وکړو چې ماهذا؟داڅه شی دی؟

حضرت سالم ﷺ چې کله د عبدالله عمر رضي الله عنه دا عمل وليدلو نو ده هم يو ځلي رفع اليدين وکړل نو حضرت جابر ﷺ وربانديې اعتراض وکړو چې ماهذا؟ داڅه شی دی؟

## ۱۷۰ـ دامام مالک مسلک هم ترک درفع اليدين و

امام مالک رحمه الله فرمائی: لَا أَعْرِفُ رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِي شَيْءٍ مِنْ تَكْبِيرِ الصَّلَاةِ لَا فِي خَفْضٍ وَلَا فِي رَفْعٍ إِلَّا فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ يَرْفَعُ يَدَيْهِ شَيْئًا خَفِيفًا وَالْمَرْأَةُ فِي ذٰلِكَ بِمَنْزِلَةِ الرَّجُلِ، قَالَ ابْنُ الْقَاسِمِ: وَكَانَ رَفْعُ الْيَدَيْنِ عِنْدَ مَالِكٍ ضَعِيفًا ( المدونة الكبرى ج ١ص ٧١/ ج ١ / ص ١٦٥ / دارالكتب العلمية / بيروت).

يعنې داول تکبير څخه وروسته زه په هيڅ ټيټيدلو او جيګيدلو کې رفع اليدين نه پيژنم. ابن قاسم فرمايي چې: د امام مالک په نزد رفع اليدين کول ضعيف وو. دنه پيژندلو معنی دانه ده چې ده ته درفع اليدين روايات نه وو معلوم بلکې معنی يې داده چې ده هيڅوک په رفع اليدين کولو نه وو ليدلی يعنې عملا يې نه پيژندل

امام مالک دمدينې منورې امام وو، معلوميږي چې په مدينه منوره کې په خير القرون کې هيچا رفع اليدين نه کول او نه درسول الله ﷺ روضی ته ددنيا دهر کونج څخه راتلونکو مسلمانانو کول، کنه امام مالک به عملا پيژندلې وو. امام مالک رحمه الله په خير القرون کې پيدا شوی دی، او په خير القرون کې وفات شوی دی،

پيدا ايښت يې په سنه (۹۳ هـ) کې شوی دی او وفات يې په سنه ۱۷٦ کې شوی دی.

امام نووی رحمه الله فرمايي چې: وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ وَأَصْحَابُهُ رضي الله عنهم وَجَمَاعَةٌ مِنَ أَهْلِ الْكُوفَةِ لَايُسْتَحَبُّ فِي غَيْرِتَكْبِيرَةِ الْإِحْرَامِ وَهُوَ أَشْهَرُ الرِّوَايَاتِ عَنْ مَالِك رحمه الله تعالى واجمعوا على انه لايجب شَيْءٌ مِنَ الرَّفْعِ) [ نووی شرح مسلم ج١ ص ١٦٨ ] .يعنې امام ابو حنيفه رحمه الله او د کوفې د خلکو يو جماعت او امام مالک

په مشهورروايت کې فرمايي چې د تکبير تحريمه څخه وروسته هيڅ رفع اليدين نه دی مستحب او په دې خو د ټولو اجماع ده چې هيڅ رفع اليدين واجب نه دی.

فانقيل: چې امام مالک په موطا کې د رفع اليدين روايت راوړی دی معلوميږي چې دده مذهب رفع اليدين دی.

قلنا: د مالکي مذهب اعتماد په المدونة الکبری باندې دی، ددې کتاب مؤلف ابن القاسم دی دلا مذهبو مشهور محقق مبارکپوري د حافظ ابن حجر د تعجيل المنفعة په حواله باندې ليکي چې: بَل اِعْتِمَادُهُمْ فِي الْاَحْکَامِ وَالْفَتْوٰی عَلٰی مَارَوَاهُ ابْنُ الْقَاسِمِ رحمة الله عليه عَنْ مَالِكٍ رحمة الله عليه سَوَاءٌ وَافَقَ مَا فِي الْمُوَطَّا اَمْ لَا [مقدمة تحفة الاحوذی ص ٢١٠ طبع بيروت] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې (اَلْمُعْتَبَرُ عِنْدَ الْمَالِکِيَّةِ رِوَايَةُ ابْنِ الْقَاسِمِ رحمة الله عليه وَافَقَتْ رِوَايَةُ الْمُوَطَّا اَوْخَالَفَتْ اَوْ کَمَا قَالَ) [تعجيل المنفعة ص١٨ طبع بيروت] يعنې د مالکيانو په نيز د ابن القاسم روايت معتبر دی هغه بيا د موطا سره موافق وي او که مخالف وي.

## ١٧١ـ د مکې مکرمې د خلکو تعامل

څرنګه چې د ميمون مکی رحمه الله د روايت څخه معلوميږي چې صحابه وو تابعينو او تبع تابعينو به رفع اليدين نه کول.

روى الامام ابو داود سليمان بن الاشعث: قال حدثنا قتيبة بن سعيد نا ابن لهيعة عن أبى هريرة رضى الله عنه عن ميمون المكى أنه رأى عبد الله بن الزبير وصلى بهم بشير بكفيه حين يقوم وحين يركع وحين يسجد وحين ينهض للقيام فيقوم فيشير بيديه فانطلقت الى ابن عباس فقلت انى رأيت ابن الزبير صلى صلوة لم أر احدا يصليها فوصفت له هذه الاشارة فقال ان احببت ان تنظر الى صلوة رسول الله صلى اله عليه فاقتد بصلوة عبد الله بن الزبير (سنن ابى داود ج١ص١١٥، باب افتتاح الصلوة)

دروايت حاصل داسې دی چې يوه ورځ حضرت ميمون مکی عبد الله بن زبير رضی الله عنه په رفع اليدين کولو باندې وليدلو، نو حضرت ميمون فرمائی چې زه حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه ته ورغلم او ورته مې وويل چې ما خونن ورځ عبد الله بن زبير رضی الله عنه په داسې نوي لمونځ باندې وليدلو چې ددې څخه مخکې مې هيڅوک ورباندې نه وو ليدلي. (ابوداود، ج ١ ص ١١٥)

حضرت ميمون مكى ډير صحابه ليدلي وو ، مګر د عبد الله بن زبير ﷺ څخه بغيريې بل څوک په رفع اليدين نه وو ليدلي ، ډير تابعين يې ليدلي وو مګريو تابعي يې هم په رفع اليدين نه وو ليدلي ، ډير تبع تابعين يې ليدلي وو مګريو تبع تابعي يې هم په رفع اليدين نه وو ليدلي ، د ټولې دنيا څخه مكې مكرمې ته راتلونكي حاجيان يې د لمانځه په وخت كې ليدلي وو ، مګر د هيڅ علاقې هيڅ حاجي يې هم په رفع اليدين نه وو ليدلى دا په خير القرون كې په ترک درفع اليدين باندې عملي تواتر دى .

علامه محمد انورشاه كشميرى رحمه الله فرمايي چې : وَاَمَّا حَدِيْثُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زُبَيْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا مِنْ رِوَايَةِ اَبِيْ دَاوُدَ رحمه الله فَفِيْهِ ابْنُ لَهِيْعَةَ رحمه الله وَحَالُه مَعْلُوْمٌ ثُمَّ مَيْمُوْنُ الْمَكِّيُّ رحمه الله فِيْهِ يَقُوْلُ لِابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما اَنِّيْ رَاَيْتُ ابْنَ زُبَيْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يُصَلِّيْ صَلٰوةً لَمْ اَرَاَحَدًا يُصَلِّيْهَا وَوَصَفْتُ لَه هٰذِهِ الْاِشَارَةَ فَهٰذَانِ كَانَ دَلَّ عَلٰى تَرْكِ الْجُمْهُوْرِ [نيل الفرقدين ص ٦٤ طبع ادارة القرآن كراچي معارف السنن ج٢ ص ٤٦٣ ] په ابو داؤد كې چې د عبد الله بن زبير كوم حديث دى نو دهغې په سند كې ابن لهيعه دى چې د (ضعف) حال يې معلوم دى بيا حضرت ابن عباس رضى الله عنهما ته د ميمون مكى رحمه الله دا وينا چې ما نن عبد الله بن زبير رضى الله عنه په داسې لمونځ باندې وليدلو چې بل هيڅوک مې ورباندې نه دي ليدلي او په لاسونو باندې يې دذې اشارې بيان اوكړو دا ټول د جمهورو ترک د رفع اليدين بيانوي .

په صحيح البخارى ج١ ص ٣٦ كې راغلي دي چې حضرت ابو موسى اشعرى رضى الله عنه د متيازو په باره كې د ډير شدت څخه كار اخستلو او په متيازو باندې د ككړو جامو غوڅولو يې غوښتل نو حضرت حذيفه رضى الله عنه وفرمايل چې كاشكې چې ابو موسى اشعرى رضى الله عنه ددومره تشدد څخه رجوع وكړي او بيا يې حديث پيش كړو چې يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د قوم يوډيران ته راغلو او په ولاړه يې بولې وكړې، نو د حضرت حذيفه رضى الله عنه دا وينا داسې ده لكه د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما وينا ، نو د حضرت حذيفه رضى الله عنه مطلب دا نه دى چې په ولاړه باندې متيازې سنت دي او نه يې په ولاړه باندې متيازې كولې، بلكې په ناسته باندې متيازو كولو ته يې سنت متواتره ويلي دي، همدا رنګه د عبد الله بن عباس رضى الله عنهما په نيزد هم ترک د رفع اليدين د سنت متواتره وو څخه وو .

## ۱۷۲۔ د عبد الله بن زبیر رضی الله عنه اولاد به رفع الیدین نه کول

حضرت محمد بن يحی فرمایي چې د حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه ځوی حضرت عباد رحمه الله په څنګ کې یو سړي لمونځ کولو او د هر ټیټیدلو او جګیدلو سره به یې رفع الیدین کولو نو حضرت عباد رحمه الله ورته وفرمایل چې زه تا د هر ټیټیدلو او جګیدلو سره په رفع الیدین باندې ګورم حالانکه رسول الله صلی الله علیه وسلم به یو اځې د تکبیر تحریمه په وخت کې رفع الیدین کولو او بیایې د لمانځه څخه تر فارغیدو پورې نه کول [ نیل الفرقدین مع بسط الیدین ص ۱۴۴ طبع ادارة القرآن کراچي ]

## ۱۷۳۔ حضرت وهیب بن خالد رحمه الله په رفع الیدین اعتراض وکړو

حضرت نضربن کثیر رحمه الله فرمایي چې د منی په میدان کې په مسجد خیف کې زما په څنګ کې عبد الله بن طاووس یمنی رحمه الله د سجدې څخه وروسته رفع الیدین وکړل، نو ما دا کار ډیر بد اوګڼلو، نو حضرت وهیب بن خالد رحمه الله ورته وفرمایل چې تا ولې داسې کار وکړ چې ما هیڅوک هم وربانډې نه دی لیدلی ؟ هغه ورته د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما څخه حدیث واورولو . [ابوداؤد رقم ۷۴۰ نسائی رقم الحدیث ۱۱۴۷ ] . د حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه د حضرت میمون مکی رحمه الله او د حضرت وهیب بن خالد رحمه الله درې واړو د طرز عمل څخه ثابته شوه چې په مکه مکرمه کې رفع الیدین بالکل متروک وو سره ددې چې ډیر صحابه رضی الله عنهم او تابعین پکې اوسیدل.

## ۱۷۴۔ حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه

حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه به رفع الیدین ته منسوخ ویلې : اِنَّ عَبْدَاللّٰهِ بْنِ زُبَیْرٍ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُمَا رَاٰی رَجُلاً یَرْفَعُ یَدَیْهِ فِی الصَّلٰوۃِ عِنْدَ الرُّکُوْعِ وَ عِنْدَ رَفْعِ رَاْسِه مِنَ الرُّکُوْعِ فَقَالَ لَه: لَا تَفْعَلْ! فَاِنَّ هٰذَا شَیْءٌ فَعَلَه رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَرَکَه [ عمدة القاری ج۵ ص ۳۹۸ طبع مکتبه رشیدیه کویته] عبد الله بن زبیر رضی الله عنه یو سړی د رکوع په رفع الیدین باندې ولیدلو نو ورته وې فرمائل چې داسې مه کوه ځکه چې دا کار رسول الله صلی الله علیه وسلم کړی وو بیایې پریښی وو.

**د کوفې د خلکو تعامل:**

**۱۷۵**۔ د حرمينو شريفينو څخه وروسته کوفه هغه ځمکه وه چې په زرګونو صحابه رضی الله عنهم او تابعين هلته اوسيدل په کوفه کې يونيم زر صحابه اوسيدل چې ۲۴ يا ۹۹ پکې بدري صحابه وو او ۳۱۳ پکې د بيعة الرضوان والاصحابه وګوره [ فتح المغيث ص۳۸۲ ، فتح القدير ج۱ ص ۴۲ ج۱۲ ص ۷۲ ] علامه نووی ورته ددار الفضل والفضلاء لقب ورکوي، په لسو مشهورو قاريانو کې څلور قاريان د کوفې وو ( عاصم رحمه الله ، حمزه ، کسائی ، خلف ) نن سبا د ۹۹ فيصدو څخه زيات مسلمانان د عاصم په قرات بروايت امام حفص رحمه الله قرآن مجيد لولي حضرت امام عاصم رحمه الله د امام ابو حنيفه رحمه الله استاذ دی او حضرت امام حفص رحمه الله د امام صاحب هم سبقي دی دا ښار حضرت عمر رضی الله عنه اباد کړی وو او حضرت عمر رضی الله عنه د تعليم له پاره ورته حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه او حضرت عمار رضی الله عنه وليګل، ددوي د کوششونو په نتيجه کې دا ښار د علم څخه ډک شوی وو کله چې حضرت علی رضی الله عنه دا ښار خپله دار الخلافه کړه نو حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ته يې داسې دعا وکړه چې الله جل جلاله دې په عبد الله بن مسعود رضی الله عنه رحمتونه نازل کړي چې دا ښار يې د علم څخه ډک کړی دی څلور زره محدثين او څلور سوه فقهاء په کوفه کې اوسيدل [ انوار الباری ج۱۵ ص ۳۲۹ شاه ولی الله رحمه الله فرمايي چې ( کان اغلب قضاياه بالکوفة) [حجة الله البالغه ج۱ ص ۱۳۲ ] د حضرت علی رضی الله عنه اکثره فيصلې په کوفه کې کيدلې د حضرت علی رضی الله عنه او د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه علاوه د حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه حضرت حذيفه رضی الله عنه ، سلمان فارسی رضی الله عنه عمار بن ياسر رضی الله عنه عبد الله بن ابی اوفی رضی الله عنه ، او د عبد الله بن الحارث رضی الله عنه په شان جليل القدر صحابه رضی الله عنهم په کوفه کې اوسيدل [ منهاج السنة لابن تيميه ج۴ ص ۱۵۷ ] او ددوي په شمول د کوفې ټولو خلکو د تکبير تحريمه د رفع اليدين څخه بغير بل هيڅ يو رفع اليدين هم نه کولو [ ترمذی تحت رقم الحديث ۲۵۷ ] علامه محمد انور شاه کشميری رحمه الله فرمايي چې ( وتعلمه اهل الکوفة من ابن مسعود رضی الله عنه و علی رضی الله عنه ورحلوا الی عمر رضی الله عنه لتعلم الصلوة ايضاً فرأو اترکه واستمروا عليه ) [ معارف السنن ج۲ ص ۴۵۹ ، انوار الباری ج۱۵ ص ۳۱۵ ] اهل کوفه وو ترک د رفع اليدين د حضرت علی او د حضرت عبد الله بن مسعود څخه زده کړی وو بيا د وی د لمانځه

د زده کولو له پاره حضرت عمر رضی الله عنه ته ورغلل نو حضرت عمر رضی الله عنه یې هم په ترک د رفع اليدين باندې وليدلو نو په دې باندې د اهل کوفه وو عمل جاري پاتې شو .

## ۱۷٦۔ د اهل کوفه وو لمونځ

د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه درفع اليدين اويا دترک درفع اليدين په باره کې هيڅ نه دي ثابت شوي او د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په زمانه کې کوفه نه وه اباده شوې، نو علامه انورشا کشميري رحمه الله فرمايي چې : اهل کوفه وو ته دابوبکر صديق رضی الله عنه څخه په دې مسئله کې هيڅ نه دي نقل شوي، همدارنګه نورو خلکو ته هم دابوبکر صديق رضی الله عنه څخه په صحيح سند باندې هيڅ نه دي نقل شوي او د حضرت عمر رضی الله عنه عمل ورته په صحيح سند باندې ترک درفع اليدين را نقل شوی دی.[کما فی الاتحاف نقلاً عن شرح التقريب للعراقی / ج / ۲ / ص / ۲٥٤].

همدارنګه اهل کوفه ؤ ته د حضرت علي رضی الله عنه څخه صرف ترک درفع اليدين اثبت (زيات ثابت) دی په نظر سره نورو خلکو ته، ځکه چې د نورو خلکو په نسبت اهل کوفه وو ته د حضرت علي رضی الله عنه حالات ښه معلوم دي او د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه په را نقل کړی شوي علم کې خو اهل کوفه منفرد دي، د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه را نقل کړی شوی علم د اهل کوفه وو څخه اهل مدينه وو ته زيات معلوم دی، د دې باوجود چې د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه کوم ترک درفع اليدين را نقل کړی شوی دی، د هغې د رد کولو هيڅ معقوله وجه نشته (فخذ هذا ملخصاً محققاً فقد وقع فی المبحث بخس کثيريهولون بسرد السماء من يعل ، لانه لم يختره ويتعلل فيه بغير نصفةٍ ولاحول ولاقوة الا باالله)

يعنې داکوم شی چې بيان شو دا د تحقيقي خلاصي په طور باندې قبول کړه ځکه چې په دې مباحثه کې ډير کمی واقع شوی دی، مخالف فريق په دې باره کې د هغو خلکو نومونه هم پيش کوي چې هغوی معلول دي او پخپله يې هم نه مني او په ډيرو احاديثو او اثارو کې د انصاف څخه پر ته علتونه لټوي ولاحول ولاقوة الا با لله. [نيل الفرقدين مع بسط اليدين /ص ٥٩ / ص ٦٠ / ص ٦١ / ملخصاً معارف السنن / ج / ص ٤٦١ / ص٤٦٢].

امام ترمذی دټولو اهل کوفه وو مسلک ترک درفع اليدين بيانوي، په کوفه کې تقريبا يونيم زر صحابه اوسيدل په دې يونيم زر صحابه وو رضی الله عنهم کې په هيڅ کوم صحابي رضی الله عنه باندې دترک درفع اليدين په وجه اعتراض نه دی شوی که کوم اعتراض شوی وي، نو ولې نه دی رانقل شوی؟ داهل کوفه وو په نزد ترک درفع اليدين دحضرت عمر رضی الله عنه حضرت علي رضی الله عنه، حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حضرت علقمه رحمه الله، حضرت شعبی رحمه الله او دحضرت ابراهيم نخعی رحمه الله څخه په داسې رواياتو باندې ثابت دی چې سندونه يې ډير قوي دي او ټولو اهل کوفه ته نسلاً بعد نسل –طبقةً بعد طبقةٍ دتوارث او د تعامل په طريقه دترک درفع اليدين اجتماعي خصوصيت حاصل دی. [انوار الباری / ج / ۱۵ / ۳۱۸].

## دصحابه وو رضی الله عنهم زمانه

**۱۷۷۔** دصحابه وو رضی الله عنهم زمانه تر ۱۱۰ هـ پورې وه ابراهيم نخعی رحمة الله دصحابه وو رضی الله عنهم ذکر کوي او فرمايي چې: مَاسَمِعْتُهُ مِنْ أَحَدٍ مِنْهُمْ - إِنَّمَا كَانُوا يَرْفَعُوْنَ أَيْدِيَهُمْ فِيْ بَدْءِ الصَّلٰوةِ حِيْنَ يُكَبِّرُوْنَ [موطأ امام محمد رقم / ۱۰۷]. ما درفع اليدين کول دهيڅ صحابي رضی الله عنه څخه هم نه دی اوريدلی هغوی رضی الله عنهم به صرف دتکبير تحريمه سره رفع اليدين کول.

## دتابعينو رحمهم الله زمانه

**۱۷۸۔** دتابعينو رحمهم الله زمانه تر ۱۷۰ هـ پورې وه دبخاري راوي حضرت ابوبکر بن عياش رحمة الله په سلمه (۱۰۰) هـ کې پيدا شوی دی او په ۱۹۳ هـ کې وفات شوی دی فرمايي چې: مَارَأَيْتُ فَقِيْهًا قَطُّ يَفْعَلُهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ غَيْرِ تَكْبِيْرَةِ الْأُوْلٰى –طحاوی رقم / ۱۳۳۲ / ما هيڅ په دين پوه سړی نه دی ليدلی چې داول تکبير څخه بغير يې په بل ځای کې رفع اليدين کړي وي.

## ۱۷۹۔ دتبع تابعينو رحمهم الله زمانه

دتبع تابعينو رحمهم الله دور تر ۲۲۰ هـ پورې وو حافظ ابن عبدالبر رحمة الله فرمايي چې: وَقَالَ أَبُوْ عَبْدِاللهِ مُحَمَّدُ بْنُ نَصْرٍ الْمَرْوَزِيُّ رحمة الله عليه فِيْ كِتَابِهِ رَفْعِ الْيَدَيْنِ مِنَ الْكِتَابِ الْكَبِيْرِ لَا أَعْلَمُ مِصْرًا مِنَ الْأَمْصَارِ يَنْسِبُ إِلٰى

اَهْلِهِ قَدِيْمًا تَرَكُوْا بِأَجْمَعِهِمْ رَفْعَ الْيَدَيْنِ عِنْدَ الْخَفْضِ وَالرَّفْعِ فِي الصَّلَاةِ إِلَّا أَهْلَ الْكُوفَـةِ. [موسـوعة شروح الموطا للامام مالک بن أنس التمهيد والاستذ كار لابی عمر يوسف بن عبدالله بـن عبـدالبر / ج / ٤ / ص / ١٣٤ / و ص / ١٣٥ / طبع قاهره ، التمهيد / ج / ٩ / ص / ٢١٣ / الاستذكار / ج / ٤ / ص / ٩٩ / و / ص / ١٠٠ / اتحاف شرح احياء العلـوم / ج / ٣ / ص / ٥٤ / التعليـق المجمـد / ص / ١٣٣ / طبع مكتبه البشرى كراچي].

امام ابو عبد الله محمد بن نصر المروزی په خپل عظيم كتاب رفع اليدين كې فرمايي چې: موږ دهيڅ داسې ښار په باره كې چې دپخوا څخه اهل علم ته منسوبيږي نه پوهيږو چې دهغې ځای اوسيدونکو اجماعاً او اتفاقاً دهرو ټيټيدلو اوپورته كيدلو سره رفع اليدين پريښي وي سوی داهل كوفه وو څخه- علامه محمد انورشاه كشميري رحمه الله فرمايي چې: داعبارت ټولو اهل كوفه وو ته شامل دی، لهذا استقراء ته ضرورت نشته فتح الملهم ج ٣ / ص ٣٠٨]. علامه ابن رشد المالكي رحمه الله په خپل كتاب بداية المجتهد كې فرمايي چې: اهل كوفه امام ابو حنيفه رحمه الله، سفيان ثوری رحمه الله، اودهغې ځای ټول فقهاء صرف دتكبير تحريمه سره رفع اليدين كوي -بداية المجتهد / ج / ١ / ص / ٩٦].

## ١٨٠- حضرت قيس بن حازم رحمة الله

حضرت قيس بن حازم رحمه الله هغه جليل القدر تابعي دی چې دبعضو په قول په تابعينو كې يو اځې ده عشره مبشره ليدلي وو، دده مذهب هم ترک درفع اليدين وو (عن اسماعيل قال: كان قيس يرفع يديه اول مايدخل فی الصلوة ثم لا يرفعهما) [مصنف ابن أبی شيبه رقم / ٢٤٦٠ باب من كان يرفع يديه فی اول التكبيرة ثم لا يعود/ فيض الباری / ج / ٢ / ص / ٢٣٢].

## ١٨١- دحضرت علي رضی الله عنه اودحضرت عبدالله رضی الله عنه په زركونو اصحاب

ددې دواړو حضراتو په زركونو شاګردانو اودشاګردانو شاګردانو رفع اليدين نه كول: (عَنْ شُعْبَةَ رَحِمَهُ اللهُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «كَانَ أَصْحَابُ عَبْدِ اللهِ وَأَصْحَابُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لَا يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَّا فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، قَالَ وَكِيعٌ رحمه الله تعالى، «ثُمَّ لَا يَعُودُونَ. [مصنف ابن أبی شيبه رقم / ٢٤٦١].

حضرت ابو اسحق رحمة الله فرمايي چې : دعبد الله بن مسعود رضى الله عنه او دحضرت على رضى الله عنه اصحابو رضى الله عنهم به صرف او صرف دتكبير تحريمه په وخت كې رفع اليدين كول وكيع رحمه الله فرمايي چې : په بل ځاى كې يې نه كول.

## ۱۸۲ـ حضرت علقمه بن قيس رحمة الله او حضرت اسود بن يزيدرحمة الله

عَنْ جَابِرٍ، عَنِ الْأَسْوَدِ، وَعَلْقَمَةَ رَحِمَهُمَا اللهُ «أَنَّهُمَا كَانَا يَرْفَعَانِ أَيْدِيَهُمَا إِذَا افْتَتَحَا ثُمَّ لَا يَعُودَانِ»، (مصنف ابن أبى شيبه رقم / ٢٤٦٨]. حضرت جابر رحمه الله فرمايي چې : علقمه رحمه الله او اسود رحمه الله به صرف دتكبير تحريمه سره رفع اليدين كول بيا به يې په بل ځاى كې نه كول.

## ۱۸۳ـ حضرت ابراهيم نخعى رحمة الله

(١) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله أَنَّهُ قَالَ: لَا تَرْفَعْ يَدَيْكَ فِي شَيْءٍ مِنْ صَلَاتِكَ بَعْدَ الْمَرَّةِ الْأُولَى "قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: وَبِهِ نَأْخُذُ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ( كتاب الاثار محمد رقم / ٧٣ / كتاب الحجة / ج / ١ / ص / ٩٦].

ابراهيم نخعى رحمه الله فرمايي چې : صرف داول تكبير سره رفع اليدين كوه او وروسته يې بيا مه كوه امام محمد رحمه الله فرمايي چې : په همدې باندې مونږ عمل كوو او دا دامام ابو حنيفه رحمه الله قول دى.

۱۸۴ـ (٢) حَدَّثَنَا أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله تعالى، عَنْ حَمَّادٍ رحمه الله تعالى، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُمُ اللهُ أَنَّهُ قَالَ: «ارْفَعْ يَدَيْكَ فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَلَا تَرْفَعْ يَدَيْكَ فِيمَا سِوَاهَا- كتاب الأثار لابى يوسف رقم / ٩٩].

ابراهيم نخعى رحمه الله فرمايي چې لاسونه صرف داول تكبير سره دلمانځه په شروع كې اوچتوه او په بل ځاى كې يې مه اوچتوه.

۱۸۵ـ(٣) عَنْ حَمَّادٍ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ سَأَلْتُ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ (مصنف عبدالرازق رقم / ٢٥٣٥]. حماد رحمه الله فرمايي چې : ما دابراهيم نخعى رحمه الله څخه ددې په باره كې پوښتنه وكړه هغه وفرمايل چې : لاسونه به داول تكبير تحريمه سره اوچتوې.

۱۸۶ـ (٤) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله أَنَّهُ قَالَ: لَا تَرْفَعِ الْأَيْدِيَ فِي شَيْءٍ مِنْ صَلَوتِكَ بَعْدَ الْمَرَّةِ الْأُولَى. [جامع المسانيد / ج/١ ص/٣٥٣]. حضرت ابراهيم نخعى رحمه الله فرمايي چې : دتكبير تحريمه څخه ماسوى په بل هيڅ ځاى كې هم رفع اليدين مه كوه.

**١٨٧ـ** (٥)**أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ، وَمُغِيرَةُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ** رحمه الله، **أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: «إِذَا كَبَّرْتَ فِي فَاتِحَةِ الصَّلَاةِ فَارْفَعْ يَدَيْكَ، ثُمَّ لَا تَرْفَعْهُمَا فِيمَا بَقِيَ**» (مصنف ابن أبي شيبه رقـم ٢٤٦٠]. ابراهيم نخعي رحمه الله به فرمايل چې كله چې دى دلمانځه په شروع كې الله اكبر ووېلې نو لاسونه اوچت كړه بيايې په باقي لمونځ كې مه اوچتوه.

**١٨٨ـ** (٦)**عَنْ حُصَيْنٍ، وَمُغِيرَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ** رحمه الله، **قَالَ: «لَا تَرْفَعْ يَدَيْكَ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَاةِ إِلَّا فِي الِافْتِتَاحَةِ الْأُولَى»**[مصنف ابـن أبي شـيبه رقـم ٢٤٦٢]. ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايي چې: دتكبير تحريمه څخه ماسوى په بل هيڅ ځاى كې هم رفع اليدين مه كوه.

**١٨٩ـ** (٧)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْوَكِيلُ رحمهما الله تعالى , ثنا الْحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ رحمهما الله تعالى , ثنا هُشَيْمٌ رحمه الله تعالى , عَنْ حُصَيْنٍ رحمـه الله تعـالى , وَحَـدَّثَنَا الْحُسَـيْنُ بْـنُ إِسْمَاعِيلَ, وَعُثْمَانُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ رحمهم الله تعالى , قَالَا: نا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى رحمهما الله تعالى , نا جَرِيرٌ رحمه الله تعالى, عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ رحمهما الله تعالى , قَـالَ: دَخَلْنَـا عَلَى إِبْـرَاهِيمَ رحمـه الله تعالى فَحَدَّثَهُ عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ رحمهما الله تعالى , قَالَ: صَلَّيْنَا فِي مَسْجِدِ الْحَضْرَمِيِّينَ , فَحَـدَّثَنِي عَلْقَمَـةُ بْنُ وَائِلٍ رحمهما الله تعالى , عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه , أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِينَ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ وَإِذَا رَكَعَ وَإِذَا سَجَدَ».

فَقَالَ إِبْرَاهِيمُ رحمه الله: مَا أَرَى أَبَاكَ رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا ذَلِكَ الْيَـوْمَ الْوَاحِدَ فَحَفِظَ ذَلِكَ , وَعَبْدُ اللهِ لَمْ يَحْفَظْ ذَلِكَ مِنْهُ , ثُمَّ قَالَ إِبْرَاهِيمُ: إِنَّمَا رَفْعُ الْيَدَيْنِ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ, لَفْظُ جَرِيرٍ رحمه الله تعالى (دار قطنى / ج / ١ / ص / ٤٩٤ / رقم ١١٠٨ / السنن الكبرى للبيهقى / ج / ٢ / ص / ٨١ / باب من لم يذكر الرفع الا عند الافتتاح ، وطبرانى فى الكبير / ج / ٢٢ / ص / ١٢ / من طريق حصين بهذه الاسناد ، واخرجه ايضاً البخارى فى رفع اليدين رقم ٢٢ / من طريق حصين به).

حضرت عمروبن مرة رحمه الله فرمايي چې: مونږ دخضرمي قبيلې په مسجد كې لمونځ كولو نوماته علقمه بن وايل رضى الله عنه دخپل پلار څخه روايت وكړوده رضى الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم دتكبير تحريمـه ، دركوع، او دسجدې پـه رفـع اليدين بانـدې ليـدلى دى –نـو ابراهيم نخعي رحمه الله وفرمايل چې: ستا پلار رضى الله عنه يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلى دى نو ځکه دا

رضی الله عنه یاد کړل او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه (چې غیرمتناهي واې یې رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلی دی) هغه یاد نه کړل؟ بیا ابراهیم نخعی رحمه الله وفرمایل چې: بې شکه چې رفع الیدین صرف دلمانځه دشروع کولو په وخت کې دي. په بل روایت کې راځي چې ابراهیم نخعي رحمه الله وفرمایل چې: ما درفع الیدین مسئله دهیچا څخه هم نه ده اوریدلې موطأ امام محمد رقم/ ۱۰۷].

**۱۹۰**- (۸) په بل روایت کې راځي چې ددې په اوریدلو سره ابراهیم نخعی رحمه الله ډیر سخت په غوصه شو او ویې فرمایل چې: عجیبه خبره ده چې حضرت وایل رضی الله عنه صرف یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلی دی نو هغه رضی الله عنه رفع الیدین روایت کړل او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او نورو صحابه وو چې ټول عمر یې درسول الله صلی الله علیه وسلم سره تیر کړی دی هغوی رفع الیدین ونه لیدل طحاوی رقم/ ۱۳۱۹/ ورقم/ ۱۳۱۸].

**۱۹۱**- (۹) حضرت امام حماد رحمه الله فرمایي چې: ابراهیم نخعی رحمه الله فرمایي چې: حضرت وایل رضی الله عنه یو کلیوال بزرګ و هغه صرف یو نیم ځلې درسول الله صلی الله علیه وسلم سره لمونځ کړی دی نو ایا دا دهغو حاضر باشو صحابه وو رضی الله عنهم څخه لوی عالم دی؟ چې ده رفع الیدین یاد کړی دی او هغوی نه دي یاد کړي. مسند الامام الأعظم رقم/ ۹۶].

**۱۹۲**- (۱۰) په یو بل روایت کې راځي چې ابراهیم نخعی رحمه الله وفرمایل چې: حضرت وایل رضی الله عنه یو کلیوال وو چې د اسلام څخه پوره خبر نه وو ده رضی الله عنه درسول الله صلی الله علیه وسلم سره صرف کوم یو نیم لمونځ ادا کړی دی ما ته بې شماره خلکو حدیث اوره ولی دی چې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه صرف د اول تکبیر سره لاسونه اوچتول او دا طریقه به یې درسول الله صلی الله علیه وسلم څخه رانقلوله عبدالله مسعود رضی الله عنه په اسلامي شرایعو او حدودو باندې پوره عالم وو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د احوالو پوره لټون به یې کولو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره همیشه اوسیدلی دی، په سفر او په حضر کې درسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو هغه رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علي وسلم سره بې شمېره لمونځونه کړي و. [مسند الامام اعظم رقم ۹۶].

ابراهیم نخعی رحمه الله په تابعینو کې مرجع الخلایق وو صحابه رضی الله عنهم، تابعین او تبع تابعین یې په لمونځونو باندې لیدلي وو، لکن یو یې هم په رفع الیدین کولو نه وو لیدلی او رفع الیدین

دده په نزد داسې وو لکه يو شاذ قرات نو څوک چې د متواتر قرات په خلاف شاذ قرات کوي خلک ورته په غوصه کيږي.

## ۱۹۳ـ ابوبكر بن عياش رحمه الله

عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ رحمة الله عليه قَالَ: مَا رَأَيْتُ فَقِيهًا قَطُّ يَفْعَلُهُ، يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي غَيْرِ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى. [طحاوى رقم ۱۳۳۲] ابوبكر بن عياش رحمه الله فرمايي چې ما هيڅ په دين پوه سړی نه دی ليدلی چې د اول تكبير څخه بغير يې په بل ځای کې رفع اليدين کړي وي.

## ۱۹۴ـ حضرت عبد الرحمن بن ابى ليلى

عَنْ سُفْيَانَ رحمه الله تعالى بْنِ مُسْلِمٍ الْجُهَنِيِّ رحمة الله عليه، قَالَ: «كَانَ ابْنُ أَبِي لَيْلَى رحمه الله تعالى، يَرْفَعُ يَدَيْهِ أَوَّلَ شَيْءٍ إِذَا كَبَّرَ»[ مصنف ابن ابى شيبه رقم ٢٤٦٦ ] سفيان بن مسلم الجهني فرمايي چې ابن ابى ليلى به صرف د اول تكبير سره رفع اليدين كول.

## ۱۹۵ـ حضرت عامر الشعبى رحمه الله او حضرت ابو اسحق السبيعى رحمه الله

۱- قَالَ عَبْدُ الْمَلِكِ رحمة الله عليه: «وَرَأَيْتُ الشَّعْبِيَّ، وَإِبْرَاهِيمَ، وَأَبَا إِسْحَاقَ رَحِمَهُمُ اللَّهُ، لَا يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَّا حِينَ يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ»[مصنف ابن ابى شيبه رقم ٢٤٦٩] عبد المالک فرمايي چې ما شعبى رحمه الله ابراهيم رحمه الله، او ابو اسحق رحمه الله ليدلي دي چې صرف د اول تكبير سره يې رفع اليدين كول.

**۱۹۶ـ** ۲- عَنْ أَشْعَثَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، رَحِمَهُمَا اللَّهُ «أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ التَّكْبِيرِ، ثُمَّ لَا يَرْفَعُهُمَا»[مصنف ابن ابى شيبه رقم ٢٤٥٩ باب من كان يرفع يديه فى اول التكبيرة ثم لا يعود، سنن الطحـاوي ج ١ صــ١٦٤، باب التكبير للركوع والتكبير للسجود] شعبى رحمه الله به صرف د اول تكبير سره رفع اليدين كولو.

## ۱۹۷ـ حضرت خيثمه رحمه الله

عَنِ الْحَجَّاجِ رحمه الله تعالى، عَنْ طَلْحَةَ رحمه الله تعالى، عَنْ خَيْثَمَةَ، وَإِبْرَاهِيمَ رحمهما الله تعالى، قَالَ: «كَانَا لَا يَرْفَعَانِ أَيْدِيَهُمَا إِلَّا فِي بَدْءِ الصَّلَاةِ» [مصنف ابـن ابى شـيبه رقـم ٢٤٦٣ ] طلحة فرمايي چې خيثمه او ابراهيم رحمهما الله به صرف د اول تكبير سره رفع اليدين كول.

## ۱۹۸۔ حضرت امام محمد رحمه الله

حضرت امام محمد رحمه الله فرمايي چې: فَأَمَّا رَفْعُ الْيَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ فَإِنَّهُ يَرْفَعُ الْيَدَيْنِ حَذْوَ الأُذُنَيْنِ فِي ابْتِدَآءِ الصَّلَاةِ مَرَّةً وَاحِدَةً، ثُمَّ لا يَرْفَعُ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَاةِ بَعْدَ ذَلِكَ، وَهَذَا كُلُّهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى وَفِي ذَلِكَ آثَارٌ كَثِيرَةٌ [موطا امام محمد رقم ١٠٤ ص١٣١ وص١٣٢ وص١٣٣]

په لمانځه کې د غوږونو تر برابرې پورې صرف يو ځلې رفع اليدين کوه، بيا يې د لمانځه په هيڅ حصه کې مه کوه، داد امام صاحب رحمه الله قول دی او د دې په باره کې ډير اثار دي.

## ۱۹۹۔ حضرت امام ابوحنيفة رحمه الله

حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چې د رکوع رفع اليدين د هيڅ فقيه صحابي څخه په هيڅ صحيح روايت کې نشته [مسند امام اعظم رقم ٩٧] د امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه روايت دی چې په کومه مسئله باندې چې امام ابو حنيفه رحمه الله، امام ابو يوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله متفق شي نو د هغې څخه مخالفه خبره نشي اوريدل کيدلی [العرف الشذی ص٤٨٧] او په ترک د رفع اليدين دا درې واړه حضرات متفق دي.

### ۲۰۰۔ د شام د خلکو تعامل:

مخکې د څوارلسم حديث لاندې د امام ابو حنيفه رحمه الله او د امام اوزاعی رحمه الله مناظره ذکر شوه، د دې مناظرې څخه مخکې امام اوزاعی رحمه الله د رفع اليدين حمايت کولو [الاستذکار ج٢ ص ١٢٦] لکن وروسته يې ورته منسوخ ويلې: وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا فُدَيْكُ بْنُ سُلَيْمَانَ أَبُو عِيسٰى رَحِمَهُمُ اللَّهُ قَالَ: سَأَلْتُ الْأَوْزَاعِيَّ رَحْمَةُ اللَّهِ عَلَيْهِ قُلْتُ: يَا أَبَا عَمْرٍو! مَا تَقُولُ فِي رَفْعِ الْأَيْدِي مَعَ كُلِّ تَكْبِيرَةٍ، وَهُوَ قَائِمٌ فِي الصَّلَاةِ؟ قَالَ: «ذٰلِكَ الْأَمْرُ الْأَوَّلُ [جزء رفع اليدين للبخاری رقم ١٠٦].

حضرت فديک بن سليمان ابو عيسی فرمايي چې ما د امام اوزاعی رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چې ای ابو عمرو! تاسو د هر تکبير سره د رفع اليدين په باره کې څه وايې کوم چې د قيام په حالت کې وي؟

هغه رحمه الله و فرمائل چې دا دتېرې زمانې خبرې دي، امام اوزاعی رحمه الله د قیام په حالت هر رفع اليدين ته منسوخ وويلي، داوو د خير القرون اجمالي تعامل، د صحابه کرامو څخه وروسته د تابعينو او د تبع تابعينو تعامل هم شرعي حجت دی، د خير القرون تعامل ډير قوي دليل دی، ځکه چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم جماعت هغه جماعت وو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله تشکيل کړی وو، په دې جماعت کې صرف او صرف د هغه عمل رواج وو په کوم باندې به چې د نبوي مهر تصديق وو، د صحابه وو عمل په حقيقت کې د سنت ترجمان وو د يو عمل ثبوت چې په سند متصل باندې وشي دا حجت وي، لکن د تعامل مرتبه د دې څخه او چته ده ځکه چې په سندونو چې کوم شی ثابت شي هغه اکثره د خبر واحد په درجه کې وي او تعامل د تواتر له پاره يو قسم دی او خبر واحد د متواتر په مقابله کې داسې مثال لري لکه چراغ د نصف النهار د لمر په مقابل کې .

د امام مالک رحمه الله دا اصل وو چې کوم حديث به په سند ورته رسيدلی وو لکن د اهل مدينه وو تعامل به د هغې څخه خلاف وو نو امام مالک به د اهل مدينه وو تعامل د خپل ځان له پاره مذهب گرځولو او په حديث کې به يې تاويل کولو، د سندونو تحقيق او تنقيح ډير ضروري دی لکن د دې سره سره د تعامل څخه غفلت يو لوی حماقت دی .

١- رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي چې بهترين خلک زما د زمانې (صحابه) خلک دي بيا هغه دي چې دوي ته نزدې وي (تابعين) بيا هغه خلک دي چې دوی ته نزدې وي، (تبع تابعين) د دوی څخه وروسته به داسې خلک راشي چې د دوي شهادت به د قسم څخه او قسم به يې د شهادت څخه مخکې کيږي [بخاری رقم ٢٦٥٢ رقم ٣٦٥١ رقم ٦٤٢٩ رقم ٦٦٥٨، مسلم رقم ٦٤٦٩ ] .

٢- رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي چې زه تاسو ته د صحابه کرامو په باره کې وصيت کوم (چې د دوي په طريقو روان شئ) بيا د هغو (تابعينو) په باره کې چې دوی ته نزدې وي بيا د هغو (تبع تابعينو) په باره کې چې دوي ته نزدې وي بيا به دروغ عام شي تر دې چې بې طلبه قسمونه به کيږي او بې طلبه گواهي به کيږي نو څوک چې د جنت په مينځ کې او سيدل غواړي هغوی دې د صحابه وو سره يو ځای والی نه پرېږدي [الحديث صحيح مستدرک حاکم رقم ٣٩٥، ترمذی رقم ٢١٦٥، مسند احمد ٤٥٧٦، ابن ماجه رقم الحديث ٢٣٦٣، سنن الكبرى للبيهقي ج٧ ص ٩١، ابن حبان رقم ٤٥٧٦،

،مشكوم رقم ٦٠١٢] (قال الالبانى قال القارى رواه النسائى واسناده صحيح ورجاله رجال الصحيح قلت هو صحيح لا شک فيه) [التعليق للالبانى ج٣ ص ١٦٩٥]

٣- حضرت عمران بن حصين رضى الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې بهتر قرن زما دى بيا دهغو (تابعينو) چې دوي ته قريب وي، بيا د هغو (تبع تابعينو) چې دوي ته قريب وي بيا به داسې خلک راشي چې گواهي به کوي حالانکه د دوي څخه به مطالبه د گواهي نه وي شوې په بل روايت کې راځي چې دوي به قسمونه کوي حالانکه د قسم مطالبه به ترينه نه وي شوي (ددې خيرالقرون څخه وروسته) اتلونكي خلک به خيانت کوي په امانتونو کې به وربانديې اعتبار نه كيږي دا خلک به نذرونه کوي او پوره کوي به يې نه او په دوي کې به چاغوالى ظاهر شي (يعنې د اخرت د فكر څخه به غافله وي او د حرامو او حلالو څخه به بې پروا وي) [مشكوة رقم الحديث ٦٠١٠].

٤- حضرت عائشه رضى الله عنها فرمايي چې يو سړى د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وكړه چې كوم خلک بهتر دي رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائل چې بهترين زما قرن دى بيا دويم قرن بيا دريم قرن [مسلم رقم الحديث ٦٤٧٨].

٥- حضرت ابو سعيد خدرى رضى الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې داسې يو وخت به راشي چې خلک به جهاد کوي نو تپوس به ترې وشي چې ايا په تاسو کې كوم صحابي شته؟ په ځواب کې به وويلى شي چې هو شته، نو دده په وجه به يې فتحه په نصيب شي.

بيا به داسې يو زمانه راشي چې خلک به جهاد کوي نو تپوس به وشي چې ايا په تاسو کې كوم تابعي شته؟ په ځواب کې به وويلى شي چې هو شته، نو دده په وجه به يې فتحه په نصيب شي. [بخارى ج/١ ص /٥١٥، مسلم ج/٢ ص ٣٠٨].

وخت: پنځه بجې پنځه ويشت دقيقې /نېټه : ١٣٩١/٣/٩هـش

## دلامذهبو ددلايلو جائزه

## په دې مسئله کې دلامذهبوتضادبياني

لامذهبان ددې مسئلې په حکم کې حيران دي اوترننه پورې دوي پخپل کورکې ددې مسئلې دحکم حل راونه ايستلو.

(۱) دلامذهبو شيخ الکل ميانذيرحسين وائي چې په حقاني علماء وودې پټه نه وي چې رکوع ته دتللو اودرکوع څخه د سر جيګيولوپه وخت کې درفع اليدين کول اونه کول دواړه ثابت دي اودواړه قسمه دلائل موجوددي. [فتاوى علماء حديث، ج ١ص ١٦١].

(۲) زمونږ مذهب دادی چې رفع اليدين کول يو مستحب کاردی چې په کولويې ثواب دی اوپه نه کولويې دلمانځه په صحت کې هيڅ خلل نه راځي.[فتاوى علماء حديث،ج ٣ص ١٥٤].

(۳) درفـع اليـدين تـارک لائق دملامتيانـه دی اګرچې ټـول عمريـې نـه وي کـړي. (فتـاوى علمـاء حديث، ج٣/ص ١٥١/ ص ١٥٢).

(۴)درفع اليدين دکولو سره لمونځ داسې دی لکه دڅپليوسره چې لمونځ کوي اوداداسې اختلافي مسئله ده لکه دمتعې دکولو او دنه کولو مسئله چې ده، دميلاد دکولو اونه کولو مسئله اودبنځې سره په دبرکې دجماع کولو اونه کولو مسئله چې اختلافي ده. (هدية المهدى، ج ١ص ١١٨) تيسير الباري ج ١ص ١٥٦).

(۵) مولوى ابوالوفاء ثناء الله امرتسرى ليکلي دي چې درفع اليدين مثال داسې دی لکه داودس دپاسه اودس کول، نودرفع اليدين ترک دثواب ترک دی، دسنتوترک نه دی. (فتاوى ثنـاءيـه، ج ١ص ٦٠٨، ص ٦٠٩)

(٦) رفـع اليـدين کـول سـنت دي. (الرسـائل فـى تحقيـق المسـائل، ص ٢١٩). اودسـنتوڅخه منکرکافر، دوزخي، لعنتي، اوګمراه دی، دداسې شخص سره نکاح حرامه ده، دده لپاره بخښنه غوښتل حرام دي. (ص ١٥٦ ص ١٥٧/ ص ١٧٣/ ص ١٧٧/ص ١٨١ /ص ١٨٨).

(٧)رفـع اليدين کـول سنت دي پرينښـودل يـې فسـاددی، لـه دې وجهې رفـع اليـدين راژونـدي کـول ددې ...ـدولمونځونوپه مقابل کې دسلو شهيدانو ثواب لري (اسوه سرورکونين ص ١٣) د حکيم سيالکوټي کتاب.

(۸) رفع اليدين كول واجب دي. (مسئله رفع اليدين ص ۱۰۵).

(۹) زمونږ د زماني لامذهبه امين الله ورته سنت مؤكد ويلي دي.

نولامذهبان رفع اليدين ته كله واجب وائي، كله ورته سنت موكد وائي كله ورته سنت غير موكد وائي، كله ورته مستحب وائي، كله يې دمتعي دكولو پشان كرزوي او كله يې د دبردزنى په شان كرزوي، داخويې په حكم كې د دوي حيرانتياده.

بل طرفته دوي دخپل اصل مطابق اصل دعوى دتقيې په صندوق كې بنده كړې ده، ځكه چې په اصل دعوى د دوي سره هيڅ دليل نه شته، مونږ به اول د دوي اصل دعوى او مسئله وليكو، بيا به تاسو وګورئ چې د دوى سره په دى مسئله څومره دلايل دي.

## دلامذهبو اصل مسلك او تقيه او كمتان دحق

غير مقلدين دخپل پټ رافضيت څخه مجبوره دي، په دې مسئله كې هم تقيه كوي، دلايل بيانوي لكن دمسئلې او دعوې معلومات چاته نه وركوي. نو د دوي اصل مسلك چې دانګريزانو د دورې څخه ترننه پورې د دوي عمل ورباندې روان دى دادى:

**الف** : داول ركعت او د دريم ركعت په شروع كې رفع اليدين كول واجب، يا سنت مؤكده دي، يعنې رسول الله ﷺ هميشه كړي دي او د دوهم ركعت او دڅلورم ركعت په شروع كې رفع اليدين كول دسنتو څخه مخالف دي رسول الله ﷺ هيڅكله نه دي كړي.

**ب** : ركوع ته دتللو او دركوع څخه دراپورته كيدلو په وخت كې رفع اليدين كول واجب يا سنت موكده دي او سجدو ته دتللو او دسجدو څخه دراپورته كيدلو په وخت كې رفع اليدين كول دسنتو څخه مخالف دي رسول الله ﷺ هيڅكله نه دي كړي..

خلاصه دا چې په څلور ركعته لمونځ كې دجلسو داستراحت سره اته ويشت ځايه دل او جيګيدل دي چې لامذهبان په كې په لسو ځايونو كې رفع اليدين كول سنت مؤكده او يا واجب ګڼي او په پاتې اتلسو ځايونو كې يې دسنتو څخه مخالف ګڼي، دلامذهبو دا حال دى چې مرګ قبلوي لكن دادعوى هيڅكله نه رابنكاره كوي او په هيڅ رساله او اشتهار او مناظره كې يې نه ليكي.

## دسنتو څخه دلامذهبو بغاوت

دشريعت او عامو محكمو دا قانون دی چې شاهدان او دلايل دمدعی (دعوی کونکي) څخه غواړي دمنکر څخه يې نه غواړي رسول الله ﷺ فرمائی چې (البينة علي المدعي) الحديث.

شاهد او دليل دمدعی په ذمه دی مګر لامذهبان ددې په خلاف درفع اليدين دمنکرينو څخه دلايل غواړي. زمونږ چيلنج دی چې لامذهبان دې يو داسې حديث پيش کړي چې په هغې کې درسول الله ﷺ دا فرمان راغلی وي چې دانکار کونکو څخه هم شاهدان او دلايل وغواړئ.

## لامذهبان دعقل او دنقل څخه انحراف کوي

دظلم دپاسه ظلم دادی چې غير مقلدين اول خو دانکار کونکو څخه دلايل غواړي او بيا دخاصو دلايلو مطالبه کوي، په شريعت او په محکمه کې قانون دادی چې ددعوه کونکي څخه صرف ددليل او دشاهدانو مطالبه کيږي او مدعی عليه او منکر ته په هغه دلايلو او شاهدانو باندې د جرح او اعتراض حق ورکوي.

که دمنکرينو سره اعتراض او جرحه نه وي، نو بيا دعوه پرې منلې شي، ليکن دخاصو شاهدانو او خاصو دلايلو مطالبه نه کيږي، مثلاً په محکمه کې څوک داسې نه شي ويلي چې که صدر، يا وزيراعظم، يا والي شاهدي ووائي نو منم يې او دبل چا شاهدي نه منم.

که دا شرط ومنل شي نو هيڅ محکمه به خپل کار ونه کړی شي او دهيڅ مسئلې په باره کې به فيصله ونه کړی شي همدارنګه ددعوه کونکي په ذمه باندې صرف دليل شرعي دی، بيا عام ددې څخه چې هغه ايت محکمه پيش کوي او که سنت قائمه پيش کوي او کہ فريضه عادله يعنې اجماع او قياس پيش کوي.

دمدعی څخه دخاص دليل مطالبه چې خاص قرأنی ايت پيش کړه، يا خاص دحضرت ابوبکر صديق ﷺ يا دحضرت عمر ﷺ حديث پيش کړه، يا خاص دفلان کتاب څخه دليل پيش کړه، خالصه دوهکه او چل دی، په قران او حديث کې دخاصو دلايلو پابندي نشته، بلکې دا صرف دمرزا قادياني طريقه وه چې غير مقلدين يې په نقش قدم روان دي.

**انعـامي چيلـنج:** مرزا قادياني ددې چلونو مؤسس وو چې يو څو خود ساخته شرطونه به يې ولګول، بيا به يې سوال وکړو او دخپلو شرطونو موافق به يې جواب غوښتلو او دده دشرطونو سره په موافق

جواب به يې انعامي چيلينجونه ورکول. غير مقلدين هم دمرزا قاديانې په تقليد شخصي کې دا انداز خپل کړی دی او په عوامو باندې درعب دغورزولو لپاره دا فريب کاري کوي. چونکه غير مقلدين په دې اصولو باندې ډير فخر کوي له دې وجهې ددوي دکبر او دغرور دخاوري کولو لپاره مونږ هم الزاما دلته ددوي په طريقه ددوي څخه ددلايلو مطالبه کوو.

**ددلايلو ترتيب:** دحضرت معاذ ﷺ حديث مشهور دی، غير مقلد نواب صديق حسن خان هم ورته مشهور ويلی دی. (الروضة الندية، ج ۲ ص ۲۴۶).

**په دې حديث کې ددلايلو ترتيب داسې دی:**

(۱) کتاب الله. (۲) سنت رسول الله ﷺ. (۳) اجتهاد دمجتهد.

## قران کريم

**نومحترمو!** يقين وکړئ چې دغير مقلدينو سره په دې مسئله يو ايت محکمه هم نه شته، کوم چې ددوي ددعوې سره موافق وي، غير مقلدينو درفع اليدين په مسئله کې دومره ترقي کړي ده چې واجب يې ورته ويلي دي پروفيسر عبد الله يوه رساله ليکلې ده په نامه ده (مسئله رفع يدين) او دعلامه قادربخش په نوم يې شايع کړی ده، په هغې کې يې په (ص ۱۰۵) کې ليکلي دي چې رفع اليدين واجب دي، نولامذهبان دې اول دقران څخه کوم ايت پيش کړي چې په هغې کې راغلي وي چې رکوع ته د تللو او درکوع څخه دجيګيدلو په وخت کې او داول رکعت او دريم رکعت دشروع کولو په وخت کې يې رفع اليدين ته واجب ويلي وي او سجدو ته دتللو په وخت کې او دسجدو څخه دراجيګيدلو په وخت کې يې رفع اليدين ته ناجائز ويلي وي، يعنې په څلورو رکعتونو کې دلسو رفع اليدين دوجوب ذکر په کې راغلي وي او دپاتې اتلسو رفع اليدينو دکراهت يا دحرمت ذکر په کې راغلی وي.

## سنت قايمه

مونږ حيران يو چې دغير مقلدينو دومره اهمه مسئله په پوره درويش کلنه دوره دنبوت کې صرف ديوې دقيقې لپاره هم د رسول الله ﷺ په مبارکه ژبه رانغله.

درسول الله ﷺ په مبارکه ژبه چې کله هم درفع اليدين ذکرراغلی دی نو داسې راغلی دی چې دتکبيرتحريمه په وخت کې رفع اليدين وکړئ اونورپه لمانځه کې په هيڅ ځای کې رفع اليدين مه کوئ او دا ديوی ثانيي لپاره هم درسول الله ﷺ په مبارکه ژبه نه ده راغلی چې داول اوددريم رکعت په شروع کې رفع اليدين وکړئ اوددوهم اودڅلورم رکعت په شروع کې يې مه کوئ .رکوع ته دتللو اودرکوع څخه دجيګيدلوپه وخت کې رفع اليدين وکړئ اوسجدوته دتللو اودسجدوڅخه دجيګيدلوپه وخت کې يې مه کوئ .

که په غيرمقلدينو کې همت وي نوصرف اوصرف يوداسې قولي حديث دې پيش کړي چې ددوی دعوه په کې صراحة موجوده وي . يعنې درسول الله ﷺ دژبې څخه دی درکوع درفع اليدين الفاظ ثابت کړي که چاد پيغمبر ﷺ يوقول پيش کړو چې په هغې کې داول اوددريم رکعت په شروع کې درفع اليدين حکم وو . اوددوهم اوددڅلورم رکعت په شروع کې په کې دمنع درفع اليدين حکم وو . اودرکوع په اول اواخرکې په کې درفع اليدين حکم وو اودسجدوپه اول او په اخرکې په کې دمنع درفع اليدين حکم وو . نويولاکهه روپې نغدانعام دی واخلي اوفی الحال به مونږهم رفع اليدين شروع کړو .

څوک مردميدان شته چې همت وکړي اوصرف يوقولي صريح حديث دصحيح سندسره پيش کړي اوانعام حاصل کړي ؟ (ديده بايد)

نه خنجر اٹھے گا نه تلواراں سے يه بازومیرے ازمائے ہوئے ہیں

که غيرمقلدين دمذکوره مقاماتوپه باره کې دقولي حديث څخه درفع اليدين سنت والی نه شي ثابتولی اوترقيامة پورې به يې ثابت نه کړی شي، نواقلاً دې درسول الله ﷺ دارشاداتو څخه صرف دومره ثابته کړي چې په مذکوره مقاماتو کې رفع اليدين کول دومره ثواب لري لکه څومره چې داشراق دلمانځه دی يالکه څومره چې دتحية الوضوء يادمسواک دی .

**محترمو!** يقين وکړئ چې غيرمقلدين درسول الله ﷺ دارشاداتو څخه درفع اليدين طرفته دومره ترغيب هم نه شي ثابتولی، که په کوم مردميدان کې همت وي راميدان ته دې شي اودرسول الله ﷺ دارشاداتو څخه دې رفع اليدين ثواب صرف دمسواک په اندازه ثابت کړي .

# په قولي او فعلي سنتونو کې فرق

## عقودپه دوه قسمه دي قولي اوفعلي :

په عقودو قوليه ووکې دوام وي، لکه اسلام اونکاح، څوک چې په ژبه اسلام قبول کړي دهغه اسلام دائمي وي ترڅويې چې کلمه دکفرنه وي ويلي، همدارنګه نکاح دژبې وعده ده څوک چې په ژبه نکاح وتړي دهغه نکاح دائمي وي ترڅوچې طلاق نه وي راغلي، همدارنګه که رفع اليدين په قول درسول الله ﷺ سره ثابت شي نودوام به يې ثابت شي لکن دغيرمقلدينوسره خوقولي حديث نه شته له دې وجهې درفع اليدين دوام هم نه شي ثابتولی.

**صرف دفعل څخه دوام اوسنتيت نه ثابتيږي :** دقول په مقابله کې فعل په اعتباردذات سره په دوام باندې دلالت نه کوي مثلا :

(۱) په حديث کريمه کې دي چې : **كَانَ يَطُوْفُ عَلٰى نِسَآئِهٖ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ**. [بخاری ج۱ ص ٤١ باب اذا جامع ثم عاد الخ].

رسول الله ﷺ به په يوه شپه کې ټولوبيبيانوته دصحبت لپاره ورتلواوصرف په اخرکې به يې يوغسل کولو، لکن دمحدثينودتحقيق مطابق داواقعه صرف يوځلې وه، چې دا طريقه نه سنت ده اونه مستحب ده لامذهبه امين الله پشاوري ليکلي دي چې دا حديث بيانًاللجوازدی اومستحب داده چې دهرې جماع سره غسل وشي (الحق الصريح، ج ۲ص ۴۴۷) نودرسول الله ﷺ فعل دی لکن دوام اوسنتيت ترينه نه ثابتيږي.

(۲) رسول الله ﷺ په ولاړه متيازې کړي دي .(بخاری، ج اص ۳۵).

(۳) دلمانځه څخه مخکې يې خپله بي بي ښکل کړې ده، اوبيا لمانځه ته وتلې دی . (کان يقبل) رواه ابوداود ، والترمذی ، والنسائي ،وابن ماجه ، مشکوة ج۱ ص ۴۱ باب مايوجب الوضوء)

(۴) رسول الله ﷺ به ويده کيدوپداسې حال کې چې جنب به وو .(بخاری ، ج اص ۴۲).

(۵) رسول الله ﷺ به په روژه کې خپله بي بي ښکولوله (کان يقبل) [بخاری ،ج اص ۲۵۸].

(٦) رسول الله ﷺ به د حايضي بى بى سره مباشرت كولو. (كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يُبَاشِرَ) [بخاري، ج اص ۴۴]. دا ټول افعال د رسول الله ﷺ څخه ثابت دي لکن نه سنت دي او نه مستحب دي او نه پکې دوام شته.

که يو سړي په خپل ټول عمر کې يو ځلې هم دا کار ونه ونه کړل، نو هغه ته دا پيغور نه ور کول کيږي چې ته د سنتو تارک يې او نه هغه ته د مناظرې چيلينجونه ور کول کيږي، دا افعال د رسول الله ﷺ څخه يقيناً ثابت دي لکن دا سنت يا مستحب ګڼل يقيناً غلط دي، نو همدا حال د رفع اليدين هم دي، د بعضې فعلي رواياتو څخه يې کوم واري کيدل ثابت دي لکن سنتوالې او مستحبوالې يې نه دي ثابت.

مولنا محمد حسن په تنسيق النظام کې ليکلي دي چې: «لَيْسَ فِيْ جَانِبِ الرَّفْعِ إِلَّا عِدَّةُ أَحَادِيْث فِعْلِيَّةٍ.»(ص ۵۴) د رفع اليدين لپاره يو څو فعلي روايتونه دي. او دا خبره جليل القدر تابعي حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله کړې ده چې حضرت وايل ﷺ صرف يو ځلې رسول الله ﷺ په رفع اليدين ليدلى دى. (موطاء امام محمد ص ۵۴ طحاوى ج ا ص ۳۱۲ ص ۳۱۶ / مسند امام اعظم ص ۱۱۹) چې سنتيت ترينه نه ثابتيږي، سنت هغه دى چې حاضر باشو صحابه وو روايت کړى دى چې هغه د رفع اليدين نه کول (ترک رفع اليدين) دي، زمونږ د زمانې د لامذهبو شيخ الکل په يو ځاى کې ليکلي دي چې (په قولي حديث باندې حکم لازميږي او په فعلي باندې نه لازميږي صرف بهتروي کول د هغې) التحقيق السديد، ص ۵۸ ،د ولسمه شبهه څلورم سوال. -

## فعلي احاديث

کوم فعلي احاديث چې غير مقلدين پيش کوي په هغوي کې په يو کې هم د غير مقلدينو مکمله دعوى او مسئله نه شته نه په کې د سنت لفظ شته ،نه په کې د دوام او هميشوالي لفظ شته ،نه په کې دا شته چې د اول او د دريم رکعت په شروع کې يې کړي دي ،او د دوهم او د څلورم رکعت په شروع کې يې نه دي کړي ،او د رکوع په اول او په اخر کې يې کړي دي، او د سجدو په اول او په اخر کې يې نه دي کړي، مونږ به هغه احاديث ذکر کړو چې لامذهبان د د رغود عوه پرې کوي، تاسو به وګورئ چې په دوي کې يو حديث هم د غير مقلدينو لپاره دليل نه شي کيدلې لامذهبانو چې کومې رسالې ليکلي دي ټولې يو د بل دلائل وړاندې او وروسته کوي او نوي نوي نوم ورکوي، لهذا د ټولو دلايل تقريباً يو شى دي.

## دلامذهبو د دلایلو څخه اجمالي جوابونه

دلامذهبه وکتوریانو په دعوه کې تقریبا شپږ خبرې وې (۱) په څلور ځایونو کې د رفع الیدین ثبوت (۲) ددې دوام (۳) که چا ونه کړل، نو دهغه دلمانځه حکم چې باطل اویا فاسد دی (۴) دسجدو د رفع یدین نفی (۵) دسجدو د رفع الیدین حکم چې حرام اوزیا مکروه دی (۶) که چا دسجدو رفع الیدین کړل دهغه دلمانځه حکم چې فاسد اویا باطل دی ، نو مختصر جوابونه دادی چې وکتوریانو چې هر دلیل پیش کولو نو دلاندې ضروري خبرو مطالبه ترینه وکړه ۱- پدې دلیل کې په څلور ځایونو کې لس رفع الیدینه وښایه که ځایونه کم شو نو ورته ووایه چې دا حدیث ستا لپاره دلیل نه دی ځکه چې څوک چې پدې حدیث عمل وکړي نو د هغه لمونځ خو ستاسو په نیز هم خلاف السنة دی ، ځکه چې دیو سنت په پرېښودلو هم لمونځ خلاف السنة ګرځي لکه د ټولو سنتو په پرېښودلو چې خلاف السنة ګرځي او که ځایونه ډیر شو نو بیا هم دا حدیث ددوي لپاره دلیل ندی ځکه چې ددې احادیثو مطابق خپله د وکتوریانو لمونځ خلاف السنة ثابتیږي ځکه چې دوي دسجدو رفع الیدین نه کوي.

۲- پدې حدیث کې مواظبت او دوام وښایه په نفس ثبوت کې خوا اختلاف نه شته، نفس ثبوت خو دسجدو د رُفع الیدین هم شته، نفس ثبوت خو بیت المقدس طرفته دلمونځ هم شته.

۳- پدې حدیث کې دسجدو د رفع الیدین نفی وښایه ځکه چې دلته په تانقض اجمالي راځي چې دسجدو رفع الیدین خو هم ثابت دی هغه ته ولې سنت نه وایئ؟ او ولې یې نه کوئ؟

۴- که چا درکوع رفع الیدین ونه کړل، دهغه دلمونځ فساد یا بطلان پدې حدیث کې وښایه که چیرته دا ووېلې چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم رفع الیدین کړي دي نونه کول یې باطل دي، نو ته ورته ووایه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم لمونځ کولو وهو حامل أمامة نو اوس ایا ددې څخه بغیر لمونځ باطل دی؟

۵- که چا دسجدو رفع الیدین وکړل دهغه دلمانځه حکم راته وښایه.

۶- دحدیث صحت دخپلو دوو دلایلو مطابق وښایه، په کوم ایت اویا په کوم حدیث کې یې دې حدیث ته صحیح ویلي دي؟

**اول حديث دابى بكرالصديق** ﷺ: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما قَالَ: صَلَّيْتُ خَلْفَ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَكَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ وَإِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ. وَقَالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه: صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، " فَكَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ وَإِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ "[سنن كبرى بيهقي ج٢/ ٧٣]. حضرت عبدالله بن زبير رضى الله عنهما فرمائي چې ما ابوبکرصديق ﷺ نه روستو لمونځ کولونو هغه به رفع اليدين داستفتاح (دلمونځ شروع) په وخت او درکوع په وخت کې او درکوع نه داو چتيدلو په وخت کې کول بيا ابوبکر ﷺ وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ نه وروسته لمونځ کولونو هغه هم دغسې رفع اليدين په درې ځايونو کې کول.

**اول جواب**: دا حديث ندى ثابت لا مذهبان دلته هم دخپل رافضيت په بنا باندې دتقيې ځنه کار اخلي او اکثر ددې حديث سند نه ذکرکوي ددې حديث سند داسې دى:

اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَبْدِاللّٰهِ اَلْحَافِظْ رحمة الله تعالىٰ عليه، ثَنَا اَبُوْ عَبْدِاللّٰهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِاللّٰهِ الصَّفَّارِ الزَّاهِدِ رحمة الله تعالىٰ عليهم، اِمْلَآءً مِّنْ اَصْلِ كِتَابِهٖ، قَالَ قَالَ اَبُوْ اِسْمَاعِيْلَ مُحَمَّدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ السَّمْلِي...الخ، نو ددې حديث د سند اول راوي امام حاکم دى، دده په باره کې محدثين فرمايي چې دا ډير سخت شيعه وو. او د محدثينو د اصولو مطابق د شيعه يا بدعتي هغه روايت چې دده د مذهب په تائيد کې وي مردود وي. خطيب بغدادي فرمايي چې: ابوعبدالله الحاکم د اعتماد قابل دى او د شيعه والي طرف ته مايل وو. [تذکرة الحفاظ ديارلسمه طبقه ج٣/ ص٩٦٢]. د ابو اسماعيل انصاري رحمه الله ځخه نقل دي چې امام حاکم په حديثو کې د اعتماد لايق دى، لکن خبيث قسم رافضي وو. [تذکرة الحفاظ درياسلمه طبقة]. علامه محمد بن ابراهيم الوزير المتوفي (٨٤٠هـ) فرمايي چې امام حاکم شيعه وو. [الروض الباسم ج١/ ص١٢٢]. علامه ذهبي رحمه الله فرمايي چې: امام حاکم مشهور شيعه وو لکن د شيخينو په خلاف يې څه نه ويل. [ميزان الاعتدال ج٣/ ص٦٠٨]. محدث ابن طاهر رحمه الله فرمايي چې: ما د ابو اسماعيل عبدالله انصاري رحمه الله ځخه د امام حاکم په باره کې پوښتنه وکړه هغه راته وفرمايل چې: امام حاکم په حديثو کې امام وو لکن خبيث قسم رافضي وو. [ميزان الاعتدال ج٣/ ص٦٠٨]. [سير اعلام النبلاء ج١٧/ ص١٧٤]. په شذرات الذهب کې د ابن ناصر الدين په حواله ليکل

شوي دي چې په امام حاكم كې شيعيت وو او سختو ضعيفو احاديثو ته به يې صحيح ويلي. شذرات الذهب ج٣/ ص١٧٧].

غيرمقلد نواب صديق حسن خان هم دده په باره كې ليكلي دي چې غالي شيعه وو.

**دوهـم جـواب** : داحديث منقطع دی ځكه چې: ددې حديث په سند كې دوهم راوي الصفاردی او دده سماع دخپل استاذ السلمي څخه نده ثابته ځكه چې صفار د كتاب څخه دا حديث بيان كړی دی او ويلي يې دي چې: قال محمد بن اسماعيل السلمي نو ده د سلمي څخه پخپله ندی اوريدلی بلكه د هغه د كتاب څخه يې رانقل كړي دي ځكه چې الفاظ داسې دي چې: اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَبْدِاللّٰهِ اَلْحَافِظُ رحمة الله تعالٰى عليه، ثَنَا اَبُوْ عَبْدِاللّٰهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِاللّٰهِ الصَّفَارِ الزَّاهِدِ رحمة الله تعالٰى عليهم، اِمْلَآءً مِّنْ اَصْلِ كِتَابِهٖ، قَالَ قَالَ اَبُوْ اِسْمَاعِيْلَ مُحَمَّدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ السَّلمي رحمة الله تعالٰى عليه،... الخ كه په كوم لامذهبه كې همت وي سماع دی ثابته كړي.

**دريم جواب** : خپله سلمي متكلم فيه راوي دی. علامه تاج الدين سبكي رحمه الله فرمايي چې: فذهب علمه بدعاء الشيخ عليه. دې راوي ته خپل شيخ ښيراوې وكړې دهغې په وجه يې علم ضايع شو. [طبقات الشافعية ج٢/ ص١٦٧].

**خلورم جواب** :ددې حديث راوي حضرت سلمي صاحب پخپل دغې روايت كړي حديث باندې عمل نه كولو، بلكې دركوع رفع اليدين يې بالكل عملا نه پيژندل، دسلمي صاحب وفات په (٢٨٠هـ) كې شوی دی .خپله دسلمي صاحب بيان دی چې مايوه ورځ د ابو النعمان محمد بن الفضل السدوسي الملقب بالعارم پسې لمونځ كولو نو هغه دركوع رفع اليدين وكړل، ماترينه پوښتنه وكړه چې: ماهذا؟ داڅه شی دی؟

نو سلمي رحمه الله دبغداد او سيدونكي وو او دمكې او دمدينې ډير سفرونه يې كړي وو، بيا هم ده ته رفع اليدين كول يو نابلده او نا اشنا كار ښكاره شو، نو معلوميږي چې سلمي نه په بغداد كې څوك په رفع اليدين ليدلي وو او نه يې په مكه او په مدينه كې څوك په رفع اليدين ليدلي وو.

پخپله ټوله زندگۍ كې يې صرف يو سړی عارم رحمه الله په رفع اليدين كولو وليدلو او دا كار ورته ډير نا اشنا او نابلده ښكاره شو، ځكه حيران شو او پوښتنه يې وكړه چې (ماهذا؟) آو ددغه ابو النعمان

محمدبن الفضل العارم يعنې ددغه رفع اليدين كونكي په باره كې محدثين فرمائي چې دده حافظه دومره كمزورې وه چې كوم حديث به يې بيان كړو بيابه ورته هيڅ معلومات نه كيدلو چې څه يې ويلي دي . (تهذيب التهذيب ج ، ۹ص ۴۰۳) . امام ابو داؤد فرمايي چې: دده عقل زايل شوى وو. [تهذيب التهذيب ج۹/ ص۴۰۴]. همدا جرحه پرې غير مقلد ناصر الدين الباني هم كړې ده. [سلسلة الاحاديث الضعيفة والموضوعة ص۲٦٥. وص۲۷۰ وص۲۷۱ ج۱۲]. سلمي رحمه الله په ۲۸۰ هـ كې وفات شوى دى او عارم رحمه الله په ۲۲۴هـ كې وفات شوى دى نو سلمي صاحب دعارم په زړو شاګردانو كې ندى نو دده سماع ترينه بعد الاختلاط ده. حافظ ابن حجر رحمه الله عارم دنهمې درجې په صغارو كې شميرلى دى. [تقريب ص۳۱۵]. او سلمي يې په يوولسمه درجه كې شميرلې دى. [تقريب ص۲۹۰].

خلاصه دا چې ددريمې صدى په اوايلو كې په ټوله دنيا كې صرف دغه يو سړي رفع اليدين كړي وو او دهغه هم دماغ خراب وو (مجموعة الرسائل ج ۳ص ۱۹۰) محمد امين صفدر اوكاړوى رحمه الله]. [راحة العينين ص۵۲۹].

ددغې خرابى حافظي دخاوند عارم رحمه الله بيان دى چې يوه ورځ ماد حمادبن زيد پسې لمونځ وكړو هغه دركوع والا رفع اليدين ركړل نو ماترينه پوښتنه وكړه چې . **ماهذا؟** دا څه شې دى ؟ نو معلوميږي چې ده ته هم په خپله ټوله زندګۍ كې صرف يوځلې او صرف يو درفع اليدين كونكى په مخه ورغلي وو.

دحمادبن زيد وفات په ( ۱۷۹ هـ ) كې په بصره كې شوى دى، نو معلوميږي چې ددوهمې صدى په نصف اخير كې هم صرف يو كس صرف كوم يو نيم ځلې رفع اليدين كړي وو. ( مجموعة الرسائل ، ج ۳ص ۱۹۰]. [راحة العينين ص۵۲۹].

حمادبن زيد فرمائي چې ما په بصره كې ايوب سختياني المتوفى (۱۳۱هـ) د ركوع په رفع اليدين كولو وليدلو نو ماترينه پوښتنه وكړه چې : ماهذا؟ دا څه شئ دى ؟

ددې څخه معلوميږي چې ددوهمې صدى په نصف اول كې هم په ټوله دنيا كې صرف په بصره كې صرف يو شخص كوم يو نيم ځلې رفع اليدين كړى وو. چې هغه هم داعتراض لاندې راغلو. (مجموعة الرسايل ،ج ۱ص ۱۹۰]. [راحة العينين ص۵۲۹].

ايوب سختياني رحمه الله فرمائی چې ما د حضرت عطاء پسې لمونځ وکړو چې کله مې په رفع اليدين وليدلو پوښتنه مې وکړه چې ماهذا؟ دا څه شی دی؟ معلوميږي چې د دوهمې صدی په اوله ربعه کې صرف حضرت عطاء رحمه الله صرف کوم يو نيم ځلې رفع اليدين کړي وو. چې هغه هم د اعتراض لاندې راغلو. (مجموعة الرسايل، ج ا ص ۱۹۰] [راحة العينين ص۵۲۹].

او حضرت عطاء فرمائی چې ما حضرت عبد الله بن زبير رضی الله عنه په رفع اليدين کولو وليدلو، نو اعتراض مې وکړو چې (ماهذا؟ دا څه شی دی؟ معلوميږي چې د اولې صدی په نصف اخر کې هم صرف کوم يو نيم ځلې عبد الله بن زبير رضی الله عنه رفع اليدين کړی وو. چې هغه هم د اعتراض لاندې راغلو. (مجموعة الرسايل، ج ا ص ۱۹۰] [راحة العينين ص۵۲۹].

ميمون مکي رحمه الله هم همدا سې بيان کوي چې ما (صرف) عبد الله بن زبير رضی الله عنه په رفع اليدين کولو وليدلو چې بيا مې دده دا عجيب کار عبد الله بن عباس ته بيان کړو. (مجموعة الرسايل، ج ا ص ۱۹۱ ص ۲۳۱) ابوداود، ج ا ص ۱۱۵].

عبد الله بن زبير رضی الله عنه فرمائي چې زما په مخکې يو ځلې حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د رکوع رفع اليدين وکړل ما ترينه پوښتنه وکړه چې: ماهذا؟ دا څه شی دی؟

دد ې څخه معلوميږي چې ابوبکر صديق رضی الله عنه دا ځلې داسې يو ناشنا کار کړې وو چې دد ې څخه مخکې يې نه وو کړی او دنورو صحابه وو رضی الله عنهم څخه يې هم داسې کارنه وو ليدلي، له دې وجهې د پوښتنې ضرورت پيښ شو ابوبکر صديق رضی الله عنه جواب ورکړو چې ما د رسول الله ﷺ پسې لمونځ وکړو، هغه په لمانځه کې رفع اليدين وکړل.

لامذهبان د دې ټول روايت صرف اخري جملې رانقلوي، که بالفرض دا روايت صحيح ومنل شي، نو د دې څخه دا ثابتيږي چې په خير القرون کې پوره تر دريو صديو پورې صرف څلور پنځو کسانو رفع اليدين کوم يو دوه ځلې کړي وو او دا دومره نابلده او نا اشنا کار وو چې چا به څوک په دې کار کولو باندې وليدلو سمد ستي به يې پوښتنه کوله چې دا څه شی دی؟ (مجموعة الرسايل ج ۳ ص ۱۹۱) [تجليات صفدر ج ۲/ ص ۲۵۹، ص ۲۶۰، ص ۲۶۱].

**پنځم جواب :** ددې حديث درېيم راوي محمدبن فضل حافظه صحيح نه وه (تهذيب التهذيب، ج ۹ ص ۴۰۴). همده درفع اليدين مخ دبصرې ښځه دمکې په طرف راتاوکړو او دحضرت عطاء، حضرت عبدالله بن زبير ﷛ او حضرت ابوبکر صديق ﷛ دسند سره يې درفع اليدين بيان وکړو، محدث عبدالرزاق فرمائي چې د مکې مکرمې په خلکو کې رفع اليدين دابن جريج ښځه شروع شو، علامه محمد نورشاه کشميری رحمه الله فرمائي چې دابن جريج له وجهې په مکه کې درفع اليدين او دمتعې رواج عام شو او په همدې رواج باندې امام شافعی دخپل مذهب بنياد کيښودو. [حاشيه فيض الباری، ج ۲ ص ۲۵۶ به تشريح، ج ۲ ص ۲۶۲].

ابن جريج اول نمبر مدلس وو لامذهبه پشاوري هم د الحق الصريح ج ۴ ص ۴۳۵ کې اقرار کړی دی چې د ټولو نه بد تدليس دابن جريج تدليس دی او دلته ص ۷۷ کې يې مدحه کوي (دروغ گورا حافظه نباشد) هغه دخپل لمونځ سند د حضرت عطاء رحمه الله حضرت ابن زبير ﷛ او حضرت ابوبکر صديق ﷛ په واسطه درسول الله ﷺ پورې رسولې دې، دده په روايت کې صراحة درفع اليدين ذکر نه شته، لکن اوريدونکو دا رافهموله چې چونکه دا پخپله رفع اليدين کوي، لهذا دا به هم درفع اليدين سندوي، محمدبن فضل دخپلې حافظې دخرابوالي له وجهې دابن جريج په روايت کې درفع اليدين ذکروررداخل کړو، ابن جريج په مکه مکرمه کې دمتعې شروع کړې وه او دنوي (۹۰) ښځو سره يې متعه کړې وه او دی ته به يې جايزويلی او هرشپه به يې دزيتون دتيلو ښځه حقنه کوله ترڅوچې يې قوة باه په خپل حال پاتې شي. (تذکرة الحفاظ، ج ۱ ص ۱۴۹ /ميزان الاعتدال، ج ۲ ص ۱۵۱) او ابن جريج دحضرت عطاء ښځه يوائې درکوع درفع اليدين روايت نه دی کړی، بلکې دسجدو درفع اليدين روايت يې هم کړی دی. (مصنف عبدالرزاق ج ۲ ص ۷۰).

شيعه گانو دابن جريج درې واړه مسئلې منلې دي، درکوع رفع اليدين هم کوي، دسجدو رفع اليدين هم کوي، او متعه هم کوي او دلامذهبانو مشرانو د ابن جريج دمتعې فتوی منلې ده. (هدية المهدی ج ۱ ص ۱۱۲ نزل الابرار ج ۲ ص ۳) (دادغير مقلدينو کتابونه دی) او درکوع رفع اليدين يې منلې دي، مگر دسجدو رفع اليدين يې نه دي منلې.

**شپږم جواب**: په دې حديث باندې دلامذهبانو عمل هم نه شته، ځکه چې په دې حديث کې د رېم رکعت ته د پاڅيدلو رفع اليدين نه دی ذکر شوی، يعنې پدې حديث کې په څلورو رکعتونو کې دنهو رفع اليدينو ذکر شوی دی يود شروع او اتـه رفع اليدينـه څلورو رکـوع ګانو تـه دټيټيـدلو او جيګيـدلو دي اولامذهبان لس رفـع اليدينـه کوي چې لسم يې د رېم رکعت تـه د پاڅيدلو دی او همدارنګه د پاتې نولسو رفع اليدينو نفی هم په کې نه ده ذکر شوي.

**اووم جواب**: په دې حديث کې دا نه دي ذکر شوي چې دامذکور رفع اليدين سنت او يا واجب دي، نو سنتوالې او يا واجبوالې درفع اليدين دکوم ځای څخه ثابتوي؟ او همدارنګه په دې حديث کې ددوام او هميشوالي ذکر هم نه شته.

**اتم جواب**: دا حديث د ابوبکر صديق رضي الله عنه د عمل څخه مخالف دی: ١- حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم په هرو ټيټيدلو او جګيدلو او په قيام او په قعود کې صرف الله اکبر ويلو، او همدا طريقه د مونځ دابوبکر او عمر رضي الله عنهما وه: [ترمذي باب ماجاء في التكبير عند الركوع والسجود رقم ٢٥٣].

٢- د حضرت عبدالله بن مسعود څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د هرو ټيټيدلو او جګيدلو سره صرف تکبير ويلو او همدا طريقه د مانځه د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هم وه. [نسائي باب التكبير للسجود رقم: ١١٥٠].

٣- په بيهقي او دارقطني کې ددې روايت څخه وروسته د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ، دابوبکر صديق، او د حضرت عمر ﷺ پسې لمونځونه کړي دي، دوي به صرف د اول تکبير سره رفع اليدين کولو او نورېې دلمانځه په هيڅ ځای کې رفع اليدين نه دي کړي [دار قطني ج١/ ص٣٩٩ رقم ١١٢٠ بيهقي ج٢/ ص٧٩] [مجمع الزوايد رقم ٢٥٨١ وابو يعلى في مسنده رقم ٥٠١٧ والمقصد العلى رقم ٢٦٦] نو بالفرض که اول حديث صحيح هم شي داوروستنی احاديث په دې دلالت کوي چې رفع اليدين پاتې نه وو.

**دوهم دليل**: حديث د حضرت عمر ﷺ، امام بهيقی الحکم ته خپل سند ر رسوي فرمائي: حـدّثنا الْحَكَمُ رحمة الله عليه قَالَ: " رَأَيْتُ طَاوُسًا كَبَّرَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ عِنْدَ التَّكْبِيرِ، وَعِنْـدَ رُكُوعِـهِ، وَعِنْـدَ

رِفْعِهِ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، فَسَأَلْتُ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِهِ، فَقَالَ: إِنَّهُ يُحَدِّثُ بِهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ﵄، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

حکم وائي ماطاوس وليدلوچې الله اکبريې وويلو بيايې لاسونه تر اوګو پورې پورته کړل، دتکبيرسره اودرکوع په وخت کې، اودرکوع نه دراپورته کيدو په وخت کې، بيا وائي مادطاوس ديو ملګري نه پوښتنه وکړه نو هغه دابن عمر نه اوابن عمر دعمرفاروق نه او هغه درسول الله ﷺ نه حديث بيان کړو. (الحق الصريح ج ۴ص ۷۸).

**بيا ليکي : دعمر بن الخطاب ﷛ قولي حديث:**

امام بيهقی په الخلافيات کې عبدالله بن قاسم ته سند رسوي فرمائي: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ الْقَاسِمِ رَحِمَهُمَااللّٰهُ تَعَالٰى قَالَ بَيْنَمَاالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ فِيْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ اِذْ خَرَجَ عَلَيْهِمْ عُمَرُبْنُ الْخَطَّابِ ﷛ فَقَالَ: اِقْبَلُوْاعَلَيَّ بِوُجُوْهِكُمْ اُصَلِّيْ بِكُمْ صَلٰوةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ الَّتِيْ كَانَ يُصَلِّيْ وَيَاْمُرُبِهَافَقَامَ مُسْتَقْبِلَاالْقِبْلَةِ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى حَاذَتَامَنْكِبَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَثُمَّ رَكَعَ وَكَذٰلِكَ حِيْنَ رَفَعَ فَقَالَ لِلْقَوْمِ: هٰكَذَاكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّيْ بِنَا.

خلکو درسول الله ﷺ په مسجد کې لمونځ کولو، نو دغه وخت کې عمر فاروق ﷛ راووتلو نو وې فرمايل ماته مخونه راوګرځوئ چې زه تاسوته درسول الله ﷺ لمونځ وکړم، هغه لمونځ چې پخپله يې همدغسې لمونځ کولو او امر به يې پرې هم کولو، نو عمربن الخطاب پاڅيدلو او مخ يې قبلې ته وګرځولو او لاسونه يې داوګو پورې اوچت کړل بيا يې تکبير وکړو، بيا يې رکوع وکړه، همدارنګه يې رفع اليدين کولو چې بنکته به تللو نو قوم ته يې ووې چې دغه شان به رسول الله ﷺ مونږ ته لمونځ کولو. (الحق الصريح، ج ١ص ٧٨).

**اول جواب** :داحديث اکثره لامذهبان په خپلو دلايلو کې دوهم نمبر کې ذکرکوي اوزمونږ دزمانې لامذهبه امين الله پشاوري په دولسم نمبرکې ذکرکړی دی اود احديث دجلاء العينين لامذهبه مولف په ص ١٠٣ کې ذکرکړی دی اوداسوه سرورکونين مولف په ص ۴ کې ذکرکړی دی، لامذهبه امين الله په همدی (٧٨) صفحه کې په جلاءالعينين حواله ورکړې ده.

**دلامذهبانو دروغ:**

**الف** : دجلاء العينين مولف ص ۱۰۳] او داسوه سرورکونین مولف ص ۴ ] ددې حديث حواله په جزء بخاري ورکړی ده، حالانکه په جزء بخاري کې نه دامتن شته او نه دا سند شته .

**باء** : په جزء سبکي يې هم حواله ورکړی ده، هلته هم نه دامتن شته او نه دا سند شته .

**ج** : په دارقطني يې هم حواله ورکړی ده حالانکې په دارقطني کې هم دا حديث نه شته .

البته په غرائب مالک کې امام دارقطني فرمائي چې دا د ابن عمر ﷺ روايت دی د حضرت عمر ﷺ روايت نه دی لامذهبان د غرائب دا عبارت هم د تقيې په صندوق کې بندوي او خپل رافضيت راښکاره کوي . ځکه چې د ابن شهاب څخه دا حديث الزبيدی ،معمر ،اوزاعی، محمد بن أسحاق ،سفيان بن حسين ،عقيل بن خالد ،شعيب بن ابی حمزه ،سفيان بن عيينه ،يونس بن يزيد ،يحيى بن سعيد الانصاری، مالک او دی ټولو عن سالم عن ابن عمر روايت کړی دی . هيچا د حضرت عمر ﷺ نوم نه دی اخستی .(کتاب التمهيد ج ۵ ص ٦١/التقصی ص ۱۴۰ الاستذکار ،ج ۱ص ۴۰۸).

او د امام مالک رحمه الله څخه دا حديث ابن وهب ،ابن القاسم، يحيى بن سعيد ، ابن ابی اويس ،عبد الرحمن بن مهدي جويريه بنت اسماء ، ابراهيم بن طهمان ،عبد الله بن المبارک ،بشر بن عمر ،عثمان بن عمر ،عبد الله بن يوسف ،خالد بن مخلد ،مکی بن ابراهيم ،محمد بن الحسن ،خارجه بن مصعب ،عبد الله قتيبه بن سعيد ،دی ټولو عن زيد عن سالم عن ابن عمر ﷺ روايت کړی دی هيچا د حضرت عمر ﷺ نوم نه دی اخستی (کتاب التمهيد ،ص ٦١ج ۵ ) التقصی ص ۱۴۰) الاستذکار ج ۱ص ۴۰۹) .

ددې ټولو محدثينو په خلاف صرف خلف بن ايوب عن مالک عن الزهری عن سالم عن ابن عمر عن عمر روايت کړی دی، امام دارقطني فرمائی: لن يتابع خلف علی زيادة عمر. يعني خلف په زياتولو د عمر کې متابع نه لري او س خلف څوک دی ؟ علامه ذهبي فرمائي چې امام يحيى بن معين ورته ضعيف ويلي دي او ابن حبان فرمائی چې دده د حديثونو څخه ځان ساتل پکار دی ځکه چې ده د اهل سنتو سره تعصب او بغض کولو . (ميزان الاعتدال ،ج ۱ص ٦۵۹ ) .

**دوهم جواب** : لامذهب دا هم نه بيانوي چې په صحيحو احاديثو کې راغلي دي چې حضرت عمر ﷺ رفع اليدين نه کول. (دارقطني ،ج ۱ص ۲۹۵ / طحاوی ج ۱/ص ۱٦۴ / ابن ابی شيبه ، ج ۱/ ۲٦۸).

نولامذهبانو ضعیف حدیث ځخه استدلال کول او د قوي حدیث ځخه په مخ اړولو کې دمرزاقادیاني ریکارډ هم مات کړی دی.

**دریم جواب**: لامذهبه امین الله پشاوری په بهیقي حواله ورکړی ده، نو اول راوي امام بهیقي دی، امام بهیقی دامام شافعي رحمه الله مقلد وو او دامام شافعی رحمه الله په تقلید شخصی کې دومره سخت وو چې امام ابو محمد الجوینی چې لوی محدث او مجتهد وو کله یې چې دامام شافعي رحمه الله تقلید پریښودلو او خپله یې اجتهاد شروع کړو. نو امام بهیقي ورته خط ولیکلو او ددې کار ځخه یې منع کړو او ورته لیکلي وو چې دامام شافعي رحمه الله دتقلید شخصي پریښودل نه دي جایز. (مجموعة الرسایل، ج ۳ ص ۲۵۴ بحواله طبقات شافعیه).

دامام بهیقي اصل مقصد دشافعي فقهي دلائل بیانول دي، دخپلو مستدلاتو توثیق او دمخالفینو ددلایلو تضعیف او توهین کوي. (درس ترمذی پښتو، ج ۱/ ص ۶۲).

نو لامذهبه خناسه! ته او ستا هم مسلکه غیرمقلدین چې کله دخپل اجتهاد په نیشه مست شي، نو مقلدینو ته مشرکان وائي ددین ځخه ناخیره ورته وائي، دیهودو او دنصاراوو او دابوجهل په نقش قدم باندې تلونکي ورته وائي. نو دلته داسې سند چې ابتداء یې دیو متعصب شافعي مقلد ځخه شوی ده، ځرنګه ستا سو په نیز صحیح شو؟ او بیا امام بهیقي هم داحدیث په سنن کبری کې ندي ذکر کړی، بلکې په الخلافیات کې یې ذکر کړی دی.

**څلورم جواب**: داحدیث هم دلامذهبو په مسلک باندې صریح نه دی.

(۱) ځکه چې پدې حدیث کې دسنت لفظ نه شته.

(۲) او ددوام او دهمیشوالي لفظ هم نه شته.

(۳) او دلسو رفع الیدین ذکر په کې هم نه شته، ځکه چې دریم رکعت ته دپورته کیدلو رفع الیدین په کې نه دی ذکر شوي.

**پنځم جواب**: لامذهبان پخپله په دې حدیث باندې عمل نکوي ځکه چې په حدیث کې په ځلورو رکعتونو کې نهه رفع الیدین ذکر شوي دي، چې یو دتکبیر الافتتاح دی او اته رفع الیدینه ځلورو رکوع

ګانو ته د ټیټیدلو او د جیګیدلو دي او لامذهبان لسم رفع الیدین هم کوي چې لسم یې دریم رکعت ته د پاڅیدلو دی، نو په دې حدیث د دوي پوره عمل رانغلو او همدارنګه په دې حدیث کې د پاتې نولسو (۱۹) رفع الیدینو نونفی هم نه ده شوی.

## دریم دلیل دحضرت عثمان ﷺ حدیث:

دا حدیث حکیم سیالکوټي په ص ۴ کې لیکلي دي او لامذهبه امین الله پشاوري په خپل کتاب الحق الصریح کې په جلد ۴ ص ۷۶ کې په اتم نمبر کې ذکر کړی دی او کله چې دا د دروغو حدیث په صحاح سته وو کې نه وو او نه د حدیثو په نورو کتابونو کې پیدا کیدلو، نو په هندوستان باندې په انګریزي دوره کې په یو لیکلي شوي کتاب یې حواله ورکړه، په نامه د (جلاء العینین ص ٦١) . او ځان یې صرف د دروغو په رانقلولونکو کې راوستلو.

لامذهبه خناسه ! جلاء العینین دانګریزي دورې پیدا وار دی او دحکیم سیالکوټي کتاب اسوة سرور کونین هم دانګریزي دورې پیدا وار دی او دې دواړو دې حدیث حواله په بهیقی، حاکم ،تعلیق المغني او سبکې باندې ورکړې ده، حالانکه په دې څلورواړو کتابونو کې نه د دې حدیث سند شته او نه د دې حدیث متن شته . (اذافاتک الحیاء فافعل ماشئت) (بی حیاباش وهرچه خواهی کن) او په دې د دروغو په حدیث هم لامذهبان عمل نکوي ځکه په دې حدیث کې د سجدو په وخت کې هم د رفع الیدین ذکر دی، نو ټول اته ویشت رفع الیدینه په کې ذکر دي او لامذهبان صرف لس رفع الیدینه کوي.

## څلورم دلیل دحضرت علی المرتضی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث:

دحضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث لامذهبه خناس نیاز محمد عرف امین الله پشاوري د الحق الصریح، ج ۴ ص ۷۸) په دریالسم نمبر کې ذکر کړی دی . او نور اکثر لامذهبان یې په خپلو رسالو کې په څلورم نمبر کې ذکر کوي .

**اول جواب :** د دې حدیث د سند مدار په عبد الرحمن بن ابی الزناد دی، دعلامه ابن حجر استاذ نور الدین هیثمي رحمه الله فرمایي چې : ضعیف دی. [مجمع الزواید ج ۲/ ص ٦٨، ص ۱۳۱، ص ۵۲، ص ۹۳، ص ۱۱۵، ج ۳/ ص ۳۹ ج ۴/ ص ۵]. امام نسائي فرمایي چې : ضعیف دی ضعفاء صغیر ص ٦٧ ضعفاء

ومتروكين ص۲۰۷]. علامه ذهبي فرمايي چې: ضعفه النسائي. [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۵۷۵]. امام يحيى بن معين فرمايي چې: ضعيف دى او قابل د استدلال ندى. [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۵۷۵]. امام احمدبن حنبل فرمايي چې: مضطرب الحديث ضعيف. [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۵۷۵]. امام ابو حاتم فرمايي چې: ضعيف لايحتج به ليس بشيء. [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۵۷۵]. علي بن مديني فرمايي چې: ضعيف وو عند المحدثين. [تاريخ بغداد ج۱/ ص۲٦۰]. امام مالک رحمه الله فرمايي چې: ضعيف دى. [تذكرة الحفاظ ج۲/ ص۲۰۲]. عبد الرحمن بن مهدي دده په ټولو احاديثو قلم راكاږلى دى يعني دده ټولو احاديثو ته يې غلط ويلي دي. [تهذيب التهذيب ج٦/ ص۱۷۲]. تاريخ بغداد ج۱۰/ ص۲۲۹] تذكره ج۱/ ص۲۲۸].

امام ترمذى په باب المسح على الخفين كې د امام مالک او د امام بخارى رحمه الله څخه دده دضعف طرف ته اشاره كړى ده او ددې ضعيف راوي متابع هم نه شته، نو د اصولو د حديث په بنا باندې دا حديث د استدلال قابل نه دى. پدې حديث كې دعبد الرحمن بن ابي الزناد شاګردان دري دي: يو سليمان بن داؤد بغدادي دوهم: عبد الله بن وهب مصري، او مدني، شاګرد تلري او دده د بغداد حديثونه مضطرب او ضعيف دي. [تقريب ص۲۰۱] تحفة الاحوذي ج۱/ ص۱۰۰ وص۵۰]. علي بن المديني فرمايي چې: دده د مدينې والا احاديث صحيح دي او كوم يې چې په بغداد كې بيان كړي دي هغه د بغداد خلكو خراب كړي دي. [تحفة الاحوذي ج۱/ ص۱۰۰] او دا حديث يې په بغداد كې بيان كړى دى مدني شاګرد پكې نلري، دريم شاګرد يې اسماعيل بن يونس مجهول دى.

**دوهم جواب**: په دې حديث كې هم نه د سنت مؤكده لفظ شته او نه د سنت غير مؤكده لفظ شته او نه د دوام او هميشوالي لفظ شته نو دا حديث هم دلامذهبانو په مذهب باندې صريح نه دى.

**دريم جواب**: بالفرض كه دا حديث صحيح هم شي نو د رسول الله ﷺ ديو ځلې رفع اليدين كولو ذكر په كې دى او پاتې شوه دا خبره چې ټول عمر يې كړى دى او كه نه يې دي كړي؟ ددې خبرې څخه دا حديث ساكت دى. لامذهبان قياس كوي چې رسول الله ﷺ يو ځل رفع اليدين كړي دي نو خامخا به تر اخره پورې باقي وي لكن دا قياس يې د نص څخه مخالف دى ځكه چې دارقطني په كتاب العلل كې د حضرت علي ﷺ روايت ذكر كړي دي چې رسول الله ﷺ صرف د اول تكبير سره رفع اليدين كول او په پاتې لمونځ كې يې په بل هيڅ

ځای کې نه کول. (کتاب العلل دارقطني ج ۴ ص ۲۶) زب زبابات الدراسات ج ۱ص ۶۴) نو د حضرت علی ﷺ څخه درفع اليدين کولو روايت هم راغلو او د ترک درفع اليدين روايت هم راغلو.

**اوس خپله دحضرت علي ﷺ عمل په کوم روايت وو ؟** نو په موطا امام محمد ص ۹۰ و ص ۹۱ کې په دوو سندونو حديث موجود دي چې د حضرت علي ﷺ خپل عمل ترک درفع اليدين وو.

امام طحاوي په شرح معاني الاثار جلد اول ص ۱۳۲ و ص ۲۹۱ و ص ۲۹۲ طبع بيروت کې فرمايلي دي چې حضرت علي ﷺ اول درفع اليدين روايت کوي او بيا خپله ورباندې عمل نکوي نو دا واضح دليل دی چې د حضرت علي ﷺ په نيز رفع اليدين منسوخ وو.

محدث ابوبکر بن ابی شيبه هم د حضرت علی ﷺ څخه د ترک درفع اليدين روايت کوي. (مصنف ابن ابی شيبه، ج ۱ ص ۲۳۶) او ددې پسې دا روايت هم ذکر کوي چې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ او دحضرت علی ﷺ ملګرو د اول تکبير څخه وروسته په بل هيڅ ځای کې رفع اليدين نه کولو. (مصنف ابن ابی شيبه، ج ۱ ص ۲۶۷) ددې دواړو حضراتو د اصحابو تعداد د پنځوس زرو څخه زيات وو. [تاريخ طبری ج ۴ ص ۴۱۱/الفتوحات الاسلاميه، ج ۱/ص ۸۳ /فتح القدير، ج ۱۲ ص ۷۲].

**څلورم جواب:** لامذهبان خپله هم په دې حديث عمل نه کوي، ځکه چې په دې حديث کې دوهم رکعت ته د پورته کيدلو او څلورم رکعت ته د پورته کيدلو رفع اليدين هم ذکر شوي دي، په حديث کې الفاظ داسې دي. (واذا قام من السجدتين رفع يديه وکبر) يعنې چې کله به د دوو سجدو څخه ودريدو نو لاسونه به يې پورته کړل او الله اکبر به يې وويلو او لمونځ کونکی د دوو سجدو څخه دوهم رکعت ته هم دريږي او څلورم رکعت ته هم دريږي او لامذهبان په دې دواړو ځايونو کې رفع اليدين نه کوي.

**دلامذهبو خيانت:** د (واذا قام من السجدتين) لغوي ترجمه هغه وه چې مونږ ذکر کړه يعنې چې کله به ودريدلو د دوو سجدو څخه، بناء په دې ترجمه دوهم او څلورم رکعت ته پاڅيدل په کې داخل شول.

**اولامذهبان دلته داسې ترجمه کوي:** (چې کله به د دوو رکعتونو نه پاڅيدو) يعنې د سجدتين څخه رکعتين جوړوي دا ترجمه نه په قران کې شته او نه په حديث کې شته او نه په لغت کې شته، بلکې دا صرف

او صرف دلامذهبانو داجتهاد درباب ترنګ دی افسوس چې ددوي دخواهش څخه کومه خبره مخالفه وي نو دانکار لپاره يې هرقسم تحريف، تغيراو کتمان ته تيار وي او بيا دې هر څه ته عمل بالحديث هم وائي.

## پنځم دليل عشره مبشره: وحديث عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنه:

لامذهبه امين الله پشاوري دخپلو اکابرو تقليد کوي او ليکي چې درفع اليدين عاملين عشره مبشره او خلفاء راشدين دي (الحق الصريح ج٤ ص٨٩). او په يو اتيايمه صفحه کې يې ددوي نومونه هم ليکلي دي او حواله يې په انګريزي دوري کې په ليکلې شوي کتاب (جلاء العينين ص ٦٠) باندې ورکړې ده، دانګريزي دورې يو بل لامذهبه حکيم هم په اسوه سرورکونين کې د عشره مبشره عنوان لګولی دی.

او د حضرت طلحه رضی الله عنه حضرت زبير رضی الله عنه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه حضرت سعيد بن زيد رضی الله عنه او حضرت ابوعبيده بن جراح رضی الله عنهم غوندې په مقدسو هستيو باندې يې دابهتان لګولی دی، چې دوي فرمايلي دي چې مونږ رسول الله ﷺ هميشه درکوع په رفع اليدين ليدلی دی او بيا يې د دروغو، حواله په تنوير، په تعليق المغني، په تلخيص الحبير، په سفر السعادت، په تحفه الاحوذي په جزسبکې باندې ورکړې ده. (چې دلاوراست دزدې که بکف چراغ دارد).

لامذهبان دې پدې کتابونو کې او يا دټولي دنيا دکومې کتابخانې د حديثو دکوم کتاب څخه ددې صحابه وو روايتونه دمکمل سند سره، سره دتوثيقه پيش کړي او هيڅکله به يې پيش نکړی شي ﴿وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا﴾ دلامذهبانو دومره يتيم مسلک دی، چې په دليل کې نه ورسره د قران ايت شته او نه ورسره صحيح حديث شته، بلکې يو څو ضعيف روايتونه رانقلوي او دهغې په ترجمه او حوالو کې هم په لسګونو دروغ يو ځای کوي، په مقدسو هستيو پورې دروغ او بهتان تړي او دې هر څه ته بيا نوم دعمل بالحديث ورکوي.

لامذهبه خناس امين الله پشاوري په الحق الصريح ج١ ص ٨٧ کې د (٢٨) صحابه وو نومونه ليکلي دي او صاحب دالرسائل في تحقيق المسائل د (٤٤) صحابه وو نومونه ليکلي دي، چې پدوي کې د حضرت ابوعبيدة رضی الله عنه حضرت ابي بن کعب، حضرت طلحه رضی الله عنه حضرت ابوالدارداء، حضرت سلمان فارسي حضرت عثمان، حضرت زبير حضرت عماربن ياسر، حضرت ابومسعود انصاري، حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص حضرت زيد بن ثابت، حضرت سعيد بن زيد، حضرت سعدبن ابي وقاص، حضرت حسن بن علي، حضرت حسين بن علي، حضرت عقبه بن عامر، حضرت عبدالله بن جابر، حضرت

ابوامامة الباهلي، حضرت عمران بن حصين رضی الله عنهم نوم ونه هم دي، حالانکه ددې صحابه وو ځخه دده مکمله دعوه په نهايي ضعيفه سند سره هم نده ثابته په يوه ساه باندې دنولسو (۱۹) صحابه وو پورې دروغ او بهتان قاديانيانو، پرويزيانو، بلکې يهودو او نصارى ووهم نه وو ويلي.

**دلامذهبه پشاوري بل غټ خيانت :** دلامذهبه امين الله پشاوري بل خندوونکې خيانت او چالاکي داده چې په خپل همدې کتاب، الحق الصريح ج۱ ص۸۱ کې يې په اتلسم نمبر باندې عنوان داسې لګولی دی چې:

**۱۶: حديث عبدالله بن عمروبن العاص ﷺ)** اولاندې يې داته ويشتووصحابه وونوم ونه ليکلي دي، په شمول دعبدالله بن عمروبن العاص ﷺ او حديث نشته نه دحديث دمتن ځرک لګيږي او نه دسند ځه درک لګيږي نوعنوان شته او معنون نه شته

## چيلنج

**لامذهبه خناسه!** که دزړې برابرايمان درکې وي نو ددنيا دکتاب خانو دحديثو دکوم کتاب ځخه دعبدالله بن عمروبن العاص ﷺ روايت دمکمل متن او دسند سره پيش کړه چې ستامکمله دعوه پکې وي (وَادْعُوْا شُهَدَاءَكُمْ).

که پيش دې کړو نو يولاکهه روپۍ انعام واخله او مونږبه هم در سره رفع اليدين شروع کړو او که نه يې شي پيش کولی او نه به يې پيش کړی شی نو بيا دالله دهغه اور ځه وډار شه چې: (وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ) او نور خلک دشيطان په لاره مه روانوه هغه کشران لامذهبان چې په غير شعوري طريقه ددې شيطان صفته مشرانو په خوله غوليدلي دي دا حديث دې ترينه وغواړي او دنه پيداکيدو په صورت کې دې پوه شي چې دوي ټولې خبرې دهمدې دعوې په ځېر دروغ او چالاکي ده.

## شپږم دليل

**حديث دعبدالله بن عمر ﷺ:** وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما: " أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوعِ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، رَفَعَهُمَا كَذٰلِكَ أَيْضًا، وَقَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، وَكَانَ لاَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُودِ"

**ترجمه**: او ابن عمر ﷺ فرمايي چې رسول الله ﷺ به چې کله مونځ شروع کړونو لاسونه به يې داوګو دبرابر پورته کړل او کله به يې چې د رکوع لپاره الله اکبرو کړو او دا رنګه کله به يې چې د رکوع نه سر پورته کړونو دواړه لاسونه به يې دغه شان داوګو پوري پورته کول او سمع الله لمن حمده ربنالک الحمد به يې وويلو او نبي ﷺ به په سجدو کې داسې نه کول (الحق الصريح ج٤\ص٧٠)

**مختصر جوابونه**: ١- پدې روايت کې د رفع اليدين ثبوت دی او اختلاف په دوام د رفع اليدين کې دی او دوام ددې حديث څخه نه ثابتيږي ٢- دا حديث دغير مقلدينو د پوره عمل لپاره دليل ندی، ځکه چې پدې حديث کې د لاندې خبرې نشته:

(١) په څلورو ځايونو کې دلسو رفع الدينو نو ثبوت او داتلسو نفي.

(٢) داسې لفظ چې هغه پدې دلالت وکړي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم تر وفاته پوري رفع اليدين کړي دي.

(٣) دحديث صحت دلا مذهبو ذ دوو دليلونو څخه چې قران او سنت دی.

(٤) که چا دا رفع اليدين ونکړل دهغه د لمانځه حکم څه دی؟

(٥) دعبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه د سجدو رفع اليدين هم مروي دی، **أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي كُلِّ خَفْضٍ، وَرَفْعٍ، وَرُكُوعٍ، وَسُجُودٍ وَقِيَامٍ، وَقُعُودٍ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ** (مشکل الاثار رقم ٢٤) حالانکې لامذهبه اهلحديث پدې عمل نه کوي (پدې ټولو ځايونو کې رفع اليدين نه کوي).

(٦) دعبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه په صحيح سند ترک د رفع اليدين قبل الرکوع وبعد الرکوع ثابت دی دا حنافو په دلايلو کې يې حوالې تيرې شوې دي.

## تفصيلي جوابات

**اول جواب**: دا حديث لامذهبانو دځان لپاره مرکزي دليل ګرزولې دی، حضرت امام بخاري رحمه الله دا حديث په څلورو سندونو ذکر کړی دی او څلور بابونه يې ورته لګولي دي: اول:

باب رفع اليدين في التكبيرة الاولى مع الافتتاح سواءً. يعنې د مانځه د شروع په وخت کې د اول تکبير سره د لاسونو اوچتول:

حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ رحمة الله تعالى عليهما، عَنْ مَالِكٍ رحمه الله عَنِ ابْنِ شِهَابٍ رحمهما الله، عَنْ سَالِمٍ رحمة الله تعالى عليه، بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه: " أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوعِ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، رَفَعَهُمَا كَذٰلِكَ أَيْضًا، وَقَالَ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، وَكَانَ لَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُودِ [بخاري شريف حديث نمبر ٧٣٥]

پدې حديث کې په دريو ځايونو کې د رفع اليدين ذکر دی، يو د مانځه د شروع، دوهم رکوع ته د تللو او دريم د رکوع څخه د سر اوچتولو په وخت کې. دريم: رکعت ته د اوچتيدلو رفع اليدين پکې ندی ذکر شوی. همدا رنګه په دې حديث کې د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم د ليدلو ذکر نشته. يعنې عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه دي ويلي چې ما رسول الله صلی الله عليه وسلم وليدلو. لکه په را روان حديث کې چې د ليدلو ذکر دی:

**دوهم:** (باب رفع اليدين اذا كبّر واذا ركع واذا رفع) باب دی په بيان د رفع اليدين کې د تکبير او رکوع ته د تللو او له رکوع څخه د راجګېدلو په وخت کې:

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ رحمه الله، قَالَ: أَخْبَرَنَا يُونُسُ رحمة الله تعالى عليه،، عَنِ الزُّهْرِيِّ رحمة الله تعالى عليه،، أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ رحمة الله تعالى عليه، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: " رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ فِي الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يَكُونَا حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَكَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ حِينَ يُكَبِّرُ لِلرُّكُوعِ، وَيَفْعَلُ ذٰلِكَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، وَيَقُولُ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَلَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُودِ ")[بخاری / رقم الحديث ٧٣٦ / ص١٠٢/ ج١].

په دې حديث کې هم په مذکورو دريو ځايونو کې د (رفع اليدين) ذکر دی. دريم رکعت ته د پورته کېدلو رفع اليدين پکې ذکر نه دي شوي. او په دې حديث کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ليدلو ذکر دی، کوم چې په اول حديث کې نه وو.

**دريـم:** باب الى اين يرفع يديه؟ يعنې باب دی په بيان د دې کې چې لاسونه به تر کوم ځای پورې اوچتوي؟

حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ رحمة الله تعالى عليه، قَالَ: أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ رحمة الله تعالى عليه، عَنِ الزُّهْرِيِّ رحمة الله تعالى عليه، قَالَ: أَخْبَرَنَا سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ رحمة الله تعالى عليهما، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَتَحَ التَّكْبِيرَ فِي الصَّلَاةِ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ حِينَ يُكَبِّرُ حَتَّى يَجْعَلَهُمَا حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوعِ فَعَلَ مِثْلَهُ، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَعَلَ مِثْلَهُ، وَقَالَ: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، وَلَا يَفْعَلُ ذَلِكَ حِينَ يَسْجُدُ، وَلَا حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ " [بخاری/ رقم الحديث ٧٣٨/ ص١٠٢].

په دې روايت کې هم په مذکورو دريو ځايونو کې د (رفع اليدين) ذکر دی، دريم رکعت ته د پورته کېدلو (رفع اليدين) پکې نه دی ذکر شوی. او له مخکنيو حديثونو سره يې فرق دا دی چې په مخکنيو دواړو روايتونو کې د سجدو په داخل کې د رفع اليدين نفی وه او په دې حديث کې دا نشته، بلکې په دې حديث کې سجدو ته د تللو او د سجدو څخه د راجګېدلو د رفع اليدين نفی ده. او د دوي په منځ کې هر عقلمن فرق کولای شي.

**څلورم:** (باب رفع اليدين اذا قام من الركعتين) باب دی په بيان د رفع اليدين کې چې کله دريم رکعت ته پورته کېږئ.

حَدَّثَنَا عَيَّاشٌ رحمة الله تعالى عليه، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى رحمة الله تعالى عليه، قَالَ: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ رحمة الله تعالى عليه، عَنْ نَافِعٍ رَحِمَهُ اللَّهُ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما، كَانَ " إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ، وَإِذَا رَكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، رَفَعَ يَدَيْهِ، وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ رَفَعَ يَدَيْهِ "، وَرَفَعَ ذَلِكَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما إِلَى نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ، عَنْ أَيُّوبَ، رحمة الله تعالى عليه، عَنْ نَافِعٍ رَحِمَهُ اللَّهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ ابْنُ طَهْمَانَ رحمه الله، عَنْ أَيُّوبَ رحمة الله تعالى عليه، وَمُوسَى بْنِ عُقْبَةَ رحمة الله تعالى عليهما، مُخْتَصَرًا( بخاري ج ١/ ص١٠٢/ رقم الحديث ٧٣٩).

په دې حديث کې په څلورو ځايونو کې د (رفع اليدين) ذکر دی. يو د لمانځه په شروع کې. دوهم رکوع ته د تللو. دريم د رکوع څخه د راپورته کېدلو. او څلورم دريم رکعت ته د جګېدلو رفع اليدين دی. حالانکه په مخکنيو روايتونو کې د دې څلورم رفع اليدين ذکر نه وو. همدارنګه په اولنيو دواړو

روایتونو کې په سجدو کې د (رفع اليدين) نفی وه او په دریم روایت کې سجدو ته د تللو او له سجدو نه د راجګېدلو د رفع اليدين نفی وه. او په څلورم روایت کې دا یوه نفی هم نشته.

همدارنګه په مخکنیو درې واړو روایتونو کې تر اوږو پورې د لاسونو د پورته کرلو ذِکر وو او په دې څلورم روایت کې دا نشته. لا مذهبه خلک په دې څلورم روایت باندې د عمل کولو دعوه کوي. حالانکه دا حدیث موقوف دی. یعنې دا بلکل د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث نه دی.

١-د امام بخاري رحمه الله په نیز بهترین سند د (مالک عن نافع عن ابن عمر) دی. او دا روایت همدې بهترین سند سره په موطأ امام مالک او په موطأ امام محمد کې ذکر شوی دی. په دې دواړو کتابونو کې دا حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم ته نه دی مسنوب شوی. د روایت الفاظ داسې دي چې: (حَدَّثَنَا أَبُو مُصْعَبٍ رحمة الله تعالى عليه، قَالَ: حَدَّثَنَا مَالِكٌ رحمة الله تعالى عليه، عَنْ نَافِعٍ رحمه الله، أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، رَفَعَهُمَا دُونَ ذَٰلِكَ (موطأ امام مالک / رقم الحدیث ٢٠٥ / موطأ امام محمد / رقم الحدیث ١٠٠/ و جزء رفع الیدین / رقم الحدیث ٧٣] . دلته موقوف ذکر شوی دی . او دوه ځایه پکې رفع الیدین راغلی دی ، یو د تکبیر تحریمه سره بل د رکوع څخه د راپورته کېدلو.

٢-د امام بخاري رحمه الله په ژوند کې امام ابوداود وفرمایل چې: (قال ابوداود: الصحیح قول ابن عمر لیس بمرفوع) [ابوداود/ رقم الحدیث ٧٤١] یعنې صحیح داده چې دا مرفوع یعنې د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث نه دی.

٣-امام ابوداود فرمایي چې: قَالَ أَبُو دَاوُدَ رحمة الله تعالى عليه: رَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ وَمَالِكٌ وَأَيُّوبُ وَابْنُ جُرَيْجٍ رَحِمَهُمُ اللهُ تَعَالَى مَوْقُوفًا [ابوداود/ رقم ٧٤١] یعنې لیث بن سعد ، مالک ، ایوب او ابن جریج دا حدیث موقوفاً روایت کړی دی. یعنې دغو ټولو ویلي دي چې دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث نه دی.

٤-امام بخاري رحمه الله هم په (جزء رفع اليدين) کې په دې اقرار کړی دی او فرمایلي يې دي چې: قَالَ الْبُخَارِيُّ رحمه الله: «وَالْمَحْفُوظُ مَا رَوَى عُبَيْدُ اللهِ وَأَيُّوبُ، وَمَالِكٌ وَابْنُ جُرَيْجٍ وَاللَّيْثُ وَعِدَّةٌ مِنْ أَهْلِ الْحِجَازِ وَأَهْلِ الْعِرَاقِ رَحِمَهُمُ اللهُ عَنْ نَافِعٍ رحمه الله، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما» [جزء رفع اليدين/ رقم ٨١]. یعنې دا ټول ائمه رحمهم الله فرمایي چې: دا موقوف دی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث نه دی.

۵-امام بخاري رحمه الله په (صحيح البخارى) كې د همدې حديث په آخر كې هم اختلاف ته اشاره كړې ده په دې الفاظو چې: وَرَوَاهُ ابْنُ طَهْمَانَ رحمة الله تعالى عليه، عَنْ أَيُّوبَ، وَمُوسَى بْنِ عُقْبَةَ رحمة الله تعالى عليهم مُخْتَصَرًا. [صحيح البخارى / ج۱/ ص ۱۰۲ رقم ۷۳۹].

۶-امام ولى الدين عراقى رحمه الله هم د امام ابوداود رحمه الله همدا قول را نقل كړى دى. [طرح التثريب / ص ۲۶۲].

۷-مشهور غير مقلد ناصرالدين البانى هم د امام ابوداود د دې قول تائيد كړى دى. [ضعيف سُنن ابى داود / ص ۷۲ / رقم ۱۵۲].

۸-قاضى شوكانى هم د امام ابوداود همدا قول را نقل كړى دى او منځكې ليكي چې: امام دارقطنى هم په كتاب العلل كې د دې حديث په باره كې د رفع او د وقف اختلاف ذكر كړى دى. [نيل الاوطار / ج ۲ / ص ۲۰۴].

۹-امام عقيلي هم ورته موقوف ويلى دى. [ضعفاء الكبير / ج ۲ / ص ۶۸].

دا حديث يوائې عبدالأعلى مرفوع ذكر كړى دى. امام بيهقى رحمه الله ليکي چې: (وَعَبْدُ الْأَعْلَى رحمة الله تعالى عليه يَنْفَرِدُ بِرَفْعِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) [سُنن كُبرى ج ۲/ ص۱۳۷]. او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: دې ته مرفوع ويل د عبدالأعلى غلطي ده. [فتح البارى / ج ۲ / ص ۲۸۸ / طبع دارالسلام / رياض]. او عبدالأعلى متكلم فيه راوي دى او قَدَرِي دى.

بندار فرمايي چې: والله لا يدرى أى رجليه اطول. [ميزان الاعتدال ج۲/ ص۵۳۱].

**دوهم ځواب :** حضرت مولانا محمد انورشاه كشميري رحمه الله فرمايي چې: ( و نفسُ نقلُ ابن عمر رفع اليدين يَدُلّ على انّه كان وقع الترک كثيراً فاعتنى به كانه يحيى سنة، والا فمن يروى انه صلى الله عليه وسلم كان يركع و يسجد مثلاً فى الصلوة ؟ الاّ اذا دعى الحال فذقه ينفس عنه كرباً ضاق بها الصدرُ، وليس فى حديثه الا ذكر الرفع لا غيره من صفة الصلوة كما فى حديث غيره فلا يخلو من هذه الاشعار فان فى مض لمطمعاً) [ نيل الفرقدين مع بسط اليدين / حاشيه/ ص۳۱].

حضرت مولانا السيد فخرالدين احمد رحمه الله دا مضمون داسې بيان کړی دی چې: د حضرت عبدالله رضی الله عنهما په حديث کې داأړخ د توجيه وړ دی چې که دده مقصد د لمانځه د ټول کيفيت تفصيل وي او په دې تفصيل کې (رفع اليدين) هم راغلی وي، نو بيا به دده نوعيت بل قسم وي. او خلکو به دا رافهمولی چې دا خبره هم د ذکر کولو قابله ده. لکن په دې روايت کې دا صورت نه دی، ځکه چې حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نور ټول تفصيلات پرېښي دي. او يواځې يو جزء يعنې (رفع اليدين) يې ذکر کړی دی. او د سجدو په منځ کې د دې نفی هم کوي. دا ځکه چې په هغه زمانه کې دا عمل بالکل غير مشهور شوی وو. نو حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د دې طرفته هم د خلکو توجه را واړوله، ترڅو چې دا عمل بالکل ورک نه شي او خبره همداسې ده، ځکه چې که (رفع اليدين) دايمي عمل وي، نو روزانه په اولسو (۱۷) رکعتونو کې به څلوردېرش (۳۴) ځله دا عمل کېدليې او که سُنن او نوافل هم پکې شامل کړو نو روزانه به په سلګونو وارې دا عمل کېدلې، او کوم عمل چې دومره په کثرت سره کېږي نو بيا صرف دده بيانول داسې دي لکه يو سړی چې دلمانځه د ټولو کيفياتو بيان پرېږدي او يواځې داسې ووايي چې درسالت په زمانه کې به په لمانځه کې دوه سجدې کېدلې. او دا خبره بې د يو علت داعي څخه په عقل کې نه راځي. [رفع اليدين / مجموعه مقالات ملخصاً / ج ۳ / ص ۱۰۵].

حضرت مولانا احمد رحمه الله مخکې ليکي چې: د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په نزد د (رفع اليدين) کول بالکليه د سنتو څخه مخالف نه وو، او ده به په خپله رفع اليدين نه کول. لکه څرنګه چې د امام مجاهد رحمه الله په روايت کې راغلي دي، ځکه چې د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم او د خلفاوو اربعه وو رضی الله عنهم، طريقه دده (رضي الله عنه) په مخکې پرته وه. چې دوی مبارکانو په ترک د رفع اليدين عمل کاوه. لکن کله چې ده وليدل چې دا عمل نور بالکل د ورک کېدلو په حال کې دی، حالانکه د دې عمل (نفسِ ثبوت) بغير د دوام څخه هم د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه شوی دی، نو دوی د احياء سُنت په جذبه باندې داسې وکړل. [رفع اليدين / مجموعه مقالات / ج ۳ / ص ۱۰۷].

حاصل دا چې د صحابه وو رضی الله عنهم په زمانه کې د (رفع اليدين) عمل بالکل شاذ بلکې متروک و.

**دريم جواب:** اصل خبره دا ده چې حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه يوه ورځ د حج په موسم کې رفع اليدين وکړل او دا د حج موسم ځکه وو چې امام بخاري رحمه الله فرمايي چې حضرت ابن عمر رضی الله عنه لاندې کسانو په

رفع اليدين وليدلو :

(١) ربيع (بصري) (٢) ليث (كوفي) (٣) طاوس (يمني)

(٤) سالم (مدني) (٥) ابوزبير (مكي) (٦) محارب بن دثار (كوفي)

(٧) نافع (مدني) (جزء بخاري ص ١٧٩) رقم ٢٨)

او ظاهر ده چې بصري، يمني، مكي او كوفي دحج په موسم كې سره يوځاى كيږي. بهرحال دحج په موسم كې دغې (اوو ٧) كسانو حضرت عبدالله بن عمر ﷺ په رفع اليدين كولو باندې وليدلو نوپدوي كې دوه كسانو تري پوښتنه وكړه چې ماهذا؟ دا څه شى دى؟ او دا دوه پوښتنه كونكې يو دحضرت ابن عمر رضى الله عنهما ځوى حضرت سالم ﷺ وو او بل دكوفې قاضي محارب بن دثار وو. (مسند احمد رقم الحديث ٥٠٣٤ ورقم الحديث ٦٩٩٢ ج٢\ ص٤٥ وج٢)\ص١٤٥)

ظاهره وه چې په مانځه كې دركوع رفع اليدين اودريم ركعت ته د پاڅيدلو رفع اليدين دوي ته يونابلده اوناآشنا كار ښكاره شو، ځكه د پوښتنې ضرورت پيښ شو، مثلاً كه يو سړى په اودس كې مضمضه او استنشاق وكړي نو هيڅوك ترينه دا پوښتنه نه كوي چې ماهذا؟ دا څه شى دى؟ ځكه دانابلده اوناآشنا كار ندى او كه يوسړى په اودس كې ګيډه هم ومينځي نو خلك ترينه پوښتنه كوي چې ماهذا؟ داڅه شى دى؟

ځكه چې په اودس كې دګيډې مينځل يو ناآشنا او نابلده كار دى، يا مثلاً يو سړى په شاذ قرات باندې تلاوت وكړي نو خلك ترينه سوال كوي چې ماهذا؟ داڅه شى دى؟ او په متواتر قراءت باندې دا اعتراض نه كيږي، ددې څخه صفا معلوميږي چې دصحابه وو رضي الله عنهم او دتابعينو رحمهم الله په زمانه كې درفع اليدين بالكل رواج نه وو او ددې پوزيشن داسې وو لكه دمتواتر قراءت په مقابل كې چې دشاذ قراءت كوم پوزيشن دى خلاصه دا چې ترك درفع اليدين عملاً متواتر وو او درفع اليدين كول عملاً شاذ وو، حضرت محارب بن دثار رحمه الله دكوفې قاضي وو او د مكې او مدينې او دبصرې وغيره علمي سفرونه يې كړي وو ليكن هيڅوك يې په رفع اليدين نه وو ليدلى ځكه ورته د عبدالله بن عمر ﷺ فعل نابلده ښكاره شو او پوښتنه يې وكړه چې ماهذا؟ داڅه شى دى؟ او حضرت سالم مدني رحمه الله وو او خپله دعبدالله بن عمر ﷺ ځوى وو، ده هم هيڅوك په رفع اليدين نه وو ليدلى او خپله دعبدالله بن عمر ﷺ عادت

هم ترک درفع اليدين وو ،که په مدينه کې يې څوک په رفع اليدين ليدلی وای او يا د عبد الله بن عمر ﷺ عادت درفع اليدين کول وي، نوځوی ته به يې نابلده نه ښکاريدلو او د پوښتنې ضرورت به نه پيښيدلو، نو دصحابه وو او دتابعينو په دورکې په مکه، مدينه، کوفه، وغيره ښارونوکې رفع اليدين کول بالکل يو نااشنا او نابلده کار وو او هيڅ څوک په رفع اليدين نه وو ليدلی.

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما يو ځلې وکړل، او کله چې اعتراض ورباندې وشونو هغه په جواب کې ورته حديث پيش کړو چې (ان رسول الله ﷺ کان يرفع) الحديث. د حضرت سالم عادت هم ترک درفع اليدين وو ځکه خوورته نابلده کار ښکاره شو او سوال يې وکړو چې ماهذا ؟دا څه شی دی؟

حضرت سالم ﷺ چې کله د عبد الله عمر رضي الله عنه دا عمل ليدلو، نو ده هم يو ځلې رفع اليدين وکړل نو حضرت جابر ﷺ ورباندې اعتراض وکړو چې ماهذا؟ دا څه شی دی؟ حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې: فسالت سالماً عن ذلک. ما د حضرت سالم رضي الله عنه څخه ددې په باره کې سوال وکړو. [طحاوي رقم الحديث ١٣٠٦].

امام مجاهد فرمائي چې ابن عمر ﷺ په لمانځه کې رفع اليدين نه کول طحاوي، ج ١ص ١٥٥ او دغير مقلدينو سرګروه نواب صديق حسن خان ليکي چې ( ومخالفت راوی ازبرای مروی دليل است برانکه علم ناسخ دارد، دليل الطالب ،ص ٤٧٦].

**څلورم جواب** :ددې حديث په اکثرو سندونو کې مرکزي راوي امام زهري رحمه الله دی امام زهري رحمه الله عظيم محدث او امام دی، د اهل السنة والجماعة په نيز دډير احترام قابل دی.

ليکن د غير مقلدينو په تحقيق باندې امام زهري شيعه دی، لکه څرنګه چې د غير مقلدينو شيخ او محقق حکيم فيض عالم صديقي خطيب جامع مسجد اهلحديث محله مستريان جهلم، دامام زهري رحمه الله په باره کې ليکلي دي چې: (ابن شهاب (زهري) د منافقينو، کذابينو څخه وو، مستقل ايجنټ وو، اکثره ګمراه کونکې، خبيث او دروغژون روايتونه دده طرف ته منسوب دي .دابن شهاب په باره کې داهم رانقل شوي دي چې دی دداسې کسانو څخه بلا واسطه روايتونه کوي چې دده دولادت څخه ډير مخکې وفات شويدي. او مخکې ليکي چې: مشهور شيعه مؤلف شيخ عباس قمي ويلي دي چې ابن شهاب اول سني وو او وروسته شيعه شو. (تتمة المنتهي ص ١٢٨) او بيا ليکې چې عين الغزال في

۶-په [ مسلم شريف ج ۱ / ص ۱۸۱ / رقم الحديث ۹۶۸ ] کې ذکر دي چې حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم له رفع اليدين څخه منعه وکړه او سخت وربانديې ناراضه شو.

۷- پـه [ بخـاري / ج ۱ / ص ۳۵ ] او [ مسـلم / ج ۱ / ص ۱۳۳ ] کـې د ( بـال قـائمـاً ) يعنـې پـه ولاړه باندې د مُتيازو کولو ذِکر دی او په ناسته باندې د مُتيـازو کولـو هيڅ ذِکر نشته، بلکې په ترمذی کې ( باب النهی عن البول قايماً ) دی . او لا مذهبان دلتـه د بخاري او د مسلم پـه روايت باندې عمل نه کوي، داسې په [ بخاري / باب المصافحة ] ده او د هغې لاندې په دواړو لاسونو باندې د مصافحې ذِکر دی او لا مذهبان يې نه مني.

## د حسن بصری رحمه الله د قول څه معنا ده ؟

۶-حضرت امام بخاری رحمه الله په [ جزء رفع اليدين ] کې د حضرت حسن بصري رحمه الله قول را نقل کړی دی چې : لم يثبت عن أحد من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه لم يرفع يديه د حسن بصری رحمه الله د دې قول څخه وروسته امام بخاري رحمـه الله ليکي چې: حسن بصری هېڅوک نه دي مستثنی کړي او نه د کوم صحابي رضی الله عنه څخه ثابت دي چې رفع اليدين يې نه دي کړي. [ جزء رفع اليدين / رقم ۱-۳۰.

**ځواب :**

۱-له دې څخه د تکبير تحريمه رفع اليدين مراد دی. ځکه چې هلته يوائې د رفـع اليدين ذِکر دی او که د رکوع رفع اليدين هم مراد شي نو بيا به د ترمذی او د ابراهيم نخعي او د نورو محدّثينو رحمهم الله تکذيب راشي، ځکه چې امام ترمذي د ترک د رفع اليدين روايت راوړی دی او بيا فرمايي چې: وَبِهِ يَقُولُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالتَّابِعِينَ [ترمذی/ بـاب ماجـاء فی رفـع اليدين/ رقم ۲۵۷]. يعنې د رفع اليدين د بې شماره صحاب وو او تابعينو عمل وو.

پدوي کې اتلسو شاګردانو رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د راجګیدلو د رفع الیدین ذکر کړی دی، یا په دوی کې اولسو شاګردانو د(رفع یدیه) په صیغه ذکر کړی دی او صرف یو شاګرد محمد بن مسلمة د(یرفع یدیه) صیغه علی احتمال ذکر کړې ده او د علی احتمال قید ځکه لګوو چې په صحیح احتمال سره دا صیغه د تکبیر تحریمه سره تعلق لري او په دې دوه دیرشو شاګردانو کې دولسو (۱۲) شاګردانو رکوع ته دتللو رفع الیدین ندي ذکر کړي، بلکه صرف د رکوع څخه د راجګیدلو رفع الیدین یې ذکر کړي دي او پاتې دوو شاګردانو صرف دتکبیر تحریمه رفع الیدین ذکر کړی دی. هغه دوه شاګردان یو صاحب د المدونة الکبری او بل عبدالله بن عون الخرازدي د المدونة الکبری الفاظ داسې دي چې: أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ التَّكْبِيْرَ لِلصَّلٰوةِ.(المدونة الکبری ج ۱ صـ ۷۱ او دعبدالله بن عون الخراز دحدیث الفاظ داسی دی چی:

أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ. [خلافیات للبیهقي نصب الرایة ج۱/ ص۴۷۹].

خلاصه دا چې په بخاري کې دد ې حدیث په یو سند کې امام مالک هم شته او د امام مالک رحمه الله سره په دې حدیث کې لس محدثین هم استاذه دي او دوه دیرش یې پکې شاګردان دي، لیکن امام مالک رحمه الله خپله په دې حدیث عمل نه کولو امام مالک رحمه الله فرمایي چې: لَا أَعْرِفُ رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِيْ شَيْءٍ مِّنْ تَكْبِيْرِ الصَّلٰوةِ لَا فِيْ خَفْضٍ وَّلَا فِيْ رَفْعٍ إِلَّا فِيْ افْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ [المدونة الکبري ج۱/ ص۷۱ قدیم . وج۲/ ص۱۶۵ طبع بیروت].

یعني د اول تکبیر څخه وروسته په هیڅ تکبیر او هیڅ ټیټیدلو او جیګیدلو کې زه رفع الیدین بالکل نه پیژنم.

د امام مالک رحمه الله خاص شاګرد امام ابن القاسم فرمایي چې د امام مالک رحمه الله په نیزد تحریمي څخه وروسته په بل هر ځای کې رفع الیدین کول بالکل ضعیفه دي .[المدونة الکبري ج۱\ص۷۱ طبع قدیم وج۲/ ص۱۶۵ طبع بیروت دار الکتب العلمیة ۱۴۲۶ھ].

د امام مالک رحمه الله د نه پیژندلو مطلب دا ندی چې د رفع الیدین حدیث ورته معلوم نه وو، ځکه چې په همدې حدیث کې د امام مالک لس هم استاذه او دوه دیرش شاګردان دي، بلکه مطلب یې دا دی چې امام مالک داسې محدث او عالم او فقیه نه پیژندلو چې په دې باندې یې عمل کړی وي، د امام مالک رحمه الله دد ې

خبرې څخه معلو میږي چې د امام مالک رحمه الله لسو هم استاذو او دوه دیرشو شاګردانو پدې حدیث باندې عمل نه کولو ځکه امام مالک رحمه الله داتول پیژندل، که په دوي کې چارفع الیدین کړي وی نو امام مالک به هیڅکله داسې نه وای ویلي چې زه رفع الیدین بالکل نه پیژنم. د امام زهري دبل شاګرد سفیان بن عیینة رحمه الله څخه هم تقریباً دوه دیرشو شاګردانو روایت کړی دی، لکن دوی ټولو د اذا رکعوا او اذا رفع راسه من الرکوع شرط ذکر کړی دی لکن د رفع یدیه او یا یرفع یدیه جزاء یې ورسره نده ذکر کړې، بلکې په مسند حمیدي کې او صحیح ابوعوانة کې ورسره جزاء د فلایرفع او د لایرفعهما په لفظ ذکر شوې ده. [مسند الحمیدي ج٢/ ص٢٧٧، حدیث نمبر ٦١٤] ومسند ابي عوانة رقم الحدیث ١٥٧٢].

او امام مالک چې دې ته ضعیف ویلي دي نو ددرې وجهو څخه یې ورته ویلي دي اول مخکې ذکر شو چې ابن عمر ﷺ او وکسانو په رفع الیدین لیدلی وو. (جزء بخاري ص ١٧٩).

په دوی کې شپږو کسانو: (١) حضرت نافع رحمه الله. (٢) حضرت ربیع رحمه الله. (٣) حضرت طاوس رحمه الله. (٤) حضرت لیث رحمه الله. (٥) حضرت ابوزبیر رحمه الله. (٦) حضرت محارب بن دثار رحمه الله.

دا حدیث موقوف روایت کړی دی یعنې ددې شپږو په نیز دا د سره د رسول الله ﷺ حدیث ندی یواځې حضرت سالم ﷺ مرفوع روایت کړی دی له دې وجې امام ابوداود رَحِمَهُ ٱللَّهُ ددې حدیث په باره کې فرمایې چې:

(لیس بمرفوع) ابوداود ج١ص ١٠٤) یعنې دا د سره د رسول الله ﷺ حدیث ندی او همدې خبرې ته په صحیح البخاري کې امام بخاري هم اشاره کوي او فرمائي چې: وروراه ابن طهمان عن ایوب وموسی بن عقبة مختصرا. [بخاری، ج ١ص ١٠٢).

**دوهم:** ددې حدیث په متن کې هم شدید اضطراب دی دا حدیث په متعدد و طریقو روایت شوی او هره طریقه دبلې سره معارضه ده چې د اووم جواب لاندې به یې رانقل کړو ان شاءالله تعالی

**دریم:** دا حدیث د خیر القرون د متواتر تعامل څخه مخالف دی.

**اووم جواب:** پدې حدیث کې د وقفًا او رفعًا اضطراب سره سره متنًا سخت اضطراب دی، ځکه چې د ابن عمر ﷺ څخه مختلف روایات د رفع الیدین په باره کې راغلي دي او هره یوه طریقه یې دبلې طریقې

سره دومره معارضه ده چې يوې طريقې ته پکې ترجيح ورکول ډير سخت دي.

**اول طريقه**: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي دَاوُدَ رحمة الله تعالى عليه، قَالَ: ثنا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ رحمة الله تعالى عليهما، قَالَ: ثنا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ رحمة الله تعالى عليهما، عَنْ حُصَيْنٍ رحمة الله تعالى عليه، عَنْ مُجَاهِدٍ رحمة الله تعالى عليه، قَالَ: «صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَلَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ».

امام مجاهد رحمه الله فرمايي چې ما دعبدالله بن عمر پسې مونځ وکړو هغه به صرف داول تکبير سره لاسونه پورته کول او په بل هيڅ ځای کې به يې نه پورته کول (شرح معاني الاثار ج ۱ ص۱۱۰).

ابوبکربن عياش دبخاري شيخ دی او مخکې ذکرشو چې په بخاري کې ترينه ډېر روايتونه دي اودا روايت يې داخرعمرندی، ځکه چې دا حديث دده څخه احمدبن يونس روايت کړی دی او احمدبن يونس دده څخه هغه روايات را اخستي دي چې دده داختلاط څخه مخکې وو. (درس ترمذي ج۲ ص ۲۱)

عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَوْنِ الْخَرَّازِ رحمة الله تعالى عليهما ثَنَامَالِكٌ رحمة الله تعالى عليه عَنِ الزُّهْرِيِّ رحمه الله عَنْ سَالِمٍ رحمة الله تعالى عليه عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ.

ترجمه: عبدالله بن عمر فرمايي چې رسول الله ﷺ به لاسونه پورته کول چې کله به يې لمونځ شروع کړو او نور به يې په هيڅ ځای کې نه پورته کول (اخرجه البهيقي في الخلافيات) [نصب الرايه ج۱ ص۲۱۰ طبع المطبع العلوي هند وفي بعض المطابع ص۴۷۹].

(۳) امام مالک په المدونة الکبری ج۱ ص۷۱ کې مرفوع حديث ذکر کړی.

(۴) معارف السنن ج۲\ص ۴۷۴ کې مرفوع حديث دی.

(۵) او په مسند حميدي ج۲\ص۲۷۷ کې مرفوع حديث دی.

(٦) او په مسند ابوعوانه ج۲\ص۹۱ کې مرفوع حديث دی.

(۷) او په موطا امام محمد \ ص ۹۳ کې موقوف حديث دی.

(۸) او کشف الاستار ج۱\ص۲۵۱ کې مرفوع حديث دی.

(۹) او په شرح معاني الاثار ج۱\ص ۵۴ کې مرفوع حديث دی.

(١٠) په كنز العمال ج١٧\ص٣٠٦كې مرفوع حديث دى.

(١١) او ابن عدى في الكامل ج٢\ص٩كې مرفوع حديث دى.

(١٢) اوپه ميزان الاعتدال ج١\ص ٣١٥كې موقوف حديث دى.

(١٣) شرح معاني الاثار طبع المكتبة الرحيميه ج١\ص١١١ كې موقوف حديث دى.

(١٤) اوپه مصنف ابن ابي شيبه ج١\ص ٢٣٧كې موقوف حديث دى او ددې څخه علاوه په متعدد دوځايونوكې دعبدالله بن عمر ﷺ مرفوع او موقوف روايتونه دي، چې دمانځه په شروع كې پكې درفع اليدين او په نورمانځه كې پكې دترک درفع اليدين ذكر دى، حاصل دا چې په دې طريقه كې ديو رفع اليدين ذكر دى.

**دوهمه طريقه:** امام مالک په موطا كې دابن عمر ﷺ څخه يو مرفوع حديث نقل كړى دى چې: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلى الله عَلَيه وَسَلَّم: كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلاَةَ يرَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ رَفَعَهُمَا كَذَلِكَ (موطا امام مالک ص٥٩)

ترجمه: يعني رسول الله ﷺ يو رفع اليدين دلمانځه دشروع كولو په وخت كې كړى دى او چې كله به دركوع څخه راپورته كيدلو بيا به يې رفع اليدين وكړل، نو په دې حديث كې په څلورو ركعتونو كې دپنځو رفع اليدينو ذكر دى اول دمانځه دشروع كولو په وخت كې او څلورنور دڅلورو ركوع گانو څخه دراپورته كيدلو په وخت كې دې ركوع ته دتللو رفع اليدين پكې ندى ذكر او همدا رنگه دسجدو اودوهم، اودريم، او څلورم ركعت ته دپورته كيدلو رفع اليدين هم پكې ندي ذكر شوي.

**دريمه طريقه:** په صحاح سته وو كې دابن عمر حديث په داسې طريقه راغلى دى چې دنهو رفع اليدينو ذكر پكې دى يو رفع اليدين پكې دتكبير تحريمه دى او اته رفع اليدينه پكې څلورو ركوع گانو ته دټيټيدلو او دجيگيدلو دي او دوهم، دريم، او څلورم ركعت ته دجيگيدلو رفع اليدينونه پكې ندي ذكر شوي او دسجدو رفع اليدين هم پكې ندى ذكر شوى. بخاري ج١\ص١٠٢ مسلم ج١\ص١٦٨ نسائي ج١\ص١٥٨ ابوداود ج١\ ص١٠٤ عبدالرازق ج٢\ص ٦٧].

**ځواب:** د حضرت ابو هريره رضی الله عنه په روايت کې ترک د رفع اليدين ثابت دي.

۱-حضرت ابو هريره رضی الله عنه د نورو هر ځل تېښېدلو او پورته کېدلو سره الله اکبر ويلو او د رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کې يې سمع الله لمن حمده ويلو او د لمانځه څخه چې فارغ شو نو ويې فرمايل چې: په خدای قسم چې زه په تاسو ټولو کې د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم سره زيات مشابه يم په لمانځه کې. د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ تر وفاته پورې همداسې و. [بخاری / رقم ۸۰۳ / مسند احمد / رقم ۸۲۷۳]. په دې صحيح حديث کې يوائې د (الله اکبر) ذکر دی. د رفع اليدين ذِکر پکې نشته.

۲-حضرت ابوبکر بن عبد الرحمن رحمه الله فرمايي چې: حضرت ابو هريره رضی الله تعالی عنه فرمايي چې: حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم به چې کله لمانځه ته ودرېده نو (الله اکبر) به يې وو ايه. رکوع ته د تللو په وخت کې به يې (الله اکبر) وويل، له رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کې به يې (سمع الله لِمن حمده) وويله او په دې حال کې چې ولاړ به وو نو (ربّنا لک الحمد) به يې وويلو، سجدې ته د تللو او له سجدې څخه د پورته کېدلو په وخت کې به يې (الله اکبر) وويلو. له لمانځه څخه تر فارغېدو پورې يې همدا معمول وو. [مسلم / رقم ۸۶۸]. په دې حديث کې هم يوائې د تکبير ذِکر دی او د رفع اليدين ذِکر پکې نشته.

## (۸)ايا درکوع په رفع اليدين کې لس نيکی دي

الجواب: ۱- د رکوع په رفع اليدين کې دلسو نيکيو خبره د رسول الله صلی الله عليه وسلم په هيڅ حديث کې نشته، نه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په قول کې شته نه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په فعل کې شته او نه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په تقرير کې شته، د صحابه وو اقوال او تقريراتو ته خو لامذهبيان حجت نه وايي.

٢- که په هر رفع اليدين کې لس نيکۍ وي نو بيا خو د لامذهبانو څخه په نيکيو کې شيعه ګان مخکې شو ځکه چې هغوي د هر رکعت سره رفع اليدين کوي د هرې سجدې سره رفع اليدين کوي او د هرې رکوع سره رفع اليدين کوي نو بيا دی لامذهبيان چيرته کومې امام باړې ته لاړشي او د هر انتقال سره دې رفع اليدين کوي.

٣- د صحابي عقبة بن عامر رضی الله عنه قول لامذهبانو ته دليل ندی او د علامه شنقيطي رحمه الله د تحقيق مطابق د عقبه بن عامر رضی الله عنه قول د تکبير تحريمه د رفع اليدين په باره کې دی هغه فرمايي چې: وقال عقبة بن عامر له بكل اشارة عشر حسنات بكل اصبع حسنة وهذا رواه الطبرانى باسناده حسن عن عقبة المذكور، وهذا الرفع مستحب عند جمهور العلماء عند افتتاح الصلوة لا واجب، (زاد المسلم فيما اتفق عليه البخاري ومسلم رقم ١١٥٦)

❊ ❊ ❊

ص۳۵ وص۳٦ نو څه وجه ده چې (د رفع يديه) له لوجې رفع اليدين ته سنت مؤكده متواتره وايي او د (بالل قايماً) له وجې په ولاړه باندې متيازو ته سنت مؤكده متواتره نه وايي؟ كه څوک و وايي چې په بخاري کې خو د (كان يرفع يديه) صيغه هم راغلې ده، نو مونږ وايو چې دا صيغه په اول روايت کې راغلې ده او صرف دتكبير الافتتاح سره متعلقه ده او بخاري شريف هم دتكبيرة الافتتاح په باب کې راوړې ده، خلاصه دا چې پدې حديث کې نه د سنت مؤكده لفظ شته او نه د سنت غير مؤكده لفظ شته او نه د دوام او هميشوالي لفظ پكې شته نو دا حديث هم د لامذهبانو په مذهب باندې صريح ندی لامذهبه خناس امين الله پشاوري د خپلو مشرانو لامذهبانو په تقليد کې ليكلي دي چې رسول اللهﷺ تر مرګه پورې رفع اليدين كړي دي او په حديث د ابن عمرﷺ کې لفظ د كان د دوام او داستمرار لپاره دی. [الحق الصريح ج٤ص۷۲.

لامذهبه خناسه! اول تا واوريدل چې د (كان يرفع) جمله صرف د تكبير تحريمه د رفع اليدين سره ذكر شوې ده، دوهم دا چې كه ومنو چې دا كلمه د ركوع د رفع اليدين سره هم تعلق لري، نو بيا په همدې حديث کې د دې صيغې سره د (رفع اليدين الى المنكبين) ذكر هم دی، يعنې دوه شيان ورسره ذكر شوي دي يو رفع اليدين او بل تر اوګو پورې پورته كول، دا دوهم تاسو دايم نه كنئ تا پخپل ګرنګ، الحق الصريح، ج ۴ ص ۴۷ باب صفة الصلوة د ۳ نمبر حديث په تشريح کې ليكلي دي چې (كله په يو او كله په بل او كله په بل عمل پكار دی) نو كان څرنګه د رفع اليدين لپاره استمراره راولي او د (الى المنكبين) لپاره يې نه راولي؟ دريم دا چې:

(۱) په يو حديث کې راځي چې (كان النبيﷺ يقرا في الظهر بالليل اذا يغشى) يعنې نبيﷺ به د ظهر په مانځه کې د والليل اذا يغشى سورة تلاوت كولو مسلم ج۱ص۱۸۷ مشكوة ج۱ص۷۹) آيا پدې حديث کې كان يقرأ د استمرار لپاره دی؟ او آيا رسول اللهﷺ هميشه په ماسپښين کې د والليل اذا يغشى سورت لوستلی دی؟

(۲) په حديث شريف کې راځي حضرت جابرﷺ فرمايي (كان النبي ﷺ يقرا في الفجر بق والقرءان المجيد) يعنې رسول اللهﷺ به د سهر په مانځه کې سورة ق لوستلو. (مشكوة ج۱ص۷۹) ايا پدې حديث کې كان يقرا د استمرار لپاره دی؟ او ايا رسول اللهﷺ هميشه د فجر په مانځه کې سورت ق لوستلی دی؟

(۳) په بل حديث کې راځي ابو هريرةؓ فرمايي كان النبي ﷺ يقرا في الفجريوم الجمعة بآلم تنزيل الحديث. يعني رسول اللهﷺ به دسهار په مانځه کې آلم تنزيل لوستلو مشكوة ج۲ص ۸۰) ايا پدې حديث کې كان يقراددوام او استمرار لپاره دی؟ او يا رسول اللهﷺ هميشه دسهار په مانځه کې داسورة لوستلی دی؟ که هميشه يې داسورة لوستلی وي نو بيا خو يې دمخکې حديث سره تعارض راغلو.

(۴) په بل حديث کې راځي حضرت جابرؓ فرمايي : كان النبي ﷺ يقرا في صلوة المغرب ليلة الجمعة قل يا ايها الكافرون وقل هو الله احد. يعني نبيﷺ به دجمعې په شپه دماښام په مانځه کې دقل يا ايها الكافرون سورت او دقل هو الله احد سورت لوستلو مشكوة ج۱ص ۸۰].

نو ايا پدې حديث کې هم كان يقرء ددوام او داستمرار لپاره دی؟ او ايا رسول اللهﷺ هميشه دجمعې په شپه دماښام په مانځه کې دا دوه سورتونه لوستلی دی؟

(۵) په بل حديث کې راځي حضرت انسؓ فرمايي چې: كان النبيﷺ يطوف على نساءه بغسل واحد (رواه مسلم). ترجمة: نبي ؑ به په يو غسل سره خپلو بيبيانو سره صحبت کولو. (مشكوة ج۱ص۴۹)

آيا پدې حديث کې هم كان يطوف ددوام لپاره دی؟ او ايا رسول اللهﷺ هميشه په يو غسل دخپلو ټولو بيبيانو سره صحبت کړی دی ؟

(۶) په بل حديث کې راځي ام سلمه رضی الله عنها فرمايي : (كان رسول اللهﷺ يجنب ثم ينام ثم ينتبه ثم ينام (رواه احمد) ترجمه: ام سلمه فرمايي چې رسول اللهﷺ به دجنابت په حالت کې اوده کيدلو بيا به راويښيدلو او بيا به اوده کيدلو. (مشكوة ج۱ص۵۰)

ايا دلته هم كان يجنب ددوام لپاره دی ؟ او ايا رسول اللهﷺ هميشه بغير داودس ځخه دجنابت په حالت کې اوده شوی دی ؟

(۷) په بل حديث کې راځي بي بي عايشة رضی الله عنها فرمايي ( كان رسول اللهﷺ يغتسل من الجنابة ثم يستدفئُ بي قبل ان اغتسل (رواه ابن ماجه) يعني رسول الله ﷺ به چې کله دجنابت غسل وکړو نو بيا به هغه زما دغسل کولو ځخه مخکې ماسره په ځان لګولو ځان ګرمولو (مشكوة ج۱ص۴۹)

ايا دلته هم كان يستدفئُ ددوام او داستمرار لپاره دی؟ آو ايا رسول الله ﷺ هميشه دبي بي عايشې

رضى الله عنهاسره د جنابت په حالت مباشرت کړی دی ؟

(۸) په بل حدیث کې راځي بي بي عايشة رضي الله عنها فرمايي (كان رسول الله ﷺ يقبل بعض ازواجـه ثـم يصلي ولا يتوضا) رواه ابوداود والترمذى والنسـايي). يعنې رسول الله ﷺ به بعضې بيبياني ښکل کړی بيابه يې مونځ کولو او اودس به يې نه کولو. (مشکوة ج۱\ص٤١)

ايادلته هم كـان يقبـل ددوام او استمرارلپاره دی؟ او ايارسـول الله ﷺ هميشـه د مانځه څخه مخکې خپلې بيبياني ښکلولی.؟

(۹) په بل حديث کې راځي حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې (كان رسـول الله ﷺ يخـرج مـن الخـلاء فيقرءنا القران الحديث يعني رسول الله ﷺ به دبيت الخـلاء څخه راووتلو او داودس څخه مخکې به يې مونږته قران لوستلو (مشکوة ج۱\ص٤٩) آيادلته هم كان يقرا ددوام او داستمرارلپاره دی ؟ او ايارسول الله ﷺ هميشه دبې اودسې په حالت کې قرءان لوستلی دی؟

(۱۰) پـه بـل حـديث کـې راځي حضرت عايشـة رضي الله عنها فرمـايي : (كان النـبي ﷺ يـتكي في حجـري واناحايض ثم يقرء القرءان) يعني نبي عليه السلام به زما په غيږه کې تکيه لګوله اوزه به حايضـه ووم بيابه يې قران لوستلو. (بخاري ج۱\ص ٤٤مشكوة ج۱\ص٥٦)

ايادلتـه هم كـان يتكئ او كـان يقرأ ددوام اوداستمرارلپاره دی؟ او ايارسـول الله ﷺ هميشـه دبي بي عايشي په غيږکې دحيض په حالت کې تکيه لګوله؟ او ايارسول الله ﷺ به هميشه دبي بي عايشي رضى الله عنهاپه غيږه کې دحيض په حالت کې قرءان لوستلو؟.

(۱۱) په بل حديث کې راځي بي بي عايشة رضى الله عنها فرمايي (كان رسول الله ﷺ يقبل ويبـاشر وهوصـائم (متفـق عليـه) يعنې رسول الله به دروژې په حالت خپلې بيبياني خکلولی او مباشرت به يې ورسره کولو. (مشـكوة ج۱\ص ۱۷٦ بخـاري ج۱\ص٤٢) نو ايارسول الله ﷺ هميشـه دروژې په حالت کې بيبياني خکلولی؟ او يارسول الله ﷺ هميشه د روژې په حالت کې دبيبيانوسره مباشرت کړی دی؟

(۱۲) پـه بـل حديث کې راځي چې (كـان يصلى فى نعليـه) بخـاري ،ج۱ص ٥٦ نو ايارسـول الله ﷺ هميشه په پڼو کې لمونځ کړی دی ؟.

(۱۳) په بل حديث کې راځي چې (كـان يصلى وهو حامل امامة بنت العـاص) بخـاري ،ج ۱ص ۷۴

نوايارسول الله ﷺ هميشه دلمانځه په وخت کې خپله نوسې په غوږکې نيوله ؟

داافعـال درسـول الله ﷺ څخـه دماضـي استمـراری پـه صيـغه ثابت دی؟ نولامذهبـه خناسـه يـادې افعالوڅخه دمنع اودمنسوخيدلوکوم حديث پيش کړه اوياپدې افعالودسنت مؤکده په شان هميشه پورې عمل کوه اوڅوک چې داکارونه ونه کړي هغه ته تارک دسنتو ووايه اودهغه په خلاف چيلنج بازي شروع کړه اودهغـه پـه خـلاف کتابونـه اورسالي اواشتهارونه چـاپ کـړه، لامذهبـه خناسـهِ؟ دماضـي استمراري اصل وضعه ديوواري فعل لپاره ده (نووی ج۱\ص ٢٥٤/مجمـع البحـارج٣/ص ٢٣٥/مسـک الختام ج۱\ص ٥٦٧].

ددې څخه دوام اوهميشوالى صراحةً اوپه طريقي دنص باندې نه ثابتيږي، البتـه دقراينواجتهاديه وولـه وجهې ترينه مجتهد کله دوام مرادوي اوکله ترينه عدم دوام مرادوي، لهـذا دکـان يرفـع جملـه مهملـه په قوة دجزئې کې دی ،همدارنګه په موجهاتو کې هيچا دا په دايمو کې نده ذکر کړې بلکې دا مطلقه عامه ده .

(۱۴) خپله نياز محمد کنړي عرف امين الله پشاوري په يو ځای کې ليکي چې (کان يخلـل لحيتـه) کې کان هميشه د پاره ددوام او داستمرار لپاره په احاديثو کې نه راځي، بلکې په احيانا وقـوع باندې هم دلالت کوي (الحق الصريح ج ۲ ص ۳۳۵، کتاب الطهارة باب سنن الوضوع)

داحنافوپه نيزددوام لپاره دټولوڅخه غټه قرينه تعامل دخلفاء راشدينو دی اوتعامـل دخيرالقرون دی بلانکيره که يوفعل درسول الله ﷺ څخه ثابت شي او وروسته په خيرالقرون کې وربانديې تعامل جاری وونوداديليل دمواظبت اوهميشوالي دی اوکه په خيرالقرون کې وربانديې تعامـل نـه وو جاري نودادليل دترک دمواظبت اود عدم دهميشوالي دی لکه پدغې مذکوروڅوارلسوافعالوکې چې تعامل دخلفاء راشدينواوتعامل دخيرالقرون نه شته، نودادليل د ترک دمواظبت اودعدم دهميشوالي دی اوپـه رفـع اليدين دخلفاء اربعه وو تعامل نه ووبلکې په ترک درفع اليدين يې تعامل وو، حضرت ابوبکرصديق ؓ رفع اليدين نه کول. (دارقطني ج۱\ص۲۹۵) (بهيقي ج۲\ص ۷۹/ مجمع الزوائدج۲\ص۱۰۱)

حضرت عمر ؓ رفع اليدين نه کول (دارقطـني ج۱\ص۲۹۵/طحـاوي ج۱\ص ١٦٤/ابـن ابي شـيبه ج۱/ ص ٢٦٨/بهيقي ج۲\ص ۷۹/مجمع الزوايدج۲\۱۰۱).

حضرت علي ﷛ رفع اليدين نه کول (شرح معـاني الاثـار ج۱/ص ۱۳۲/ مصـنف ابـن ابي شـيبه ج۱\ص ۲۳۶\۱۲۱/ موطا امام محمد ص۹۰ص۹۱/ ريلعي ج۱\ص ۲۱۱)

د حضرت علي ﷛ او دعبد الله بن مسعود ﷛ په زرګونو اصحابو نه کول. (مصـنف ابـن ابي شـيبه ج۱\ص۲٦۷) (الجوهرالنقي ج۱\ص ۱۳۹)

حضرت عبد الله بن عمر رفع اليدين نه کول. (شرح معاني الاثار ج۱\ص ۱۱۰) او نوري ډيري حوالي په اوله طريقه کې تيری شوي دي.

حضرت ابو هريرة ﷛ رفع اليدين نه کول (موطاامام محمد ص۹۰معارف السـنن ج۲\ص ۲۹٦ نيـل الفرقدين ص ۱۲۳).

په خير القرون کې په مکه مکرمه کې هيچا رفع اليدين نه کول، ځکه چې د مکې او سيدونکی ميمون مکي نه پيژندل او د پوښتنې ضرورت ورته پيښ شو، په مکه کې د رفع اليدين روايت صرف د ابن عباس ﷛ او د ابن زبير ﷛ څخه ميلا ويږي، چې دا دواړه د نبی ﷺ په زمانه کې صغيران وو،[فـيض البـاری ،ج ۲ص ۵۱، (ابوداود ج۱\ص ۱۱۵)

په خير القرون کې په مدينه منوره کې هيچا رفع اليدين نه کول ځکه د مديني منوري امام نه پيژندل (المدونة الکبري ج۱\ص ۷۱)نيل الفرقدين ص ۲۲]. په کوفه کې هيچا رفع اليدين نه کول (ترمـذي ج۱ص ۵۸/التعليق الممجد ص۹۱) په شام کې يې هم خمول وو. [نيل الفرقدين ص ۱۳۸].

لامذهبه خناس په بخاري حوالی ورکړي دي خو د ا ياد لرئ چې دا خبرې په صحيح بخاري کې نشته بلکې امام بخاري تـه منسـوبې دوه نـوري رسـالي دي، جزءالقـراءة او جزء رفـع اليـدين، چې دهغـوی دواړو رسالو پوخ ثبوت د امام بخاري رحمه الله پوري نه شته، د دې رسالو بيانونکی محمود بن اسحق الخزاعي دی او د ده ترجمه نه په تقريب کې شته او نه په تهذيب التهذيب کې شته او نه په تذکرة الحفاظ کې شته او نه په ميزان الاعتدال کې شته. (مجموعة الرسائيل ج۳\ص۲۱۵).

دا د لامذهبانو بل خيانت او چالاکي ده، چې صرف په امام بخاري حواله ورکوي، نوره دا توضيح نه کوي چې دا خبره په صحيح بخاري کې نده بلکې په هغه نورو رسالو کې ده چې پوخ ثبوت يې لا تر اوسه

دامام بخاري پورې نه شته.

لامذهبه خناس ليکي: دااعتراضونه داحنافو په اضطراب دلالت کوي، ځکه مخکې وايي چې داعمل دابن عمردی اوموقوف دی اودلته وايي ابن عمرﷺبه رفع اليدين نه کولو (الحق الصريح ج٤\ص ٧١).

**الاخساء:** لامذهبه خناسه: ته خويقيناً چې جاهل يې، خوپه دې ځای کې تجاهل هم کوئ، ځکه چې احناف وايي چې ابن عمرﷺيوياده ځلې رفع اليدين کړی وويوځلې حضرت سالم اوحضرت محارب پرې اعتراض وکړو (مسنداحمدج٢\ص ٤٥وص ١٤٥) او دوهم ځل حضرت جابرپرې اعتراض وکړو (فسالت عن ذلک طحاوی ج١\ص ١٥٣].

نوداول قول معنی داده چې ابن عمرﷺيوياده ځلي رفع اليدين کړي دي چې بياهم داعتراض لاندې راغلواو ددوهم قول معنی داده چې دابن عمرﷺعادت مستمره ترک درفع اليدين وو؟

**نهم جواب:** دامام اعظم اوامام اوزاعي رحمهما الله په مينځ کې چې کله مناظره وه نوامام اوزاعي رحمه الله امام اعظم رحمه الله ته همدا حديث پيش کړی وو.

محدث الحرم المکي امام سفيان بن عيينه رحمه الله فرمايي چې امام ابو حنيفه رحمه الله اوامام اوزاعي رحمه الله دمکې مکرمې دغلې په منډيې کې سره مخامخ شول، امام اوزاعي رحمه الله امام اعظم رحمه الله ته وويل چې څه وجه ده چې تاسو اهل کوفه درکوع رفع اليدين نه کوي؟ امام ابوحنيفه رحمه الله ورته وفرمايل چې ددې وجهې څخه يې نه کووچې درکوع درفع اليدين په باره کې هيڅ صحيح حديث (بلامعارضه) نه شته.

امام أوزاعي رحمه الله ورته وفرمايل چې څنګه نه شته ماته زهري رحمه الله اوهغه دسالم څخه اوهغه دعبدالله بن عمر څخه روايت کوي چې رسول اللهﷺبه چې کله لمونځ کولو نوداول تکبيرسره به يې رفع اليدين وکړل اوركوع ته دتللوپه وخت اودرکوع څخه دجيګيدلوپه وخت کې به يې هم رفع اليدين کول.

امام ابو حنيفه رحمه الله ورته وفرمايل چې ماته حماد رحمه الله او هغه دابراهيم څخه اوهغه دعلقمه اوداسود څخه اوهغه دواړه د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت کوي چې رسول اللهﷺبه لاسونه

نه پورته کول مګر د مانځه د شروع کولو په وخت کې به یې پورته کول او په مانځه کې یې نور په هیڅ ځای کې نه پورته کول، ددې په اوریدلو سره امام اوزاعي اعتراض وکړو چې زه د زهري عن سالم عن ابن عمر سند پیش کووم او ته د حماد عن ابراهیم عن علقمة والاسود عن عبد الله بن مسعود ﷺ سند پیش کوې.

خلاصه د اعتراض داده چې امام اوزاعي وفرمایل چې زما سند ستا د سند نه بهتر دی، ځکه چې زما په سند کې صحابي ته د رسیدلو پورې دوه واسطي دي، چې زهري او سالم دی او ستا په سند کې صحابي ته د رسیدلو پورې درې واسطي دي چې حماد، ابراهیم، او علقمة دی، نو د سند په لحاظ زما روایت راجح دی نو امام ابو حنیفه رحمه الله جواب ورکړو چې امام حماد د زهري نه غټ فقیه دی او ابراهیم د سالم نه غټ فقیه دی او عبد الله بن عمر ﷺ اګرچې د صحابیت د شرافت له وجهې د علقمه نه بهتر دی لیکن علقمه په فقه کې د ابن عمر ﷺ نه کم ندی او اسود ته ډیر فضیلت حاصل دی او عبد الله بن مسعود ﷺ خو عبد الله بن مسعود دی، نو ددې جواب په اوریدلو امام اوزاعي چپ شو. (مبسوط ١٤ فتح القدير ص ٢١٩)(جامع المسانيد ج١\ص ٣٥٢ ص ٣٥٣/ مسند امام اعظم ص ٥٠\ص ١٢١)

امام سرخسي رحمه الله او شیخ ابن الهمام رحمه الله ددې مناظرې د نقل کولو نه وروسته لیکي چې امام ابو حنیفه د امام اوزاعي توجه ددې خبرې طرف ته را واړوله چې د محدث او د فقیه په مابین کې د فرق لحاظ وساته ځکه چې محدث هر قسم احادیث راجمع کوي، صحیح وي او که ضعیف وي، ناسخ وي او که منسوخ وي په خیر القرون کې معمول بهاوي او که غیر معمول بهاوي او ددې بالعکس فقیه صرف هغه احادیث رااخلي په کوموچې عمل جاري وي. امام اوزاعي ددې مناظرې نه مخکې د رفع اليدين حمایت کولو. [الاستذکار ج٢/ص١٦٢]

بیا ورته معلومه شوه چې منسوخ دي. ځکه کله چې ابن سلیمان د امام اوزاعي رحمه الله نه پوښتنه وکړه چې د مانځه د هر هغه تکبیر سره رفع اليدين کول څه حکم لري کوم چې په قیام کې وي؟ امام اوزاعي جواب ورکړو چې رفع اليدين کول د تیرې زمانې خبرې وې (بخاري جزء رفع اليدين ص ١٨٣).

امام مالک رحمه الله د تکبیر تحریمه نه وروسته رفع اليدين ته ضعیف وایي (المدونة الکبری ج١\ص ٧١) امام اعظم رحمه الله د تکبیر تحریمه نه وروسته رفع اليدين ته لایصح وایي. (مسند امام اعظم ص ١٢١) ددواړو اماما نو د خبرو یو معنی ده، لیکن غیر مقلدین د امام مالک رحمه الله په خلاف

هیڅ لیکل نه کوي او امام اعظم باندې ډېرې زیاتې جرحې کوي چې څو مره احادیث درفع الیدین په باره کې صحیح راغلي دي او امام صاحب وايي چې درفع الیدین په باره کې هیڅ صحیح حدیث نشته، په اصل کې لامذهبانو ته دصحیح حدیث هغه تعریف معلوم دی چې ابن صلاح الدوراني الشافعي کړی دی، لامذهبان دصحیح حدیث په تعریف کې دده تقلید شخصي کوي او په خیر القرون کې چې دصحیح حدیث کوم تعریف وو هغه ورته ندی معلوم

امام ابویوسف رحمه الله فرمايي: درواياتو سلسله غټيدو نکې ده او په مخ روانه ده، پدوي کې داسې روايات هم شته کوم چې غير معروف دي، نه فقهاو ته معلوم دي او نه دقران او دسنت سره موافق دي نو تاسو دداسې حديثونو څخه ځان وساتئ او په هغو حديثونو عمل وکړئ په کوموچې دجماعت عمل وي او کوم چې فقهاو ته معلوم وي او کوم چې دقران او دسنت سره موافق وي (الردعلي سيرالاوزاعي ص ٣١)

ددې څخه معلوميږي چې په کوم حديث چې په خير القرون کې چا عمل نه وي کړی او کوم حديث چې دقرءان او دسنت څخه مخالف وي، هغه شاذ دی او شاذ حديث صحيح نه بلکې ضعيف وي.

ددې ټول بحث څخه دا خبره ثابتيږي چې دخير القرون متواتر تعامل ددې حديث څخه خلاف په عدم رفع باندې وو، لکه څرنګه چې ابوبکربن عياش فرمايي: (مارايـت فقيهـاقط يفعلـه يرفـع يديـه في غيرالتكبيرة الاولي )(طحاوي ج١ص١٥٦).

محدث ابوبکربن عياش په سنه ١٠٠ هـ کې پيدا شوی دی او په سنه ١٩٣هـ) کې وفات شوی دی، يعنې په خير القرون کې پيدا شوی دی او په خير القرون کې وفات شوی دی او په بخاري کې ترينه ډير زيات روايتونه دي ده ډيرزيات دحج لپاره دمکې او دمدينې سفرونه کړي دي، دتعليم لپاره يې هم دمختلفو ځايونو سفرونه کړي دي ليکن دده دټولې زندګۍ مشاهده داده چې هيڅ په دين پوه سړی يې په رفع اليدين کولو باندې ندی ليدلی.

## چيلنج

دحضرت ابن عمر ﷺ څخه درفع اليدين په باره کې شپږ قسمه روايات راغلي دي، يو يعنې دتکبيره تحريمـه رفـع اليـدين پنځـه رفـع اليدينـه، نهـه رفـع اليدينـه ،لس رفـع اليدينـه، اتلس رفع اليدينه او شپږويشت رفع اليدينه ددې اختلاف حل دغير مقليدينو د اصولو مطابق دادی:

(۱) چې پـه کـوم صـحيح صـريح حـديث کې پـه څلورو رکعتونو کې دلسو رفع اليدينو سره دسنت مؤکده لفظ وښايې.

(۲) اويا پـه کـوم صحيح صـريح حـديث کې وښايې چې دلسـو رفـع اليدينو والاحـديث صحيح دى اونوراحاديث ضعيف دي، يادترک درفع اليدين حديث ضعيف دى، ځکه ددوي دعوى داده چې دالله ﷻ ودرسول الله ﷺ څخه ماسوى دبل هيڅ غير معصوم امتي قـول حجت ندى اودادوه خبرې بـه تـر قيامته پورې غير مقلدين په حديثو کې ونه ښودلى شي (ديده بايد) زمونږداهل السنة والجماعة مسلک دادى چې که په قران اوپه حديث کې مسئله پيدا نه شوه، نوداجماع اوداجتهاد طرف بـه رجوع کيږي، کله چې زمونږ اسلافو ورته رجوع وکړه نولاندې خبرې په نظرورغلي.

**الـف :** دتکبيرتحريمـه درفـع اليـدين پـه بـاره کې هـيڅ تعـارض نـه شـته، نوهغـه خومسنون دى اودنوررورفع اليدينونوپه باره کې تعارض دى نوکه ټول ساقطوي بيرته اصل عدم رفعه شوه.

**باء:** دلمانځه افعال دحرکت څخه دسکون طرف تـه راکميدل، نواول (۲٦) رفع اليدينه ووبيارا کم شو اتلسو ته، بيا راکم شو لسو ته، بيا راکم شو نهو ته، بيا راکم شو پنځوته، بيا راکم شو صرف يود تکبير تحريمه رفع اليدين پاتې شو.

**ج:** ددې حديث بالذات راوي عبدالله بن عمر ﷺ پخپله دې حديث باندې دعمل کولو عادت نه وو، بلکې بدعت يې ورته ويلى دى. (شرح معاني الاثار ج ۱\ص ۱۱۰ص ۱۵۵اوابن عدى ج۲ص ۹ حرف الباء)

**د :** پدې حديث کې دده څخه راوي دده ځوى حضرت سالم ﷺ ورباندې دايمي عمل نه کولو ځکه خويې دخپل پلار څخه پوښتنه وکړه چې ماهذا؟ داڅه شى دى. (مسنداحمد ج۲\ص ٤٥وص ١٤٥)

**هـ:** ددې حديث بل مرکزي راوي امام مالک ورباندې عمل نه کولو. (المدونة الكبري ج۱\ص ۷۱).

**و:** په خيرالقرون کې ورباندې هيچاعمل نه کولولکه څرنګه چې د بخاري شريف راوي ابوبکربن عياش فرمايلي دي. (طحاوي ج۱\ص ١٥٦).

لامذهبان دقـول دابن عمر ﷺ دفعـل دابـن عمر ﷺ، داجمـاع داهل مدينه وو، داجماع دخيرالقرون، دخيرالقرون دمجتهـداعظم امـام اعظـم رحمـه الله دترجيحاتو پـه مقابـل کـې دخيرالقـرون څخـه ډيـرو وروستنيو خلکو داقوالو تقليد کوي.

# اووم دليل

**حديث دمالک بن حويرث ﷺ:** وَعَنْ مَالِكِ بنِ الْحُوَيْرِثِ ﷺ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَقَالَ: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ. وَفِي رِوَايَةٍ: حَتَّى يُحَاذِيَ بهما فروع أُذُنَيْهِ. [بخاري ج١/ ص١٠٢ رقم ٧٣٧].

**ترجمه:** او مالک بن حويرث فرمايي رسول اللهﷺ به چې کله تکبير تحريمه وويله نو خپل دواړه لاسونه به يې دومره پورته کړل چې د غوږونو سره به يې برابر کړل او کله به يې چې د رکوع څخه سر پورته کولو نو سمع الله لمن حمده ويلو سره به يې دغه شان کولو، يعنې دواړه لاسونه به يې پورته کول او په يو روايت کې دي چې لاسونه به يې دغوږونو بره طرفونو سره برابرول. (الحق الصريح ج١\٧٢)

**اول جواب :** لامذهبان دلته په نهو کتابونو حواله ورکوي، حالانکې پدې نهو کتابونو کې په هيڅ کتاب کې هم پدې حديث کې ددوام او دهميشوالى لفظ نه شته او نه پکې دسنت مؤکده لفظ شته او نه پکې دسنت غير مؤکد لفظ شته او نه پکې دمستحب لفظ شته او نه حضرت مالک بن الحويرث ﷺ درسول اللهﷺ سره هميشه او سيدلى دى بلکې په ( صحيح بخاري ج١\ص ٨٨ وص ٩٥) باب الاذان للمسافر، وباب اذا استووا في القراءة...الخ کې تصريح شويده چې مالک بن حويرث ﷺ پخپله ټوله زندګى کې صرف شل شپې درسول اللهﷺ سره اوسيدلى دى، حضرت مالک بن حويرث ﷺ نه دمهاجرينو صحابه وو رضى الله عنهم څخه وو او نه داهل بدر وا و اهل احد وو څخه وو او نه داهل بيعت رضوان دصحابه وو څخه وو. ددغې حاضرباشو صحابه وو د روايا تو په مقابله کې غير مقلدين ددغې شلو شپو د مسافر صحابي ﷺ روايت ته پخپل ګمان ترجيح ورکوي.

**دوهم جواب:** حضرت مالک بن حويرث ﷺ وروسته په بصره کې مقيم شو. او په بصره کې په زرګونو اهل السنة والجماعة محدثين او سيدل، ليکن دا درفع اليدين حديث ترينه هيڅ اهل السنة والجماعة محدث روايت نه کړو، بلکې دده څخه روايت کونکى يو ابو قلابه دى چې دناصبيت طرف ته مايل وو (تقريب ص ١٧٤). او بل نصر بن عاصم دى چې د خوارجو څخه وو. (تهذيب) آخر غير مقلدينو ددومره غټو سنتو لپاره ولې يو اهل السنة روايت کونکى هم په بصره کې نه وو؟ (مجموعة الرسائل ج٣\ص ٢٠٦] راحة العينين ص٤٨٩].

**دريم جواب :** ابو قلابه اول نمبر مدلس وو، حافظ ذهبي ليكلي دي چې (امام شهير من علماء التابعين ثقة في نفسه الا انه يدلس عمن لحقهم وعمن لم يلحقهم وكان له صحف يحدث منها ويدلس) (ميزان الاعتدال ج٢\ص ٤٢٦) سرفراز خان صفدر رحمه الله ليكي چې ابو قلابه ثقه وو لكن سخت مدلس وو. [احسن الكلام ص١١١]. مشهور غير مقلد ناصر الدين الباني يو حديث ته د ابو قلابه د عنعنې له وجې ضعيف ويلى دى. قال: اسناده ضعيف لعنعنة ابي قلابة وهو مشهور بالتدليس. [حاشية صحيح ابن خزيمة ج٣ ص٢٦٨، تحت رقم الحديث ٢٠٤٣] او د لا مذهبانو لوى محقق مباركپورى ليكلي دي چې عنعنه د مدلس نده مقبوله (ابكار المنن ص ٢٥٥) او دده په تقليد كې ټولو لامذهبانو ليكلي دي چې د مدلس عنعنه نده مقبوله (كمافي الحق الصريح ج١\ص٨٦)

**څلورم جواب** دابو قلابه دوه شاگردان دي

**اول :** شاگرد ايوب سختياني دى حافظ ابن حجر دده په باره كې فرمايي ثقة ثبت حجة من كبار الفقهاء والعباد.(تقريب ص٤١) د ايوب رحمه الله روايت په صحيح البخاري ج١\ص١١٣ رقم٨١٨-و٨١٩ كې دى چې درفع اليدين ذكر پكې نه شته.

**دوهم :** شاگرد يې خالد الحذاء دى چې د صحيح البخاري د ص١٠٢ د مذكور رفع اليدين په حديث كې راغلى دى، حافظ ابن حجر فرمايي چې: ثقةٌ يرسل من الخامسة وقد اشار حماد بن زيد الي ان حفظه تغير لما قدم من الشام (تقريب ص٩٠). [سير اعلام النبلاء ج٦/ ص٣٩٣]. او دده دا د رفع اليدين حديث د شام څخه د راتلو نه وروسته روايت كړى دى، يعني په هغه وخت كې چې دده حافظه صحيح نه وه او دده دا روايت د ايوب غوندې حافظ د روايت څخه مخالف دى، نو حجت نه شو او د رفع اليدين اضافه والى دده د حافظې د خرابوالي نتيجه وه، امام ابو حاتم ورته لايحتج به ويلي دي. [تهذيب التهذيب ج٣/ ص١٢١] امام شعبة ورته ضعيف ويلي دي. [تهذيب ج٣ ص١٢٢]. ابن علية ورته ضعيف ويلي دي. [تهذيب التهذيب ج٣/ ص١٢٢]. يحيى بن معين، داؤد بن ابي هند ته په ده باندې ترجيح وركړې ده. [تهذيب الكمال تحت ترجمته

**پنځم جواب :** د خالد الحذء څلور شاگردان دي

(١) هشيم بن بشير دی، دده روایت دصحیح البخاري په (ج١\ص ١١٣ رقم ٨٢٣) کې شته په هغې کې درفع اليدين بالكل ذکرنه شته.

(٢) ابن علیه دی هغه دخالد الحذاء څخه روایت کوي چې ابو قلابه رفع اليدين کړي دي، دمالک بن الحويرث ﷛ او درسول الله ﷺ درفع اليدين پکې بلکل ذکر نه شته. (مصنف ابن ابي شيبه ج١\ص٢٦٦).

(٣) دريم شاګردیې صهيب ﷛ دی دده په روایت کې دابو قلابه درفع اليدين ذکرهم نشته.

بلکې خالد فرمايي چې مادابو قلابه څخه پوښتنه وکړه چې ماهذا؟ ای رفع اليدين في الصلوة، يعنې په مانځه کې درفع اليدين مسئله څرنګه ده؟ (حلية الاولياء ج٢\ص٢٨١ لابي نعيم) دديّ څخه معلوميږي چې په هغه زمانه کې درفع اليدين بالكل رواج نه وولدې وجهې په ماهذا؟ باندې ترینه پوښتنه وشوه.

(۴) څلورم شاګرد خالد بن عبد الله الطحان دی: ده دحضرت مالک بن حويرث رضي الله عنه او درسول الله ﷺ درفع اليدين ذکر کړی دی. دا راوي اګرچې ثقه دی مګر دديّ همدرسو مخالفت کوي.

**خلاصه:** رفع اليدين په اصل کې دابو قلابه فعل وو، دخالد الحذاء دوهم له وجهې او دابو قلابه دتدلیس له وجهې څخه ترینه مرفوع حديث جوړشوی دی، که داحنافو په کوم حديث کې دومره عيوب وي، نوغير مقلدينو به تر اسمان پورې نغارې کړنګولې چې دا حديث حجت ندی، ځکه چې پدې کې دومره عيوب دي.

**شپږم جواب:** دحضرت مالک بن حويرث ﷛ دحديث او دحضرت عبد الله بن عمر ﷛ دحديث په مابین کې په دوو خبرو کې تعارض دی:

**اول تعارض :** دعبد الله بن عمر ﷛ په حديث کې داوګوپورې دلاسونو دپورته کولو ذکر دی (رفع يديه حتي تكونا حذو منكبيه) او دمالک بن حويرث رضي الله عنه په حديث کې دغوږونو پوزې دلاسونو د پورته کولو ذکر دی (رفع يديه حتي يحاذي بهما اذنيه)

نولامذهبانو! پدې دواړو متعارضو خبرو عمل ممکن ندی، ځکه چې په کوم مانځه کې يې چې دغوږونو پورې لاسونه پورته کړی شي نو په همدې مانځه کې دعبد الله بن عمر ﷛ په حديث باندې عمل

رانغلو اوپه کوم مانځه کې چې داوګوپورې لاسونه پورته کړی شي نو په همدې مانځه کې دمالک بن حویرث ﷺ په حدیث باندې عمل رانغلو او که په یو مانځه کې یې دغوږونوپورې پورته کوئ اوپه بل مانځه کې یې داوګو پورې پورته کوئ مثلاً دظهرپه مانځه کې یې دغوږونو پورې پورته کوئ اودعصرپه مانځه کې یې داوګوپورې پورته کوئ نوبیاپه دواړو حدیثونو عمل رانغلو ځکه چې دظهرپه مانځه کې دعبدالله بن عمر ﷺ په حدیث باندې عمل رانغلو اودعصرپه لمانځه کې دمالک بن حویرث ﷺ په حدیث باندې عمل رانغلو، نوپه تاسو دا صادقه شوه چې دعبدالله بن عمر ﷺ په حدیث موهم عمل ندی کړی اودمالک بن حویرث ﷺ په حدیث موهم عمل ندی کړي اوکه یو حدیث ته راجح وایې اوبل حدیث ته مرجوح وایې اوپه راجح عمل کوي نوبیاسوال دادی چې یو حدیث ته راجح اوبل حدیث ته مرجوح قران ویلي دي ؟ اوکه رسول اللهﷺ ویلی دي ؟ اوکه کوم غیرمعصوم امتي ویلی دي؟

که قرآن ویلي وي ایت پیش کړئ چې صراحة پکې راغلی وي چې دعبدالله بن عمر ﷺ حدیث راجح دی اودمالک بن حویرث ﷺ حدیث مرجوح دی یابالعکس دي اوکه رسول اللهﷺ ویلي وي، نوپه کوم حدیث کې صراحة درسول اللهﷺ فرمان وښایې چې دعبدالله بن عمر ﷺ حدیث راجح دی اود مالک بن حویرث حدیث مرجوح دی یابالعکس دي اوکه تاسو وایې چې مونږهغه حدیث ته راجح وایو چې صحیح وي اوهغه حدیث ته مرجوح وایو چې ضعیفه وي، نوبیاسوال دادی چې یو حدیث ته صحیح اوبل حدیث ته ضعیف ویل دالله فرمان دی ؟اوکه درسول اللهﷺ فرمان دی ؟اوکه دکوم غیرمعصوم امتي فیصله ده؟

که دالله ﷻ فرمان وي نوایت پیش کړی چې الله تعالی صراحة یو حدیث ته صحیح اوبل ته ضعیف ویلي وي اوکه درسول اللهﷺ فرمان وي نودرسول اللهﷺ قول پیش کړئ چې صراحةً یې یو حدیث ته صحیح اوبل ته ضعیف ویلی وي اوکه تاسو وایې چې مونږهغه حدیث ته صحیح وایو چې دصحیح دتعریف سره برابروي، اوهغه حدیث ته ضعیف وایو چې دضعیف دتعریف سره برابروي نوبیاسوال دادی چې دصحیح اودضعیف تعریف اللهﷻ جوړ کړی دی ؟ اوکه رسول اللهﷺ جوړکړی دی؟ اوکه کوم غیرمعصوم امتي جوړکړی دی؟

که اللهﷻ جوړکړی وي، نوبیا د قران څخه صراحة دصحیح اودضعیف جامع اومانع تعریف پیش کړئ اوکه رسول اللهﷺ جوړکړی وي، نوبیا دکوم حدیث څخه صراحة دصحیح اودضعیف جامع اومانع تعریف

**نارینه:** نارینه به لاسونه تر غوږونو پورې اوچتوي ، (۱) عن مالک بن الحویرث أنه رأى النبي صلى الله علیه وسلم ...وقال... حتى یحاذي بهما فروع أذنیه (صحیح مسلم، ج ۱صـ ۱۶۸، باب استحباب رفع الیدین فی تکبیرة الاحرام)

(۲)عن وائل بن حجر رضي الله عنه: أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِیَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ حِینَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ یَدَیْهِ حَتّٰى كَانَتَا بِحِیَالِ مَنْكِبَیْهِ وحاذى بإبهامیه أُذُنَیْهِ ثُمَّ كَبَّرَ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ. وَفِی رِوَایَةٍ لَهُ: یَرْفَعُ إِبْهَامَیْهِ إِلَى شَحْمَةِ أُذُنَیْهِ.

(مشکوة ،ج ۱ص ۸۶) باب صفة الصلوة).

وائل بن حجر رضي الله عنه فرمائي چې ما رسول الله ﷺ ولیدلو چې لاسونه یې داوګو په برابرۍ پورته کړل اوغټې ګوتې یې دغوږونو سره برابرې کړې او په یوروایت کې راځي چې غټې ګوتې به رسول الله ﷺ د غوږونو دنرمیو سره برابرولې، نو حاصل دا چې دلاسونو برابرول داوګو سره معنی یې داده چې ورغوي داوګو سره برابروه او غټې ګوتې دغوږونو دنرمیو سره برابروه .

(۳)عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه ,قَالَ: رَأَیْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ «كَبَّرَ حَتّٰى حَاذَى بِإِبْهَامَیْهِ أُذُنَیْهِ. (الحــدیث) حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چې ما رسول الله ﷺ ولیدلو چې الله اکبر یې وویلو تردې چې دلاسونو غټې ګوتې یې دغوږونو سره برابرې کړې . (الدارقطني ، ص ۳۴۵ ) بهیقی ج ۲ص ۹۹).

(٤)وَعَنْ مَالِكِ بنِ الْحُوَیْرِثِ رضي الله عنه قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ یَدَیْهِ حَتّٰى یُحَاذِیَ بِهِمَا أُذُنَیْهِ.

(متفق علیه مشکوة/ ج۱ص۷۵ باب صفة الصلوة)

**زنانه:** زنانه به لاسونه تر اوګو او یا سینو پورې او چتوي :دحضرت وایل رضي الله عنه څخه روایت دی چې: عَنْ وَایِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «قَالَ لِی رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ: یَا وَایِلَ بْنَ حُجْرٍ! إِذَا صَلَّیْتَ فَاجْعَلْ یَدَیْكَ حِذَاءَ أُذُنَیْكَ وَالْمَرْأَةُ تَجْعَلُ یَدَیْهَا حِذَاءَ ثَدْیَیْهَا».

یعنې ماته نبي ﷺ وفرمایل چې یا وایله چې کله دې لمونځ کولو نو لاسونه تر غوږونو پورې پورته کړه او ښځه به لاسونه ترسینو پورې پورته کوي. کنزالعمال حدیث نمبر ۱۹۶۴۰). المعجم الکبیر، رقم ۱۷۴۹۷)

«أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ، وَإِذَا رَكَعَ فَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ فَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ كُلِّهِ» يَعْنِي: رَفْعَ يَدَيْهِ.(نسائي باب رفع اليدين عند الرفع من السجدة الاولى. رقم الحديث۱۱۴۳].

په بل سند باندې داسې الفاظ دي چې: عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ ﷺ أَنَّهُ «رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ فِي صَلَاتِهِ، وَإِذَا رَكَعَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، وَإِذَا سَجَدَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ.(نسائي باب رفع اليدين للسجود رقم الحديث ۱۰۸۵] همدارنګه په بل سند باندې داسې الفاظ دي: عن مالک بن الحويرث ﷺ انه راى نبي الله رفع يديه فذكر مثله. نسائي باب رفع اليدين للسجوډ رقم ۱۰۸۶]. په بل سند کې داسې الفاظ دي عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ ﷺ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ، فَذَكَرَ مِثْلَهُ. وزاد فيه واذا ركع فعل مثل ذكر واذا رفع راسه من الركوع فعل مثل ذلک واذا رفع راسه من السجود فعل مثل ذلک. [نسائي باب رفع اليدين في السجود رقم ۱۰۸۷].

او په (مسند احمد ج۳\ص ۴۳۶ وص ۴۳۷ کې د يو حديث الفاظ داسې دي چې: عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ ﷺ، أَنَّهُ «رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ» [مسند احمد رقم الحديث: ۱۵۱۷۷]. د بل حديث الفاظ داسې دي چې: عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ ﷺ، أَنَّهُ «رَأَى نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي صَلَاتِهِ، إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنْ رُكُوعِهِ وَإِذَا سَجَدَ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنْ سُجُودِهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ.[رقم الحديث ۱۵۱۷۳]. د بل حديث الفاظ داسې دي چې: عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ ﷺ، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِيَالَ فُرُوعِ أُذُنَيْهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ».. [مسند احمد رقم ۲۰۰۱۴ او په ابوعوانة ج۱\ص۹۵) کې الفاظ داسې دي چې: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِيَالَ أُذُنَيْهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ»(مسند ابو عوانة) او همدارنګه په فتح الباري کې هم دی نو پدې ټولو کې دسجدو د رفع اليدين ذکر هم شته او لامذهبان يې نه کوي. حال دا چې خپله لامذهبان هم وايي چې مالک بن حويرث ﷺ په نهمه هجري کې مسلمان شوی دی (اسوه سرور کونين ص۸) الحق الصريح ج۱۴\ص۸۸)

او پدې حديثونو کې دسجدو د رفع اليدين سره د (کان يرفع) لفظ هم شته او لامذهبان وايي چې

دالفـظ پـه دوام او هميشـوالي بانـدې دلالـت كـوي كمـافي (الحـق الصـريح ج۱\ص ۷۲) معنـى يـې دلامذهبانو دقانون مطابق داشوه چې رسول الله ﷺ هيڅ داسې مونځ ندى كړى چې دسجدورفع اليدين يې پكې نه وي كړي.

نولامذهبان كه دحضرت مالك بن حويرث رضي الله عنه په پوره حديث عمل كوي نوپه ښكاره دى خپل جماعت پرېږدي اوپه كومې امام باړه كې دې منجاوران شي چې هلته په هرمانځه كې دسجدوپه وخت كې هم رفع اليدين كيږي خلاصه دا چې لامذهبان نه دمالك بن حويرث رضي الله عنه دبخاري په حديث باندې عمل كوي ځكه چې دبخاري په حديث كې ركوع ته دتللو او دريم ركعت ته دپورته كيدلو رفع اليدين نشته او نه يې دنسائي وغيره په احاديثو باندې عمل كوي ځكه چې په هغوي كې دسجدو رفع اليدين هم راغلى دى او لامذهبان يې نه كوي.

**اتم جواب:** د حضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه حديث سخت مضطرب دى ځكه چې په بخاري رقم ۷۳۷ ومسلم رقم ۸۶۴ كې پكې صرف په دوه ځايونو كې د رفع اليدين ذكر دى او په نسائي رقم ۱۰۸۷ كې پكې ځلورو ځايونو كې د رفع اليدين ذكر دى يو د تكبير تحريمه، دوهم ركوع ته دتللو دريم د ركوع څخه د راجګيدلو او ځلورم دسجد څخه د راجګيدلو او په نسائي رقم ۱۰۸۵او ۱۰۸۶ كې پكې په پنځو ځايونو كې د رفع اليدين ذكر دى ځلور مخكني او پنځم پكې سجدو ته د تللو رفع اليدين دى. لدې وجې د غيرمقلدينو سركروه نواب صديق حسن خان پدې اقرار كوي چېددې اضطراب له وجې دا حديث ضعيف دى. [دليل الطالب ص۲۹۰ وص۲۹۶ بحواله فتاوى علماء حديث ج۳/ ص۲۲۸ وص۲۲۹].

**نهم جواب:** حضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره شل شپې پاتې شو. [بخاري ج۱ ص۸۸]. كله چې رخصتيدلو نو د رسول الله ﷺ څخه يې دنصحيت مطالبه وكړه رسول الله ﷺ چې كوم نصيحت ورته وكړو په هغې كې يې دا هم ورته وفرمايل چې: صلوا كما رايتموني اصلي. [بخاري ج۱/ ص۸۸]. داسې مونځ وكړئ لكه څرنګه يې چې زه كووم، كله چې حضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه د خپلو ملګرو سره واپس شو نو د رسول الله ﷺ د هدايت مطابق يې خلكو ته اعلان وكړو چې آيا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ مونځ ونه كړم؟ خلكو ورته وويل چې وې كړه، حضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه چې په كومه طريقه مونځ وكړو په هغې د تكبير تحريمه څخه ماسوى د بل هيڅ رفع اليدين ذكر نشته هغه مونځ په

بخاري ج١/ ص١١٣ کې پداسې الفاظو روايت شوی دی چې: عَنْ أَبِي قِلاَبَةَ، أَنَّ مَالِكَ بْنَ الحُوَيْرِثِ، قَالَ لِأَصْحَابِهِ: أَلاَ أُنَبِّئُكُمْ صَلاَةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: وَذَاكَ فِي غَيْرِ حِينِ صَلاَةٍ، فَقَامَ، ثُمَّ رَكَعَ فَكَبَّرَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، فَقَامَ هُنَيَّةً، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ هُنَيَّةً. [الحديث رقم ٨١٨ و٨١٩].

## محلي ابن حزم او فتاوی علماء حديث

ابن حزم ظاهري د سجدو د رفع اليدين احاديثو ته صحيح ويلي دي. [المحلي ج٣/ ص٩] همدارنګه د لامذهبو د جماعت له طرفه يوه مجموعه دفتاوی علماء حديث په نوم په څوارلسو جلدونو کې شايع شويده او د صفتونو څخه يې دغيرمقلدينو رسالې ډکې دي.

په هغې کې يې د حضرت مالک بن حويرث درفع اليدين عند السجود دحديث لاندې ليکلي دي چې (داحديث صحيح دی متروک العمل ندی ... دارفع اليدين عند السجود منسوخ ندي بلکې دادنبي ﷺ داخري عمر عمل دی ځکه چې دد راوي مالک بن حويرث مدينې منورې ته د رسول الله ﷺ د عمر په اخرو وختونو کې راغلی دی او دد څخه وروسته هيڅ داسې صريح حديث ندي راغلی دکوم څخه چې نسخ ثابتيږي.

په احتمالاتو باندې نسخ نه ثابتيږي، پدې رفع اليدين باندې عمل کونکي د صحابه کرامو څخه حضرت ابن عمرو، ابن عباس رضي الله عنهما او د تابعينو څخه طاوس او نافع او عطامو نږته معلوم دي. پدې رفع اليدين باندې عمل کونکی محی السنة مميت البدعة دی او دسلو شهيدانو داجر مستحق دی. (فتاوی علماء حديث ج۴\ص۳۰۵ ص۳۰٦)

لامذهبه! همت وکړه چې دسلو شهيدانو اجر د رڅخه شيعه ګانو ويوړو او ته محروم پاتې شوې.

**لامذهبه!** ستاسو په فتاوی علماء حديث کې يې د مالک بن حويرث حديث ته ناسخ او دعبدالله بن عمر ﷺ حديث ته منسوخ ويلي دي، تاسو منسوخ حديث په ډير فخر پيش کوئ او ناسخ حديث نامکمل رانقلوئ.

**لامذهبه!** تا په الحق الصريح ج١\ص ١١۴) کې ليکلي دي چې کله کله په سجدو کې رفع اليدين کول سنت دي البته د رسول الله ﷺ عادت مستمره عدم رفع اليدين عند السجود وو.

**الف:** لامذهبه خناسه: په اکثراوقاتوکې دې دسلوشهيدانو داجر څخه ځان محروم کړوځکه چې تاليکلي چې کله کله...الخ.

**باء:** ستاسوفتاوی خودسجدورفع اليدين ته ناسخ وايې دهغې سره به څه وکړي؟

**ج :** دسجدورفع اليدين په لاندې احاديثوکې راغلي دي.

(۱) دحضرت مالک بن حويرث ﷛ په حديث کی نسايي ج۱\ ص ٥٦ مسند احمد ج۳ ص ٤٣٦وص ٤٣٧ ابوعوانه ج ۲\ص ٩٥).

(۲) دحضرت وايل بن حجر﷛په حديث کې ابوداودج۱\ص ۷۳ وص ۱۱۲ طيالسي، طحاوي، دارقطني، موطا امام محمد.

(۳) دحضرت انس﷛په حديث کې ابن ابي شيبة ج۱ ص ٢٦٦ ، دارقطني ج۱ ص۱۰۸ دسند راويان صحيح دي.

(۴) دحضرت ابوهريرة﷛په حديث کې (ابن ماجه ص ٦۲) مسند احمد ج۲\ص ۱۳۲).

(۵) دحضرت عميربن حبيب﷛په حديث کې (ابن ماجه ص ٦۲).

(٦) دحضرت جابربن عبدالله﷛په حديث کې.(مسنداحمدج۳ ص۳۱۰) تاريخ کبير امام البخاري ج٤\ص ۱۰۵).

(۷) دحضرت عبدالله بن عباس﷛په حديث کې ابن ماجه ص ٦۲ ابوداودج۱\ص ۱۱۱نسائي ج۱\ص ٥٦).

(۸) دحضرت عبدالله بن عمر﷛په حديث کې مجمع الزوايدج۲\ ص ۱۰۲).

همدارنګه دابوحميد الساعدي﷛اوابن زبير﷛په احاديثوکې هم دسجدو دورفع اليدين ذکردي. (ابوداودج ۱\ص ۱۱۱وص ۱۱۲).

ددې يوولسواحاديثوپه مقابل کې يودعبدالله بن عمر﷛متعارض حديث اويودابوموسی اشعري﷛ ضعيف حديث دی، اکثره لامذهبان ددې يوولسواحاديثوپه مقابل کې صرف پدې دوو احاديثو عمل کوي اوديوولسواحاديثو څخه کلاً مخالفت کوي اوبياهم ځان ته محمدي او اهل حديث وايي اوته ددې يوولسو احاديثو اکثرًا مخالفت کوی، خالانکه ددې يوولسو احاديثو راويان متاخرالاسلام دی اوصيغې

دماضي استمراري دي پکې، د هغې دوو حديثونو پدوی باندې هيڅ وجه دترجيح نه شته، ځکه چې په صحت اوضعف کې برابردي بلکې ذايوولس راجح دي ځکه چې ډيردي اومثبت دي اودې لامذهبه داهم ليکلی دي چې مثبت مقدم وي په نافي باندې. (الحق الصريح ج٤\ص١٠٥) اوفتاوی علماء حديث همدې احاديثوته ناسخ هم ويلي دي ځکه چې راويان يې متاخرالاسلام دي ج٤\ص ٣٠٥وص ٣٠٦)

نوپه کومه خوشحالی کې وايې چې اکثره ددې يوولسو احاديثو مخالفت پکاردی، دکله کله عمل کولو همدامعنی ده چې اکثراًيې مخالفت پکاردی.

**دلامذهبو ښخه يوسوال:**

بعضې غيرمقلدين دسجدې رفع اليدين ته هم سنت وايې، لکه ابوحفص عثماني اوامين الله پشاوري وغيره ،اوعام غيرمقلدين ددې رفع اليدين دسنتوالي ښخه منکردي، اوس سوال دادی چې دسنتوښخه منکرهم لعنتي دی .اوغيرسنتوته سنت ويوونکې هم لعنتي دی، لذې وجهې تاسو ووايې چې دغيرمقلدينو ددې دواړوډلوښخه کومه يوه ډله دقرآن اودحديث مخالفه او لعنتي ده؟

## اتم دليل

**حديث دحضرت انس﷜**

(الحق الصريح ج٤\ص٧۴پنځم نمبردليل)

**اول جـواب :** داحديث موقوف دی يعنې دادسره درسول الله ﷺحديث ندی ځکه چې دحضرت انس﷜ درې شاګردان دي.

**الف:** اول شاګرديې عاصم بن الاحول دی چې ثقه راوي دی (جزء بخاري ص٦٢وص ١٣٨) .

**بــاء:** دوهـم شـاګرديې يحيـی بـن اسـحق دی چـې ثقـه راوي دی (جزءبخـــاري ص ١٨٠) دې دواړوداحديث موقوف روايت کړی دی يعنې ددې دواړوپه نيزدابالکل درسول الله ﷺحديث نه دی .

**ج:** دريم شاګرديې حميدالطويل دی .(جزءبخاري ص ٤٠ابن ماجه ص٦٢)دارقطني ج١ ص٢٩٠] صرف ده دې حديث ته مرفوع ويلی دی ليکن داراوي مدلس دی او په عن سره يې روايت کړی دی

اوستاسو مسلک دادی چې عنعنه دمدلس نه قبلیږي ابکار المنن ص ۲۲۵).

ستاسو مشهور لامذهبه غیر مقلد عالم مولوي عطاءالله حنیف لیکلي دي چې داحدیث بالکل دلیل نه شي جوړیدلی ځکه حمید الطویل د دریمي طبقي مدلس دی او د دریمي طبقي د مدلسینو څخه دلیل اخستل ندی جائز (التعلیقات السلفیه علي النسائي ج۱\ص ۱۲۹). او همدا خبره حافظ ابن حجرؒ هم کړی ده (طبقات المدلسین ص۱۲).

لامذهبان په دارقطني هم حواله ورکوي حالانکې هلته یې صفا لیکلی دی چې: قال الدارقطني لم یروه عن حمید مرفوعًا غیر عبدالوهاب والصواب من فعل انس. (دارقطني ج۱\ص ۲۹۰) یعنې صواب داده چې دا د رسول اللهﷺ فعل ندی بلکې د حضرت انس رضي الله عنه فعل دی.

امام طحاوي فرمایې چې: داحدیث د دې (محدثینو) په نیز خطا دی، ځکه چې د عبدالوهاب څخه علاوه هیچا دیته مرفوع ندی ویلی، او حفاظو د حدیثو دا موقوف کړی دی (طحاوي شرح معاني الاثار ج۱\ص ۱۵٦)

**دوهم جواب:** د حمید الطویل شپږ شاګردان دي:

(۱) عبدالاعلي جزء بخاري ص۱٤۸) (۲) یحي بن سعید جزء بخاري ص۱۷۷) (۳) معاذ بن معاذ ابن ابي شیبه ج۱\ص۱۳۳. (٤) خالد بن عبدالله الواسطي (٥) عبدالله بن معاذ (٦) یزید بن هارون. (تاریخ بغداد ج۲\ص ۳۸٦).

دې شپږو واړو داحدیث موقوف روایت کړی دی، یعنې د دې شپږو په نیز دا د رسول اللهﷺ حدیث ندی، صرف اووم شاګرد عبدالوهاب د دې شپږو په خلاف مرفوع روایت کړی دی او د عبدالوهاب حافظه په اخر عمر کې خرابه شوې وه (تقریب التهذیب ص۲۲۲)

خلاصه دا چې دا حدیث د سره مرفوع ندی، دیو مدلس (حمید الطویل) څخه یو د خرابي حافظې خاوند (عبدالوهاب) مرفوعًا روایت کړی دی، چې د ټولو ثقاتو په خلاف یې تفرد ته هیڅ اعتبار نه شته.

**دریم جواب:** دا حدیث دسره دلا مذهبانو لپاره دلیل نشي جوړیدی ځکه چې پدې حدیث کې په څلورو رکعتونو کې دنهو رفع الیدینو ذکر دی، اول دتکبیر تحریمه رفع الیدین دی او اته نور څلور ورکوع ګانو ته د ښیدلو او دجیګیدلو دي اولامذهبان لسم رفع الیدین هم کوي چې هغه دریم رکعت ته دپورته کیدلو دی.

**څلورم جواب:** پدې حدیث کې یې دغې رفع الیدینو ته نه سنت مؤ کدویلي دي او نه یې ورته سنت غیر مؤکد ویلي دي او نه یې ورته مستحب ویلی دي او نه یې وربانـدې دثواب وعده ورکړې ده اولامذهبان ورته سنت او واجب اوکله مستحب وایي.

**پنځم جواب:** پدې حدیث کې ددوام اودهمیشوالي لفظ نه شته، لامذهبه حکیم دخپل کتاب په (ص٨) کې دخپل اجتهاد رباب ترنګولی دی او حواله یې په نورو ورکړې ده، لامذهبه داسې لیکلي دي چې حضرت انس ﷺ په کان یرفع باندې دا خبره واضحه کړه چې رسول اللهﷺ په لسو کلونو کې هیڅ داسې مونځ ندی کړی چې رفع الیدین یې پکې نه وي کړی. (تخريج زيلعي ج١ص٢١٤ مجمع الزوايد ص١٨٢) التعليق المغني ص١١٠)

حالانکې دلامذهبه حکیم دا عبارت په دې کتابونو کې په یو کې هم نشته، دا داسې دروغ دي چې مثال یې دپادرې فاندر او سوامي دیانند په کتابونو کې هم نه پیدا کیږي.

**شپږم جواب:** دحضرت انس ﷺ په حدیث کې دسجدو په وخت کې هم درفع الیدین ذکر دی. (ابن ابي شيبه ج١ص٢٣٥ دارقطني ج١ص ٢٩٠ مسندابي يعلي ج٢ ص ٨٨ ابن حزم ج٢ص ٢٩٦) چونکه دحدیث شریف دا برخه دلامذهبو دمسلک څخه خلاف ده لدې وجهې یې پټوي لامذهبان پدې پوهیږي چې ددغې کتمانونو او فریبونو څخه بغیر ددوي مسلک نه شي ثابتیدلی.

**اووم جواب:** که بالفرض دا حدیث صحیح هم شي نو ددې څخه صرف یو ځلې درکوع او دسجدې رفع الیدین ثابتیږي او پاتې شوه دا خبره چې دا رفع الیدین باقي وو او که نه؟

ددې څخه دا حدیث خاموش دی: عَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَبَّرَ حَتَّى حَاذَى بِإِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ . ثُمَّ رَكَعَ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ مَفْصِلٍ مِنْهُ فِي مَوْضِعِهِ . ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ مَفْصِلٍ مِنْهُ فِي مَوْضِعِهِ . ثُمَّ انْحَطَّ بِالتَّكْبِيرِ فَسَبَقَتْ رُكْبَتَاهُ يَدَيْهِ».[الدارقطني ج١ص ٣٤٥ بهيقي ج٢ص

٩٩].

يعنې چې کله به يې رکوع ته دتللو تکبير وويلو نو د رکوع د تکبير د ختميدلو څخه مخکې به يې ... رکونو کيښودل، ظاهره ده چې رفع اليدين به يې نه کولو، صرف الله اکبر به يې ويلو، نو ...کبير تحريمه څخه بغير نور رفع اليدينو نه باقي نه وو.

## نهم دليل

**حديث د ابوهريرة** ﷺ [ابن خزيمه/ رقم الحديث ٦٩٤/ ٦٩٥ /الحق الصريح ج٤|ص٧٢ دريم نمبردليل]

**اول جواب:** د ابوهريرة ﷺ څخه درې روايته راغلي دي :

**اول :** حضرت ابوهريرة فرمايي چې: ما رسول الله صل وليدلو چې د مانځه د شروع او د رکوع کولو او د سجدو کولو په وخت کې رفع اليدين وکړل. [ابن ماجه ص٦٢] دد ې روايت په سند کې اسماعيل بن عياش دی کوم چې ضعيف دی او ده روايات د غير شامينو څخه بالاتفاق مردود دي. [نووي ج١/ ص١٨/ ترمذي ج١/ص١٩ و ١٤٠ / طحاوي ج١/ ص١١١/ محلی ج١/ ص٢٥٧] او دا روايت له شامينو څخه نه دی.

**دويم** د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه دويم حديث په ابوداؤد ج١/ ص١٠٨ د رفع اليدين په باب کې دی.

**دريم:** د ابوهريرة دريم روايت په ابن خزيمه کې دی د کوم ترجمه چې داسې ده: چې رسول الله ﷺ چې کله لمونځ شروع کړو نو تراوږو پورې به يې لاسونه اوچت کړل، او چې کله به يې رکوع وکړه نو همداسې به يې وکړل، او چې کله به يې سجده وکړله نو هم همداسې به يې وکړل او د سجدې څخه به چې راپورته شو نو بيا به يې رفع اليدين نه کول او چې کله به دده و رکعتونو څخه راپورته کيدلو نو بيا به يې همداسې وکړل. [ابن خزيمة رقم الحديث ٦٩٤/ و ٦٩٥] د ابوداود او د ابن خزيمه روايات هم بالکل ضعيفه دي.

١- ددوی په سند کې يو راوي يحيی بن ايوب عافقی ابو العباس مصري دی. دده څخه اګر که صحيحينو استدلال کړی دی لکن امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چې: دده حافظه خرابه وه او دده څخه خطايي کيدله. محدث امام اسمعيل رحمه الله فرمايي چې له ده څخه استدلال نه کېږي. امام ابن

سعد رحمه الله فرمايي چې: هغه مُنكِرالحديث دی. امام دارقطني فرمايي چې: دده په ځينو احاديثو کې اضطراب دی. امام عقيلی رحمه الله فرمايي چې: هغه ضعيف دی. [تهذيب التهذيب/ج ۱۱/ص ۱۸۶-۱۸۷].

حافظ ابن کثير رحمه الله فرمايي چې: په ده کې ضرور کومه خرابي شته ده. ځکه چې امام احمد رحمه الله دده په باره کې فرمايي چې: دا د خرابې حافظې خاوند دی. [ابن کثير/ج ۱/ص ۱۶۹].

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: ريښتينی دی، لکن په ډېرو وختونو کې ترينه خطايي کېدله. [تقريب/ص ۲۷۴]. که دد غه مختلف فيهِ راوي نور روايات د حَسن په درجه کې ومنلی شي، نو بيا هم دا روايت دده د خطايي نتيجه ده.

۲- ددې سَند بل راوي ابن جُريج دی او ابن جريج سخت مُدلّس دی. اودا روايت دده عنعنه ده. امام دارقطنی رحمه الله فرمايي چې: د ابن جريج د تدليس څخه ځان ساته. ځکه چې هغه ډېر بد مَدلس دی. هغه د مجروحو راويانو څخه تدليس کوي. [تهذيب التهذيب/ج ۶/ص ۴۰۵].

امام يحيی بن معين رحمه الله فرمايي چې: (ليس بشيئٍ فی الزهری) [تهذيب/ج ۶/ص ۴۰۴] ابن جريج د امام زهري څخه په روايت کولو کې هيڅ حيثيت نه لري. اودا روايت هم د ابن جريج څخه د امام زهري له طريقه دی. ابن جريج د متعې قايل و او له نوي (۹۰) ښځو سره متِعه کړې وه. [تذکرة الحُفاظ/ج ۱/ص ۱۴۹ وميزان الاعتدال/ج ۲/ص ۱۵۱].

۳- ددې سند بل راوي امام زهری رحمه الله دی. دده په باره کې د لامذهبو عبارتونه داسې دي چې: ابن شهاب زهري له منافقينو او کذابينو څخه و. مستقل ايجنټ و، اکثر گمراه کوونکی، خبيث دروغژن روايتونه دده طرفته منسوب دي. مشهور شيعه مؤلف عباسي قُمي ويلي دي چې: ابن شهاب اول سُني و، چې بيا وروسته شيعه شو. [تتمة المنتهی/ص ۱۲۸/صديقه کائنات/ص ۱۰۷-۱۰۸/ اختلاف اُمت کا الميه/ص ۱۲۷].

**دويم جواب:** د ابو هريرة په صحيح حديث کې صرف يو د تکبير تحريمة د رفع اليدين ذکر دی، د ابو هريرة هغه مرفوع او موقوف روايت چې په هغې کې يو ائحې د تکبير تحريمه سره د رفع اليدين ذکر دی

او نور پکې صرف د تکبیراتو ذکر دی، په لاندې ځایونو کې وګورئ:

[بخاري رقم ۸۰۳] مسند احمد رقم ۸۲۷۳/ مؤطا امام محمد رقم ۱۰۳/ مؤطا امام مالک رقم ۲۰۳/ بخاري رقم ۷۸۵/ و ۷۸۹/ و ۷۹۵/ ۸۰۳/ مسلم رقم ۸۶۷/ ابوداؤد رقم ۸۳۶/ ترمذي رقم ۳۵۴/ مسند احمد رقم ۷۲۱۹/ نسائي رقم ۱۱۵۵/ دارمي رقم ۱۲۴۸/ مصنف عبدالرزاق رقم ۲۴۹۲/ مؤطا امام محمد رقم ۱۰۴/ کتاب الآثار للامام محمد رقم ۷۵/ کتاب الآثار لأبي يوسف رقم ۱۰۸]

پدې حديث کې درفع اليدين ذکر ابن جريج وررزيات کړی دی ابن جريج هغه سړی دی چې په مکه مکرمه کې يې دنوی (۹۰) زنانه ورسره متعه کړې وه او هره شپه به يې دقوة باه لپاره په خپله دبره کې دزيتون تيل اچول (تذکرة الحفاظ ج۱ص ۱٤۹).

لامذهبه خناسه: تاپه (ص ۴۳۵\ج۴) ليکلي دي چې ابن جريج مدلس دی بلکې دارقطني ويلي دي چې دټولو څخه بدتدليس دابن جريج تدليس دی ځکه هغه په داسې وخت کې تدليس کوي چې حديث يې ديو مجروح راوي څخه اوريدلی وي لکه حافظ ابن حجر په تهذيب التهذيب او په طبقات المدلسين کې ذکر کړی دی والمدلس اذاعنعن لايحتج به باالاتفاق الحق الصريح ج۱۴\ص ۹۴ بحواله نصب الرايه ۲\ص۳٤).

**دريم جواب:** که لامذهبان خامخا ابو هريرة ﷺ پدې حديث باندې عمل کوي نو مهرباني دې وکړي خپل پټ رافضيت دې نور راښکاره کړي، چيرته کومې امام باړې ته دې لاړشي چې هلته دسجدو په وخت کې هم رفع اليدين کيږي، ځکه چې پدې حديث کې دسجدو په وخت کې هم درفع اليدين ذکر دی. او همدارنګه د دې حديث او د بخاري دعبدالله بن عمر د حديث په منځ کې تعارض دی، ځکه چې په دې حديث کې د سجدو د رفع اليدين اثبات دی، او د بخاري د عبدالله بن عمر په حديث کې د سجدو د رفع اليدين نفې ده، نو که دې حديث ته صحيح وايي نو دبخاري شريف دعبدالله بن عمر ﷺ حديث ته غلط دوايئ ځکه په هغې حديث کې ددې حديث په خلاف دبين السجدتين درفع اليدين څخه منع ده.

**څلورم جواب:** پدې حديث کې يې رفع اليدين ته نه سنت مؤکد ويلی دي او نه يې ورته سنت غيرمؤکد ويلي دی او نه يې ورته مستحب ويلي دي او لامذهبان ورته کله واجب وايي، کله ورته سنت

وايي اوكله ورته مستحب وايي، كله وايي چي دومره ثواب لري لكه متعه كول او كله وايي چي دومره ثواب لري لكه دډُبرزنا. (هدية المهدي ج١ص١١٨) دلامذهبو دمصنف اعظم كتاب

**پـنځم جـواب:** كه بالفرض دا حديث صحيح هم شي نو پدې حديث كې ديو ځلي رفع اليدين كولو ذكر دى او پاتې شوه دا خبره چې دا رفع اليدين باقي پاتې وو او كه نه وو پاتې؟ ددې ځخه دا حديث ساكت دى ليكن دحضرت ابوهريرة﷜ نور صحيح حديثونه شته چې دا رفع اليدين باقي نه وو پاتې په صحيح البخاري جلد اول صفحه ١١٠ باب يهوي بالتكبير كې نهايت صحيح حديث دى چې حضرت ابوهريرة﷜ به دهرو ټيټيدلو او دجيګيدلو په وخت كې الله اكبر ويلو، د رفع اليدين ذكر يې نه دى كړى، او قسم به يې كولو چې دا درسول الله ﷺ داخري زمانې مونځ وو حتى فارق الدينا (بخاري ج١ص١١٠)

او خپله ابوهريرة﷜ به چې درسول الله ﷺ دزمانې ځخه وروسته كوم مونځ كولو په هغې كې يې رفع اليدين ندي كړي، لكه ځرنګه چې امام مالک رحمه الله دامام جعفر القاري رحمه الله ځخه روايت كړى دى چې ابوهريرة﷜ همداسې مونځ كولو، چې كله به يې داول تكبير سره مونځ شروع كړونو رفع اليدين به يې وكړل او نور به يې دهرو ټيټيدلو او جيګيدلو سره الله اكبر ويلو. (نيل الفرقدين ص١٢٣)

او دحضرت عبدالرحمن بن عوف ځوى حضرت ابوسلمه فرمايي چې حضرت ابوهريرة﷜ به همداسې مونځ كولو دهرو ټيټيدلو او دجيګيدلو سره به يې الله اكبر ويلو تر ځو چې دمونځ ځخه فارغيدلو نو فرمايل به يې چې قسم په الله ﷻ چې زما مونځ درسول الله ﷺ سره ډير مشابه دى. (موطا امام محمد ص ٩٠) نو معلومه شوه چې داول تكبير ځخه وروسته نور رفع اليدينو نه باقي نه وو پاتې.

## لسم دليل

**حديث دابوحميدالساعدي ﷜ او د نورو لسو صحابه وو﷡:** عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ رَحِمَهُمَاللَّهُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حُمَيْدٍ السَّاعِدِيَّ﷜، فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ أَبُو قَتَادَةَ﷜، قَالَ أَبُو حُمَيْدٍ﷜: أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: فَلِمَ؟ فَوَاللهِ مَا كُنْتَ بِأَكْثَرِنَا لَهُ تَبَعًا وَلَا أَقْدَمِنَا لَهُ صُحْبَةً، قَالَ: بَلَى، قَالُوا: فَاعْرِضْ، قَالَ: " كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حَتَّى يَقِرَّ كُلُّ

عَظْمٍ فِي مَوْضِعِهِ مُعْتَدِلًا، ثُمَّ يَقْرَأُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ فَيَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ يَرْكَعُ وَيَضَعُ رَاحَتَيْهِ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ، ثُمَّ يَعْتَدِلُ فَلَا يَصُبُّ رَأْسَهُ وَلَا يُقْنِعُ، ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، فَيَقُولُ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ مُعْتَدِلًا، ثُمَّ يَقُولُ: اللّٰهُ أَكْبَرُ ثُمَّ يَهْوِي إِلَى الْأَرْضِ فَيُجَافِي يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ، ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرٰى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا، وَيَفْتَحُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ إِذَا سَجَدَ، وَيَسْجُدُ ثُمَّ يَقُولُ: اللّٰهُ أَكْبَرُ، وَيَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرٰى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا حَتّٰى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ إِلٰى مَوْضِعِهِ، ثُمَّ يَصْنَعُ فِي الْأُخْرٰى مِثْلَ ذٰلِكَ، ثُمَّ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ كَمَا كَبَّرَ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، ثُمَّ يَصْنَعُ ذٰلِكَ فِي بَقِيَّةِ صَلَاتِهِ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ السَّجْدَةُ الَّتِي فِيهَا التَّسْلِيمُ أَخَّرَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَقَعَدَ مُتَوَرِّكًا عَلٰى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ" قَالُوا: صَدَقْتَ هٰكَذَا كَانَ يُصَلِّي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ھ ابوداؤد رقم ۷۳۰(الحق الصريح ج۴ص ۷۳).

څلورم نمبر دليل دلامذهبانو په فکر دا د وی لپاره ډير قوی دليل دی او په ډير فخر سره يې بيانوي، لکن دا روايت صحيح نه دی.

**اول جواب :** دا حديث منقطع دی، په دې مجلس کې هغه لس صحابه څوک دي؟ ددې مبارکو صحابه کرامو نومونه څه دي؟ ددې مجلس د دنزدې څخه ليدونکي او بيانونکي څوک دي؟ په ابوداؤد کې ددې مجلس د حال بيانوونکی محمد بن عمرو بن عطاء دی او دې په دې لسو صحابه وو کې يواځې دا ابو قتادة رضي الله عنه نوم اخلي امام طحاوي رحمه الله فرمايي : **فَإِنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ رحمة الله تعالى عليهم لَمْ يَسْمَعْ ذٰلِكَ الْحَدِيثَ مِنْ أَبِي حُمَيْدٍ رحمة الله تعالى عليه، وَلَا مِمَّنْ ذُكِرَ مَعَهُ فِي ذٰلِكَ الْحَدِيثِ** (طحاوي ج۱ص۱۵۶رقم ۱۳۲۹)وفی بعض المطابع ص ۱۶۴].

يعنې محمد بن عمرو بن عطاء دا حديث نه د ابي حميد څخه اوريدلی دی او نه يې د هغو صحابه وو څخه اوريدلی دی د کوم ذکر چې په دې حديث کې شوی دی.

امام ابن ابي حاتم رحمه الله هم فرمايي چې : قال ابي فصار الحديث مرسلاً. (کتاب العلل ص ۱۶۳) يعنې دا حديث مرسل دی که په لامذهبانو کې څه همت وي نو د اسماع دی ثابته کړی.

**دوهم جواب:** امام طحاوي رحمه الله مزيد فرمايي چې دا حديث غير معروف او غير متصل دی، ځکه چې محمد بن عمرو بن عطاء فرمايي چې د حضرت ابو حميد رضي الله عنه په مجلس کې ابو قتاده رضي الله عنهم

موجودوو (فـيهم ابوقتـادة) حـالانكې حضرت ابوقتـادة ﷺ دمحمدبن عمروبن عطاء دپيدائش څخه مخکې وفات شوی دی، نو آيا دا کيدای شي چې ابوقتادة ﷺ يې دخپل وفات څخه څو کاله وروسته دقبرڅخه رايستلی وي او مجلس درفع اليدين ته يې حاضر کړی وي ؟

امام طحاوي فرمايې چې ابوقتادة ﷺ ډيرمخکې وفات شوی دی (طحـاوي ج١ص ١٧٩ رقـم ١٥٠٩) حضرت موسی بن عبد الله رحمه الله فرمايې چې حضرت علي ﷺ د حضرت ابوقتاده ﷺ جنازه وکړه او اوه تکبيرونه يې وکړه. (طحـاوي ج١ص ٣٣٣ رقـم ٢٧٧٦) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: راجحه داده چې حضرت علي رضي الله عنه د حضرت ابوقتـادة رضي الله عنه جنازه کړې ده . [تلخيص الحبيـر ج ۶/ ص١۶٠]. همدا خبره استاذ البخاري ابـن ابي شـيبه ج٤ص ١١٦. وغـيره ( بهـيقي ج٤ص٣٦) تـاريخ بغداد ج١ص ١٦١) طبقات ابن سعد ج٦ص٩) هم کړې ده او همدا خبره دامام شعبي رحمه الله څخه هم رانقل شوي ده. (الجوهر النقي ج٤ص ٣٦)

البتـه صرف واقـدي کـذاب دابوقتادة وفـات پـه سـ ۵۴ هـ کې ليکلی ذي او دا خبـره غلطـه ده خپلـه لامذهبه خناس هم ليکلي دي چې دواقـدی پـه باره کې دعلماءو فيصله داده چې دا کذاب دی. (الحـق الصريح ج٢ص۵١٧).

امام هشيم بن عـدی رحمـه الله فرمايې چې دابوقتـادة وفـات پـه سـ ٣٨ هـ کې شـوی دی (البدايـة والنهايه ج٨ص ٦٨) او دمحمد بن عمرو بن عطاء پيدائيش په سنـ ۴٠ هـ کې شـويدی، علامـه محمد شـاه انورشاه کشميری فرمايي چې حضرت علي رضي الله عنه په څلويښتمه هجری کې شهيد شوی دی او محمد بـن عمرو بن عطاء د اتيا کالو په عمر په ١٢٠هج کې وفات شوی دی، نو محمد بـن عمـرو بـن عطاء دابوقتـادة زمانه نه ده ليدلې . [نيل الفرقدين ص۴۴]. دپاتې نهو صحابه وو نو مونه چې محمد بن عمر بن عطاء ندي ذکر کړی الله ﷻ پوهيږي چې دهغوی سره به يې دملاقات څه حال وي. (مجموعة الرسائل ج٣ص ٢٢٧)

**دريم جواب : دا حديث سنداً او متناً مضطرب دی**

**اول:** په يوځای کې وايې محمد بن عمرو بن عطاء قـال : مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِوبْنِ عَطَاءٍ قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حُمَيْدٍ السَّاعِدِيَّ رضي الله عنه .(ابوداود ج١ص ١١٣ رقم ٧٣٠)

**دوهم** : په بل ځای کې وايي: مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ رحمة الله تعالى عليهم، قَالَ: حَدَّثَنِي رَجُلٌ أَنَّهُ وَجَدَ عَشَرَةً مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (طحاوي ج١ص ١٧٨ رقم ١٥٠٥)

ددې سند مدار په يو رجل مجهول باندې دی.

**دريم** : په بل ځای کې پکې د عباس ابن سهل واسطه راوړي [ابو داؤد رقم ٧٣٣]

**څلورم:** په بل ځای کې وايي محمدبن عمروبن عطاءأخبرني مالـک عـن عيـاش أو عبـاس بن سهل أنه كان في مجلس فيه ابوقتادة (بهيقي ج٢ص ١٠١) او اضطراب په روايت کې ضعف پيدا کوي، که د مجلس د حال بيان وونکې عباس بن سهل و منلی شي، نو بيا عباس بن سهل د محمد بن عمرو څخه ډير کشر دی ځکه چې محمدبن عمرو د دريمې طبقې دی.(تقريب ص ٣١٣) او عباس بن سهل د څلورمې طبقې دي ( تقريب ص ١٦٥) او دا هم يقين نشته چې عباس دی او که عياش دی، که دوهم وي نو هغه مجهول دی. [تجليات صفدر ج٢/ ص٢٩٦/ نوُر الصباح ص١٤٠/ همدا رنګه په بعضو روايتونو کې پکې د تورک اثبات دی ابو داؤد رقم ٧٣٠/ په بعضې روايتونو کې پکې د تورک نفې ده. [طحاوي رقم ١٥٠٦ وابو داؤد رقم ٧٣٣]همدا رنګه وګوره طحاوي رقم ١٣٢٩ ورقم ١٥٠٥ وبذل المجهود ج ٤ص ٢٦٧ تا ص ٢٩٧ خزاين السنن ج ٢ ص ١٠٤)

**لامذهبـه خنـاس** : تلبيس ابليس کوي دا وولسم دليل لاندې يې داسې ليکلي دي ١٧حديث ابو اسيد ١٨سهل بن سعد ١٩محمدبن مسلمة رضي الله عنه دا درې صحابه دا بو حميد الساعدي په حديث ٤کې ذکر شو چې حاضر وو دا حديث مخکې نمبر ٤کې ذکر شوی دی چې دا بو حميد په مجلس کې ابو اسيد او سهل بن سعد او محمد بن مسلمة ناست وو او هغه د رسول الله ﷺ نه رفع اليدين ذکر کول او دوی د هغه تصديق وکړو.

**الاخساء:** لامذهبه چې کله د دروغو د پټولو اراده کړي وي نو د مخکينو دروغو په باره کې ليکي چې دا وروسته را روان دي، تر څو د عوامو لوستونکو ذهن ته دا وروغورزوي چې کيدی شي وروسته به د تحقيق او د حوالو سره را روان وي، حالانکې وروسته ددې مسئلې څرک هم نه لګيږي او د وروستنيو دروغو په باره کې ليکي چې دا مخکې تير شوي دي، ددې لپاره چې عوام لوستونکي دا ګمان وکړي چې کيدی شي مخکې به د

تحقيـق اودحوالوسـره تيرشـوي وي حـالانكې مخكـې بالكـل نـوي ذكرشـوي، پـدې طريقـه خپـل دروغ پـه خلكوچلوي په دې مسئله كې هم همداسې چل كوي، په يواتيائيمه صفحه كې يې ليكلي دي چې دادرې صحابه دابوحميد الساعدي په حديث ۴ كې ذكرشوي دي چې حاضرووو.

حالانكې دابوحميد حديث يې په صفحه درې اويايمه كې ليكلي دي، هلته بالكل د دې خبرې څرك هم نه لګيږي او داځكه چې داخو بالكل توردروغ دي چې دادرې صحابه په هغه مجلس كې وو اوددې دروغواثبات ددوي ټول جماعت نه شي كولي. (ولوكان بعضهم لبعض ظهيراً )

نوځكه حواله په مخكنيوصفحوور كوي، چې عوام ګمان وكړي چې كيدى شي دابه مخكې دتحقيق اوپه معتبرو كتابونو د حوالوسره تيرشوي وي، لوستونكې دې دده د روغـو مشـاهده پخپله وكړي اودده دكتاب لږمخكې صفحې دې وګوري.

(۲) اوداځكه دروغ دي چې ابوأسيد ﷺ دصحيح قول موافق دمحمدبن عمرو دپيدايش څخه لس كاله مخكې په سنة ۳۰ هـ وفات شوى دى اوحضرت محمدبن مسلمة ﷺ د محمدبن عمر د پيدايش څخه يوكال يادوه كاله وروسته په سـ۴۱ يا ۴۲ هـ كې وفات شوى دى.

ځينو پكې عمـاربن ياسـر ﷺ هـم شـماركړى دى، حـالانكې عمـاربن ياسـر ﷺ پـه سنهـ ۳۷ هـ كې شهيدشويدى ځينو پكې ابو مسعود انصاري ﷺ بدري هم شماركړى دى، حالانكې ابومسعودبدرې انصاري ﷺ په سنهـ ۳۸ هـ كې وفات شوى دى اومحمدبن عمروبن عطاء ﷺ ددوي دوفـات څخه وروسته په سنهـ ۴۰ هـ كې پيداشوى دى اودى چې دمجلس حال بيانوي اقلاً دلسو كالو به وي نوددې مجلس دانعقاد تقريبى تاريخ سنة ۵۰ هـ شو.

ځينو پكې سلمان فارسي ﷺ هم شماركړى دى، حالانكې هغه دده دپيدائيش څخه شپږ كاله مخكې په سنهـ ۳۴ هـ كې وفات شوى دى ځينو پكې امام حسن بن علي رضي الله عنهما هم شماركړيدى حالانكې هغه په ۴۹ هـ كې وفات شويدى ځينو پكې زيدبن ثابت هم شماركړى دى حالانكې هغه په ۴۵ هـ كې وفات شويدى

لامذهبه خناسه: درفع اليدين مسئله دې دومره مهمه كړه چې مستقل كـانفرانس د رفع اليدين دى ورته منعقد كړواو د رفع اليدين دتصديق لپاره دې په ژوندیو اكتفاء ونه كړه بلكې دكلونو كلونو زاړه

وفات شوي بزګان دې ورته دقبرونو څخه راوويستل او دِرفع اليدين تصديق دي وربانديږ وکړو.

لامذهبه خناسه! دحق دپټولو په ځای ددې لسوصحابه وونومونه په کوم صحيح سند بانديږ پيش کړه او ددوي دوفات دتاريخونو او دمجلس د انعقاد تاريخ وليکه نو ان شاء الله تعالي چې نوربه دې هم ډير کرامتونه ظاهرشي.

**څلورم جواب:** د حضرت ابو حميد په اصل حديث کې صرف د تکبير تحريمه رفع اليدين دی. حافظ ابن حجرؒ ددې حديث دبيانولو څخه وروسته ليکي چې: وأصله في البخاري. [الدراية ج١/ ص١٥٣] دحضرت ابو حميد الساعدي ﷺحديث په بخاري (ج١\ص ١١٤ رقم ٨٢٨) باب سنة الجلوس في التشهد کې موجود دی چې صاحب دمشکوة په ج١\ص٧٥ باب صفة الصلوة کې رانقل کړی دی]. ددې په سند کې عبدالحميد بن جعفر نشته.

په هغې کې صرف داول تکبيرسره درفع اليدين ذکر دی او نورنه پکې دلسوصحابه وو ﷺ دموجودګی ذکرشته اونه پکې درکوع په وخت کې درفع اليدين ذکرشته. پدې حديث کې دلسوصحابه وواودرکوع درفع اليدين ذکر عبدالحميد بن جعفرورشامل کړی دی او دعبدالحميد بن جعفرپه باره کې امام ابو حاتم فرمايي چې لايحتج به [ميزان الاعتدال ج٢/ ص٥٣٩]. يعني په ده بانديې استدلال نه کيږي، حافظ ابن حجر فرمايي وکان يحيى بن سعيد يضعفه. [تهذيب التهذيب ج ٦/ ص١١٢/ امام يحيى بن معين به فرمايل چې: دا دتقدير څخه منکر وو، امام ابن حبان فرمايي چې: ربما أخطأ. [تهذيب التهذيب ج ٦ ص١١٢/ امام نسائي فرمايي چې ليس بالقوى. [ضعفاء الصغير للنسائي ص٢٨]

امام طحاوي فرمايې چې هغه ضعيف دی. (طحاوي ج١[ص ١٥٦وص ١٧٩) علامه زيلعي فرمايي چې والظاهر أنه غلط في هذا الحديث. [نصب الراية ج١/ ص٣٣٤/ حافظ ابن قيم هم دده ضعف ذکر کړی او فرمايلي يې دي چې: وضعف يحيى بن سعيد والثوري عبدالحميد بن جعفر. [زاد المعاد ج٤/ ص١٣٦]. حافظ ابن حجر فرمايي چې: محدث ابن منذر فرمايلي دي چې علماء د جرحې فرمايي چې ددې حديث سند ضعيف دی، پدې کې عبدالحميد بن جعفر دی. [تلخيص الحبير ج١/ ص٢٢٣]. حافظ ابن حجر فرمايي چې: صدوق رمي بالقدر و ربما وهم. [تقريب ص١٩٦]. لامذهبانو ته پکار دی چې ددې ضعيف حديث په ځای بانديې د بخاري ج١\ص ١١٤ والاصحيح حديث بانديې عمل وکړي وصرف دتکبير تحريمه په وخت کې رفع اليدين شروع کړي، ليکن الله ﷻ دلامذهبانو په برخه کې په

صحيح حديث باندې عمل ندی ليکلی.

**پنځم جواب:** لامذهبانو! که په تاسو کې دذرې په اندازه علم وي او دعربيت لږ بوی هم درباندې لګيدلی وي نو داحديث به موپه دليل کې نه پيش کولو، ځکه چې دا ستاسو لپاره نه بلکې داحنافو لپاره دليل دی، اول يومثال واورئ چې دلسوکسانوپه مجلس کې يوسړی دعوه وکړي چې دفلانکي مرض لپاره ماته ستاسو څخه ډيرې نسخې معلومې دي.

نوټول مجلس دافکرکوي، چې ده ته داسې نسخه معلومه ده چې مونږ ته نده معلومه.نو اوس که داسړی داسې نسخه بيان کړي، چې ټول مجلس ته نااشنا اونابلده وي اوپدوي کې هيچاته نوي معلومه نوټول مجلس ددې سړي تصديق کوي چې ستادعوی صحيح ده، واقعي چې دانسخه مونږته نه وه معلومه اوکه داسړی داسې نسخه بيان کړي چې دمجلس خلکوته دمخکې څخه معلومه وي نودمجلس ټول خلک ددې سړي تکذيب کوي چې ستاخبره بالکل غلطه ده، دانسخه مونږته هم معلومه ده.

دلته هم داسې ده چې دلسوصحابهووپه مجلس کې حضرت ابوحميد الساعدي ﷺيوه دعوه کوي چې (اَنَا اَعْلَمُكُمْ بِصَلٰوةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ) يعنې (اګرچې په عملي طور زمااوستاسوپه مونځونوکې هيڅ فرق نه شته ليکن په علمي طور) ماته ځينې مسئلي ستاسو څخه زياتي معلومي دي، دمجلس صحابه وو ورته وفرمايل چې ووايه هغه کومه مسئله ده چې مونږته نده معلومه اوتاته معلومه ده؟ نوحضرت ابوحميد ﷺ ورته درکوع رفع اليدين اودريم رکعت ته دپورته کيدلو رفع اليدين بيان کړل، نودمجلس صحابه وو وفرمايل چې واقعي تارشتيا وويل (چې دا مسئله يوازې تاته معلومه ده).

ددې څخه صفاظاهريږي چې رفع اليدين عندالرکوع اودريم رکعت ته دپورته کيدلو رفع اليدين دصحابه ووپه وخت کې دومره متروک اودومره نااشنا اونابلده وه چې عمل کول خوورباندې لاڅه کوي په دومره غټ مجلس کې چې لس صحابه پکې دي چاته معلومه هم نه وه.

همدا وجه ده چې امام ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايې چې مادرفع اليدين مسئله نه دکوم صحابي څخه اوريدلې ده اونه مې پدې باندې څوک عمل کونکی ليدلی دی (موطاامام محمدص ٥٤).

خلاصه داراووتله چې کوم واړې به رسول الله ﷺ دارفع اليدين کړي وي لکن بيابې داسې پريښې دي چې ځينې متاخرالاسلام صحابه ووته معلوم هم نه وو.

**شپږم جواب:** حضرت ابوحميد ﷺ ډيرپخوانی صحابي وو، په جنګ أحد او په نورو اسلامي

جنګونو کې شريک شوی وو، نو څرنګه ورته ددې مجلس نورو صحابه وو وويلې چې: فوالله ما كنت أكثر له تبعة ولا أقدم منا له صحبة). خاصکر غير مقلدين پدې مجلس کې دابو هريرة رضي الله عنه او دحضرت سهل رضي الله عنه نومونه ذکر کوي. حضرت ابو هريرة په اووم کال د هجرت مسلمان شوی دی، او حضرت سهل رضي الله عنه په صغارو صحابه وو کې دی، نو څرنګه ابو حميد رضي الله عنه ته وايي چې: ته نه زمونږ په نسبت د زياتې پيروي والا يې او نه زمونږ څخه مخکې مسلمان شوی يې نو صحابه خو ټول رينښتيني او عدول دي نو معلوميږي دا چې دا دروغژنه خبره پکې د عبدالحميد د حافظې د خرابولې له وجې ورداخله شوې ده.[نور الصباح ص۱۵۴].

## يوولسم دليل

## حديث دعبدالله بن زبير رضي الله عنه

[الحق الصريح ج٤/ص ۷۵/شپږم نمبر دليل]

**اول خيانت**: په دې حديث کې د (حين يركع) سره (حين يسجد) هم شته د (حين يركع) ترجمه لامذهبان داسې کوي چې رکوع ته د ټيټيدلو او د رکوع څخه د جيګيدلو په وخت کې به يې رفع اليدين کول ليکن پدې حديث کې (حين يسجد) هم شته. (ابوداود ج۱ ص۱۱۱\ابن ماجه ص۶۲)

چې دې لامذهبه هغه جمله دتقيې په صندوق کې بنده کړې ده او ځينې لامذهبان يې په لفظ کې رانقلوي ليکن ترجمه يې نکوي، نو د (حين يسجد) ترجمه به د (حين يركع) په شان داسې شي چې (سجدې ته دټيټيدلو او دسجدې څخه دراجيګيدلو په وخت کې) يې هم رفع اليدين کړې دي او دا ځکه نه رانقلوي چې د حديث پدې برخه ددوي عمل نشته، ګويا ددې ايت مصداق دی چې: (اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ).

**دوهم خيانت**: په دې حديث کې لفظ (دحين ينهض للقيام) هم شته دی، لامذهبه خناس نه په لفظ کې رانقل کړې ده او نه په معنی کې، ددې لفظ معنی داده چې کله به ودريدلو نو رفع اليدين به يې کولو، برابره خبره ده چې دوهم رکعت ته به ودريدلو او که دريم رکعت ته به ودريدلو او که څلورم رکعت ته به ودريدلو.

ليکن چونکه لامذهبان دوهم رکعت او څلورم رکعت ته دودريدلو په وخت کې رفع اليدين نه کوي او نه پدې حديث عمل کوي، لدې وجهې ځينې لامذهبان يا دسره دا لفظ نه رانقلوي او ځينې لامذهبان

دالفظ رانقلوي ليکن ترجمه يې داسې کوي چې کله به د دوو رکعتونو څخه وروسته ودريدلو.

**دريم خيانت:** کله چې عبد الله بن زبير ﷺ لمونځ وکړونو چا وليدلو او که نه؟ دا خبره لامذهبان نه رانقلوي چا چې عبد الله بن زبير په داسې لمونځ وليدلو دهغه سړي نوم ميمون مکي وو کوم چې د دريمې طبقې تابعي وو

حافظ ابن حجر فرمايي: (الثالثة الطبقة الوسطي من التابعين كالحسن البصري وابن سيرين)(تقريب ص۱۰) دا د تابعينو د منځنى طبقې څخه دى، د کوم و چې د ډيرو صحابه وو سره ملاقات شوى دى، ميمون مکي تابعي دى او د مکې مکرمې او سيدونکى دى، مکې مکرمې ته به د حج په موسم کې د دنيا د هر کونج څخه خلک حج ته راتلل، صحابه به هم راتلل، تابعين به هم راتلل، او تبع تابعين به هم راتلل نو ميمون مکي رحمه الله د دوى ټولو د مسلک څخه خبر وو يعنې د ټولې دنيا حالات ورته معلوم وو.

**څلورم خيانت:** لامذهبان دا هم پټوي چې کله ميمون مکي عبد الله بن زبير په رفع اليدين کولو وليدلو نو څه يې وويل؟

کوم حديث چې لامذهبان ذکر کوي د همدې حديث د مينځ څخه يې يوه پوره لکيره حديث لفظا او معنًى لرې کړې دى د هغې لکيرى حاصل دا دى چې کله ميمون مکي رحمه الله عبد الله بن زبير په رفع اليدين کولو وليدلو نو عبد الله بن عباس ﷺ ته ورغلو او ورته وى ويل چې نن خو ما عبد الله بن زبير ﷺ په داسې لمونځ وليدلو چې بل هيڅوک مې ورباندې نه وو ليدلي او هغه د رفع اليدين ذکر وکړو. (ابوداود ج۱ص۱۱۵)

د حضرت ميمون مکي په الفاظو کې فکر وکړئ، ميمون مکي ډير صحابه ﷺ ليدلي وو ليکن هيڅوک يې د عبد الله بن زبير څخه بغير په رفع اليدين کولو نه وو ليدلى، ډير تابعين يې ليدلي وو ليکن يو تابعي يې هم په رفع اليدين کولو نه وو ليدلى، ډير تبع تابعين يې ليدلي وو ليکن يو يې هم په رفع اليدين کولو نه وو ليدلى.

د ټولې دنيا څخه راتلونکي حاجيان يې په مانځه ليدلي وو ليکن يو يې هم په رفع اليدين کولو نه وو ليدلي همدا په ټوله دنيا کې په ترک د رفع اليدين باندې عملي تواتر دى په ميلونو صحابه وو تابعينو تبع تابعينو او د دنيا څخه په راتلونکو حاجيانو کې يې يوا ځې يو عبد الله بن زبير ﷺ هغه هم

صرف يو واري په رفع اليدين وليدلو، كه لامذهبان دا ټول تفصيل بيان كړي نو د دوی ټول كتابونه رسالي او اشتهارونه به بي اثره شي.

(لادين لمن لاديانة له، ولا ايمان لمن لا امانة له)

(۲) همداسې يو بل حديث هم په ابوداود شريف كې شته حضرت نضر بن كثير رحمه الله فرمايي چې زما په ځنګ كې په مسجد خيف كې حضرت عبدالله بن طاوس يمني رحمه الله دسجدې څخه وروسته رفع اليدين وكړل نو ماته يو منكر كار ښكاره شو.

وهيب بن خالد رحمه الله ورته وويل چې ته داسې كار كوي چې ما ورباندې هيڅوك ندي ليدلي نو هغه ورته: حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما څخه حديث واورولو. (ابوداود ج۱ص۱۱۵)

**نو لامذهبانو:** چيرته كو مه امام باره كې په دې باندې هم عمل شروع كړئ، هسې شف شف كوئ نور يې شفتالو كړئ.

(۳) دد ې داسې مثال دی چې د رسول الله ﷺ عادت مباركه داوو چې په ناستې به يې اودس ماتی كولو، ليكن په ولاړه يې هم يو ځلي اودس مات كړی دی، چې پدې باندې عام عمل نه وو جاري.

نو كه يو څوك په ولاړه متيازي وكړي او بل ورباندې اعتراض وكړي، هغه ورته د حضرت مغيره بن شعبه رضی الله عنه حديث پيش كړي چې په ولاړه باندې متيازي هم ثابتي دي، نو ددې خودا معنی نده چې په ولاړه باندې متيازي كول سنت دي بلكې د ځان څخه د اعتراض اړول مقصود دي، همدارنګه ترک د رفع اليدين عملاً متواتر دي او عادت مباركه د نبي ﷺ ترک د رفع اليدين وو ليكن ابن عباس رضی الله عنه د اعتراض داوكړولو لپاره وفرمايل چې دا هم ثابت دي.

(۴) خپله د عبدالله بن زبير رضی الله عنهما عادت مباركه ترک د رفع اليدين وو ځكه چې د عبدالله بن زبير رضی الله عنه ځوی حضرت عباد رضی الله عنه به رفع اليدين نه كول، محمد بن ابي يحيی رحمه الله فرمايي چې ما حضرت عباد رحمه الله په ځنګ كې لمونځ كولو او دخفض او درفع سره به مي رفع اليدين كول، حضرت عباد رحمه الله راته وفرمايل: چې ته دهرو ټيټيدلو او جيګيدلو سره رفع اليدين كوي، حالانكې رسول الله ﷺ به صرف د مانځه د شروع كولو په وخت كې رفع اليدين كول او ددې څخه به يې وروسته په هيڅ ځای كې رفع اليدين نه كول ترڅو چې د مانځه څخه به فارغ شو. (اخرجه البهيقي في الخلافيات بسط اليدين ص۵۳ بحواله المواهب اللطيفه).

(۵) دحضرت عبدالله بن زبیر ﷺ دحديث او دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ د حديث په مابين كې دغه تعلق وو چې بيان شو او لامذهبان ددې لپاره چې پدې تفصيل پرده واچوي يو حديث په يو ځاى كې او بل په بل ځاى كې ذكر كوي.

(٦) دحضرت عبدالله بن زبير رضى الله عنهما تفردات دټولو صحابه وو په مقابل كې اهل السنة والجماعة نه مني، مثلا: حضرت عبدالله بن زبير ﷺ دعيدينو ځخه مخكې داذان او داقامت قايل دى، په زورند ولاسونو دلمونځ هم قايل دى. (معارف السنن ج٢\ص٤٦٠).

## دولسم دليل

**حديث عبدالله بن عباس** ﷺ [الحق الصريح ج٤/ص٧٦لسم نمبر دليل /اسوه سروركونين ص٨]

لامذهبه حكيم ددې عنوان لاندې ليكلي دي چې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمايې چې رسول الله ﷺ هميشه ركوع ته دتللو او د ركوع ځخه دسرراپورته كولو په وخت كې رفع اليدين كړي دي. (جـزء بخاري ص١١٣\ابن ماجه ص٦٢).

## تور دروغ

يو محاوره ده چې: (دلاوراست دزدى كه بكف چراغ دارد) او شاباس اين كار از تو ايد و نامردان چنين كند)، په جزبخاري كې هيڅكله ددې حديث سره سند ندى موجود او تاسو ليكلي دي چې بې سنده روايت لره په دين كې هيڅ اعتبار نشته. (الحق الصريح ج٤\ص ٢٦٤)

## دفريب انتهاء

لامذهبه حكيم دوهمه حواله په ابن ماجه ص٦٢ وركړى دى، هلته هم دحديث الفاظ داندې بلكې هلته الفاظ داسې دي چې بيشكه رسول الله ﷺ دهر تكبير سره رفع اليدين كړي دي

چونكه لامذهبان دهر تكبير سره رفع اليدين نه كوي، يعني ددوهم او ځلورم ركعت په شروع كې رفع اليدين نه كوي او نه دسجد په وخت كې رفع اليدين كوي، بلكې په ځلورو ركعتونو كې صرف لس رفع

اليدينه كوي اوپدې حديث كې دشپږويشتو رفع اليدينو ذكر دى، نودوي ددې حديث داسې ترجمه كوي چې صرف اته رفع اليدينه رابنكاره شي اوپاتې اتلس رفع اليدينه دتقيې په صندوق كې بند شي.

لامذهبه خناسه: پـدې حـديث كـې ددې شپږويشتـو رفع اليدينونو سـره د(كـان يرفـع) كلمـه ده اوتاسو وايې چې داكلمه په دوام او په هميشوالي باندې دلالت كوي، نوكه داتقريردې كړى وي چې رسول اللهﷺ هميشه دهرتكبير سره رفع اليدين كړى دي، نوكه خپل جماعت د رڅخه راضي كيدلو اوكه ناراض كيدلو خوشيعه گانو به خپل مجتهد منلى وې اونور به هم په دالرو كې پټ شوى وې.

لامذهبه خناسه! داحديث صحيح ندى، ځكه چې ددې حديث راوي عمربن رباح انتهايې ضعيف دى، كه بالفرض صحيح هم شي نوصرف ديو ځلې رفع اليدين ذكرپكې دى اوددې دباقې پاتې كيدلو څخه داحديث ساكت دى، البته دابن عباسؓ صحيح حديث پدې دليل دى چې دارفع اليدين باقي نه وو پاتې شوي.

حضرت عبدالله بن عباسؓ فرمايې: (لَاتُرْفَعُ الْاَيْدِيْ اِلَّافِيْ سَبْعِ مَوَاطِنَ حِيْنَ تُفْتَتَحُ الصَّلٰوةُ...الحديث) ابن ابي شيبه (ج١|ص ٦٢٨\ طحاوي ج١\ص٤١٦\طبراني ج١\ص٣٨٥).

لامذهبه نواب صديق حسن خان دې سندته جيدويلى دى، نزل الابرار من اذكارسيد الابرارص ٤٤علامه عزيزى فرمايې حديث صحيح (شرح جامع الصغيرج٢\ص ٢٥٨)

پدې حديث كې دلمانځه اودحج درفع اليدينونو بيان دى، رسول اللهﷺ فرمايلي دي چې په مانځه كې داول تكبير څخه وروسته په بل ځاى كې رفع اليدين مه كوئ اوپه حج كې ددغې مقاماتو څخه علاوه په بل ځاى رفع اليدين مه كوئ.

لامذهبان بالكل دروافضو په شان دي، روافض دحضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهم دمتعې دجوازفتوى رانقلوي او وروسته يې چې دعدم جوازفتوى وركړى ده هغه نه رانقلوي نو لامذهبانو: كه دعبدالله بن عباسؓ په ضعيف حديث عمل كوئ، نود هرتكبير سره رفع اليدين شروع كړئ اوكه يې په صحيح حديث عمل كوي نوصرف داول تكبير په وخت كې رفع اليدين وكړئ، ليكن الله دلامذهبانو په قسمت كې نه دعبدالله بن عباس په صحيح حديث باندې عمل ليكلى دى اونه يې په ضعيف حديث باندې ورته عمل ليكلى دى بلكې په صحيح حديث باندې يې احناف عمل كوي اوپه ضعيف حديث باندې يې شيعه گان عمل كوي.

## دیارلسم دلیل

## حدیث دوایل بن حجر ﷺ: [الحق الصريح ج٤/ص ۷۹/ څوارلسم نمبردليل]

**بې نظيره دروغ:**

لامذهبه خناسه! ستاخوږ مشر حکیم چې ستاکتابونه په هغه باندې دحوالو څخه ډک دی دلته داسې دروغ ویلي دي چې دیهودو او دنصاراو وریکارټ یې مات کړی دی لامذهبه حکیم داحدیث په ص ١١کې رانقل کړی دی او په سینه باندې دلاسونو دتړلو الفاظ یې هم پکې ورداخل کړي دي او په یوولسو کتابونو یې حواله ورکړی ده اوددې کتابونو جلد ونه او صفحي یې هم ورسره ذکر کړی دی چې لاندې دي.

(۱) صحيح مسلم ج۱/ص ۱۷۳]
(۲) ابوداود ج۱/ص ۱۹۳
(۳) ابن ماجه ص ٦٢]
(٤) داري ص ۱۰۷
(٥) دارقطني ص ۱۱۸]
(٦) جزء بخاري ص١٤
(۷) مسنداحمد ج۳/ص ۱٤۸
(۸) جزءسبکي ص۱۳
(۹) بهيقي.
(۱۰) کتاب الام
(۱۱) مشکوة.

حالانکې پدې حدیث او په دې یوولسو کتابونو کې په سینه باندې دلاسونو دتړلو هیڅ ذکر نه شته، په رسول الله ﷺ یې هم دروغ ویلي دي او پدې یوولسو کتابونو یې هم دروغ ویلي دي، په یوساه باندې ددولسو دروغو حوصله په سوامي دیانند هندو کې هم نه وه.

دلامذهبه حکیم څخه مخکې لامذهبه مستری نورحسین ګرجاکهي په خپله رساله اثبات رفع اليدين ص۲۲) کې دادروغ لیکلی وو اوده ده دړوند تقلید همت ده هم وکړو.

**لامذهبانو!** ستاسو د جماعت څخه علاوه دکوم قادياني، یادکوم هندو، یادکوم عیسوي، یادکوم یهودي، یادکوم مجوسي، یادکوم دهري په کتاب کې په یوه ساه چادومره د روغ ویلي دي لکه تاسو یې چې وایې ؟ که په نظر درغلی وي نوحواله یې راکړئ

**بي نظيره خيانت:**

دحضرت وایل ﷺ دحدیث متعددې طریقې دي: د مسند أحمد رقم۱۸۳۶۹ کې د هر تکبیر سره د رفع الیدین کولو ذکر دی، په نسائي کې صرف دوه ځایه د رفع الیدین کولو ذکر دی. [نسائي رقم۱۱۰۲] په ابوداؤد کې صرف د تکبیر تحریمه سره د رفع الیدین دکولو ذکر دی [ابوداؤد رقم ۷۱۹] او درې ځایه رفع الیدین چې په مسلم او په ابوداؤد کې کومه طریقه ده هغه دمحمد بن حجاده طریقه ده علامه ذهبی فرمایې چې هغه غالی شیعه وو. کان یغلو فی التشیع (میزان الاعتدال ج۳\ص ٤۹۸) او شیعه ګان دسجدو په وخت کې هم رفع الیدین کوي، لدې وجهې په ابوداود کې په دې حدیث کې دسجدو په وخت کې هم درفع الیدین ذکردی .(ابوداود ج۱\ص ۱۱۲ رقم الحدیث ۷۱۵). ناصر الدین البانی فرمایی چې: وزاد ابوداؤد في روايته : واذا رفع رأسه من السجود أيضاً رفع يديه وسنده صحيح على شرط مسلم كما حققته في صحيحه. [تعليقات ألباني على المشكاة ج۱/ ص۲٤۹/ حاشیه حدیث نمبر ۷۹۷] وهكذا في التمهيد ج۹ ص۲۲۷] د حضرت وایل په حدیث کې چې د هر تکبیر سره د رفع الیدین ذکر دی د هغې الفاظ دادي چې: عَنْ وَآيِلٍ ﷺ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيْرِ. [مسند أحمد رقم الحديث ۱۸۳۶۹]. د دوهم حدیث الفاظ دادي : عَنْ وَآيِلٍ ﷺ قَالَ: اَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيْرَةِ وَيَدَعُ يَمِيْنَهُ عَلٰى يَسَارِهِ فِي الصَّلٰوةِ. [مسند أحمد رقم ۱۸۳۷۳].

لیکن لامذهبان پدې حدیث کې دسجدو رفع الیدین او دهر تکبیر سره رفع الیدین دتقیې په صندوق کې داسې بندوي چې چاته په خوب کې هم ورمعلوم نه شي.

## بې نظیره فریب او دروغ

حضرت وایل بن حجر ﷺ دوه ځلې درسول اللہ ﷺ په خدمت کې حاضر شوی دی .کله چې اول ځلې راغلو نو درکوع او دسجدو بلکې دهر تکبیر سره یې درفع الیدین ذکر وکړو .(ابو داود ج۱\ص ۱۱۲ وفي بعض النسخ ص۷۳ رقم ۷۱۵ ومسند أحمد رقم۱۸۳۶۹)

او کله چې دوهم ځلې راغلو نو خپله مشاهده یې صرف د اول تکبیر سره درفع الیدین کولو بیان کړې" دحدیث الفاظ داسې چې: (ثُمَّ أَتَيْتُهُمْ فَرَأَيْتُهُمْ يَرْفَعُوْنَ أَيْدِيَهُمْ إِلٰى صُدُوْرِهِمْ فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ وَعَلَيْهِمْ بَرَانِسُ

وَأَكْسِيَةٌ [ابوداود ج۱\ص ۱۱۲ رقم ۷۱۹) يعني چې زه بيا راغلم نو دوي لاسونه تر اوږو پورې اوچتول د مانځه د شروع كولو په وخت كې او په دوي باندې كوټونه او څادرونه وو.

كه په دوهم ځلې راتللو كې يې دركوع او دسجدو رفع اليدين ليدلى وي نو ضرور به يې بيان كړي واى لكه څرنګه يې چې داول ځلې راتللو په وخت كې بيان كړل.

حضرت وايل بن حجر ﷺ هيڅ صحابي مستثنى نه كړو دې څخه معلوميږي چې د دوهم ځلې راتللو په وخت كې ټولو صحابه وو بلا استثناء صرف داول تكبير سره رفع اليدين كولو، علامه محمد انورشاه كشميري فرمايي چې: وهو ظاهر في تركه في المرة الثانية ولم أرى في طرقه في المسند والكنز ما يدافعه صريحاً. [نيل الفرقدين ص۴۳].

لامذهبان يو خيانت داكوي چې د وايل بن حجر ﷺ داول ځلې د راتللو حديث پوره نه رانقلوي اود دوهم ځلې راتلو والا حديث بالكل پټوي.

لامذهبه يهودي صفته امين الله پشاوري ! داسې ليكلي دي چې حضرت وايل بن حجر ﷺ په (سنه ۱۰) هجرت كې رسول الله ﷺ ته دوباره راغلى وو چې په دغه كال هم ده د رسول الله ﷺ درفع اليدين مشاهده كړې ده.(الحق الصريح ج٤\ص۸۰).

لامذهبه ! دوباره يې دكوم رفع اليدين مشاهده كړې ده؟

ددوباره راتلو والا حديث مامخكې ذكر كړو چې په هغې كې يو اځې دتكبير الافتتاح سره درفع اليدين بيان دى او نورپه كې د هيڅ رفع اليدين ذكر نه شته.

**لامذهبه!** ددوباره راتللو والا حديث ستا څخه هم په سهوه كې پنځلس پاڼې مخكې په (ص۵۰) كې ليكل شوى دى، تاهم داسې رانقل كړى دى (ثُمَّ أَتَيْتُهُمْ فَرَأَيْتُهُمْ يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَى صُدُورِهِمْ فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ وَعَلَيْهِمْ بَرَانِسُ وَأَكْسِيَةٌ (/الحق الصريح ج۱\ص ۵۰).

پدې كې يو اځې د مانځه په شروع كې درفع اليدين ذكر دى، هلته تا د حديث ترجمه په پښتو كې ځكه نه ده ذكر كړې چې عوامو ته معلومات و نه شي چې پدې كې خو يو اځې د مانځه د شروع كولو په وخت كې درفع اليدين بيان دى.

**لامذهبه!** که د حضرت وایل بن حجر رضی الله عنه په اول حدیث عمل کوي، نو چیرته د شیعه گانو په امام باړې کې منجاورشه چې هلته همیشه پدې حدیث عمل کیږي، یعنې همیشه د رکوع او د سجدو رفع الیدین کیږي او که په دوهم حدیث یې عمل کوي نو بیا د لامذهبیت څخه توبه اوباسه، د اهل السنة والجماعة احنافو مسلک قبول کړه او یوازې د تکبیرالافتتاح سره رفع الیدین کوه، چې اخرت دې سم شي او قبر کې درته ملایکي ونه وایې چې. (لادریت ولا تلیت) بخاري ج۱ ص ۱۷۸).

یعنې نه مجتهد وې او نه دی د بل مجتهد پیروي کوله، قسطلاني شارح بخاري فرمایې: لااتبعت العلماء بالتقلید فیما یقولون (حاشیه بخاري ج۱/ص ۱۷۸)

## د وایل رضی الله عنه حدیث او د خیر القرون تعامل

د هر حدیث د معمول به والي او غیر معمول به والي اصلي پیمانه خیر القرون دی، په کوم حدیث باندې چې په خیر القرون کې بلانکیره عمل جاري وي نو وروسته خلک دې هم په هغې حدیث باندې په عمل کولو کې هیڅ شک نکوي او په کوم حدیث باندې چې په خیر القرون کې عمل نوي جاري نو وروستني خلک یې په لفظې های هو باندې معمول به نه شي جوړولی او س د رفع الیدین د احادیثو په باره کې عمومًا او د حضرت وایل بن حجر د حدیث په باره کې خصوصًا د خیر القرون د مجتهدینو تاثرات مطالعه کړئ.

(۱) حضرت حصین بن عبدالرحمن رحمه الله فرمایې چې زه او عمرو بن مرة رحمه الله د ابراهیم نخعي رحمه الله مجلس ته ورغلو، نو عمرو بن مرة رحمه الله وفرمایل چې ماته علقمه بن وایل رحمه الله د خپل پلار وایل رضی الله عنه څخه حدیث بیان کړو چې هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم پسې لمونځ کولو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم یې د اول تکبیر او رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د راپورته کیدلو په وخت کې په رفع الیدین ولیدلو.

امام ابراهیم نخعي رحمه الله وفرمایل: چې زه نه پوهیږم کیدی شي چې حضرت وایل رضی الله عنه یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم په رفع الیدین کولو باندې لیدلی وي او یاد کړې یې وي، حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم باقي صحابه وو دا نه وي یاد کړي، ما پدوي کې د هیچا څخه هم د رفع الیدین مسئله نده اوریدلې خبره همداده چې هغوی به صرف د اول تکبیر سره لاسونه پورته کول. (موطا امام محمد ص ٥٤ وفي بعضها ص۹۲ رقم۱۰۷ وطبراني ج۲۲/ ص۱۲/ دار قطني ج۱/ ص۲۹۱/ سنن بیهقي ج۲/ ص۸۱)

(۲) حضرت مغیرة رحمه الله فرمایې چې ما د وایل بن حجر رضی الله عنه د رفع الیدین حدیث د امام ابراهیم

نخعي رحمه الله پـه مخکې بيـان کړو، نوهغـه وفرمايـل : کـه حضرت وايـل رضي الله عنهرسول اللهﷺيو ځلې پـه رفـع اليدين کولوليدلی وي نوعبدالله بن مسعود رضي الله عنهپه پنځوس ګونو واري ليدلی دی، چې رفـع اليدين يې نه کول (طحاوي ج١\ص ٣١٦وفي بعضهاص ١٥٤).

(٣) حضرت عمروبن مرة رحمه الله فرمايې چې کله امام ابراهيم نخعي رحمه الله د حضرت وايـل بـن حجر رضي الله عنهدرفع اليدين کولوالاحديث واوريدلو نوپه غوصه شواو ويې فرمايل چې (ډيرتعجب دی) حضرت وايل رضي الله عنه(چې صرف يوه ورځ رسول اللهﷺته راغلی وو)، هغوی رسول اللهﷺپه رفع اليدين کولو باندې وليدلوا و حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنهاونوروصحابه وو(چې هميشه به درسول اللهﷺسره وو) هغوی رسول اللهﷺپه رفع اليدين کولوونه ليدلو. (طحاوي ج١\ص ٣١٢ وفي بعضها١٥٤).

(۴) امام ابراهيم نخعي رحمه الله به فرمايل چې : (انمارفع اليدين عند افتتاح الصـلوة) يعنې رفع اليدين کول صرف داول تکبيرپه وخت کې دی. (دارقطـني ج١\ص ١٩١).ددې احاديثو څخه معلوميږي چې په خيرالقرون کې په رفع اليدين کولو باندې عمل خولاپريږده درفع اليدين په اوريدلوبه صحابه رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله په غوصه کيدل.

امام ابراهيم نخعي رحمه الله خپله تابعي وو، دحديثو په پيژندلو کې صراف وو. [کتاب العلل ومعرفـة الرجال ص١۴٠]. استاذان يې صحابه کرام رضی الله عنهم اوشاګردان يې تابعين رحمهم الله اوتبع تابعين رحمهم الله ووهغه فرمايې چې مارفع اليدين نه اوريدلي دي اونه مې ليدلي دي، يعنې په خيرالقرون کې درفع اليدين پوزيشن داسې وولکه دمتواترقراءت په مقابل کې چې دشاذقراءت کوم پوزيشن دی .که څوک په شاذ قراءت باندې تلاوت وکړي خلک پرې اعتراض کوي.

که لامذهبان داتول تفصيل وکړي، نوبياخوپې رازافشا کيږي اودا خبره واضحه کيږي چې په خير القرون کې رفع اليدين کول متروک العمل وو.لدې وجهې ورګوري هم نه.

(۵) – دحضرت وايل بن حجر رضي الله عنهپه قولي حديث کې هم يوازې دتکبيرالافتتاح سره درفع اليدين بيان دی: عن وايل بن حجر رضي الله عنهقال قال رسول اللهﷺياابن حجر اذا صليت فاجعل يديک حـذاءاذنيک والمـرة تجعـل يـديها حـذاء ثـديها) يعنې رسول اللهﷺوفرمايل چې ای ابن حجره چې کله دې اراده دمانځه وکړه نولاسونه دغوږونو برابرپورته کړه اوښځه دې يې دسينې برابرپورته کوي.[کنزالعمـال ج١٧\ص٣٠٧ رقـم

الحديث ۲۵۹٤) مجمع الزوايد ج۲\ص۱۰۳ ج۹\ص ۳۷٤ طبراني ج۲۲\ص۲۰۱۹].

۶- حافظ ابن عبد البر رحمه الله فرمايي چې د امام احمد رحمه الله څخه ددې حديث په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وفرمايل چې: زه د سالم رحمه الله عن عبد الله په روايت عمل کووم، د وايل بن حجر رضي الله عنه په روايت عمل نه کوم ځکه چې ددې الفاظ مختلف دي يعنې دا حديث مضطرب دی. [تمهيد ج۹/ ص۲۲۴].

## څوارلسم دليل

**دحضرت جابربن عبدالله ﷺ حديث:** [الحق الصريح ج٤\ص ۱۷۵ ووم نمبر دليل]

**اول جواب:** دحضرت جابر ﷺ حديث په دوو طريقو مروي دی.

**الف:** دابو الزبير طريقه چې دی لامذهبه را نقل کړي ده او اکثر لامذهبان يې ترجمه داسې کوي چې حضرت جابر ﷺ او رسول الله ﷺ به هميشه رفع اليدين کول، دا دهميشه لفظ په هيڅ حديث کې نشته، نه په جزء بخاري کې شته نه په ابن ماجه کې شته، نه په بهيقي کې شته او نه په جزء سبکی کې شته.

لامذهبان وايې چې پدې حديث کې د (کان يرفع) لفظ دی چې په دوام دلالت کوي، نو اول خو دا لفظ په بهيقي او په ابن ماجه کې نه شته، البته په جزء بخاري کې شته ليکن هلته دا حديث بلا سنده ذکر دی، چې حجت نشي جوړيدلی او دوهم دا چې مخکې دعبد الله بن عمر رضی الله عنهما د حديث په تشريح کې په تفصيل سره دا خبره ذکر شوه چې دا لفظ په اعتبار د اصل وضعي سره ديو ځلې فعل لپاره دی. (نووي ج۱\ص۲۵٤).

ددې حديث دسند يو راوي ابو حذيفه دی، امام ذهبي فرمايې چې: ضـعفه الترمـذي (ميزان الاعتدال ج٤\ص۲۲۱).

دوهم راوي يې ابراهيم بن طهمان دی. محدث سليماني فرمايې چې ده کوم حديث دابو الزبير په واسطه دحضرت جابر ﷺ څخه د رفع اليدين په باره کې روايت کړی دی، محدثين ددې څخه انکار کوي. (تهذيب التهذيب ج۱\ص۱۳۰). دريم راوي يې ابو الزبير دی چې اول نمبر مدلس دی او دلته يې په عن سره روايت کړی دی لدې وجهې دا حديث صحيح ندی.

**باء:** لامذهبان ددې حديث ددوهمې طريقې بالکل نوم هم نه اخلي، حالانکې په دوهمه طريقه کې واقعې د (کان يرفع) لفظ موجود دی، حضرت جابر ﷺ فرمايې چې دصلح دحديبي په ورځ مونږ د رسول

اللهﷺ سره څوارلس سوه كسان وو. وَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ كُلِّ تَكْبِيْرَةٍ مِّنَ الصَّلٰوةِ. (مسند احمد ج۳/ص۳۱۰/ تاريخ كبيرامام بخاري ج٤\ص۱۰۵/ مجمع الزوايد ج۳\ص ۱۰۱].

رسول اللهﷺ به لاسونه پورته كول ده رتكبيرسره، حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما فرمايي چې په څلور ركعته مونځ كې دوه ويشت تكبيره دي رواه البخاري. [مشكوة ج۱\ص۷۷باب صفة الصلوة الفصل الثالث او څلور تسميعه (سمع الله لمن حمده) دي چې ۲۲ + ۴ = ۲٦ شول.

نو لامذهبانو! ددې ۲٦ رفع اليدينو نو سره د(كان يرفع) لفظ هم شته، چې تاسو وايې چې دا جمله ددوام او هميشوالي لپاره ده حالانكې تاسو پرې عمل نكوئ، بلكې شيعه ګان درڅخه پدې باندې په عمل كولو كې مخكې دي.

**دوهم جواب:** لامذهبانو! پدې حديث كې نه دسنت مؤكده لفظ شته او نه دسنت غيرمؤكد لفظ شته او نه دمستحب لفظ شته او نه ددوام او هميشوالي لفظ شته دا حديث كه بالفرض صحيح هم شي نو ديوې واقعي ذكر دى، چې عمو ،نه ل ي، حضرت جابرؓ چې خپلو ملګروته لمونځ ورخودلو نو صرف تكبير يې وروخودلو: عَنْ جَابِرِبْنِ عَبْدِاللّٰهِ رضي الله عنهما، أَنَّهُ كَانَ يُعَلِّمُهُمُ التَّكْبِيْرَ فِي الصَّلاَةِ، قَالَ: فَكَانَ يَأْمُرُنَا أَنْ نُّكَبِّرَ كُلَّمَا خَفَضْنَا وَرَفَعْنَا [موطاامام مالک ۲ص۲٦ / موطاامام محمدص ۸۹].

حضرت جابرؓ به دتكبيرڅخه وروسته دمانځه په داخل كې دهر ټيټيدلو او دجيګيدلو سره صرف دالله اكبرتعليم وركولو، دحضرت جابرؓ په اخري مونځونو كې درفع اليدين ذكرنه پيدا كيږي.

دلامذهبانو حال دشيعه ګانو په شان دى، چې دحضرت جابرؓ څخه دبخاري په حواله دمتعې روايت رانقلوي، ليكن وروسته دهغې دپريښودلو روايت نه رانقلوي.

## پنځلسم دليل

**دحضرت ابوموسى اشعريؓ حديث:** [سنن دار قطني ج۱/ ص۲۹۲/ رقم ۱۱۱۱/ الحق الصريح ج٤\ص۸۰ پنځلسم نمبردليل]

**اول جواب:** دا حديث په جزء بخاري كې بلاسنده ذكر دى او په دار قطني كې موقوف دى، كه صحيح سند يې لرلى امام بخاري به ضرور ذكر كړى وو او دبې سنده حديث په باره كې همدې لامذهبه

دخپل مشرانو په تقليد کې ليکلي دي چې دا اتفاقي مسئله ده چې بې سنده روايت لره په دين کې هيڅ اعتبار نه وي. [الحق الصريح ج٤ص ٢٦٤سطر١٦].

لامذهبان په دارقطني هم حواله ورکوي، په دارقطني کې يې ددې روايت درانقلولو څخه وروسته ددې حديث دمرفوع والي او موقوف والي اختلاف ذکرکړی دی، لامذهبان په بهيقي هم حواله ورکوي حالانکې بهيقي دا حديث موقوف رانقل کړی دی، علامه انورشاه کشميري رحمه الله فرمايي چې: والثواب أنه موقوف. [نيل الفرقدين ص٧٨] يعنې صحيح خبره داده چې دا درسول الله حديث نه دی.

## غټ دروغ

لامذهبه حکيم ددې حديث دنقل کولو څخه وروسته ليکلي چې ابو موسی اشعري ﷺ چې کله دمانځه څخه فارغ شونو اعلان يې وکړوچې: ای خلکوتاسوهم داسې مونځ وکړئ ځکه چې رسول الله ﷺ هميشه رکوع ته دتللو اودرکوع څخه دسرراپورته کولو په وخت کې رفع اليدين کول.

حالانکې دابالکل دروغ دي په دې الفاظوباندې اعلان نه په دارمي کې شته اونه په دارقطني کې شته نه په بهيقي شته اونه په جزء بخاري کې شته اونه په بل کوم دحديثو کتاب کې شته.

يوبل دروغ: لامذهبه حکيم داهم ليکلي دي چې پدې حديث کې هم (کان يرفع) ددوام لپاره دی، حالانکې د(کان يرفع) جمله نه په بهيقي کې شته نه په دارقطني کې شته اونه په بل کوم دحديثو کتاب کې شته چې سندورسره ذکروي، البته په جزء بخاري کې شته ليکن هلته ورسره سندندی ذکرشوی.

**دوهـم جـواب:** په صحيح حديث کې د رفع اليدين ذکر نشته، پدې حديث شريف کې اګرچې دارقطني دمرفوع والي او موقوفوالي اختلاف ذکرکړی دی او بهيقي موقوفاذکرکړی دی اوابن حزم په المحلي کې موقوف والي تـه تـرجيح ورکړی ده، لـيکن داحـديث موقوفـاهم نـدی صـحيح، ځکه چې دابوموسی اشعري ﷺ په صحيح حديث کې درفع اليدين ذکرنه شته، بلکې په هغې کې داسې الفاظ دي: يکبرکلماركع وكلمارفع وكلماسجد. [مسنداحمدج٤ص ١١٥اوص ٣٩٣وص٤٤٠ رقم الحديث١٩٠٠٠]. په مسلم شريف رقم الحديث ٣٠٩ کې هم شته او هلته هم د رفع اليدين ذکر نشته.[مسند احمد رقم

الحديث ۱۹۲۲۳ کې الفاظ داسې دي چې: (يكبر في كل رفع ووضع وقيام وقعود) يعنې د هرو ټيټيدلو او ولاړې او ناستې سره به يې الله اکبر ويلو، د مسند أحمد د اول حديث ترجمه داسې ده چې:

الله اکبر به يې ويلو چې کله به يې رکوع کوله او چې کله به د رکوع څخه راپورته کولو او چې کله به يې سجده کوله.

**دريم جواب:** ددې حديث سند بالکل ضعيف دی: ۱- پدې حديث کې د دارقطني شيخ دعلج ابن احمد د اعتماد قابل ندی. [ميزان الاعتدال ج۳/ ص۱۲۰]

۲- بل راوي اسحاق بن راهويه دده حافظه په آخر عمر کې خرابه شوې وه. [تهذيب ج۱/ ص۲۱۸]. پدې حديث کې دده شاګرد ابو محمد عبدالله بن محمد ابن عبدالرحمن ابن شيرويه المتوفى ۳۰۵هج دی چې دا بالکل په وروستنيو شاګردانو کې دی. [شذورات الذهب ج۲/ ص۲۴۶].

۳- بل راوي حماد بن سلمة رحمه الله دی د غير مقلدينو شيخ الکل عبدالرحمن مبارکپوري ليکي چې: ددې اثر په سند کې حماد بن سلمة راغلی دی، او دده حافظه په آخر عمر کې خرابه شوې ده. [تحقيق الکلام ج۱/ ص۱۰۳]. حافظ ابن حجر فرمايي چې: حماد بن سلمه اګرچې ثقه وو مګر په اخر عمر کې يې حافظه خرابه شوې وه. (تقريب ص ۸۲) د حماد بن سلمة وفات په ۱۷۶هج کې شوی دی او پدې روايت کې دده شاګرد نضر بن شميل دی، دده وفات ۲۰۳هج کې شوی دی، نو د متأخرې سماع والا شاګرد دی، کله چې يې د استاذ حافظه خرابه شوې وه او دده هيڅ متابع هم نشته، نو دا روايت موقوفاً هم ندی صحيح، مجموعة الرسائل ج۳\ص۲۱۶/سبل السلام ج۱/ ص۷۷/ باب الأذان حديث نمبر ۱۵/ نيل الأوطار ج۱/ ص۲۴۷].

## د اشعريانو لمونځ

که د اشعريانو د لمونځ ليدل غواړئ نو په مسند احمد کې يې وګوري: خضرت ابو مالک اشعري رضي الله عنه ټولو نارينه وو، زنانه وو، ماشومانو، ځوانانو او بوډاګانو ته اعلان وکړو چې ايا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ مونځ درونه ښايم؟ نو ټولو ته يې داسې لمونځ ورکړو چې د اول تکبير سره يې رفع اليدين وکړل، بيا يې فاتحه او سورة ولوستلو او بيا يې الله اکبر وويلو او رکوع ته لاړو، بيا يې سمع الله لمن حمده وويله او د رکوع څخه را پورته شو همداسې يې ټول مونځ (بغير د رفع اليدين او بغير د جلسو د استراحت)

وکړواوبيايې وويل چې اى خلکو ما رسول اللهﷺ په همداسې لمونځ کولو باندې ليدلى دى .(رواه احمد واسناده حسن ج٥/ ص٣٤٣/اثار السنن ج١\ص١٢٦)باب ترک جلسة الاستراحة].

که دحضرت ابو موسى اشعريؓ سره درفع اليدين په باره کې کوم حديث وي، نو هيڅکله به چپ شوى نه وو او هيڅکله به يې دانه وه برداشت کړى چې دى ته درفع اليدين او جلسة الاستراحة احاديث معلوم وي او سره ددې څخه يې تو له قبيله بغير درفع اليدين اوبغيرد جلسو داستراحت څخه مونځ کوي ابو موسى اشعريؓ کې دسنتو د اتباع جذبه خامخا دلامذهبو څخه زياته وه.

نولامذهبانو !تاسو هم دنبيؑ د مانځه اعلان خپلو قبيلوته بغير درفع اليدين اوبغيرد جلسو داستراحت څخه وکړئ او که دانه کوي کم از کم دنبيؑ مخالفت پريږدي .(مجموعة الرسايل ج٣\ص٢١٦).

## شپاړسم دليل

**دعقبه بن عامرحديث:** [الحق الصريح ج٤\ص ٨٢/ يويشتم نمبردليل]

**اول جـواب :** ددې حديث په سند کې يوراوي مشرح بن عاهان دى، مشرح بن عاهان هغه سړى وو چې په کعبه شريفه يې دمنجنيق سره حمله کړي ، او تيګى يې پرې ورولي او دعقبه څخه به يې منکر روايتونه بيانول. (تهذيب ج١٠\ص١٥٥).

**دوهم جواب:** ددې حديث په سند کې عبدالله بن لهيعه هم دى چې ستاسو جماعت په (الرسـائل في تحقيق المسائل ص ٤٦١وص ٤٦٢) کې ورته ضعف ويلى دى .

**دريم جواب:** په دغې انتهـا يې ضعيفه سند باندې دحضرت عقبه رحمه الله قول په (طبراني کبير ج١٧\ص ١٩٧) کې دې مګر هلته داشاري ذکردى درفع اليدين ذکربالکل نه شته .

همدارنګه په کنزالعمال او مجمع الزوائد کې هم داشاري ذکر دى که بالفرض داروايت صحيح هم شي اودرفع اليدين په باره کې هم شي نوفائده يې شيعه ګانو ته ده غير مقلدينو تـه نده ځکه هغوى په ډيروځايونو کې رفع اليدين کوي اوبيابيارفع اليدين کوي.

## اوولسم دليل

**د ابن عمرؓ په تیکو ویشتلو دوالا اثر:** [الحق الصريح ج٤/ ص٨٢/ دوه ويشتم نمبردليل]

**جواب :** دعبدالله ابن عمر رضی الله عنه موقوف روایت صحیح نه دی، ځکه چې ددې روایت مدار په ولید بن مسلم باندې دی؛

۱- ولید بن مسلم پدې روایت کې یو اځې دی او مختلط الحدیث دی، امام ابن احمد فرمایي چې: اختلط عليه احاديث ماسمع وما لم يسمع وكانت له منكرات. [تهـذيب التهـذيب ج١١/ ص١٥٤] په ولید بن مسلم باندې هغه احادیث چې د خپلو استاذانو څخه یې اوریدلي وو او هغه احادیث چې نه یې و اوریدلی، ګډوډ شوي وو او دده رِوایات منکر دی.

۲-ابوداوود شریف په کتاب الدیات کې فرمایي: ان الوليد بن مسلم أخبرهم عن ابن جريج.... قال ابوداود ولم يروه الاالوليد لاندرى اهو صحيح ام لا؟ ابوداؤد رقم ٤٥٨ باب من تطبب ولا يعلم منه طب فاعنت [ ج ٢ / ص ٢٨٥].

۳-حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې: ثقة لكنه كثير التدليس والتسوية. [تقريب/ ص٣٧١].

۴-دولید بن مسلم یو روایت په مسلم شریف کې هم شته. لکن امام نووي رحمه الله ددې په باره کې فرمایي چې: (ضعيفٌ باطلٌ) [نووى شرح مسلم /ج ١ /ص ٩٠].

۵-ترمذی په [باب المسح على الخفين أعلاه و أسفله / رقم الحديث ٩٧] لاندې لیکي چې: (وهذا حديث معلول لم يسنده عن ثور بن يزيد غير الوليد بن مسلم قال ابو عيس سألت أباذرعه ومحمد بن اسماعيل عن هذا الحديث فقالا ليس بصحيح).

۶-امام عبدالرحمن بن أبی حاتم رحمه الله د خپل پلار ابوحاتم رحمه الله او ابوزرعه رحمه الله څخه روایت کوي چې: د ولید بن مسلم احادیث غیر محفوظ دي. علامه ابن حزم فرمایي چې: ولید بن مسلم په دوو ځایونو کې خطایي کړې ده. امام اثرم رحمه الله وایي چې: امام احمد رحمه الله ولید بن مسلم ته ضعیف ویلي دي. [تحفة الاحوذی /ج ١ /ص ٩٩].

٧- په [تذكرة الحُفاظ / ج ٢ / ص ٦٨٨] كښ يو سند داسې دی چې: هشـام بـن عمـار، حـدثنا الوليد، حدثنا الأوزاعى.... الخ) ددې سند په باره كښ علامه ذهبي رحمه الله فرمايي چې: (رُواتـه ثِقـةٌ لكنه مُنكر) ددې راويان ثقه دي، لكن منكر دی. ددې په حاشيه كښ علامه المعلمى (غير مقلد) ليكي چې: (علته ان الوليد يدلس التسوية و كذا هشام فيما يظهر). يعنې ددې سند علت دادی چې وليد بن مسلم تدليس او تسويه كوي او همدارنگه هشام هم دی.

**دوهم ځواب**: د وليد بن مسلم رحمه الله شاګردان په مختلفو الفاظو له ده څخه روايت كوي.

١ - حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ رحمة الله تعالى عليه قَالَ: ثنا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَاقِدٍ، يُحَدِّثُ، عَنْ نَافِعٍ رحمة الله تعالى عليهم، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما: «كَانَ إِذَا أَبْصَرَ رَجُلًا يُصَلِّي لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ حَصَبَهُ حَتَّى يَرْفَعَ يَدَيْهِ». [. [مسند الحميدى/ ج ٢/ ص٢٧٧ / رقم ٦١٥].

يعنې عبدالله بن عمر رضى الله عنهما به هغه سړی په كاڼو باندې ويشتلو چا به چې د هر ځل ټيټيدلو او پورته كېدلو په وخت كښ رفع اليدين نه كول. په څلور ركعته لمونځ كښ غير مقلدين د جلسو د استراحت سره اته ويشت ځايه جګېږي او ټيټېږي او رفع اليدين يواځې په لسو ځايونو كښ كوي، نو كه دا حديث صحيح شي نو بيا خو غير مقلدين په هر څلور ركعتي لمونځ كښ اتلس ځله په تيږو باندې د ويشتلو حقدار دي.

٢ - حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ رحمة الله تعالى عليه، أَنْبَأَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَاقِدٍ يُحَدِّثُ عَنْ نَافِعٍ رحمة الله تعالى عليهم أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما، «كَانَ» إِذَا رَأَى رَجُلًا لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا رَكَعَ، وَإِذَا رَفَعَ رَمَاهُ بِالْحَصَى". [جزء رفع اليدين عن الحميدى/ رقم الحديث ١٥].

يعنې عبدالله بن عمر رضى الله عنهما به هر هغه سړی په كاڼو ويشتلو چا به چې د ركوع په وخت كښ او د ركوع څخه د پورته كېدو په وخت كښ (رفع اليدين) نه كول.

٣ - أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ رحمة الله عليه: "كَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما إِذَا رَأَى مُصَلِّيًا لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الصَّلَاةِ: حَصَبَهُ، وَأَمَرَهُ أَنْ يَرْفَعَ يَدَيْهِ. [ مسايل الامام احمد / رواية ابنه عبدالله بن احمد / ص ٧٠ / التمهيد لابن عبـدالبر / ج ٩ / ص ٢٢٤ / معرفة علوم الحديث حاكم/ ص ٢١٨ / مناقب احمد و ابن الجوزى / ص ٨٨].

يعنې عبدالله بن عمر رضى الله عنهما به هغه سړی په كاڼو ويشتلو چا به چې په لمانځه كښ (رفع اليدين) نه كول. او د رفع اليدين حكم به يې ورته كاوه.

٤ – عِيسى بْنُ أَبِي عِمْرَانَ رحمه الله: كَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما «إِذَا رَأَى رَجُلًا يُصَلِّي لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ حَصَبَهُ حَتَّى يَرْفَعَ [دار قطنى / ج ١ / ص٣٩٢ / رقم الحديث ١١٠٥ / جزء سوم مترجم / ص٣٤٤ / رقم ١١٠٣].

يعني عبدالله بن عمر رضى الله عنهما به هغه سړی په کاڼو ويشتلو چا به چې د هر وار ښکته کېدلو او پورته کېدلو سره (رفع اليدين) نه کول دلته هم غير مقلدين اتلس ځايه په کاڼو باندې د ويشتلو حقدار دي.

٥ – إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله قَالَ: أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما: «كَانَ إِذَا رَأَى رَجُلًا لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الصَّلَاةِ عِنْدَ الرُّكُوعِ وَرَفْعِ رَأْسِهِ، حَصَبَهُ [معرفة السُنن والأثار / ج ١ / ص٥٦٢] يعني عبدالله بن عمر رضى الله عنهما به هغه سړی په کاڼو ويشتلو چې رکوع ته د تګ او له رکوع څخه د پورته کېدلو په مهال به يې (رفع اليدين ) نه کول.

٦ – كَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما إِذَا رَأَى رَجُلًا لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَصَبَهُ وَأَمَرَهُ أَنْ يَرْفَعَ يَدَيْهِ. [التمهيد /ج ٥ /ص ٦٥].

يعني عبدالله بن عمر رضى الله عنهما به هغه سړی په کاڼو ويشتلو چې لاسونه به يې نه پورته کول.

په دې حديث کې د لمانځه ذکر نشته. او د امام احمد رحمه الله په روايت کې هم د لمانځه ذِکر نشته. نو له دې دواړو روايتونو څخه يو اځې د تکبيرِ تحريمه سره د (رفع اليدين ) ذِکر رامعلومېږي.

امام حميدي او عيسى بن عمران د (رفع اليدين ) ځای هر ټيټيدل او پورته کېدل ذکر کړي دي. اسحق بن ابراهيم د حديث متن د خپل مذهب طرف ته اړولي دی. په [ جزء بخاري ] کې تدليس شوی دی، چې سند يې د حمييدی ذکر کړی دی او متن يې د اسحق ورلګولی دی. ځکه چې د حميدي په سند کې په اول روايت کې تاسو وليدل چې هلته د (کلما خفض و رفع ) لفظ دی. حاصل دا چې په اصل روايت کې چې د امام احمد روايت دی، په هغې کې يو اځې د (رفع اليدين ) ذکر دی او محل يې نه دی ذکر کړی. او په دې نورو رواياتو کې هر چا د حديث تشريح کړې ده. او د حديث څخه يې جزء ګرځولی دی.

امام حميدی او عيسى بن عمران يې تشريح په (کلما خفض و رفع ) سره کړې ده. اسحق بن ابراهيم يې د خپل مذهب مطابق تشريح په (عند الركوع و رفع رأسِهِ) سره کړې ده. او په جزء بخاری کې يې سند د حميدی او تشريح يې د اسحق ده او مونږ وايو چې د دې تشريح د اجماع مطابق په (عند الافتتاح ) سره په کار ده.

علامه محمد يوسف بنوري رحمه الله فرمايي چې: د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما قول هېڅکله په دې خبره دليل نه دی چې څوک چې د رکوع رفع اليدين نه کوي نو دهغه په کاڼو باندې ويشتل

په كار دي، لهذا دا اثر د اختلافي (رفع اليدين) له پاره عنوان جوړول نه دي په كار. نو له دې څخه استدلال هم صحيح نه دى. ددې اثر اصل الفاظ داسې دي چې: ( انّهُ اذا رأى مصلّياً لا يرفع يديه في الصلوة حصبه ). يعنې هغه څوک به يې په كاڼو ويشتلو چې چا به په لمانځه كې لاسونه نه پورته كول.

نو ممكنه ده چې د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما انكار په هغه چا باندې وي چې د تكبير تحريمه په وخت كې رفع اليدين نه كوي، نه په هغه چا باندې چې مطلق رفع اليدين نه كوي او د تكبير تحريمه په وخت كې د لاسونو د پورته كولو تاكيد ظاهر دى. [ معارف السّنن / ج ۲ / ص ۴۶۶].

خلاصه دا چې د اصلي متن څخه د لا مذهبانو استدلال نه دى صحيح، ځكه چې اصلي متن د امام احمد څخه اثرم داسې رانقل كړى دى: كان ابن عمركان اذاراي رجلا لا يرفع يديه رماه بالحصي.

پدې كې ركوع وغيره نه دى ذكر شوي او كه تشريحات راخلي نو بيا اول د همدې لا مذهبانو په خولو كې د تيګو ورټكوهل پكار دى ځكه ددې تشريح په (كلما خفض ورفع ) سره هم شويده. (مسند حميدي ج۲\ص ۲۷۷/ دارقطــني ج۱ \ص ۲۸۹) چې د سجدو د اول او د اخر او د دوهم او د څلورم ركعت رفع اليدين هم پكې داخليږي، نو لا مـذهبان دې شيعه ګـان په خپلو مساجدو كې ملازمان كـړي چې كـوم لا مذهبـه د سجدو د اول او د اخر او د دوهم او د دريم ركعت په وخت كې رفع اليدين ونه كړي، چې په خوله كې تيګي ورټكوهي.

## اتلسم دليل

### حديث عبيدبن عمير ﷺ:

**جواب :** دا روايت په جزء بخاري ص۳ كې دى ليكن سند نه لري او لا مذهبان ليكي چې دا اتفاقي مسئله ده چې بي سنده روايت لره په دين كې هيڅ اعتبار نه وي. (الحق الصريح ج٤\ص ٢٦٤ سطر١٦)

په كومو كتابونو كې چې سند ورسره دى د هغې كتابونو څخه لا مذهبا ن دا حديث نه رانقلوي ځكه چې د دوى مسلک د هغې احاديثو سره مخالف دى په ابن ماجه كې د سند سره ددې حديث الفاظ داسې دى: كان رسول الله ﷺ يرفع يديه مع كل تكبيرة في الصلوة. رسول الله ﷺ به د هر تكبير سره لاسونه پورته كول. (ابن ماجه ٦٢ كتاب الضعفاء للعقيلي ج١ \ص ٣٨٢/ كتـاب المجـروحين ابـن حبـان ج١\ص ٣٠٤/ معرفة الصحابة لابي نعيم ج٢\ص ٢١٨/ تاريخ بغداد ج١١\ص ٤٠٠ وج ٤ص ٢٥٣)

ددې حديث په سند کې رفضه بن بضاعه نهايت ضعيفه دی، ليکن اول حديث دسره سند نه لري، نو په اول حديث درته عمل جائزندی او په دوهم حديث باندې تاسو عمل نکوئ دلامذهبانو مسلک دومره يتيم دی چې ددلايلو سرمايه يې يوڅو ضعيف اويابې سنده اويادروغ روايتونه دي

لامذهبانو! که دې حديث ته صحيح وايې، نو دشيعه ګانو سره يوځای شي او د سجدوسره هم رفع اليدين شروع کړئ او دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دبخاري حديث ته غلط ووايې، ځکه چې په هغه حديث کې ددې په خلاف دبين السجدتين درفع اليدين څخه منع ده.

## نولسم دليل

**د حضرت قتادة ﷺ حديث:**

لامذهبه حکيم ددې عنوان لاندې ليکلي دی چې حضرت قتادةﷺ فرمايې چې بيشکه چې رسول اللهﷺ به هميشه رکوع ته دتللو او د رکوع څخه دجيګيدلو په وخت کې رفع اليدين کول.(ترمذي ج١\ص٣٦)

**جواب:** داخالص دروغ دي، دحضرت قتادةصحابي څخه هيڅ داسې حديث په ترمذي شريف کې نه شته نو چې حديث نه شته نو دهميشوالي ذکردکوم ځای څخه راغلو؟ لامذهبانو! اخربه تاسوترکومه پورې په دروغو عمل کوئ او ددې اشاعت به کوئ.

## شلم دليل

**دسليمان بن يسارحديث**

**جـواب:** لامذهبه: سليمان بن يسار ددريمي طبقې راوي دی، چې درسول اللهﷺ زمانه يې نه وه ليدلې. (تقريب التهذيب ص١٣٦).

## يويشتم دليل

(فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ[الآية]. خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ[الآية]

لامذهبان چې کله دخپل اجتهادپه نيشه مست شي نوپه اشتهارونو کې وليکي چې درفع اليدين

اثبات دقرآن کريم ددوو ايتونو څخه کيږي ۔

**اول ايت :**(فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ) دى ، ټول امت ددې ايت معنى دصحيحو احاديثو او داجماع په رڼاکې داسې کوي چې دخپل رب لپاره داخترلمونځ وکړه او (ددې څخه وروسته) قرباني وکړه ليکن لامذهبان ترينه دقربانۍ په ځاى رفع اليدين مرادوي او حواله په مستدرک ورکوي، مګر په همدې صفحه کې علامه ذهبي په تلخيص کې ليکلي دي چې اسرائيل صاحب عجيب دى په ده اعتماد نه شته او دوهم راوي اصبغ دى، چې شيعه او متروک الحديث دى . (تلخيص المستدرک ج۲\ص ۵۳۸) علامه ذهبي داهم ليکلي دي چې اصبغ غټ دروغجن وو، متروک دى او درجعت قايل وو .(ميزان ج۱\ص ۲۷۱) بهيقي ددې څخه وروسته ليکلي دى چې دا روايت راغلى دى، مګر د اعتماد وړ ندې، اعتماد په اول روايت دى چې قرباني ترې مراده ده(بهيقي ج۲\ص ۷۶).لامذهبان په ابن ابي حاتم، ابن کثير او فتح البيان هم حوالى ورکوي، حالانکې په ابن کثير کې يې صفا ليکلي دي چې دا روايت سخت منکر دى او په اخر کې يې ليکلي دي چې صحيح صرف داده چې دنحر څخه قرباني مراده ده .(ابن کثير ج٤\ص ۵۵۸ص ۵۵۹)

اوپه دې منکر روايت کې د(اذا سجدت) الفاظ هم شته يعنې چې کله دې سجده کوله نو هم رفع اليدين کوه لامذهبان خو اول منکر روايت رانقلوي او بيا په دې منکر روايت کې هم ترميم کوي،( داذاسجدت) لفظ نه رانقلوي ځکه چې هغه ددوي دمسلک او عمل څخه خلاف دى، لامذهبان په درمنثور او په اکليل هم حواله ورکوي دادواړه کتابونه دعلامه دسيوطي رحمه الله دي علامه سيوطي په اکليل کې ددې روايت په شروع کې ليکلي دي چې دا ضعيف دى او وروسته يې ليکلي دي چې ابن کثير ليکلي دي چې دا روايت سخت منکر دى بلکې ابن الجوزي دا په موضوعاتو کې شمار کړى دى (اکليل ص ۲۲۹)

لامذهبان نوري حوالي هم ورکوي، ليکن علامه ذهبي داسرائيل بن ابي حاتم رحمه الله په ذکر کې ليکلي دي چې دې دمقاتل په حواله دروغ احاديث بيانوي او په مثال کې يې ورته دغه دروغجن روايت ذکر کړى دى کله کله لامذهبان دوانحر څخه قرباني او رفع اليدين دواړه مراد وي .ليکن دوى بيا قرباني دمانځه څخه وروسته کوي او رفع اليدين دمانځه په داخل کې کوي .

لامذهبه مشتهرين دى يا قرباني هم د رفع اليدين په شان دمانځه په داخل کې وکړئ او يادې رفع

اليدين هم د قرباني په شان د مانځه څخه وروسته وكړي.

په يو دليل كې دومره دوهكې ،په قران باندې دروغ ، په جبرائيل ﷺ باندې دروغ، په ملايكو باندې دروغ د كتابونو څخه په نقل كې خيانت، ددې مثال د كافرانو په كتابونو كې هم نه پيدا كيږي.

دومره دروغجن، ګنده او نجس اشتهارونه په مساجدو كې لګول د لامذهبو په نيز زينت دى او د اهل حقو په نيز د داسې اشتهارونو ځاى ګرجى او مندرونه دي.

**دوهم ايت :** خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ: ددې ايت تعلق دلباس سره دى، لامذهبان دا ايت درفع اليدين لپاره په دليل كې پيش كوي، چې رفع اليدين د مانځه لپاره زينت دى (صغرى) وخذوا زينتكم عندكل مسجد (كبرى) حالانكې ددې ايت درفع اليدين كولو سره دلرې څخه هم تعلق نشته، ځكه چې ددې ايت ترجمه دانده چې دوهم او څلورم ركعت درفع اليدين د زينت څخه خالي كړئ، صرف دريم ركعت ته درفع اليدين زينت وركړئ او سجدې درفع اليدين د زينت څخه خالي كړئ، صرف ركوع ته درفع اليدين زينت وركړئ او نه رسول الله ﷺ ددې ايت شان نزول رفع اليدين ذكر كړى دى كه رفع اليدين د مانځه زينت شي نو بيا خو شيعه ګانو مونځ دلامذهبانو د مونځ په نسبت ډير مزين دى، ځكه چې هر ركعت يې درفع اليدين په زينت مزين دى ، هره سجده يې درفع اليدين په زينت مزينه ده، هر سلام يې درفع اليدين په زينت مزين دى، بيا دې غير مقلدين په ښكاره په كومه امام باره كې منجاوران شي چې په زينت يې ارمان ووځي.

لامذهبان وايي چې: د حضرت عبد الملك څخه روايت دى چې ما د سعيد بن جبير رَحِمَهُ اللَّهُ څخه د رفع اليدين په باره كې پوښتنه وكړه هغه وفرمايل: چې دا داسې شى دى چې ستا مونځ ښايسته كوي.[جزء رفع اليدين رقم الحديث ۳۹]. لكن د امام بخاري استاذ ابوبكر بن أبى شيبة د سعيد بن جبير رَحِمَهُ اللَّهُ قول رانقل كړى دى هلته يې صرف تكبيراتو د انتقالاتو ته زينت ويلي دي [مصنف ابن ابى شيبة ج۲/ ص۲۴۱]. په دې كې د رفع اليدين څرك هم نه شته. البته امام بخاري د سفيان عن عبد الملك څخه د رفع اليدين زينت والى رانقل كړى دى او زينت چونكې د اصل شي څخه خارج وي لدې وجې به ددې څخه د تكبير تحريمه رفع اليدين مراد وي، البته په بيهقي كې ددې څخه وروسته دى چې صحابه وو به د ركوع رفع اليدين كول لكن د هغې په سند كې يعقوب بن يوسف الأخرم دى چې توثيق يې ندى معلوم.

**خلاصه**: دکومې فرقې ابتداء چې په قرآن باندې د دروغو څخه جوړه شوی وي او په دروغو يې خپل مساجد مزين کړی وي هغوی ته به څنګه درشتيا و توفيق ور په برخه شي.

بسم الله الرحمن الرحيم

(۱) اخرج البيهقي في الخلافيات (كذافي مختصرالخلافيات ص ۷٦ج۱).

عن ابي عبدالله الحافظ عن جعفربن محمدابن نصرعن عبد الرحمن بن قريش بن خزيمة الهروي عن عبدالله بن احمد الدمجي عن الحسن بن عبدالله بن حمدان الرقي حدثنا عصمة بن محمد الانصاري ثنا موسي بن عقبه عن نافع عن ابن عمرؓان رسول اللهﷺكان اذا افتتح الصلوة رفع يديه واذاركع واذارفع راسه من الركوع وكان لايفعل ذلک في السجودفمازالت تلک صلوته حتي لقي الله.

(۲) ددې حديث دسند اول راوي امام بهيقي رحمه الله دی، چې دامام شافعي رحمه الله مقلددی اوداحنافوسره يې سخت تعصب لرلو اودامام شافعي رحمه الله په تقليد کې دومره سخت وو چې ابو محمد الجويني چې لوی محدث وو اودامام شافعي صاحب مقلدوو، ليکن داجتهادملکه يې لرله، کله يې چې دامام شافعي رحمه الله تقليدپريښودلو اوخپل اجتهاديې شروع کړو، نوامام بهيقي ورته وليکل چې دامام شافعي رحمه الله دتقليد پريښودل هيڅکله ندی جائز. (مجموعة الرسائل ج۳\ص ۲۵٤/ بحواله طبقات شافعيه/ وتجليات صفدر،ج ۲ص ۳۸٤ )

نوامام بهيقي په تقليد شخصي کې دومره سخت وو اوتقليد شخصي ته لامذهبان شرک وايې دځناوروطريقه ورته وايې، ديهودو او دنصاراوو او دابوجهل په نقش قدم باندې تلل ورته وايې، نوداسې سندچې ابتداء يې ستاسو په فتوی دداسې راوي څخه شوی وي ايادابه صحيح وي؟ اوسره ددينه چې امام بهيقي دا حديث په سنن کبری کې هم ندی ذکرکړی.

(۲) ددې حديث دوهم راوي ابوعبدالله الحافظ امام حاکم دی، لکه څرنګه چې زمخشري دتفسير په فن کې اتفاقي امام دی ليکن عقيدةً معتزلي دی، لدې وجهې دده کومه خبره چې داعتزال په تائيدکې وي هغه به نه منل کيږي.

همدارنګه امام حاکم دحديثو په فن کې امام دی ليکن په تذکرة الحفاظ ج ۳\ص ۹٦۲کې يې دده دمذهب په باره کې ليکلې دي چې : (رافضي خبيث) (تذکرالحفاظ ج۳\ص ۹٦۲ميزان ج۳\ ص٦۸۰) اولامذهبه نواب صديق حسن خان ورته غالي شيعه وايې، نودده هغه خبره چې دشيعيت په تائيدکې وي

هغه به نه منل کيږي. او عجيبه لاداده چې دده په کتاب مستدرک حاکم کې تر موضوعاتو پورې احاديث شته. (تلخيص المستدرک للذهبي ج۳\ص ۱۶۰) ليکن بيايې هم دا حديث په خپل کتاب کې ندی ذکر کړی، ځکه چې دا حديث دده په نيزد موضوعاتو څخه هم زيات بې اعتماده دی.

(۳) ددې حديث دريم راوي جعفربن محمدبن نصررحمه الله دی او امام حاکم ترينه په عن سره روايت کړی دی دده عدالت حفظ او اتصال ثابت کړئ.

(۴) څلورم راوي عبدالرحمن بن قريش دی چې متهم بالوضع وو: (اتهمه السليمان بوضع الاحاديث ميزان الاعتدال ج۳\ص ۵۸۲).

دا ډيره سخته جرحه ده لدې وجهې اصحابو دصحاح سته وودده څخه يو حديث هم ندی روايت کړی دخطيب عدم علم ته نه علامه ذهبي اعتبارورکړی دی او نه علامه ابن حجراعتبارورکړی دی.

ددې دوا ړو رواېمه وو داسماء الرجال په خلاف ورته لامذهبه پيربديع الدين پيرجهنډ اصالح الحديث ويلي دی .(جلاءالعينين ص ۱۲۹) چې دادلامذهبانو دتعصب انتها او دموضوعي احاديثو سرپرستي ده.

(۵) ددې حديث دسند پنځم راوي عبدالله بن احمد الدمجي دی، دده څخه په اصحابو دصحاح سته وو کې چا يو حديث هم ندی روايت کړی، لدې وجهې دده عدالت اوضبط دکتبو داسماء الرجالو څخه ثابت کړئ.

(۶) ددې حديث دسند شپږم راوي عبدالله بن حمدان الرقي دی، دده څخه هم په اصحابو دصحاح سته وو کې چا روايت ندی کړی، دده عدالت اوضبط هم دکتبو داسماء الرجالو څخه ثابت کړئ.

(۷) ددې حديث دسند اوم راوي عصمه بن محمد انصاري دی، امام ابو حاتم فرمايې چې قوي نه وو. امام يحيی بن معين رحمه الله فرمايې چې اول نمبر دروغجن او ددروغو حديث جوړوونکی وو، دارقطني ورته متروک وايي او ابن عدي وايي چې دده ټول حديثونه غير محفوظ دي. (ميزان الاعتدال ج۳\ص ۶۸). (عصمه بن محمد من اکذب الناس) دټولو انسانانو څخه زيات دروغجن وو، اول نمبر دروغجن او ددروغو احاديثو جوړوونکی وو. (تاريخ بغداد ج۱۲\ص۲۸۶) لامذهبه غيرمقلد شوکاني ليکلی دی چې (کذاب وضاع) دروغجن او دموضوعي احاديثو جوړوونکی وو. (الفوائدالمجموعة في الاحاديث الموضوعة ص ۶۷)

**نوټ:** رسول اللهﷺ فرمايي : من کذب علي متعمدا فليتبوء مقعده من النار.

دروغجن حديثونه دالله ﷺ دنبي طرفته منسوبول ځانته په اورکې ځاى تيارول دي، ليکن لامذهبه پيربديع الدين المعروف پيرجهنډا کوشش کړى دى، چې دادروغجن حديث صحيح ثابت کړي، نودا دعوى يې کړى ده چې داراوي عصمه بن محمد شيخ من اهل خراسان دى. (حلاء العينين ص١٢٨)

کوم نوم چې دى لامذهبه ذکرکړى دى، دهغه انصاري والى تر قيامته پورې نه شي ثابتولى اوهمدارنګه محمدبن عصمه دموسى بن عقبه څخه روايت کړى دى اوپه کتبود اسماء الرجال کې ددې تصريح ده چې دموسى بن عقبه شاګرد محمدبن عصمه انصاري دى، ټول لامذهبان دى راټول شي اودموسى بن عقبه په شاګردانوکې دې دشيخ خراسان نوم دکوم معتبرکتاب څخه وښايې، دوى پداسې دروغجنواحاديثوثابته کړه چې ددى يتيم مسلک علمي سرمايه دغه قسم موضوعي روايات دى.

(٨) ددې حديث اتم راوي موسى بن عقبه دى، موسى بن عقبه دصحاح سته وو راوي اودمغازي امام دى، دده روايات تعليقًا په بخاري ج١\ص١٠٢) کې اومسندًا په السنن الکبرى بهيقي ج١\ص٧٠) کې راغلى دى، هلته دده شاګرد ابراهيم بن طهمان دى چې دصحاح سته وو راوي دى، ليکن هلته دفمازالت تلک صلوته جمله هيڅکله نشته، داټوله دمحمدبن عصمه جعل کاري ده.

(٩) داحديث دنافع څخه عبيدالله، ايوب، مالک، ابن جريج، الليث، صالح بن کيسان، زيدبن واقد، موسى بن عقبه، عمربن زيدروايت کړى دى ليکن پدوي کې هيچاهم دفمازالت الخ جمله نده ذکرکړې.

(١٠) دنافع درفع اليدين روايت دمحقيقينوپه نيزموقوف دى، خپله امام بخاري رحمه الله په نيمه ژبه ددې اقرارکوى اوابوداود خو صراحة ليکلي دي چې داموقوف دى مرفوع ندى ليکن پدې دروغجن روايت کې محمدبن عصمه ترينه مرفوع جوړکړى دى.

(١١) دحديث پاک صحيح الفاظ هغه دي چې په بخاري ج١\ص١١٠) کې دابوهريرة رضی الله عنه څخه اوپه موطاامام مالک ص٧٣) کې دعلي بن الحسين څخه مرسلًا مروي دى، چې رسول الله ﷺ دهر ټيټيدلو اوجيګيدلوپه وخت کې الله اکبرويلى دى اوهمدالمونځ درسول الله ﷺ تراخرعمره پورې وو.

الحمدلله احناف په دې حديث عمل کوي، دهرو ټيټيدلو اوجيګيدلو په وخت کې صرف الله اکبروايي ليکن الله ﷻ لامذهبانوپه تقدير کې په صحيح حديث باندې عمل ندى ليکلى.

(١٢) علامه نيموي په اثار السنن ج١\ص١٠٠) کې اوپه بعضو نسخو کې (ص١٠٨) کې ددې

حديث په باره کې ليکلي دي چې : ( وهوحديث ضعيف بـل موضـوع ) او پـه حاشيه (تعليق الحسـن ) کې يې ددې موضوعيت په دلايلو ثابت کړي دي. د لامذهبو مشهور محدث عبدالرحمن مبارکپوري ددې دجـواب څخـه عـاجزه شـوې دی او ليکلـي يـې دي چـې زمونږاصـل اسـتدلال ددې حـديث څخـه ندی(ابكارالمنن ج١ص ٢٠٣).

خلاصه دا چې ددې روايت يوراوي غـالي شيعه دی، درې راويـان يـې مجهول دي او دوه دروغجن دي که غيرمقلدين دا حديث چې يو شيعه، درې مجهول او دوه دروغژن په کې دي، بیاهم منی، نوبيا دا دوه حديثونه ولې نه منې چې صرف يويو کذاب راوي په کې دي.

**اول :** عن انس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من رفع يديه فی الرکوع فلاصلوة له. (نصب الرايه ،ج ١ص ٤٠٤) رسول الله ﷺ فرمائي چې : چاچې رکوع رفع اليدين وکړل لمونځ يې نه کيږي.

**دوهم :** عن ابی هريره ﷺ عن النبی ﷺ انه قال : من رفع يديه فی الصلوة فلاصـلوة له. (نصب الرايه ،ج ١ص ٤٠٥). رسول الله ﷺ فرمائي چې چاچې په لمانځه کې رفع اليدين وکړل لمونځ يې نکيږي.

دا په يادلرئ چې دحاکم شيعه او دابن الجوزی متشدد، هيڅ قـول بلادليله نه منل کيږي ،په دې دواړورو ايتونـو کې يويـو راوي کـذاب دی، نوديـو کس لـه وجهـې دا روايـت ردوي او ديو شـيعه ، درې مجهولو اودووکذابوراويانوروايت څرنګه منې ؟

دلامذهبانو دمناظراعظم مولوي ثناءالله امرتسری او دمولـوي غـلام محمدصاحب په جلال پور کې مناظره وه هلته ددوی ثالث شيعه وو، هغه داسې ليکلي ووچې مولوي ثناءالله دبهيقي حديث پيش کړو، چې معنی يې داده چې رسول الله ﷺ تراخرعمره پورې رفع اليدين کړي دي، په جواب کې مولوي غـلام محمدصـاحب ددې حـديث پـه راويـانو کې عصـمه بـن محمد داسماء الرجـال پـه حوالـه متـروک ثابت کړو او عبدالرحمن بن قريش بن خزيمه يې دذهبي په حواله په وضع متهم کړو، زه هم دا تسليموم. (سيرت سنايي ص ٤٣٦- دلامذهبانو معتمدکتاب).

## دعوامو په مخ کې د لامذهبانو دروغ

ځيني لامذهبانو عوامو تـه ددوهکي ورکولو کوشش کـړی دی، چـې زمونږاحاديث ډيـر دي، لـدې

وجهې چې کوم طرف ته احاديث زيات وي په هغې عمل پکاردی، حالانکې داددوي خالص دروغ دي اوددې دروغو موقع ځکه دوي ته په لاس ورغلی ده چې دوی خپل مسلک پټوي، خپل مسلک پوره نه واضحه کوي ددوي مسلک د څلورو خبرو مجموعه ده.

**الف:** داول اودريم رکعت په شروع کې رفع اليدين کول سنت مؤکده دي.

**ب:** ددوهم او د څلورم رکعت په شروع کې رفع اليدين کول د سنتو مؤکده وو څخه مخالف دي.

**ج:** رکوع ته دتللو اودرکوع څخه دراپورته کيدلو په وخت کې رفع اليدين کول سنت مؤکده دي.

**د:** سجدو ته دتللو اودسجدو څخه دراپورته کيدلو په وخت کې رفع اليدين کول دسنتو څخه مخالف دي نو دغيرمقلدينو لپاره هغه حديث دليل جوړيدلی شي چې دا څلور خبرې پکې صراحة راشي. حالانکه داسې حديث په دنيا کې يوهم نه شته.

(۱) دابوبکرصديقؓ په حديث کې دريم رکعت ته دپاڅيدلو درفع اليدين ذکرندی شوی، چې مذکورندی سنت به ورته څنګه ووايې؟ددوهم او د څلورم رکعت رفع اليدين ته پکې خلاف سنت ندی ويلی شوی ،اودسجدورفع اليدين ته هم پکې خلاف سنت ندی ويلی شوی ،اودرکوع رفع اليدين ته هم پکې سنت ندی ويلی شوی، ددې بالعکس احناف چې دابوبکرصديقؓ کوم روايت پيش کوي چې داول تکبيرڅخه وروسته يې رفع اليدين ندی، کړی زمونږ په دعوی باندې مکمل دليل دی.

(۲) دحضرت عمرؓ طرف تـه يې چې کـوم حديث منسـوب کـړی دی، پـه هغـې کـې هم ددوي دا څلورخبرې نشته.

(۳) دحضرت عثمانؓ پورې خولامذهبان ددروغوروايت تړی دهغـه څخـه پـدې بـاب کـې هيڅ حديث نشته.

(۴) دحضرت عليؓ په روايت کې هم ددې څلورو خبرو تصريح نشته .بلکې هلته د(اذقام من السجدتين) صفامعنی داده چې د دوهم او د څلورم رکعت په شروع کې يې هم رفع اليدين کړی دی، ددې بالعکس مونږ چې دحضرت عليؓ کوم روايت پيش کوو په هغې کې زمونږدعوی پوره موجوده ده.

(۵) دحضرت ابن عمرؓ حديث په شپږو طريقو مروي دی، چې پـه يـوه طريقـه کـې دسجدودرفع اليدين ذکرهم شوی دی او پـه يـوه طريقـه کـې دهرخفض اورفـع سـره درفـع اليـدين ذکـردی، احناف چې

د حضرت عبدالله بن عمر ﷛ کوم احاديث پيش کوي هغه ددوی په مسلک بالکل صريح دي .

(٦) د حضرت مالک بن حويرث ﷛ په حديث کې هم دسجدو په وخت کې د رفع اليدين ذکر دی اودريم رکعت ته دپورته کيدلو رفع اليدين پکې ندي ذکر شوي، نو سنت به ورته څرنګه ووايې اودوهم اوڅلورم رکعت ته . دپورته کيدلو رفع اليدين ته يې خلاف سنت هم ندي ويلی .

همدارنګه د حضرت ابو هريره ﷛، حضرت جابر ﷛، حضرت عبدالله بن عباس ﷛، حضرت وايل ﷛ ،حضرت عبدالله بن زبير ﷛، حضرت عبيد بن عمر ﷛ وغيره احاديثو کې دسجدو د رفع اليدين اوياد هر تکبير سره د رفع اليدين ذکر دی، لامذهبان چې دا احاديث په خپلو دلايلو کې شماری دا خالصه بدديانتي ده .

لامذهبانو ! که د تعصب د هلاکت د کندې څخه لږ سر راپورته کړئ نو مسئله دومره نده مشکله .

(۱) د تکبير تحريمه رفع اليدين اتفاقي دی، ځکه چې د دې رفع اليدين هم حکم رسول الله ﷺ ورکړی دی اوهم يې پرې عمل کړی دی او ددې رفع اليدين پرېښودل په يو حديث کې هم ندي ثابت، لدې وجهې مونږ يې هم نه پرېږدو او تاسو يې هم نه پرېږدئ .

(۲) دسجدو د رفع اليدين په باره کې دنبي ﷺ هيڅ حکم نشته، البته د رسول الله ﷺ څخه عملاً ثابت دی د حضرت مالک بن حويرث ﷛ په حديث کې نسايې ج۱\ص۵۶ د حضرت وايل بن حجر ﷛ په حديث کې ابوداود ج۱\ص۱۱۲) د حضرت ابن عباس ﷛ حضرت عمير ﷛ او حضرت ابو هرير ﷛ په حديث کې ابن ماجه ص۶۲) د حضرت ابو حميد الساعد ﷛ او حضرت ابن زبير ﷛ په حديث کې ابوداود ج۱\ص ۱۱۱ وص ۱۱۲) د حضرت انس ﷛ په حديث کې ابن ابي شيبه ج۱\ص۲۶۶) د حضرت جابر ﷛ په حديث کې تاريخ کبير امام بخاري ج۴\ص۱۰۵) او د حضرت ابن عمر ﷛ په حديث کې مجمع الزوايد ج۲\ص۱۰۲) دغې صحابه وو ستاسو د ماضي استمراري په صيغو باندې دسجدو د رفع اليدين روايت کړی دی، د دې په راويانو کې ستاسو په ګمان متاخر الاسلام صحابه ﷛ هم موجود وو، د دې احاديثو په مقابل کې يو د ابن عمر ﷛ متعارض حديث دی چې: (لايفعل ذلک في السجود) او يو د ابو موسی اشعري ﷛ ضعيف حديث دی، ليکن تاسو هم پدې احاديثو عمل پرېښی دی او مونږ هم پرېښی دی .

اختلاف د رکوع والا په رفع اليدين کې دی، که ستاسو سره د رکوع د رفع اليدين په باره کې داسې ثبوت وي لکه د اول تکبير د رفع اليدين په باره کې چې دی، چې رسول الله ﷺ د دې حکم ورکړی وي او په

عملي طوريې تول عمر رفع اليدين كړی وي او ددې د پريښودلو په باره کې هيڅ حديث نوي، نودا به هم داول تکبيرپه شان سنت مؤکد شي، ليکن ظاهره ده چې رسول اللهﷺ درکوع درفع اليدين حکم هيڅکله نه دی ورکړی او نه هيڅ داسې صحيح حديث شته چې رسول اللهﷺ هميشه درکوع رفع اليدين کړی دی بلکې دتکبيرتحريمه څخه وروسته دنورورفع اليدينو دپريښودلو احاديث ډيرزيات دي، نو چې رسول اللهﷺ پريښی دي ،خلفاء راشيدينو پريښی دي ، جمهورو صحابه وو، تابعينو ،اوتبع تابعينو پريښي دی، نو نورتاسو ته څه عذرپاتې شو؟

**لامذهبانو!** تاسو چې ددې سنت (ترک رفع اليدين) په خلاف قلمونه او کاغذونه رااخستي دي او په هرمسجدکې موفسادونه جوړکړي دي، نويقيناً چې دادحديثو ددشمنۍ بدترين مثال دی او دا احنافو چې ددې سنتو (ترک درفع اليدين) دژوندي وساتلو سره مينه ده، نويقيناً چې احنافو ته پدې سنت باندې دعمل کولو په وجه دنص دحديث په وجه دسلو شهيدانو اجردی.

## دترک درفع اليدين دترجيح وجوه

(۱) څوک چې داحنافو دمسلک څخه واقفيت لري هغه به په دې خبره ضرورپوهيدلی وي، چې داحنافو دا اصول دي چې دکومې مسئلي په باره کې مختلف روايتونه راشي نو احناف کثرالله سوادهم په هغه روايتونو عمل کوي چې دقرآن کريم سره موافق وي، پدې مسئله کې هم احناف دترک درفع اليدين په رواياتو عمل کوي، ځکه چې دقرآن کريم سره موافق دي، ځکه چې الله ﷻ فرمايې چې: ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ﴾. يقيناً چې هغه مؤمنان کامياب دي چې هغوی په خپلو لمونځونو کې خشوع کوي او خشوع درفع اليدين سره منافي ده، امام بهيقی باب لګولی دی په نوم د باب الخشوع في الصلوة والاقبال عليه. او دهغې لاندې يې د ترک درفع اليدين روايات راوړي دي ج۲/ ص۲۷۹، همدارنګه الله جل جلاله فرمايي چې: ﴿قوموا لله قانتين﴾

حضرت عبدالله ابن عباس﷜فرمايي :(ای ساکنين ساکتين) اوپه ترک رفع اليدين کې سکون دی په نظرسره رفع اليدين ته.

(۲) درفع ځينې قسمونه بالاتفاق متروک دي، لکه دداړو سجدو په منيځ کې رفع اليدين کول،

داخبره ددې قرينه ده چې پدې کې نسخ واقع شوی ده، لهذا په متفق عليه باندې عمل کول ډير بهتر دي .

(۳) پـه لمانځـه کـې د حرکاتو څخـه دسـکون طرفتـه انتقـال واقـع شـويدی لکـه څرنګـه چـې پـه ابتداءداسلام کې عمل کثير،سلام اچول ، خبرې کـول ،تلل راتلل جائزوو او مسبوق مقتدي به اول خپل تيرشوی لمونځ کولـو ،ليکن وروسته داټول حرکات منسوخ شـول نـو دتعـارض پـه وخـت کـې پـه هغـه روايتونو عمل کول بهتر دي کوم چې په سکون دلالت کوي .

(۴) د رفع اليدين ټول روايات فعلي دي، د احاديثو په ټوله ذخيره کې څوک يو داسې روايت هم نشي پيدا کولی چې په هغې د رفع اليدين امر وي او يا کم از کم د رسول الله صلی الله عليه وسلم په ژبه د رفع اليدين لفظ د کولو سره راغلی وي او د ترک د رفع اليدين روايت قولي هم شته او فعلي هم شته او چې کله دقولي اوفعلي رواياتو په مينځ کې تعارض راشي نو قولي رواياتو ته ترجيح ورکولی شي.

(۵) فعلي روايات متعارض دي اوقولي روايات دتعارض څخه خالي دي . لهذا فعلي روايات دتعارض له وجهې حجت نشي جوړيدلی، نو قولي روايات به حجت وي او قولي روايات صرف او صرف د ترک د رفع اليدين په باره کې راغلي دی.

(٦) دترک درفع اليدين راويان هغه صحابه دي چې مشران او فقهاوو او په اول صف کې ودريدل . ددې په خلاف درفع اليدين مرکزي راوي ابن عمر رضی الله عنهما درسول الله ﷺ په زمانه کې ماشوم وو، لـه همـدې وجهـې پـه غـزوه داحـد کې نـه وو شـريک شـوی او حضـرت مالـک بـن حـويرث ﷺ دشلو شپو مسافر وو .

(۷) دتکبير تحريمه څخه وروسته رفع اليدين دسنتيت او نسخ دسنتيت په مينځ کې دايردي او کوم شی چې دسنتيت او دبدعت والي په مينځ کې داير شي نو دبدعتوالي اړخ ته به يې ترجيح ورکولی شي له همدې وجهې هميشه محرم ته په مبيح باندې ترجيح حاصله وي.

(۸) دترک درفع راويان ډيرأفقه دي.

(۹) دترک درفع اليدين په رواياتو دخلفاء راشدينو عمل وو.

(۱۰) دترک درفع اليدين په رواياتو دصحابه وو، تابعينو او تبع تابعينو، متواتر عمل وو.

(۱۱) په څلورو امامانو کې دترک درفع اليدين قائلين د استاذانو په مرتبه کې دي، چې امام ابوحنيفه او

مام مالک دي او د رفع اليدين قائلين ددوي شاگردان وو چې امام شافعي او امام احمد بن حنبل دی.

## دفقه حنفي پورې افتراء

(۱) مولوي محمد يوسف جې پورې ليکلي دي په حقيقة الفقه ص ۱۹۴ کې درفع اليدين تصديق په (هدايه ج/۱ ص ٤٨٤/ شرح وقايه ج/۱ ص ۱۰۲) کې شوی دی.

(۲) بيايې په خپل کتاب حقيقة الفقه ص ۱۹۴) کې ليکلي دي چې درفع اليدين احاديث په نسبت سره ترک درفع اليدين ته قوي دي او حواله يې په (هدايه ج۱\ص۳۸۹) باندې ورکړې ده.

(۳) حقيقة الفقه ص۱۹۴ کې يې ليکلي دي چې د ترک درفع اليدين احاديث ضعيف دی او حواله يې په (شرح الوقايه ص ۱۰۲) باندې ورکړې ده.

(۴) بيايې ليکلي دي په حقيقة الفقه ص ۱۹۵ کې چې حق داده چې درسول اللهﷺ څخه رفع اليدين صحيح ثابت دي او حواله يې په (هدايه ج۱\ص ۳۸٦) باندې ورکړې ده.

(۵) بيايې ليکلي دي په حقيقة الفقه ص ۱۹۵) کې چې څوک رفع اليدين کوي دهغه سره مناقشه نده حلاله او حواله يې په (هدايه ج۱\ص ۳۸۹) باندې ورکړې ده.

(٦) لامذهبه حکيم صادق سيالکوټي ليکلي دي چې عشره وو مبشره درسول اللهﷺ څخه درفع اليدين روايت کړی دی چې رسول اللهﷺ ترهغې پورې رفع اليدين کول ترڅو چې يې ددنيا څخه رحلت وکړو. (صلوة الرسول ص ٤١٦) داټول دروغ دي په محوله کتابونو کې نشته.

ددومره دروغو حوصله نه په يهودو کې شته او نه په نصارا وو کې شته، دا يوازې دلامذهبو حوصله ده، په حنفي مذهب کې دايمه يې ثلاثه وو مسلک اتفاقاً ترک درفع اليدين دی، ليکن لامذهبان ددې په خلاف دشاولي الله رحمه الله او مولنا عبدالحی رحمه الله قولونه پيش کوي.

نو لامذهبانو! ايا رسول اللهﷺ (معاذالله) تاسو ته داحکم کړی دی، چې دروغ ووايې، غلطي حوالې ورکړئ ناقص عبارتونه رانقل کړئ او دې هر څه ته بيا عمل بالحديث هم ووايې؟

**لومړی فصل:** رفع اليدين عندالركوع منسوخ دی، له احاديثو او آثارو څخه معلوميږي چې: مخکې په لمانځه کې ډېر امور جائز وو چې بيا وروسته ختم شو. په [ابوداؤد /رقم ۵۰۶] کې د حضرت معاذ رضی الله عنه په حديث کې د دريو تغيراتو ذکر دی، مخکې په لمانځه کې دخبرو کول جايز ؤ، د سلام د ځواب ورکول جايز و، په لمانځه کې اشارې کول جايز و، چې دا ټول کارونه بيا وروسته ممنوع وګرځېدل.

د [مسلم د ج ۱/ص ۱۸۱/رقم ۹۷۰] په حديث کې راغلي دي چې: مونږ به چې له حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم سره لمونځ کاوه، نو د سلام په وخت کې به مو په دواړو لاسونو باندې اشاره کوله. چې بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم له دې کار څخه منع کړو.

## د حضرت جابر رضی الله عنه له حديث څخه د نسخ له پاره استدلال

د لمانځه په داخل کې د (رفع اليدين) په باره کې د حضرت جابر رضی الله تعالی عنه په حديث کې داسې راغلي دي چې: ( خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ مَا لِي أَرَاكُم رَافِعِي أَيدِيكُم كَأَنَّهَا أَذنَابُ خَيل شمسٍ أُسكُنُوا فِي الصَّلٰوةِ ) [ صحيح مسلم / الامر بالسكون فى الصلوة/ رقم ۹۶۸ / سُنن نسائی / رقم ۱۱۶۵ / ابوداود / رقم ۱۰۰۰ / طحاوی / رقم ۲۵۶۹ / مسند احمد / رقم ۲۰۳۶۲ و ۲۰۴۵۰ و ۲۰۴۵۶ و ۲۰۵۲۲ / جزء رفع اليدين / بخاری / رقم ۳۷ ].

يعنې يوه ورځ حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم د باندې راووت او ويې وفرمايل چې: زه ولې تاسې ګورم چې په لمانځه کې دننه د شريرو آسونو د لکيو په شان رفع اليدين کوئ، په لمانځه کې تل ساکن اوسېږئ! يعنې رفع اليدين مه کوئ! په دې حديث مبارک کې رسول الله صلی الله عليه وسلم په دريو مختلفو طريقو باندې د لمانځه په داخل کې له رفع اليدين څخه منعه کړې ده.

۱- د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم دا جمله چې: ( ما لي أراكم ) ده، په دې کې استفهام د انکار له پاره دی، چې معنا يې د مخاطب منعه کول دي.

۲- د حضرت رسو ل الله صلی الله عليه وسلم په دې جمله کې چې: (کأنها اذناب خيل شمسٍ) ده، د رفع اليدين تشبيه د شريرو آسونو د لکيو سره ورکړل شوې ده. په دې کې هم په (رفع اليدين) باندې د ناخوښي ظاهرول مقصود دي.

۳-د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم دا ارشاد چې: (اسكنوا فى الصلوة) دى. په دې كې صراحةً د (رفع اليدين) څخه منعه ده. حضرت مولنا ظفر احمد عثماني رحمه الله فرمايي چې: په دې حديث كې رسول الله صلى الله عليه وسلم امر كړى دى چې: د (رفع اليدين) په خلاف په لمانځه كې سُكون اختيار كړى، نو سُكون د (رفع اليدين) سره منافي دى. [اعلاء السُنن / ج ۳ / ص ۵۶].

حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې: (تحريمُها التكبيرُ وتحليلها التسليمُ) نو د تكبير تحريمه څخه تر سلام پورې د لمانځه د داخل حِصه ده، چې (فى الصلوة) ورته ويلى شي. په دې كې د لمانځه په داخل كې ټول رفع اليدينونه داخل شو، هغه كه د دوهم، دريم او د څلورم ركعت د شروع رفع اليدينونه دي. او كه ركوع ته د ټيټيدلو او د ركوع څخه د راپورت كېدلو دي او كه سجدو ته د تللو او د سجدو څخه د راجگېدلو دي.

نو په دې ټولو رفع اليدينونو باندې حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم د خفگان اظهار كړى دى. د شريرو آسونو د لكيو سره يې مشابِه كړي دي. او دا رفع اليدين يې له سُكون سره منافي كرځولي دي.

د مكې مكرمې مشهور مُحدّث او د مشكوة شريف شارح ملا علي قارى رحمه الله فرمايي چې: رواه مسلم ويفيد النسخَ. [ شرح نقايه/ ج ۱ / ۷۸ ] . دا حديث مسلم شريف روايت كړى دى او مفيد د نسخ دى.

د حضرت مولنا خليل احمد سهارنپوري رحمه الله فرمايي چې: د تكبير تحريمه څخه په وروستنيو انتقالاتو كې (رفع اليدين) د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه ثابت دى. او بيا دا هم ثابته ده چې: حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم دا (رفع اليدينونه) پرېښي دي. د پرېښودلو څخه وروسته چې بيا هم رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه كرام رضى الله عنهم په (رفع اليدين) كولو باندې وليدل نو مسنوخ يې كړل. او په (سختى سره يې) منعه كړل. په دې باندې د [ شميم بن طرفه عن جابر بن سمرة / صحيح مسلم / رقم ۹۶۸ ] حديث دليل دى. [ بذل المجهود / ج ۴ / ص ۲۸۵ / طبع قديمي كُتب خانه آرام باغ كراچى ].

## د يوې اشتباه اِزاله

د مسلم شريف د دې حديث پسې متصل [ رقم ۹۷۰ ] کې هم د ( كأنها أذناب خيل شمس ) جُمله ده. هغه د سلام په وخت کې د اشارو سره تعلق لري، نو کله چې په دواړو حديثونو کې دا جمله راغلې ده، نو ځينې خلک پکې د غلط فهمۍ ښکار شول او د [ رقم ۹۶۸ او ۹۷۰ ] دواړو حديثونو څخه يې يو حديث جوړ کړو او يوه واقعه يې کړه، حالانکه په دواړو حديثونو کې معمولي فکر وشي، نو دا به د لمر په شان راظاهره شي، چې دا يو حديث نه دی، بلکې دا دوه حديثونه دي. او دوه واقعې پکې ذکر شوي دي. او د يو حديث مضمون د بل څخه بالکل مختلف دی.

۱- په يو حديث کې د ( خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ) جُمله ده، چې دا په دې کې صريحه ده چې په دې لمونځ کې رسول الله صلى الله عليه وسلم د صحابه وو سره شريک نه و. او په بل حديث کې د ( كنّا اذا صلّينا مع النبى صلى الله عليه وسلم ) جُمله ده، چې دا په دې دلالت کوي چې په دې لمونځ کې دوی د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم سره شريک وو.

۲- په يو حديث کې د انفرادي لمونځ بيان دی، لکه ( خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ) چې ورباندې دلالت کوي، ځکه چې د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم په موجودگۍ کې په جماعت باندې لمونځ خپله رسول الله صلى الله عليه وسلم ورکاوه. او په بل حديث کې د جماعت د لمانځه بيان دی. لکه د ( كنّا اذا صلّينا مع النبى صلى الله عليه وسلم ) جمله چې ورباندې دلالت کوي.

۳- په اول حديث کې د ( اسكنوا فى الصلوة ) جمله ده، چې په دوهم حديث کې نشته، بلکې هلته يې د سلام طريقه ښودلې ده.

۴- په اول حديث کې د ( رافعى ايديكم ) جمله ده، چې په بار بار رفع اليدين باندې دلالت کوي او په دوهم حديث کې دا نشته، بلکې د ( تؤمون ) ذکر دی.

۵- د دواړو حديثونو سندونه بالکل بدل دي.

دا ټول په دې دلالت کوي چې دا بالکل دوه جُدا جُدا واقعې دي. [ مرقات شرح مشكاة / ج ۱ / ص ۴۶۷ ].

## په لمانځه کې په تدريج سره د رفع اليدين د ختميدلو څخه د نسخې له پاره استدلال

## په احاديثو کې د رفع اليدين د مقاماتو ذِکر

۱–په ځينې رواياتو کې يوازې د تکبير تحريمه په وخت کې د (رفع اليدين) ذِکر دی، مثلاً وګوره [نسائی /رقم ۱۰۲۶ او ۱۰۵۸]. همدارنګه [ابوداؤد /حديث نمبر ۷۲۵ / دار قطنی /رقم ۱۱۰۶ و غيره].

۲–په ځينې رواياتو کې له رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کې هم د (رفع اليدين) ذِکر دی. مثلاً وګوره : [موطأ امام مالک / حديث نمبر ۲۰۰ و حديث نمبر ۲۰۵].

۳–په ځينې رواياتو کې رکوع ته د تللو او له رکوع څخه د پورت کېدلو په وخت کې هم د رفع اليدين ذِکر دی. مثلاً وګوره [حديث بخاري / ج ۱ / ص ۱۰۲ / رقم الحديث ۷۳۶].

۴–په ځينې رواياتو کې سجدې ته د تللو په وخت کې هم د رفع اليدين ذِکر دی. مثلاً وګوره [نسائی/رقم الحديث ۱۰۸۵ و رقم ۱۰۸۶ و رقم ۱۰۸۷ و رقم ۱۱۴۳ و مشکوة تحقيق البانی /رقم ۷۹۵ / مجمع الزوايد /رقم الحديث ۲۵۸۵ و رقم ۲۵۹۰ و ابن ماجه /رقم ۸۶۰ / و ابوداؤد /رقم ۷۲۳ والجوهر النقی /ج ۲ / ص ۱۳۷ وتعليقات الالبانی علی المشکوة / خاشيه / حديث نمبر ۷۹۷].

۵– په ځينې رواياتو کې د دواړو سجدو په منځ کې هم د رفع اليدين ذِکر دی. مثلاً وګوره : [ابوداؤد /رقم الحديث ۱۰۸ و رقم الحديث ۷۴۰ / نسائی /رقم الحديث ۱۱۴۳].

۶–په ځيې رواياتو کې د دريم رکعت په شروع کې هم د رفعِ اليدين ذِکر دی. مثلاً وګوره : [بخاری /رقم ۷۳۹ / ابوداؤد / رقم ۷۳۰ / ترمذی / رقم ۳۰۴ /ابوداؤد /رقم ۱۰۸ و رقم ۷۳۸ و رقم ۷۴۱ و رقم ۷۴۳ و رقم ۱۰۹ و رقم ۱۱۱ و رقم ۷۴۴].

۷–په ځينې رواياتو کې د هر ځل ټيټېدلو او پورته کېدلو سره د رفع اليدين ذِکر دی. مثلاً وګوره : [ابن ماجه /رقم ۸۶۱ و رقم ۸۶۵ / و تحفة الاخيار بترتيب شرحِ مشکل الاثار / ج ۲ / ص ۲۰ / طبع رياض /ترمذی مع حاشية احمد شاکر /ج ۲ / ص ۴۱].

له دې څخه وروسته په دې خبره د ټولو اِتفاق دی چې د (رفع اليدين) په معامله کې خامخا نسخ واقع شوې ده، ځکه چې شوافع او حنابله يوازې درې ځايه (رفع اليدين) کوي: يو د تکبير تحريمه.

دوهم رکوع ته دتللو او دریم رکوع څخه د پورت کېدلو په وخت کې . په ما بقی ځایونو کې ورته منسوخ وایي. او غیرِ مقلدین یواځې څلور ځایه رفع الیدین کوي: یو د تکبیر تحریمه، دوهم رکوع ته دتللو، دریم له رکوع څخه د پورته کېدلو او څلورم دریم رکعت ته د پورته کېدلو په وخت کې. او په مابقي ځایونو کې ورته منسوخ وایي. ځکه چې عمل وربانديې نه کوي او امام ابو حنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله یواځې د تکبیر تحریمه په وخت کې د (رفع الیدین) قایلین دي. په ما بقی ټولو ځایونو کې ورته منسوخ وایي، نو د تکبیر تحریمه په غیر منسوخ والي خو د ټولو اتفاق دی او نور معقول صورتونه یواځې دوه دي.

اول دا چې: یواځې د تکبیر تحریمه په وخت کې د رفع الیدین په روایاتو عمل وشي او د نورو ټولو روایاتو په باره کې دا وویل شي چې دا د مخکنی زمانې وو چې بیا وروسته منسوخ شو.

دوهم دا چې: د هر ځل ټیټېدلو او د جګېدلو په وخت کې د (رفع الیدین) په روایاتو عمل وشي او د نورو ټولو روایاتو په باره کې دا وویل شي چې دا منسوخ دي. لَکن اول صورت د تاریخ د لمونځ سره زیات موافق دی. ځکه چې لمونځ د حرکت څخه د سُکون طرف ته رانقل شوی دی او د سکون څخه د حرکت طرف ته نه دی نقل شوی.

د شوافعو او د حنابله وو رفع الیدین ځکه معقول رفع الیدین نه دی چې: یو طرف ته نسخ هم تسلیموي او بل طرف ته په آخري قِسم روایاتو عمل نه کوي بلکې په مینځنیو روایاتو باندې کوي. همدارنګه د لامذهبو رفع الیدین هم دی.

## د حضرت وایل رضی الله عنه څخه د نسخې له پاره استدلال

حضرت وایل رضی الله تعالی عنه چې کله په اول وار د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو نو د رکوع او د سجدو بلکې د هر تکبیر سره یې د رفع الیدین ذِکر وکړو، وګورا [ ابو داؤد / رقم الحدیث ۷۱۵ باب نمبر ۱۲۰/ مسند احمد / رقم الحدیث ۱۸۳۶۹ و رقم الحدیث ۱۸۳۷۳ ] . او دوهم ځل چې کله راغی نو خپله مشاهده یې یواځې د تکبیر تحریمه سره د رفع الیدین په باره کې بیان کړه او بس. (ثُمَّ اَتَیْتُهُمْ فَرَاَیْتُهُمْ یَرْفَعُوْنَ اَیْدِیَهُمْ اِلٰی صُدُوْرِهِمْ فِیْ افْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ) [ ابوداؤد /رقم الحدیث

۷۱۹] وفی رقم ۷۲۸ نحوه، کله چې زه دوهم ځل راغلم نو ما حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام ولیدل چې د لمانځه د شروع کولو په وخت کې یې د سینو پورې لاسونه اوچتول.

نو که له تکبیر تحریمه پرته په نورو ځایونو کې رفع الیدین منسوخ نه وای او حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه وو رضی الله عنهم رفع الیدین کولای، نو حضرت وایل رضی الله عنه به ضرور بیان کړی وای. لکه د اول ځل راتلو په وخت کې یې چې بیان کړی دی. حضرت وایل بن حجر رضی الله عنه هیڅ یو صحابي هم نه دی مستثنی کړی. له دې څخه معلومیږي چې د دوهم ځل راتلو په وخت کې بِلا استثناء ټولو صحابه وو رضی الله عنهم یوازې د اول تکبیر (تکبیر تحریمه) سره رفع الیدین کولو. د دې ښکاره او صحیح حدیث څخه معلومه شوه چې د تکبیر تحریمه څخه ماسوای نورو په ټولو ځایونو کې رفع الیدین منسوخ دی.

## د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه د نسخې له پاره استدلال

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم خصوصي خادم او بدري صحابي و. دې ﷺ په هغو صحابه وو رضی الله عنهم کې و چې په لومړي صف کې به دریدل. په سفر او حَضَر کې یې د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د حالاتو مُشاهِده کوله. هغه مبارک د تکبیر تحریمه څخه ماسوای په نورو مقاماتو کې رفع الیدین لیدلی و، لکن هغه یې روایت کړی نه دی. ځکه چې منسوخ و. روایت یې یوازې د هغه رفع الیدین کړی دی چې له نسخ څخه محفوظ وو. یعنې رفع الیدین عِند التحریمة. حضرت حصین بن عبدالرحمن رحمه الله فرمایي چې: زه د ابراهیم نخعي رحمه الله په مجلس کې حاضر وم، نو هغه ته عمرو بن مرة رحمه الله قصه کوله چې: مونږ د حضرموت په مسجد کې لمونځ کاوه، نو ماته حضرت علقمه رحمه الله د خپل پلار حضرت وایل رضی الله عنه څخه حدیث واوراوه او د رکوع او د سجدو د رفع الیدین ذکر یې پکې وکړ. په دې خبرې سره حضرت ابراهیم نخعي رحمه الله وفرمایل چې: د علقمه پلار یوازې کومه ورځ نیمه حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلی دی او رفع الیدین یې ذکر کړی دی. او حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه (چې حاضر باش صحابي دی) هغه د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم دا عمل نه دی یاد کړی؟ بیا حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله وفرمایل چې: (واورئ! رفع الیدین یوازې د لمانځه د شروع کولو په وخت کې

دی). [رواه الدارقطنی / کتاب الصلوة / باب ذِکر التکبیر و رفع الیدین عند الافتتاح / رقم ۱۱۰۶ و اسناده صحیح / آثار السّنن / حدیث نمبر ۴۰۰].

## د( رفع اليدين عندالركوع) په منسوخ والي باندې

## د حضرت عبدالله بن زبير رضى الله عنه تصريح

بې نظيره محدِّث علامه بدرُالدِّين عيني رحمه الله د (رفع اليدين) په منسوخوالي باندې دليل وړاندې كوي او فرمايي چې: وَالَّذِي يحْتَج بِهِ الْخصم من الرّفْع مَحْمُول على أَنه كَانَ فِي ابْتِدَاء الْإِسْلَام، ثمَّ نسخ. وَالدَّلِيل عَلَيْهِ أَن عبد الله بن الزبير رَضِي الله عَنْهُمَا رأى رجلا يرفع يَدَيْهِ فِي الصَّلَاة عِنْد الرُّكُوع وَعند رفع رَأسه من الرُّكُوع، فَقَالَ لَهُ: لَا تفعل، فَإِن هَذَا شَيْء فعله رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم ثمَّ تَركه. [عمدة القاری تحت تشریح حدیث نمبر ۷۳۵ / ج ۵ / ص ۳۹۸ و ۳۹۹ / مکتبه رشیدیه / سرکی روڈ / کویٹه].

يعنې له كومو احاديثو نه چې د رفع اليدين قائلين استدلال كوي هغه د اسلام د لومړي زمانې دي. بيا وروسته رفع اليدين منسوخ شو. ددې دليل دادی چې: عبدالله بن زبير رضی الله تعالى عنه يو سړی وليدلو چې د ركوع په وخت كې يې رفع اليدين كاوه، نو حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنه ورته وفرمايل چې: دا مه كوه! ځكه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په لمانځه كې رفع اليدين كړی وو او بيا يې پرېښي وو.

امام بُرهان الدين ابو الحسن على بن ابوبكر المرغيناني المتوفى (۵۹۳ هـ ق) فرمايي چې: ولا يرفع الاّ فى التكبيرة الاولى والذى يروى من الرفعَ محمولٌ على الابتداء، كذا نقل عن ابن الزبير. [الهداية شر بداية المبتدى ج ۱/ ص ۲۰۹ /طبع مكتبة البُشرى/ كراچى].

## د رفع اليدين په منسوخوالي باندې

## د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه تصريح

حدّثنی عثمان بن محمد قال: قال لی عبیدالله بن یحیی: حدّثنی عثمان بن سوادة بن عباد، عن حفص بن میسرة، عن زید بن اسلم، عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما قال: كُنّا مع رسول الله

صلى الله عليه وسلم بِمكّة نرفع ايدينا في بدءالصلوة و فى داخل الصلوة عندالركوع ، فلمّا هاجر النبى صلى الله عليه وسلم الى المدينة ترک رفع اليدين فى داخل الصلوة عندالركوع و ثبت على رفع اليدين فى بدءالصلوة ... [توفى اخبار الفقهاء والمحدّثين ص ۲۱٤ / رقم ۳۷۸ واسناده صحيحُ].

د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه څخه روايت دى چې: مونږ د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مکه مکرمه کې د لمانځه په شروع او د لمانځه په منځ کې د رکوع په وخت کې رفع اليدين کول. او کله چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم مدينې منورې ته هجرت وکړ (نو په آخرو ورځو کې) يې د لمانځه په منځ کې د رکوع رفع اليدين پرېښودل او د لمانځه په شروع کې د رفع اليدين په عمل باندې برقرار پاتې شو.

**فايده:** په دې حديث کې د مکې او د مدينې د عمل تشريح ده. يعنې د رفع اليدين عمل د مکې څخه شروع و او په مدينه کې هم و، تر څو چې الله جل جلاله غوښتل عمل وربانديې وشو، بيا په آخرو ورځو کې دا عمل متروک او منسوخ شو او د لمانځه د شروع رفع اليدين باقي پاتې شو.

## د (رفع اليدين عندالركوع) په منسوخوالي باندې

## د حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه تصريح

بې‌نظيره محدِّث علامه بدرُالدّين عينى رحمه الله د ابوداوُد په شرحه کې ليکي چې: والجواب عن احاديث الرفع انها منسوخة بدليل ماروى عن ابن مسعود رضى الله عنه ان قال: رفع رسول الله صلى الله عليه وسلم فرفعنا وترک رسول الله صلى الله عليه وسلم فترکنا. [شرح سُننِ ابى داوُد تأليف علامه بدرالدين عينى ج ۲ / ص ۳۹۰ / طبع دارالکتب العلمية / بيروت / سنه: ۱٤۲۸ هـ ق ].

د رفع اليدين احاديث منسوخ دي، د دې له پاره دليل دادى چې: حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه فرمايي چې: حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم (په اول کې) رفع اليدين کول نو مونږ هم کول. او (وروسته) چې حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم پرېښودل نو مونږ هم پرېښودل.

## د لا مذهبو د مجدد، محدّث او مفسّر نواب صديق حسن خان اقرار چې (رفع اليدين) منسوخ دی

د لامذهبو سر خېل، مجدّد، محدّث او مفسّر نواب صديق حسن خان په يو ځای کې ليکي چې: (د رفع اليدين په شان ترک د رفع اليدين هم سُنت دی) [الروضة الندية/ ص ۹۴]. مخکې ليکي چې: ان آخر الامرين ترک الرفع، ولا يدری مدة الترک، فيحمل انه ترکه فی أيام المرضی. [الروضة الندية/ ص ۹۵].

په آخر کې حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم رفع اليدين پرېښودل. او دا معلومه نه ده چې: تر کومه يې پرېښودل؟ نو پرېښودل به يې په دې حمل کړو چې حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم د بيمارۍ په ورځو کې رفع اليدين پرېښودل.

بيا مخکې ليکي چې: حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه چې کوم ترک د رفع اليدين روايت کړی دی، نو له دې څخه د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم په آخر کې پرېښودل مراد دي، نه ټول عُمر. [الروضة الندية/ ص ۹۵].

او د امام بخاری رحمه الله قانون دا دی چې: انما يؤخذ بالاخر من فعل رسول الله صلی الله عليه وسلم. [بخاری ج ۱/ ص ٤١٥ و مثله بخاری/ ج ۱/ ص ٩٦] يعنې د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم په آخري فعل باندې به عمل کېږي.

## د رفع اليدين په منسوخوالي باندې د امام طحاوي رحمه الله د استدلال طريقه

امام طحاوي رحمه الله هم د اکثرو محدّثينو په څېر د هرې زمانې احاديث ذکر کړي دي، د مخکنۍ زمانې احاديث يې هم راوړي دي، او د وروستنۍ زمانې احاديث يې هم راوړي دي. لکن فقهاء کرام يوازې د وروستنۍ زمانې احاديث راوړي، خو د محدثينو طريقه دا ده چې هغوی اول هغه احاديث ذکر کوي کوم چې د دوي په نيز منسوخ وي او وروسته هغه احاديث ذکر کوي کوم چې د دوي په نيز باندې ناسخ وي. امام نووي رحمه الله ليکي چې: بَابُ الوضوءِ مِمَّا مسّت النارُ. ذَكَرَ مُسْلِمٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى فِى هٰذَا الْبَابِ الْأَحَادِيثَ الْوَارِدَةَ بِالْوُضُوءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ ثُمَّ عَقَّبَهَا بِالْأَحَادِيثِ الْوَارِدَةِ بِتَرْكِ الْوُضُوءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ فَكَأَنَّهُ

يُشِيرُ إِلَى أَنَّ الْوُضُوءَ مَنْسُوخٌ وَهَذِهِ عَادَةُ مُسْلِمٍ رحمة الله تعالى عليه وَغَيْرِهِ مِنْ أَئِمَّةِ الْحَدِيثِ يَذْكُرُونَ الْأَحَادِيثَ الَّتِي يَرَوْنَهَا مَنْسُوخَةً ثُمَّ يُعَقِّبُونَهَا بِالنَّاسِخِ [شرح مسلم للنووى ج ۱ /ص۱۵٦].

يعنې مسلم شريف اول باب الوضوء مما مست النار باب د اودس دهغه شي څخه چې په اور باندې پوخ شوى وي راوړى دى. وروسته يې باب ترك الوضوء مما مست النار باب د پرېښودلو د اودس دهغه شي څخه چې په اور باندې پوخ شوى وي؛ راوړى دى، نو امام مسلم دې خبرې ته اشاره کړې ده چې اودس کول دهغه شي څخه چې په اور باندې پوخ شوى وي منسوخ دى.

او همدا د امام مسلم په شمول د محدّثينو عادت دى چې اول هغه احاديث ذكر كوي چې دوى ورته منسوخ وايي. او وروسته هغه احاديث ذكر كوي چې دوي ورته ناسخ وايي. يعنې كله محدثين په دې باندې تصريح نه كوي چې دا حديث منسوخ دى او دا حديث ناسخ دى. بلكې هغوى چې كومو احاديثو ته منسوخ وايي هغه مخكې ذكر كوي او كومو حديثونو ته چې ناسخ وايي هغه وروسته ذكر كوي.

نو امام طحاوي رحمه الله د همدې قاعدې مطابق اول د رفع اليدين احاديث راوړي دي، چې په هغې كې د حضرت علي، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت ابوحميد الساعدى، حضرت وايل بن حجر، حضرت مالک بن حويرث او د حضرت ابوهريره رضى الله تعالى عنهم احاديث دي.

بيايې د ترک رفع اليدين احاديث راوړي دي، چې په هغې كې د حضرت عبدالله بن مسعود او د حضرت براء بن عازب رضى الله عنهما احاديث دي. چې د مخكنې قانون موافق دا د رفع اليدين د احاديثو منسوخوالي ته اشاره كوي.

له دې څخه وروسته د وايل بن حجر رضى الله عنه د رفع اليدين حديث ذكر كوي. وروسته د حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله تبصره راوړي. چې وايل بن حجر كوم يو نيم ځل حضرت رسول الله صلّى الله عليه وسلم ليدلى دى او د رفع اليدين روايت يې كړى دى. او حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه چې په پنځوس ګونو ځلې ليدلى هغه نه دى روايت كړى ؟ . [طحاوى / رقم الحديث ۱۳۱۸ / تحفة الاخيار بترتيب شرح مشكل الاثار / رقم الحديث ۶۲۱].

## د رفع اليدين په منسوخوالي د امام طحاوی تصریح

امام طحاوي رحمه الله فرمايي چې: فَلَمَّا تَضَادَّتِ الْآثَارُ فِي ذٰلِكَ, وَجَبَ أَنْ نَنْظُرَ إِلَى مَا عَلَيْهِ عَمَلُ الْمُسْلِمِيْنَ, الَّذِي قَدْ جَرَتْ عَلَيْهِ عَادَاتُهُمْ, فَيُعْمَلُ عَلَى ذٰلِكَ, وَيَكُوْنُ نَاسِخًا لِمَا خَالَفَهُ. [شرح معانی الاثار ج۱ / ص۲۲۵ و ج ۲ ص ۳۹ / تحت حديث رقم ۲۸۲۹].

کله چې د احاديثو اود آثارو په منځ کې تضاد او تعارض وي نو په مونږ باندې واجبه ده چې د مسلمانانو (صحابه کرامو) عمل ته وګورو، نو په کومو احاديثو چې د دوی عمل جاري وي او په هغې باندې به عمل کوو اودا به د هغو احاديثو له پاره ناسخ ګرځوو کوم چې د دوي دعمل سره مخالف وي.

## د حضرت عمر رضی الله عنه له اثر څخه د نسخ له پاره استدلال

امام طحاوي رحمه الله د رفع اليدين عندالرکوع د منسوخوالي په باره کې د حضرت عمر رضی الله تعالی عنه له اثر څخه داسې استدلال کوي چې: عَنِ الْأَسْوَدِ رحمة الله تعالى عليه, قَالَ: رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ, ثُمَّ لَا يَعُودُ. [طحاوی/ رفع اليدين رقم الحديث ۱۳۲۹/ صححه الزيلعی نصب الرايه ج ۱ / ص ۴۸۰ / وهذا رجاله ثقات / درايه / ج ۱ / ص ۱۵۲ و هذا سنده صحيح علی شرط مسلم / الجوهر النقی / ج ۲ / ص ۷۵].

حضرت عمر رضی الله تعالی عنه به يوازې د اول تکبير سره رفع اليدين کول. او هيڅ صحابي ورته دا نه ويل چې: ته ولې د رکوع اود سجدو رفع اليدين نه کوې؟ نو معلوميږي چې رفع اليدين کول د دوی په نزد منسوخ و.

دې حديث ته زيلعی صحيح ويلي. [نصب الرايه / ج ۱/ ص ۴۸۰ / و هذا سند صحيح علی شرط مسلم / الجوهر النقی / ج ۲ / ص ۷۵].

## د حضرت علي رضی الله تعالی عنه له اثر څخه د نسخ له پاره استدلال

امام طحاوي رحمه الله بيا د حضرت علي رضی الله عنه د اثر څخه د نسخ له پاره استدلال کوي او فرمايي چې: عن عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ رحمة الله عليه, عَنْ أَبِيهِ: «أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ مِنَ الصَّلَاةِ, ثُمَّ لَا يَرْفَعُ بَعْدُ [طحاوی/ رقم الحديث ۱۳۲۰ / تحفة الاخيار بترتيب شرح مشکل الاثار رقم

الحديث ٦١٩ / صححه الزيلعى/ نصب الرايه ج ١ / ص ٤٨٠ / قال ابن حجر رواته ثقاتٌ / درايه / ج ١ / ص ١٥٢ / قال العينى فى العمدة اسنادُ صحيحٌ على شرط مسلم / عمـدة القـارى / ج ٥ / ص ٤٠٠ / تشريح حديث رقم ٧٣٥].

يعني حضرت علي رضى الله تعالى عنه به يوازحې له لومړي تكبير سره رفع اليدين كول. اونور به يې په بل هيڅ ځاى كې نه كول.نود حضرت علي رضى الله عنه شخصيت داسې نه دى چې ده دې رسول الله صلى الله عليه وسلم په رفع اليدين كولو سره ليدلى وي او بيا دې يې د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه وروسته پرېښي وي. ددې وجهه بله هيڅ نه شي كيدلى بغير له دې نه چې د حضرت علي رضى الله عنه په نزد د رفع اليدين منسوخوالى يقيني ثابت وو.

## د حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه له اثر څخه د نسخ له پاره استدلال

امام طحاوي رحمه الله بيا د حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله تعالى عنه څخه د نسخې له پاره استدلال كوي او فرمايي چې: عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، قَالَ: كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ رضي الله عنه لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَاةِ إِلَّا فِي الِافْتِتَاحِ [طحاوى شرح معانى الاثار/ رقم الحديث ١٣٢٨].

ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايي چې: عبدالله بن مسعود رضى الله تعالى عنه به يوازې د تكبير تحريمه په وخت كې رفع اليدين كول او په بل هيڅ ځاى كې به يې نه كول، نو كه رفع اليدين منسوخ نه واى نو حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه به هېڅكله نه واى پرې ايښي. امام طحاوي رحمه الله ددې اثر اتصال داسې بيانوي چې: د حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله څخه پوښتنه وشوه چې كله چې تاسې د حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه څخه روايت بيانوئ نو د سند سره يې بيان كړئ نو ابراهيم نخعي رحمه الله وفرمايل چې: كله زه سند بيان كړم نو په هغې كې ماته صِرف يو راوي معلوم وي او كله چې زه د سند څخه بغير د هغه څخه روايت وكړم نو هلته يو پوره جماعت ماته هغه حديث بيان كړى وي. [ ملخصاً طحاوى/تحت رقم ١٣٢٧ ].

امام طحاوى رحمه الله فرمايي چې: (كان ابراهيم لايرسل عن عبدالله الاماصح عنده و تـواترت بـه الرواية عنده). [طحاوى/ تحت رقم الحديث ١٣٢٧ وتحفة الاخيار بترتيب مشكل الاثار/ ج٢/ ص١٤].

## د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما له اثر څخه د نسخ له پاره استدلال

امام طحاوي رحمه الله د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما له اثر څخه هم د رفع اليدين د منسوخوالي له پاره استدلال کوي او فرمايي چې: عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله، قَالَ: «صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَلَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ [ طحاوی / باب رفع اليدين رقم الحديث ۱۳۲۳ ]

امام مجاهد رحمه الله فرمايي چې: ما د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په اقتداء کې لمونځ کړی دی نو عبدالله بن عمر رضی الله عنهما به يوائې د لمانځه د شروع کولو په وخت کې رفع اليدين کول.

علامه مارديني رحمه الله فرمايي: ( وهذا سندٌ صحيح ) او علامه عينی رحمه الله فرمايي چې: (باسنادٍ صحيحٍ) [عمدة القاری شرح البخاری/ ج ٥ / ص ١٣٩٩/ تشريح حديث نمبر ٧٣٥].

د راوي عمل چې د خپل حديث په خلاف باندې وي نو هغه حديث د قبلولو قابل نه وي. [ قواعد فی علوم الحديث / ص ۲۰۲ ]. د صحابه کرامو او يا د کوم صحابي عمل چې د خپل حديث په خلاف باندې راشي نو د هغه دغه حديث مطعون ګرځوي. [ قواعد فی علوم الحديث / ص ۲۰۲ ].

نو د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څو مر روايات چې د رفع اليدين په باره کې راغلي وي هغه يو هم د قبلولو قابل ځکه نه دی چې خپله د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما عمل د ترک رفع اليدين دی.

امام طحاوی رحمه الله فرمايي چې: دا حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دی چې حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم يې په رفع اليدين کولو باندې ليدلی دی او خپله يې نه کوي. دا له دې وجهې څخه چې ده ته د خپل روايت منسوخوالی معلوم و . [ طحاوی / تحت رقم الحديث ۱۳۲۳ ].

فان قيل: چې اګر که امام مجاهد رحمه الله د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما عمل ترک د رفع اليدين روايت کړی دی لکن طاوس رحمه الله د امام مجاهد په خلاف د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما عمل رفع اليدين روايت کړی دی، کوم چې د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د روايت مطابق دی.

قلنا: امام طحاوی رحمه الله په دې دواړو کې داسې تطبيق کړی دی چې د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما عمل په اول کې د خپل روايت مطابق (رفع اليدين) و لکن وروسته چې ورته د (رفع اليدين منسوخوالی) معلوم شو نو بيا يې (رفع اليدين) پرېښودل. [ طحاوی / ج ۱ / ۲۹۲ / طبع بيروت / رقم ۱۳۲۳ ].

## د رفع اليدين عندالركوع په منسوخوالي باندې د امام طحاوی نظري استدلال

امام طحاوي رحمه الله فرمايي چې: د تكبير تحريمه د رفع اليدين په شتوالي او د سجدو د رفع اليدين په نشته والي باندې اتفاق دی، اختلاف يواځې د ركوع په رفع اليدين کې دی. نو که د ركوع تكبير د سجدو په تكبير باندې قياس کړو نو بيايې نه کول په کار دي. او که د افتتاح په تكبير باندې يې قياس کړو نو بيا يې کول په کار دي. لکن د افتتاح په تكبير باندې يې قياس کول ځکه نه دي صحيح چې تكبير الافتتاح فرض دی او تكبير الركوع سُنّت دی. نو د سجدو په تكبير يې قياس کول په کار دي، ځکه چې تكبير السجود هم د تكبير الركوع په څېر سُنّت دی. [طحاوی / ج ۱ / ص ۲۹۵ / بيروت].

## د رفع اليدين عندالركوع د منسوخوالي له پاره د فقهاوو له اجماع څخه استدلال

امام طحاوي رحمه الله د رفع اليدين د منسوخوالي له پاره د حضرت ابوبكر بن عياش رحمه الله اثر پيش کوي او دا خبره پوره کوي چې د صحابه کرامو او تابعينو په زمانه کې د ترک د رفع اليدين رواج و. فرمايي چې: (عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ رحمة الله تعالى عليهما قَالَ: مَا رَأَيْتُ فَقِيهًا قَطُّ يَفْعَلُهُ، يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي غَيْرِ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى) [طحاوی / رقم الحديث ۱۳۲۳].

حضرت ابوبكر بن عياش رحمه الله چې په سلمه هجري کې زېږيدلی دی او په يو سلو درې نوي (۱۹۳) هجري کې وفات شوی دی فرمايي چې: ما هېڅکله او هېڅکله هېڅ په دين پوه سړی نه دی ليدلی چې د تكبير تحريمه څخه ما سوا بل رفع اليدين يې کړی وي.

## د رفع اليدين عندالركوع په منسوخوالي باندې

## د سُنن نسائی د ابوابو له ترتيب څخه استدلال

مخکې د امام نووي رحمه الله په حواله باندې د محدّثينو قانون بيان شو، چې محدّثين اول منسوخ او وروسته ناسخ احاديث ذکر کوي. [ شرح مسلم للنووی / ج ۱ / ص ۱۵۶ / باب الوضوء مما مست النار]

او دا معلومات د حديثو د هغو کتابونو څخه کېږي چې دواړه قسمه احاديث يې ذکر کړي وي او په کومو کتابونو کې چې يوازې يو قسم احاديث وي د هغوي څخه دا معلومات نه کېږي.

امام بخاري په [صحيح البخاری /ج ۱/ص ۱۰۲] کې د رفع اليدين عند الرکوع له پاره د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما او د مالک بن حويرث رضی الله عنه احاديث راوړي دي او امام مسلم ورسره د وايل بن حجر رضی الله عنه حديث هم راوړی دی. لکن دغو دواړو په دې ځای کې د ترک د رفع اليدين احاديث نه دي راوړي. نو د دې کتابونو څخه د دې معلومات نه کېږي چې په دې احاديثو باندې عمل جاري وو او که پاتې شوي وو ؟

امام نسائي دواړه قسمه احاديث ذکر کړي دي ، د امام نسائی رحمه الله د رفع اليدين او د ترک د رفع اليدين د ابوابو ترتيب داسې دی:

۱- چې اول يې په کتاب الافتتاح کې د تکبير الافتتاح سره د رفع اليدين له پاره درې بابونه راوړي دي: (اول : باب رفع اليدين قبل التکبير) په دې کې يې د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حديث راوړی دی. (دوهم : باب رفع اليدين حذوَ المنکبين) په دې کې يې هم د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حديث راوړی دی . (دريم : باب رفع اليدين حيال الاذنين) په دې باب کې يې د حضرت وايل بن حجر رضی الله عنه او د حضرت مالک بن حويرث رضی الله عنه احاديث راوړي دي. او له دې څخه وروسته يې د ترک باب نه دی راوړی. ځکه چې د تکبير الافتتاح سره رفع اليدين منسوخ نه دی.

۲- امام نسائی رحمه الله په کتاب الافتتاح کې بيا د رفع اليدين عند الرکوع له پاره دوه بابونه راوړي دي: (اول : باب رفع اليدين للرکوع حذاء فروع الاذنين) په دې کې يې د حضرت مالک بن حويرث رضی الله عنه حديث راوړی دی. (دوهم : باب رفع اليدين للرکوع حذو المنکبين) په دې کې يې د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حديث راوړی دی. له دې څخه وروسته امام نسائی رحمه الله د ترک د رفع اليدين باب ذکر کړی دی په نوم د (باب ترک ذلک) په دې کې يې د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حديث راوړی دی او دا يې ورپسې وروسته ځکه ذکر کړو چې د محدّثينو د قانون موافق دا حديث ناسخ او مخکني حديثونه منسوخ دي.

۳-بيا امام نسائي رحمه الله له ركوع څخه د راپورته كېدلو په وخت كې د رفع اليدين له پاره درې بابونه راوړي دي: (اول: باب رفع اليدين عندَ الرفعِ من الركوع) په دې كې يې د حضرت وايل بن حجر رضى الله عنه حديث راوړى دى. (دوهم: باب رفع اليدين حذوَ الأذنين عند الرفع من الركوع) په دې كې يې د حضرت مالک بن حويرث رضى الله عنه حديث راوړى دى. (دريم: باب رفع اليدين حذوَ المَنكِبين عند الرفعِ من الركوعِ) په دې كې يې د حضرت عبد الله بن عمر رضى الله عنهما حديث راوړى دى. دا يې مخكې ذكر كړي دي او د دې څخه وروسته يې د دې د ترک باب ذكر كړى دى په نوم د (باب الرخصة فى ترک ذلک) باندې او دا يې وروسته ځكه ذكر كړي ځكه چې د دې باب احاديث دده په نزد ناسخ دي.

۴-امام نسائى رحمه الله بيا په همدې كتاب الافتتاح كې د رفع اليدين عند السجود ابواب ذكر كړي دي: (اول: بابُ رفع اليدين للسجود) په دې كې يې د حضرت مالک بن حويرث رضى الله عنه درې احاديث راوړي دي. [رقم: ۱۰۸۵ و رقم: ۱۰۸۶ و رقم: ۱۰۸۷]. (دوهم: بابُ رفع اليدين عند الرفعِ من السجدة الاولى) په دې كې يې د حضرت مالک بن حويرث رضى الله عنه [حديث رقم: ۱۱۴۳] راوړى دى.

بيا له دې څخه وروسته د دې د ترک باب ذكر كړى دى په نوم د (باب ترکِ ذلک بين السجدتين) په دې كې يې د حضرت عبد الله بن عمر رضى الله عنهما حديث ذكر كړى دى، ځكه چې دا ناسخ او مخكني احاديث دده په نزد منسوخ دي.

## د رفع اليدين عندالركوع د منسوخوالي له پاره د ابوداود د ابوابو دترتيب څخه استدلال:

امام ابوداؤد رحمه الله اول د (بابُ رفع اليدين فى الصلوة) په نوم باب ذكر كړى دى او په هغې كې يې د حضرت عبد الله بن عمر رضى الله عنهما او د حضرت وايل بن حجر رضى الله عنه أحاديث ذكر كړي دي، بيا يې د (بابُ من لم يذكر الرفع عند الركوع) په نوم باندې باب لكولى دى او په هغې كې يې د حضرت عبد الله بن مسعود رضى الله عنه [رقم الحديث: ۷۴۸] او د حضرت براء بن عازب رضى الله عنه [رقم الحديث: ۷۵۰/ترقيم دار المعرفة/بيروت] او د حضرت ابو هريره رضى الله عنه [رقم الحديث: ۷۵۳] و غيره احاديث ذكر كړي دي. دا د محدّثينو د قانون موافق د نسخ دليل دى.

## د رفع اليدين عندالركوع د منسوخوالي له پاره

## د ترمذي د ابوابو د ترتيب څخه استدلال:

امام ترمذي رحمه الله اول د (رفع اليدين) له پاره باب ذكر كوي او په هغې كې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث راوړي. بيا د ترک د رفع اليدين باب ذكر كوي او په هغې كې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث راوړي. په دې ترتيب سره امام ترمذي رحمه الله هم د نورو محدّثينو په څېر دې خبرې ته اشاره كوي چې رفع اليدين منسوخ دي.

**يادوَنه:** زمونږ په هيوادونو كې په مُروّجه نُسخو كې د ترک د رفعِ اليدين له پاره مستقل د باب عنوان د كاتب د سهوې له وجهې ليكل شوى نه دى. او دا ځكه چې:

۱- امام ترمذي رحمه الله چې د ترک د رفع اليدين له پاره د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه حديث ذكر كړى دى او (حَسَن) يې ورته ويلى دى، نو ورپسې يې فرمايلي دي چې: (وفى الباب عن البراء بن عازب .... الخ) د (وفى الباب) د لفظ څخه معلوميږي چې ده د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه حديث ته (ترجمة الباب) يعنې د باب عنوان ضرور ذكر كړى دى.

۲- د ترک د رفع اليدين حديث د رفع اليدين په باب كې ذكر كول نه دي مناسب. نو خامخا د ترک د رفع اليدين له پاره باب د ترک رفع اليدين په كار دى.

۳- مشهور غيرِ مقلد احمد محمد شاكر د ترمذي په شرح [ج ۲ / ص ۴۰ / طبع قاهرة] كې د دې له پاره باب ذكر كړى دى په نوم د (باب من لم يرفع يديه الا فى اول مرّةٍ).

۴- همدارنګه د اوسنى زمانې غير مقلد الشيخ خليل مأمون شيخا چې د ترمذي كومه نُسخه د خپل تحقيق سره شائع كړې ده په هغې كې يې هم باب لګولى دى په نوم د (باب مـا جـاء ان النبى صلى الله عليه وسلم لم يرفع يديه الا فى اول مرة) [سُـنَنِ ترمـذى / ص ۱۳۱ / رقـم ۲۵۷ / تحقيـق الشيخ خليل مأمون شيخا/ طبع دارالمعرفة/ بيروت / لبنان / سنه : ۱۴۲۳].

## د رفع اليدين عندالركوع د منسوخوالي له پاره

## د مُصَنفِ ابن أبى شيبة د أبوابو د ترتيب څخه استدلال

د امام بخاری رحمه الله استاد امام ابوبکر بن ابی شیبه رحمه الله هم همدا طريقه ذکر کړې ده.
محدّث ابن أبی شیبه رحمه الله لومړی يو باب ذکر کوي په نوم د (باب من کان يرفع يديه اذا افتتح الصلوة) په دې کې يې د حضرت عبدالله بن عمر، حضرت وايل بن حجر، حضرت مالک بن حويرث، حضرت انس بن مالک او د حضرت ابو حميد ساعدي رضی الله عنهم احاديث راوړي دي. بيا بل باب ذکر کوي په نوم د (باب من کان يرفع يديه فی أول تکبيرة ثم لايعود) په دې کې يې د حضرت براء بن عازب، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت عبدالله بن عبّاس او حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهم احاديث ذکر کړي دي. او په تابعينو کې يې د حضرت ابراهيم نخعي، حضرت شعبي د اصحابو د علي رضی الله عنه، د اصحابو د ابن مسعود رضی الله عنه، حضرت خيثمه، حضرت قيس، حضرت عبدالله بن ابی ليلی، حضرت اسود او حضرت علقمه رحمهم الله آثار ذکر کړي دي. په دې ترتيب سره دا مبارک هم دې خبرې ته اشاره کوي چې د رفع اليدين احاديث منسوخ دي.

## د رفع اليدين عندالركوع د منسوخوالي له پاره

## د موطأ امام محمد د ابوابو د ترتيب څخه استدلال:

د امام بخاري رحمه الله د استاذانو استاد امام محمّد بن حسن الشيباني رحمه الله هم همدا طريقه غوره کړې ده، هغه هم لومړی په موطأ کې د رفع اليدين روايات ذکر کوي او وروسته د ترک د رفع اليدين روايات ذکر کوي.

**چيلنج:** لا مذهبه دې د حديثو يو کتاب وښايي چې په هغې کې لومړی د ترکِ رفع اليدين باب وي او وروسته د رفعُ اليدين باب وي.

## درفع اليدين عند الركوع دمنسوخوالي لپاره ددې ټول محدثينو دتعبير څخه استدلال

دا ټول محدثين درفع اليدين څخه وروسته د ترک رفع اليدين په عنوان باندې باب لګوي، او ترک دې ته وايي چې يو شى دمخکې څخه شروع وي او بيا ختم شي نو رفع اليدين مخکې کيدل او بيا ختم شول، پاتې شوه دا خبره چې ترک په کوم ځاى کې دنسخ په معنى باندې راغلى دى؟ نو ددې لپاره ډير دلايل دي مثلاً: الله تعالى فرمايي: (قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ)

اى شعيبه ايا ستا لمونځ تا ته دا امر کوي چې دخپلو پلرونو او دنيکونو د زمانې څخه را شروع شوى شرک متروک وګرزوو.

همدا رنګه الله حکايت کوي فرمايي چې: (وَّمَا نَحْنُ بِتَارِكِىْٓ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ)

مونږ ستا دقول له وجې دخپلو خدايانو (دمخکې څخه دشروع شوي عبارت) تارکين نه يو نو دا دترک تعبير په نسخ باندې دلالت کوي.

## د رفع اليدين په منسوخوالي باندې د امام اوزاعي رحمه الله تصريح:

امام بخاري رحمه الله فرمايي چې: حَدَّثَنَا فُدَيْكُ بْنُ سُلَيْمَانَ أَبُوعِيسٰى رحمة الله تعالى عليه قَالَ: سَأَلْتُ الْأَوْزَاعِيَّ رحمة الله تعالى عليه قُلْتُ: يَا أَبَا عَمْرٍو مَا تَقُولُ فِي رَفْعِ الْأَيْدِي مَعَ كُلِّ تَكْبِيرَةٍ, وَهُوَ قَائِمٌ فِي الصَّلَاةِ؟ قَالَ: «ذٰلِكَ الْأَمْرُ الْأَوَّلُ». [جزء رفع اليدين للبخارى / رقم الحديث : ١٠٦].

حضرت فديک بن سليمان ابو عيسى رحمه الله فرمايي چې: ما د امام اوزاعي رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چې: اى ابو عمرو! تاسو د هر تکبير سره د رفع اليدين په باره کې څه وايا ست کوم چې د قيام په حالت کې وي؟ امام اوزاعي رحمه الله ځواب راکړ چې: دا د مخکنى زمانې کار و. د تکبير تحريمه رفعُ اليدين په دې کې داخل نه دي، ځکه چې تکبير تحريمه د لمانځه له پاره شرط دى او شرط د لمانځه له لمانځه څخه خارج وي.

## د رفع اليدين عند الركوع په منسوخوالي باندې

## د شيخ الهند مولنا محمود الحسن رحمه الله تصريح

شيخ الهند رحمه الله د ترمذي په تقرير کې فرمايي چې: لما أن رفع اليدين كان مشروعاً فى أول الاسلام ثم نُسِخَ شيئًا فشيئًا الا فى الافتتاح. [تقرير ترمذی/ ص ۳۹/ طبع: الطاف اينڈ سنز / كراچى]
رفع اليدين د اسلام په ابتداء کې جايز و، بيا ورو، ورو منسوخ شو، تردې پورې چې يوازې د تکبير تحريمه رفع اليدين پاتې شو.

## د رفع اليدين عندالركوع په منسوخوالي

## باندې د مولانا عبدالحی رحمه الله تصريح

حضرت مولانا عبدالحی لکهنوي رحمه الله فرمايي چې: حضرت امام طحاوی، شيخ ابن الهمام او علامه عينی رحمهم الله، په صحابه کرامو باندې د نيک ګمان په بُنياد باندې رفع اليدين ته منسوخ ويلې دي. ځکه د کومو صحابه وو څخه چې د رفع اليدين روايات راغلي دي د هغوی خپل عمل د ترک رفع اليدين و، نو اوس که رفع اليدين واجب، يا سُنّت مؤكده وای نو دغو صحابه کرام به څرنګه تارِکين سُنت يا هم تارکين واجب وو ؟ د تارِکِ سنت روايت خو نه قبليږي. نو کله چې د صحابه وو رضی الله عنهم په باره کې بدګماني ښه نه وه چې دوی يو ځل د سنتو روايت کوي او بيا خپله ورباندې عمل نه کوي او دا ډيره غټه د ګستخاۍ خبره وه چې يو څوک د صحابهؤ په باره کې دا ګمان وکړي چې دوي معاذ الله (لِمَ تَقُولُونَ مَا لاَتَفعَلُون) مصداق دي. بلکې دا نېک ګمان ورباندې په کار دی چې د صحابه وو رضی الله عنهم سره لکه څرنګه چې د ثبوت د رفع اليدين علم وو، همدارنګه ورسره د دې د منسوخوالي علم هم و. او د دوی مبارکانو عمل د دې منسوخوالي تائيد کوي. [التعليق الممجد / ص ۱۳۵ و ۱۳۶ / مُلخَصاً].

## دوهم فصل

## د ځينو شُبهاتو اِزاله: (۱) درفع اليدين نسخه اجتهادي ده

ځينې خلک اعتراض کوي چې: کله رفع اليدين عندالرکوع منسوخ دی نو بيا امام شافعي او امام احمد رحمهم الله ورباندې ولې عمل کوي؟ حالانکه په منسوخ باندې عمل کول خو ګناه ده.

مونږ ځواب کوو چې: نَسخَ په دوه قِسمه ده: اول: قطعي نسخه لکه: صلوة الى بيت المقدس او دوهم: اجتهادي نسخه لکه د رفع اليدين نسخ. نو په اول قسم باندې عمل کول ګناه ده او په دوهم صورت کې هر سړی د خپل امام د اجتهاد پابند دی. بلکې که يو څوک د خپل امام په تقليد کې په دې اجتهادي منسوخ باندې عمل وکړي نو د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم د فرمان مطابق هغه هم د يو اجر مستحق دی.

## ۲ - د سُنّت په مقابل کې سُنّت نه بلکې مکروه او منسوخ راځي

د يو کار د سنتوالي له پاره درې شرطه دي: اول دا چې: دا کار به حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم عادةً کړی وي، ضرورةً به يې نه وي کړی. که رسول الله صلى الله عليه وسلم يو کار ضرورةً کړی وي لکه: (بالَ قائماً) [بخاری /ج ۱/ص ۹۸] او يا (کان يصلی فی نعليه) [بخاری /ج ۱/ص ۲۴] نو دا به سُنّت نه وي. بول قايماً د ضرورت له وجهې وو چې په زنګنونو او يا په مَلا کې يې درد وو. او صلوة فی النّعلين د ځمکې د ګرمايش له امله و.

دوهم دا چې: دا کار به حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم دائماً کړی وي، که حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم يو عمل کړی او بيا يې له وفات څخه مخکې پرېښی وي هغه به سُنّت نه وي، لکه د بيت المقدس طرف ته لمونځ کول. حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيت المقدس طرف ته لمونځ کړی دی، لکن بيا يې پرېښی دی، له دې وجهې دا سُنّت نه دی.

دريم دا چې: حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم به دا عمل د اُمّت له پاره کړی وي، د خپل ذات له پاره به يې نه وي کړی. يعنې د حضرت رسول الله صلى الله عايه وسلم خصوصيت او ځانګړتيا به نه وي.

كه رسول الله صلى الله عليه وسلم يو عمل د خپل ذات له پاره كړى وي هغه به د اُمّت له پاره سُنّت نه وي.
لكه د نهو بيبيانو سره نكاح.

نو د سنت او د مرفوع حديث په منځ كې عموم او خصوص من وجهٍ دى. يو كار به په حديث كې هم راغلى وي او سُنت به هم وي. لكه: رفع اليدين عند التحريمة. او يو كار به په مرفوع حديث كې نه وي راغلى خو بيا به هم سُنّت وي. لكه: سنت د خلفاء اربعه وو (عليكم بسُنّتى وسنّة الخلفاء الراشدين). او يو كار به په مرفوع حديث كې راغلى وي لكن بيا به هم سُنّت نه وي. لكه: (بالَ قايماً) [بخارى/ج ۱/ص ۹۸]. كه بول قايماً سُنت شي نو بيا به ښځې په دې سُنتو باندې څرنګه عمل كوي؟

نو زمونږ ځينې علماء رفع اليدين او ترک د رفع اليدين دواړو ته سنت وايي، حتى چې زمونږ بعضې علماء غير مقلدينو ته وايي چې: رفع اليدين او ترک د رفع اليدين دواړه سنت دي او په احياء سُنت باندې د سلو شهيدانو اجر وركول كېږي او په رفع اليدين كې احياء سنت نه دى، بلكې تبديلِ سنت دى. او په تبديل سنت باندې خو د سلو شهيدانو اجر نشته، لكن زما په ګمان چې دا خبره صحيح نه ده ځكه چې د سُنت تعريف مخكې بيان شو. نو هغه درې شرطه به يا په رفع اليدين كې وي او يا به په ترک د رفع اليدين كې وي. په دواړو كې نشي راتلاى.

نو مونږ چې دا ثابته كړه چې هغه درې شرطونه په ترک د رفع اليدين كې دي نو ترک د رفع اليدين سُنّت شو. او د سُنّت په مقابل كې سنّت نه راځي بلكې مكروه او يا منسوخ راځي، نو رفع اليدين منسوخ شو سُنّت نه شو.

## ۳ - آيا د رفع اليدين روايات زيات دي؟

غير مقلدين عوامو ته دا وسوسه وراچوي چې د رفع اليدين احاديث زيات دي، نو له دې وجهې مونږ په دې باندې عمل كوو. ځينې غير مقلدين وايي چې: د رفع اليدين احاديث څلور سوه دي. او د وى څخه ماسوا امام بخاري رحمه الله ليكلي دي چې: رفع اليدين له شپاړسو صحابه وو څخه روايت شوى دى. ابن عبدالبر رحمه الله فرمايي چې: د رفع اليدين راويان درويشت دي. او امام بيهقى رحمه الله فرمايي چې: دېرش دي. علامه عراقى رحمه الله تر پنځوسو پورې رسولي دي.

**لومړی ځواب:** که د رفع اليدين په ټولو رواياتو باندې ناقدانه نظر واچول شي، نود علامه عراقي په پنځوسو احاديثو کې به يوازې شپږ احاديث داسې راووځي چې د رفع اليدين د قائلينو موقف ترينه ثابت شي. له دې وجهې علامه بنوري رحمه الله فرمايي چې: (وقد اعتراف البيهقى بان ما يحتج به قدر خمسة عشر ولكن بعد النخل والسبر تبقى عندهم ستة احاديث فقط) [معارف السنن ج ٢/ ص٤٦٧]. يعنې امام بيقهي رحمه الله په دې اقرار کړی دی چې د اختلافي رفع اليدين له پاره يوازې پنځلس احاديث پاتې کېږي او په دې پنځلسو کې چاڼ شوي احاديث يوازې شپږ دي.

علامه بنوري رحمه الله چې د کومو چاڼ شو شپږو احاديثو تذکره کړې ده، په هغې کې ځينو کې د سجدو د رفع اليدين ذکر هم راغلی دی. او په ځينو کې يوازې د رکوع د رفع اليدين ذکر دی. د دريم رکعت د رفع اليدين ذکر هم پکې نشته. حالانکه د غير مقلدينو په نزد د دريم رکعت په شروع کې هم رفع اليدين دی. او همدارنګه د دوی په نزد سجدو ته ذ تللو او له سجدو څخه د راپورته کېدلو په وخت کې رفع اليدين نشته. فلهذا په دې شپږو کې دوی ته يوازې درې روايات پاتې شو. او تاسو مخکې واورېدل چې په دې درېو احاديثو هم د لامذهبو مکمّل مسلک نه ثابتيږي.

**دوهم ځواب:** غير مقلدين يوازې د څلور سوو احاديثو زباني دعوه کوي او الحمدلله زمونږ مشايخو د ترک د رفع اليدين له پاره په سلګونو احاديث راجمع کړي دي. مولانا الياس ګهمن مدظله د ترک د رفع اليدين احاديث تر دولسو سوو پورې رسولي دي، چې ډېر ژر په چاپ شي. ان شاءالله.

**دريم ځواب:** اول يو مثال واورئ! چې د امريکا صدر مثلاً اعلان وکړي چې زه به افغانستان ته د رمضان المبارک په لسم تاريخ باندې ځم، نو د اعلان څخه وروسته سمدستي په اخبارونو، راډيوګانو کې خبرونه شروع شي چې د امريکا ولسمشر د افغانستان دوره کوي، کله چې راشي نو بيا په زرګونو اخبارونو او راډيوګانو کې دا خبرې شروع شي چې د امريکا صدر په فلانکي تاريخ باندې افغانستان ته راغلی و، عام خلک هم په مجلسونو کې د دې تذکره کوي، نو اوس په ټول عمر کې د امريکې صدر يوه ورځ افغانستان ته راغلی او نور په سلګونو او زرګونو ورځو کې نه دی راغلی، لکن دا د ترک او د نه راتلو خبر په يو اخبار کې هم نه وي. او نه يې څوک په کوم مجلس کې يادوي چې په فلانکۍ فلانکۍ ورځ باندې د امريکې صدر افغانستان ته نه و راغلی. نو اوس په دې زرګونو اخبارونو کې د راتللو

خبرونه دي او د ترک او د نه راتلو خبر په يو اخبار کې هم نشته، لکن بيا هم ترک ډېر ځله شوی دی، راتلل صِرف يو ځل دي. همداسې د رفع اليدين رواَيات د کولو روايات دیَ، دا که هرڅومره ډېر شي نو دا د دې دليل نه شي کېدلی چې دا فعل دې حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم ډېر ځله کړی وي.

او د ترک د رفع اليدين که يو روايت هم نه وي بيا به هم رسول الله صلی الله عليه وسلم د ترک د رفع اليدين عمل ډېر کړی وي، ځکه چې د ترک روايات نه وي، لکن دلته د رفع اليدين ترک دومره اهم ترک دی چې په سلګونو احاديث پکې راغلي دي.

**څلورم ځواب:** يو عام عادت وي او يو شاذ او نادر عمل وي، عام عادت څوک نه رانقلوي (الاّ ماشاءالله) او د شاذ عمل راويان ډېر وي.

**پنځم ځواب:** که بالفرض د رفع اليدين روايات هرڅومره ډېر شي، بيا به يې هم نتيجه يو ائې ثبوت د رفع اليدين وي. او مونږ د ثبوتِ د رفع اليدين څخه انکار نه کوو، بلکې د دوام او د سنتوالي څخه يې مُنکريو. لکه څرنګه چې د بيت المقدس طرف ته د لمانځه د ثبوت څخه مونږ نه يو منکر، بلکې د دوام څخه يې منکر يو.

شيخ الهند رحمه الله په ادله کامله کې يو مثال وړاندې کوي چې: مثلاً زيد دعوه وکړي چې زما په عَمرو باندې زر روپۍ قرض دي او بيا زيد محکمې ته لس زره شاهدان راولي او عمرو ورته ووايي چې زه خو منم چې دده په ما باندې زر روپۍ قرض وې، له ثبوت څخه خو يې زه نه يم منکر. او بيا عمرو يوائې دوه شاهدان راولي چې ما زيد دغه قرض اداء کړی دی، نو محکمه به د عمرو طرف ته فيصله کوي. همدارنګه مونږ د ثبوت د رفع اليدين څخه مُنکر نه يو، بلکې مونږ داسې وايو چې دا حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم پرېښی دی.

غير مقلدين چې د هر صحابي رضی الله عنه څخه د رفع اليدين روايت کوي د هغه صحابي رضی الله عنه څخه به د ترک روايت هم وي او خپل عمل به يې هم ترک د رفع اليدين وي.

## ۴ - علامه انورشاه کشمیری رحمه الله او رفع الیدین

لامذهبان دعوه کوي چې رفع اليدين عند الركوع متواتر دی او وایي چې: مولانا سید محمد انورشاه کشمیري رحمه الله فرمايي چې: ( ان الرفع متواترٌ اسناداً و عملاً ولا شک فيه و لم ينسخ ولا حرف منه) [نيل الفرقدين ص ۳۰]. يعني يقيني چې رفع اليدين سنداً او عملاً متواتر دی او په دې کې هيڅ شک نشته او په دې کې يو حرف هم نه دی منسوخ شوی.

**الجواب:** په مذکور عبارت کې حضرت مولانا سید محمد انورشاه کشمیري رحمه الله المتوفی سنة (۱۳۵۲هـ ق) د حافظ ابن حجر رحمه الله نظر رانقل کړی دی. اصل عبارت وګورئ! (فصل فی احاديث الرفع : نقلنا فيه عبارة (التلخيص الحبير) فانه على جلها ولم يبق الا نزر يسير. و ليعلم ان الرفع متواتر اسناداً وعملاً... الخ) [نيل الفرقدين/ ص ۲۲/ طبع قديم ص ۳۰].

دا فصل د رفع اليدين د احاديثو په بيان کې دی، زه په دې فصل کې د تلخيص الحبير عبارت رانقلوم، ځکه چې هغه د رفع اليدين د يو څو رواياتو څخه ماسوا نور ټول روايات ذکر کړي دي. او ځان پوهول په کار دي چې يقيني چې رفع اليدين سنداً او عملاً متواتر دي او په دې کې شک نشته او نه ترينه يو حرف منسوخ شوی دی، حافظ ابن حجر چونکه د رفع اليدين نسبت عشره مبشره وو ته کوي [ تلخيص الحبير ] او په فتح الباري کې يې پنځوسو صحابه وو رضی الله عنهم ته منسوبوي، نو له دې څخه معلوميږي چې رفع اليدين دده په نزد باندې متواتر دی. او د حافظ ابن حجر په نزد د رفع اليدين د تواتر دوه احتماله دي، چې دواړه د لامذهبو له پاره فايده نه کوي. اول دا چې دده مراد مطلق رفع اليدين دی او په دې کې هيڅ شک نشته چې مطلق رفع اليدين په ضمن د تکبير تحريمې د رفع اليدين کې د ټول امت په نزد باندې معمول بِه او متواتر دی. دوهم دا چې: دده مراد د لمانځه په داخل کې رفع اليدين شي، نو بيا د سجدو رفع اليدين هم پکې داخل شو. او حافظ ابن حجر رحمه الله هغه احاديث هم ذکر کړي دی چې په هغې کې د سجدو په وخت کې د رفع اليدين ذکر دی. نو دده په نزد د سجدو رفع اليدين هم صحيح غير منسوخ دی. نو اوس لامذهبان ولې د سجدو سره رفع اليدين نه کوي؟

**خلاصه دا چې:** دا نظريه شاه صاحب رحمه الله د حافظ ابن حجر څخه رانقل کړې ده. او حقيقت دادى چې شاه صاحب رحمه الله په دې نظريه باندې رد کوي او دوه ځوابه ورکوي :

**۱ـ الزامي جواب:** که د مخالف په نزد رفع اليدين متواتر اسنادي وي نو يقيناً چې ترک د رفع اليدين هم متواتر دى عملاً او تواتر په اعتبار د ځلورو واړو اقسامو مفيد دى، فلهذا ترک د رفع اليدين هم يقيني ثابت دى.

**۲ـ تحقيقي ځواب:** دوى چې د پنځوسو صحابه وو رضى الله عنهم روايات شمار کړي دي، په دې کې يې يو ائې د تکبير تحريمې سره د رفع اليدين راويان هم شمار کړي دي، که دا راويان تر پنه لرې کړې نود رکوع د رفع اليدين له پاره صِرف شل راويان پاتې کېږي. لکه ځرنګه چې شوکاني (غير مقلد) په [الدرارى المضية] کې ويلي دي. او په دې شلو کې هم نقد او جرحه چليږي او کېدى شي چې د نقد او د جرح څخه پنځلس اويا له دې څخه هم کم پاتې شي. لکه ځرنګه چې دهغوى د مرفوعوالي او موقوفوالي بحث را روان دى. [نيل الفرقدين / ص ۲۲ / طبع قديم / ص ۳۰ ]. د دې عبارت څخه معلوميږي چې شاه صاحب د رفع اليدين اسنادي تواتر نه مني.

حضرت شاه صاحب د رفع او د ترک دواړه عملي تواتر مني. يعنې په امّت کې په دواړو باندې عمل روان دى. لکه ځرنګه چې فرمايي چې: و قد ثبت الرفع والترک تـواتراً، لا يمكـن لاحـدٍ انكـار احدهما و لكن تواتر العمل لا تواتر الاسناد . [العرف الشذى / ص ۱۳٦]. په تحقيق سره رفع اليدين او ترک د رفع اليدين دواړه په تواتر سره ثابت دي، د يو څخه هم انکار نه دى ممکن، لکن دا عملي تواتر دى او اسنادي تواتر نه دى.

لا مذهبان وايي چې: د شاه صاحب رحمه الله په نزد باندې د رکوع رفع اليدين متواتر دى، حالانکه شاه صاحب رحمه الله د دوام د رفع اليدين يو روايت هم نه مني، لکه ځرنګه چې شاه صاحب رحمه الله د محمد هاشم سندهي څخه رانقلوي چې د دوام د رفع اليدين له پاره يو روايت هم نشته، پاتې خو لا د عشره مبشره رضى الله عنهم خبره شوه . (فلم يصح فيه حديث واحد فضلاً عن رواية العشرة). [نيل الفرقدين / ص ۳۷ ].

همدارنګه شاه صاحب فرمايي چې: د صحابه وو رضی الله عنهم تعداد پنځوسو ته رسول مبالغه ده، په دې کې درې ربعې (تقريباً ۳۸ راويان) د مبالغې نذرانه دي او په باقي دولسو کې هم يواځې پنځه او يا شپږ پاتې کېږي. بيا يې په هريو جرحه کړې ده. [نيل الفرقدين / ص ۵۳ / طبع قديم / ص ۶۵ و ۶۶].

او د اخبره ظاهره ده چې په متواتر باندې داسې بحث نه کېږي.

## ۵ - ايا علامه سيوطي رحمه الله درفع اليدين احاديثو ته متواتر ويلي دي؟

غير مقلدين وايي چې: علامه سيوطي رحمه الله په [الازهار المتناثرة فی الاخبار المتواترة] کې دعوه کړې ده چې: د رفع اليدين احاديث متواتر دي.

**الجواب:** که دد ې څخه د تکبير تحريمه رفع اليدين مراد شي او يا ترينه د وترو رفع اليدين مراد شي نو بيا خبره صحيح ده، لکه څرنګه چې علامه زيلعي رحمه الله په [نصب الرايه] کې فرمايي چې: (قد تواترت الاخبار برفع اليدين فی الوتر) [نصب الرايه / ج ۱ / ص ۳۹۱]. او که د رکوع رفع اليدين مراد شي نو بيا دا بې دليله دعوه ده.

حضرت مولانا محمد اشفاق کاندهلوي رحمه الله فرمايي چې: (وادعاءُ التواتر عند اختلاف الروايات، واختلافِ الصحابة، واختلاف التابعين و اختلاف الائمة المجتهدين من المضحکات). [کشف المغطی عن وجه الموطا / ج ۱ / ص ۱۸۴ / طبع مکتبة البشری / کراچي].

د رواياتو د اختلاف په وخت کې او د صحابه وو، تابعينو او د مجتهدينو امامانو د اختلاف په وخت کې د تواتر دعوه کول هسې ريشخند وهل دي.

## ٦ - آيا دا صحيح ده چې د صحيحينو روايات د سُننو په رواياتو مقدم دي؟

لا مذهبان وايي چې د رفع اليدين روايات په صحيحينو (بخاري او مسلم) کې دي او د ترک روايات په سُننو کې دي او د تعارض په وخت کې د صحيحينو رواياتو ته ترجيح وي.

**ځواب:**

۱-د ترک د رفع اليدين دلايل په قرآن کې شته او په صحيحينو کې هم شته، أو کوم روايات چې په سننو کې دي هغه هم په شرط د شيخينو صحيح دي. فلهذا ددې رواياتو مرتبه هم د صحيحينو د احاديثو ده.

۲-د صحيحينو په رواياتو کې يوائې ثبوت د رفع اليدين بيانيږي، د سنتوالي اود دوام اود هميشه والي څخه ساکت دي اود نفسِ ثبوت څخه سنتوالى نه رامعلوميږي. لکه بيت المقدس ته لمونځ ثابت دى، لکن سنت نه دى، په ولاړه باندې بولې کول ثابتې دي لکن سنت نه دي. اود غسې نور په سلګونو مثالونه دي.

۳-په صحيحينو کې چې کوم روايات دي هغه صحيح روايات دي. لکن صحيح روايات يوائې په صحيحينو کې محصور نه دي.

۴-په بخاري کې د رفع اليدين له پاره يو د عبدالله بن عمر رضى الله عنهما حديث وړاندې کولى شي، چې موقوف او مضطرب روايت دى. خپله امام بخاري رحمه الله يې موقوفوالي ته اشاره کوي چې : (رواه ابن طهمان .... الخ) [ج ۱/ص ۱۰۲]. او بل د مالک بن حويرث روايت دى چې دا په بخاري کې مکمل نه دى رانقل شوى. په [صحيح ابوعوانه/ج ۲/ص ۹۵] او په [نسائى ج ۱/ص ۱۶۵] او نورو کې پکې د سجدو د رفع اليدين ذکر هم راغلى دى، چې لا مذهبان نه بلکې شيعه ګان پرې عمل کوي.

او په مسلم شريف کې له دغو دوو څخه ماسوا د وايل بن حجر رضى الله عنه حديث هم راغلى دى، هغه هم نه دى مکمل. د وايل بن حجر په مکمل حديث کې هم درفع اليدين بين السجدتين ذکر شته. البانى ليکي چې: (و زاد ابوداؤد فى روايته و اذا رفع رأسه من السجود ايضاً رفع يديه و سنده صحيح على شرط مسلم. حققته فى صحيحه) [تعليقات الالبانى على المشكوة/ج ۱/ص ۲۴۹/ حاشيه حديث نمبر ۷۹۷]. نودا هم د لامذهبانو نه بلکې د شيعه ګانو دليل دى

۵-زمونږ روايات هم د صحيحينو په معيار برابر دي. د صحيح ابوعوانه اود مسند حميدى سندونه د بخاري اود مسلم والا سندونه دي. بلکې په مستخرج صحيح ابوعوانه کې د صحيحينو غلطى هم راوپستلى شوي دي.

۶-په [مسلم شريف ج ۱/ص ۱۸۱/رقم الحديث ۹۶۸] کښ ذکر دي چې حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم له رفع اليدين څخه منعه وکړه او سخت ورباندي ناراضه شو.

۷- په [بخاري/ج ۱/ص ۳۵] او [مسلم/ج ۱/ص ۱۳۳] کښ د (بال قائماً) يعني په ولاړه باندې د مُتيازو کولو ذِکر دی او په ناسته باندې د مُتيازو کولو هيڅ ذِکر نشته، بلکې په ترمذی کې (باب النهى عن البول قايماً) دی. او لا مذهبان دلته د بخاري او د مسلم په روايت باندې عمل نه کوي، داسې په [بخاري/باب المصافحة] ده او د هغې لاندې په دواړو لاسونو باندې د مصافحې ذِکر دی او لا مذهبان يې نه مني.

## د حسن بصری رحمه الله د قول څه معنا ده ؟

۶-حضرت امام بخاری رحمه الله په [جزء رفع اليدين] کې د حضرت حسن بصري رحمه الله قول رانقل کړی دی چې: لم يثبت عن أحد من صاحبا رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه لم يرفع يديه د حسن بصری رحمه الله د دې قول څخه وروسته امام بخاري رحمه الله ليکي چې: حسن بصری هيڅوک نه دي مستثنى کړي او نه د کوم صحابي رضى الله عنه څخه ثابت دي چې رفع اليدين يې نه دي کړي. [جزء رفع اليدين/رقم ۱-۳۰.

**ځواب :**

۱-له دې څخه د تکبيرِ تحريمه رفع اليدين مراد دی. ځکه چې هلته يوائې د رفع اليدين ذِکر دی او که د رکوع رفع اليدين هم مراد شي نو بيا به د ترمذی او د ابراهيم نخعي او د نورو محدّثينو رحمهم الله تکذيب راشي، ځکه چې امام ترمذي د ترک د رفع اليدين روايت راوړی دی او بيا فرمايي چې: وَبِهِ يَقُولُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالتَّابِعِينَ [ترمذی/ باب ماجاء فى رفع اليدين/ رقم ۲۵۷]. يعني د رفع اليدين د بې شماره صحابوو او تابعينو عمل وو.

او ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايي چې: ما د رفع اليدين مسئله له هيڅ کوم صحابي څخه نه ده اورېدلې. [ موطأ امام محمد / رقم الحديث ۱۰۷ ].

۲-د امام بخاري رحمه الله څخه صحيح البخاري په زرګونو شاګردانو روايت کړی ده او په اُمّت کې متواتره ده، لکن د امام بخاري رحمه الله طرف ته دوه منسوبې رسالې [ جزء القراءة ] او [ جزء رفع اليدين ] ددې دواړو يوازې يو راوي دی چې محمود بن اسحق الخزاعي دی او دهغه هم ثقه والی نه دی ثابت. [ شرح جزء القراءة / ص ۱۴ / مولنا محمد امين صفدر اکاوړوي رحمه الله ].

## ۷ - رفع اليدين د متأخرالاسلام صحابه وو څخه روايت شوی دی نو څرنګه منسوخ شو ؟

لا مذهبان وأيي چې: سيند مالک بن حويرث رضی الله عنه په نهم هجری کال مدينې منورې ته راغلی و، کله چې حضرت نبي کريم صلی الله عليه وسلم د تبوک د غزا له پاره تياری کاوه. او د رفع اليدين روايت يې کړی دی. او حضرت وايل رضی الله عنه په نهم هجری کال مسلمان شوی دی او بيا دوباره په لسم هجري کال مدينې منورې ته راغلی دی او د رفع اليدين روايت يې کړی دی، نو تر لسم کال د هجرت پورې رفع اليدين ثابت شو. له دې څخه وروسته په يوولسم هجري کال باندې حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم يوازې دوه مياشتې او يوولس ورځې ژوندی و. نو په دې دوو مياشتو او يوولسو ورځو کې تاسو (ترکِ رفع اليدين) ثابت کړئ !

**اجمالي جوابونه: ۱**- پدې کې ستا پوره عمل کوم دی؟ په څلورو ځايونو کې د لسو رفع اليدينو ثبوت * او د اتلسو نفي * مواظبت او دوام * د مالک بن حويرث دبخاري په حديث کې څلور ځايه رفع اليدين ندي ذکر شوي او دنسائي په روايت کې پکې دسجدو رفع اليدين هم ذکر شوي دي نو دبخاري په حديث باندې عمل خپله د ويکتوريانو په نيز خلاف سنت دی، ځکه چې

ديو سنت پـه پرېښـودلو هـم لمـونځ خـلاف سـنت ګرځـي او دنسـائي د حـديث مطابق خپله د ويکېوريانو لمونځ خلاف سنت ثابتيږي ځکه چې و کتهوريان دسجدو رفع اليدين نه کوي.

۲-د مالک بن حويرث په حديث کې خو دسجدو رفع اليدين هم ذکر دی کما فی رواية النسائي نو ستا د استدلال مطابق د ادنبي صلی الله عليه وسلم اخرنی عمل شو حالانکې تاسو وربانديې عمل نه کوئ فما هو جوابکم فهو جوابنا.

۳- د عبد الله بن عمر رضی الله عنه په حديث کې راځي چې وکان لا يفعل ذلک فی السجود او دمالک بن حويرث په حديث کې دسجدو رفع اليدين ذکر شوی دی، نو دعبد الله بن عمر رضی الله عنهما په حديث کې څرنګه د اخرني عمل نفی راغله؟ که د متأخر الاسلام صحابي روايت په دوام دلالت کولی نو دعبدالله بن عمر په حديث کې ددې دنفی څه معنی ده ؟

۵-د صحابي د متأخر السلام والي نه په تاخير او دوام باندې استدلال کول خو قياس دی او قياس ته تاسو د شيطان عمل وايئ دلته مو ولې دخپلې فتوې مطابق دا شيطاني عمل وکړو؟ په حديث کې صراحة ددوام لفظ وښايئ، (۶) دېته مرسل د صحابي وايي چې يو صحابي د بل صحابي څخه اوريدلی وي، لکن بيا يې بالذات رسول الله صلی الله عليه وسلم ته منسوب کړی وي لکه ابو هريرة رضی الله عنه په اووم کال د هجرت مسلمان شوی دی، لکه دهجرت د اول کال واقعات هم بيانوي.

## تفصيلي جوابونه

**اول ځواب:** لا مذهبان د مالک بن حويرث رضی الله عنه ټول احاديث نه لولي، مالک بن حويرث رضی الله عنه د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم په صُحبت کې شل شپې پاتې شوی دی. [بخاری / ج۱ / ص ۸۸ و ۹۹] او کله يې چې د رخصتېدلو وخت راغی نو د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه يې د هدایاتو غوښتنه وکړه. حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته

وفرمايل چې: (صلّوا كما رأيتمـونى أُصَـلّ) [بخـارى ج/۱ ص۸۸] زه مو چې څرنګه په لمانځه ليدلى يم همداسې لمونځ وکړئ. کله چې مالک بن حويرث رضى الله عنه بېرته ولاړ نو خپلو ملګرو ته يې وويل چې: أَلَاأُنَبِّئُكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: وَذَاكَ فِي غَيْرِ حِينِ صَلَاةٍ، فَقَامَ، ثُمَّ رَكَعَ فَكَبَّرَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، فَقَامَ هُنَيَّةً، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ هُنَيَّةً [ بخارى / رقم الحديث ۸۱۸ / ج ۱ / ص ۱۱۳ ].

آيا زه تاسو د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم د لمانځه په کيفيت باندې پوهه کړم؟ ابو قلابه راوي فرمايي چې: دا د فرض لمانځه وخت نه و، نو دى مبارک ودرېده، بيا يې رکوع وکړه او الله اکبر يې وويل، بيا يې سر راپورته کړو او بنه ډېر ودرېده، بيا يې سجده وکړه، بيا يې سر راپورته کړ او تر ډېره وخته پورې يې سر اوچت کړى وو. الحديث. نو په دې کې د رفع اليدين ذکر نشته.

همدارنګه لا مذهبان د وايل بن حجر رضى الله عنه د دوهم ځل راتللو والا د حديث الفاظ نه رانقلوي. وايل بن حجر رضى الله عنه فرمايي چې: ثُمَّ أَتَيْتُهُمْ فَرَأَيْتُهُمْ يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَى صُدُورِهِمْ فِي افْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ ،الحديث. [ ابوداؤد / ج ۱ / ص ۱۱۲ / رقم الحديث ۷۲۸ ].

بيا زه دوهم ځل راغلم نو ما د تکبير تحريمه په وخت کې تر سينې پورې په رفع اليدين باندې وليدل. که د دوهم ځل راتلو په وخت کې يې څوک په رفع اليدين ليدلي واى نو به يې ضرور بيان کړى واى. حضرت وايل بن حجر رضى الله عنه هيڅ صحابي نه دى مستثنى کړى. نو له دې څخه معلوميږي چې د دوهم ځل راتللو په وخت کې تمامو صحابه وو رضى الله عنهم بِلا استثناء يوازې د اول تکبير په وخت کې رفع اليدين کول. که غير مقلدين وايي چې: په دې کې خو د رکوع د رفع اليدين نفى نشته. نو مونږ وايو چې: بيا خو په دې کې د سجدو د رفع اليدين نفى هم نشته.

۲– د راوي د متأخر الاسلام کېدلو څخه په دوام باندې استدلال نه دى صحيح. د لا مذهبانو مُحقّق محدّث عبد الرحمن مبارکپورى ليکي چې: د متأخر الاسلام کېدلو څخه استدلال د هغه چا

کار دی چې د اصول حديث او د اصول فقهه څخه خبر نه وي. [تحقيق الكلام / ص ۷۵] همدارنګه ليکي چې: د راوي د متأخر الاسلام کېدلو څخه استدلال کول د روايت په آخر والي باندې غلط دي. [تحقيق الكلام / ص ۷۶].

۳- په بخاري او په مسلم کې د مالک بن حويرث او وايل بن حجر رضوان الله تعالى عليهم دواړو په احاديثو کې د دريم رکعت د رفع اليدين ذکر بالکل نشته، او غير مقلدين دريم رکعت ته د پاڅېدلو په وخت کې هم رفع اليدين کوي. نو د لامذهبو دا عمل د دوي د دعوى مطابق د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم د آخري زمانې د عمل څخه مخالف دی.

۴- د حضرت وايل بن حجر رضى الله عنه په حديث کې د سجدو د رفع اليدين ذِکر هم شته. [وګوره ابوداؤد / ج ۱ / ص ۱۱۲ / رقم الحديث ۷۲۳]. همدارنګه د مالک بن حويرث رضى الله عنه په حديث کې هم د سجدو د رفع اليدين ذِکر دی. وګوره [نسائى / باب رفع اليدين للسجود / رقم الحديث ۱۰۸۶] او [مسند احمد / ج ۳ / ص ۴۳۶ و ۴۳۷] و [صحيح ابوعوانه / ج ۲ / ص ۹۵] حالانکه غير مقلدين د سجدو رفع اليدين نه کوي. نو د لامذهبو د دعوې مطابق دوي د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم د آخري زمانې له عمل څخه مخالف دي.

۵- د وايل بن حجر رضى الله عنه د [ابوداؤد / ج ۱ / ص ۷۲۴ و ۷۲۵] کې تر غوږونو پورې د رفع اليدين ذکر دی او لا مذهبان تر سينې پورې رفع اليدين کوي، نو چې غير مقلدينو د رفع اليدين مدار د وايل بن حجر او مالک بن حويرث رضى الله عنهما حديثونه ګرځوي، نو بيا ولې د دريم رکعت رفع اليدين نه پرېږدي؟ ولې د سجدو رفع اليدين نه کوي؟ ولې تر غوږونو پورې لاسونه نه پورته کوي؟

همدارنګه لا مذهبان دعوه کوي چې د رفع اليدين روايت د حضرت ابوهريره رضى الله عنه څخه هم شوی دی او حضرت ابوهريره رضى الله عنه متأخر الاسلام صحابي دی.

**ځواب:** د حضرت ابو هريره رضی الله عنه په روايت کې ترک د رفع اليدين ثابت دي.

۱-حضرت ابو هريره رضی الله عنه د نورو هر ځل تېښدلو او پورته کېدلو سره الله اکبر ويلو او د رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کې يې سمع الله لمن حمده ويلو او د لمانځه څخه چې فارغ شو نو ويې فرمايل چې: په خدای قسم چې زه په تاسو ټولو کې د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم سره زيات مشابه يم په لمانځه کې. د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ تر وفاته پورې همداسې و. [بخاری /رقم ۸۰۳ /مسند احمد /رقم ۸۲۷۳]. په دې صحيح حديث کې يواځې د (الله اکبر) ذِکر دی. د رفع اليدين ذِکر پکې نشته.

۲-حضرت ابوبکر بن عبد الرحمن رحمه الله فرمايي چې: حضرت ابو هريره رضی الله تعالی عنه فرمايي چې: حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم به چې کله لمانځه ته ودرېده نو (الله اکبر) به يې ووايه. رکوع ته د تللو په وخت کې به يې (الله اکبر) ويل، له رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کې به يې (سمع اللهِ لمن حمده) وويله او په دې حال کې چې ولاړ به وو نو (ربّنا لک الحمد) به يې وويلو، سجدې ته د تللو او له سجدې څخه د پورته کېدلو په وخت کې به يې (الله اکبر) وويلو. له لمانځه څخه تر فارغېدو پورې يې همدا معمول وو. [مسلم/رقم ۸۶۸]. په دې حديث کې هم يواځې د تکبير ذِکر دی او د رفع اليدين ذِکر پکې نشته.

## (۸)ايا درکوع په رفع اليدين کې لس نيکنې دي

الجواب: ۱-د رکوع په رفع اليدين کې دلسو نيکيو خبره د رسول الله صلی الله عليه وسلم په هيڅ حديث کې نشته، نه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په قول کې شته نه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په فعل کې شته او نه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په تقرير کې شته د صحابه وو اقوال او تقريراتو ته ته خو لامذهبيان حجت نه وايي.

۲- که په هر رفع اليدين کې لس نيکۍ وي نو بيا خو د لامذهبانو نه په نيکيو کې شيعه ګان مخکې شو ځکه چې هغوي د هر رکعت سره رفع اليدين کوي د هرې سجدې سره رفع اليدين کوي او د هرې رکوع سره رفع اليدين کوي نو بيا دی لامذهبيانو چيرته کومې امام بارې ته لاړشي او د هر انتقال سره دې رفع اليدين کوي.

۳- د صحابي عقبة بن عامر رضی الله عنه قول لامذهبانو ته دليل ندی او د علامه شنقيطي رحمه الله د تحقيق مطابق د عقبه بن عامر رضی الله عنه قول د تکبير تحريمه د رفع اليدين په باره کې دی هغه فرمايي چې: وقال عقبة بن عامر له بكل اشارة عشر حسنات بكل اصبع حسنة وهذا رواه الطبراني بأسناده حسن عن قبة المذكور، وهذا الرفع مستحب عند جمهور العلماء عند افتتاح الصلوة لا واجب، (زاد المسلم فيما اتفق عليه البخاري ومسلم رقم ۱۱۵۶)

* * *

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده.

أمابعد!

## دايمان څخه وروسته اهم عبادة لمونځ دی

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې دقيامت په ورځ به دهرڅه نه مخکې دلمانځه حساب کيږي.

نن سباپه دې اهم عبادت کې خلک ډيره زياته سستي کوي، نولدې وجهې ډيره ضروري ده چې مسلمانانو ته دلمانځه دپابندی ترغيب ورکړل شي، الحمدلله علماء حقاني پيران اوتبليغي حضرات پدې اهمه فريضه شپه اوورځ محنت اوخواري کوي.

لکن افسوس چې لامذهبه غيرمقلدين په بې لمانځانوباندې د محنت اودخواری پرځای دلمونځ کونکوپه زړونوکې وسوسې اچوي او ورته وايې چې ستاسولمونځ نه کيږي، داخلک شپه اوورځ د عوامو په مخ کې داخبرې کوي چې مونږصرف قران اوحديث منو.

خوپه هندوستان باندې چې دانګريزي دورې څخه راپديخوا دافرقه جوړه شوي ده نوترننه پورې ددوی دتقريرونواوتحريرونو څخه دادلمرپه شان ځليږي. چې دقران پاک څخه ددوي په برخه کې صرف متشابهات دي اوپه قران کې دابرخه دزايغينو مبتدعينو لپاره خاصه شوې ده.

**الله فرمائي** :وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ [الاية]اودا حاديثو څخه ددوي په برخه کې صرف اوصرف متعارضات دي. حضرت ابوبکرصديق ﷺ ددې قسم احاديثو بيانولو څخه په ډيرې سختې سره منع کړې ده ځکه چې ددې په وجه په مسلمانانو کې سخت اختلاف پيدا کيږي. (تذکرة الحفاظ،ج ا ص ۲۷).

په دې متعارضاتو کې دالله ﷻ اودرسول الله ﷺ څخه هيڅ فيصله په کتابونو کې نده رانقل شوي په کوم ځای کې که يوحديث ته راجح اوبل ته مرجوح ويل شوی دي نوهغه به دکوم مجتهداجتهادوي.

او همدارنګې که په کوم ځای کې یو حدیث ته صحیح او بل ته ضعیف ویلی شوی وي نو هغه به هم دکوم مجتهد اجتهاد وي. لدې وجهې اهل سنت والجماعت په داسې ځای کې دټولو څخه مخکې اجماع ګوري که په متعارضاتو کې دیو طرف په روایاتو اجماع وي نو په همغی باندې عمل کوي.

او که اجماع نه وي نو ددې تعارض دختمولو لپاره بیا د مجتهد طرف ته رجوع کوي، ځکه چې دحضرت معاذ﷛ په حدیث کې صراحتاً ثابته ده چې که فیصله په کتاب او په سنتو کې پیدا نه شوه نو داجتهاد طرف ته دی رجوع وکړل شي، کوم سړی چې مجتهد وي هغه دی پخپله اجتهاد وکړي او په چاکې چې داجتهاد اهلیت نه وي نو هغه دی دبل مجتهد تقلید وکړي او دهغه په لاربښودنه دی په راجح حدیث باندې عمل وکړي.

دمجتهدینو امامانو په مابین کې دا اجتهادي اختلاف دحق او دباطل اختلاف نه دی، بلکې دصواب او دخطا اختلاف دی او مجتهد نه معصوم دی او نه مطعون دی، بلکې په هرحال کې ماء جور دی، دصواب په صورت کې ورته دوه اجره دي او دخطاء په صورة کې ورته یو اجر دی. (بخاری ج ۲ص ۹۲).

لـه دې وجهې ددې وسوسې اچولو ته ضرورت نشته چې امام اعظم رحمه الله خو معصوم نه دی خطائی ترینه کیږي نو دغیرمعصوم پیروي ولې کوئ. ددې برعکس دلامذهبو غیرمقلدینو طریقه ډیره خطرناکه ده، د دوي بعضې علماء دهوښیاری څخه کار اخلي خپله ځان نه راښکاره کوي، بلکې أمیان لوچلک هلکان یې په بازارونو او مسجدونو کې خوشی کړي وي او په لاندې طریقه باندې یې فساد خورول وربښودلی وي.

(۱) دچاسره چې مخامخ شي نو په هغه باندې اول سوال داوکړي چې ستافلانکې عمل په کوم حدیث ثابت دی او شور جور کړي چې ستاسو سره یو حدیث هم نه شته. ددې علاج دادی چې ته ترینه پوښتنه وکړه چې ته زما ددې عمل په خلاف کوم صحیح صریح غیر متعارض حدیث وښایه نو فبهت الذی کفربه شي.

(۲) کله چې کوم اهل سنت والجماعت ترینه پوښتنه وکړي چې ستا فلانکی عمل په کوم حدیث ثابت دی؟ چونکه دَه ته حدیث یادنه وي، نو فوراً چیغې او شور جور کړي چې ته راته حدیث وښایه چې په کوم حدیث کې یې منع راغلې ده؟

ددې علاج دادی چې ته ورته ووایه چې (البینة علي المدعي) دلائل دمدعي په ذمه دي نو ته چې ددې عمل مدعي یې دلیل یې ستاپه ذمه دی او ستاپه نیزدلایل صرف دوه دي قران او حدیث صحیحه مرفوعه، فلهذاته یاد قران ایت پیش کړه او یا حدیث صحیحه مرفوعه پیش کړه بل هیڅ شی ورسره مه منه نو ته به یې بیا وګورې چې داسې به تښتي لکه شیطان چې دالله ﷻ دنوم په اورېدلو تښتي.

(۳) کله چې کوم اهل سنت والجماعت ورته حدیث پیش کړي نو بیا شور جوړ کړي چې دا حدیث په صحاح سته وو کې نه شته د صحاح سته وو څخه غیر نور دټولو احادیثو څخه انکار کوي او بیا هم ځانو نو ته اهل حدیث وائي.

(۴) کله چې بیا پ... ...بعه وو (ترمذی، ابوداود، ابن ماجه، نسائي) کې حدیث ورو ښائي نو بیا چیغې او شور جوړ کړي چې ... حدیث په بخاری او په مسلم کې نه شته په دې طریقه د سنن واربعه وو څخه هم منکر شي.

(۵) کله چې په بخاری او په مسلم کې حدیث ورښائي نو فوراً د خپل ځان له طرفه شرط ولګوي چې که په حدیث کې فلان لفظ وي منم یې او که نه وي نه یې منم، ګویا چې دا فرقه الله ﷻ او رسول الله ﷺ ته مشوره ورکوي چې که چیرته کومه دیني مسئله بیانوئ نو زمونږ سره پکې مشوره ضروري ده، چې په کومو الفاظو د مسئلې بیانول پکار دي او د کوم شرط موافق یې بیانول پکار دي، ګویا چې دوي الله ﷻ او نبي ﷺ ته په خطاب کې وائي چې یا الله ﷻ او یا نبی پاک ﷺ تاسو چې په کومو الفاظو مسئله بیان کړې ده، کومه چې زمونږه د شرط موافقه نه ده مونږه یې هیڅکله نه منو.

یادلرئ چې لامذهبان نه قران مني او نه حدیث، نه خدای مني او نه رسول، بلکې ټول ایمان یې په خپلو شرطونو باندې دی.

(٦) کله چې بیا داسې حدیث هم ورته پیش کړي چې دده د شرطونو سره موافق وي او همغه الفاظ پکې وي چې ددې یې غوارې نو بیا یې هم نه مني او په ډېر شور او زور چیغې وهي چې دا ضعیف دی، ضعیف دی، ضعیف دی او مطلب یې داوي چې عوام ورباندې دغټ شیخ الحدیث ګمان وکړي حالانکه هغه به یا مکتبي وي او یا به کوم دکانداروي او یا به کوم کیلنډر وي، خلاصه دا چې د حدیثو څخه دانکار لپاره دا فرقه هرې حیلې او فریب ته تیاره ده.

(۷) زمونږ اهل سنتو په نيز دلايل څلور دي قران ،حديث ،اجماع او قياس نو زمونږ د هرې مسئلې لپاره به اول دليل قران وي، که هلته نه وو بيا به حديث وي که هلته نه وو بيا به اجماع وي او که هلته نه وو بيا به قياس وي .نو که غير مقلدين وائي چې ستاسو لمونځ غلط دی، مونږ ورته وايو چې د تکبير تحريمه څخه به يې شروع کړو په ترتيب سره تاسو د هرې مسئلې په خلاف يو يو صحيح صريح غير متعارض حديث پيش کړئ .

(۸) لامذهبان وائي چې زمونږ هره مسئله په قران او په حديث ثابته ده، نو مونږ وايو چې لمونځ د بدني افعالو او زباني اذکارو مجموعه ده نو تاسو د خپل لمونځ اعمال او اذکار په ترتيب سره وليکئ او بيا د هر عمل او ذکر حکم وښائي چې کوم فرض دی او کوم سنت دی؟ او کوم مستحب دی؟ او هر حکم په صحيح صريح حديث کې وښائي چې رسول الله ﷺ صراحة فلان عمل او ذکر ته فرض ويلي دي، فلان عمل او ذکر ته يې سنت ويلي دي او فلان عمل يا ذکر ته يې مستحب ويلي دي .بيا د هر ذکر په باره کې دا فيصله په صريح حديث کې وښائي چې کوم به په اوچت آواز ويل کيږي او کوم په پټه، مثلا مقتدي به الله اکبر پټ وائي او که په زوره ؟سبحنک اللهم به پټ وائي که په زوره؟ همداسې تر اخره هر حکم په صحيح صريح حديث کې وښائي، نو ته به وګورې چې د اخرنګه صم بکم عمی ګرزي .

(۹) د دې خلکو څخه چې کله پوښتنه وشي چې تاسو د لمونځ کونکو په زړونو کې وسوسې ولې اچوئ؟ حالانکه په قران کريم کې د وسوسه اچونکي ته خناس ويلی شوی دی، نو دوي عوامو ته وائي چې مونږ تحقيق کوو، خو يادساتئ چې دا هيڅکله تحقيق ندی، بلکې ګناه ده، فتنه ده او فساد دی، ځکه چې دا خلک نه محدثين دی او نه مجتهدين دي، بلکې بې علمه او نااهله دي رسول الله ﷺ فرمائي چې په اخره زمانه کې به بې علمه خلک فتوی ورکوي، دوي پخپله هم ګمراهان دي او نور خلک هم ګمراه کوي.

په بل حديث کې راځي چې کله کارونه نا اهلوته وسپارل شول نو د قيامت انتظار کوه او قيامت د فسادنوم دی دوي هم په دين کې د فسادونو بازار ګرم کړی دی او عجيبه لاداده چې خپل دې فساد ته تحقيق هم وائي .

او د خپلې نااهلۍ او جهل سره سره په لويو لويو مجتهدينو اعتراضونه کوي، لکه په ايمه يې اربعه وواو په محدثينو، لکه زيلعي رحمه الله ، عينی،علی القاری ،ابن ترکماني، علامه انورشاه ، حضرت بنوری رحمهم الله وغيره حالانکه رسول الله ﷺ به د بيعت اخستلو په وخت کې يو شرط دا لګولو چې ( ان

لاننــــازع الامراهلـــــه )(نسـائی ،ج ۲ص ۱۵۹). يعنـې مونږبـه داهـل فـن سـره منازعـه نـه کـوو، دنااهلو اعتراض په اهل فن باندې ګناه کبيره ده او دې ګناه کبيرې ته لامذهبان تحقيق وائي.

داهل سنت والجماعت اولامذهبو په مينځ کې ډير اختلافي مسايل دي چې دهغوي څخه يوه داده چې دښځې اودسړي په لمونځونو کې فرق شته او که نه ؟

لامذهبان وائي چې نشته، دلامذهبو په هر کتاب کې يې ليکلي دي چې دخطاګانو څخه يوه داده چې دښځې اودسړي په لمونځونو کې په کيفياتو کې فرق وکړئ .(امين الفتاوی ،ج ۱ص ۱۸۱)صلوة الرسول صـ۱٦۴نماز نبوي صـ۱۸۲).

اهل سنت والجماعت فرمائي چې دلامذهبو دامسئله چې دښځې اودسړي په لمانځه کې فرق نه شته . دقران، حديث اوداجماع څخه بالکل مخالفه ده اوداصرف اوصرف دابن حزم ظاهري تقليددی داهل سنت والجماعت په نيز په شريعت مطهره کې دښځې اودنرپه مابين کې دبعضې احکامو داشتراک باوجود په بعضو تفصيلاتو کې فرق شته مثلا :

## منلي شوي فرقونه

(۱) حج په سړي اوپه ښځه دواړو باندې فرض دی، دسړي لپاره شرط زاداوراحله ده، لکن دښځې لپاره ددې شيانوسره سره دمحرم ياخاوند شرط هم دی .

(۲) داحرام څخه دوتلو لپاره سړي ويښته کلولی شي اوښځه يې نه شي کلولی .

(۳) دنکاح حکم دسړي اودښځې په مابين کې شريک دی، مګر د طلاق حق دسړي پورې خاص دی اودعدة حکم دښځې پورې خاص دی.

(۴) يو سړي ته دڅلورو ښځو سره دنکاح کولو اجازت شته، مګر ښځې ته ديو سړي څخه دزياتو سره نکاح نده جايزه.

(۵) دلامذهبانو ښځې اوسړي هم په لمانځه کې ډير فرق کوي مثلا :

(الف) ددوي په مساجدو کې هم سړي امامت او خطابت کوي، لکن ښځې نه امامتي کوي اونه خطابت، اګر چې اروپايي ملکونو کې ددوي ښځو هم امامت او خطابت شروع کړی دی.

(ب) ددوي په مساجدو کې هم اذان کونکي دهميشه لپاره نارينه وي زنانه اذان کونکي نشته.

(ج) ددوي نارينه اقامت کوي او زنانه يې نه کوي.

(د) ددوي نارينه اکثرلوڅ سرلمونځ کوي او ښځې يې په ټکري کې سر پټوي: عَنْ عَائِشَةَ ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ الحَائِضِ إِلَّا بِخِمَارٍ. (ترمذی، ج ۱ص ۸۶/ ابوداود، ج ۱ص ۹٤).

حضرت عايشه رضی الله عنها فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې دبالغې ښځې لمونځ بغيردټکري څخه نه قبليږي.

(ه) ددوي دنارينه ومتې اوپونډې په لمانځه کې اکثرلوڅې وي، لکن ددوي ښځې داسې لمونځ نه کوي.

(٦) دښځې اودسړي په سترعورت کې هم فرق دی.

(۷) دجمعې لمونځ په نارينه وفرض دی او په زنانه وندی فرض.

(۸) پنځه وخته لمونځ په جماعت سره په نارينه ولازم دی او په زنانه وندی لازم.

(۹) که په لمانځه کې څه خبره پيښه شي، نونارينه تسبيح وائي او ښځه تصفيق يعنې يولاس په بل لاس وهي. (ترمذی ص ۸۵) مسلم، ج ۱ص ۱۸۰) په فرائضواو په سنتو کې دسړي په مقابله کې د ښځې دستراودپردې ډيراهتمام شوی دی، له دی وجهې ايمه يې اربعه وو په رکوع، سجده، وغيره کې دښځې اودسړي فرق واضحه کړی دی مثلا لاندې تفصيل وګورئ.

## دښځې او دسړي په مونځ کې دفرق اصلي وجه

اصل وجه داده چې شريعت ښځې ته دزياتې پردې او دستر حکم کړی دی، رسول الله ﷺ فرمايي چې: المرءة عورة) ترمذي رقم ۱۰۹۳ يعنې ښځه دپردې او دستر شی دی، همدرنګه نبي ﷺ فرمايي چې: النساء عورة. شعب الايمان حديث نمبر ۷۴۳۲ باب الحياء، يعنې ښځې دپردې شی دي، نو چې ښځې ته دمخلوق څخه دپردې حکم وي نو دخالق په مخکې هم زياته حياء پکار ده.

## مذاهب اربعه

ددې احاديثو په رڼا کې دڅلورو واړو مذهبونو په فقو کې دښځې او دسړي په مونځ کې فرق ذکر شوی دی

## مذهب الحنفيه

وَاَمَّا النِّسَآءُ فَاتَّفَقُوْا عَلٰى اَنَّ السُّنَّةَ لَهُنَّ وَضْعُ الْيَدَيْنِ عَلَى الصَّدْرِ لِاَنَّهٗ اَسْتَرُلَهَا كَمَا فِي الْبِنَايَةِ وَفِي الْمُنْيَةِ الْمَرْأَةُ تَضَعُهُمَا تَحْتَ ثَدْيَيْهَا (السعايه، ج١ص ١٥٦).

دښځو په باره کې علماء متفق دي چې دوي به لاسونه په سينه باندې ږدي، چې دا ئې ډېر پټونکي دي ددوي لپاره او په منية المصلى کې راغلي دي چې ښځه به لاسونه د تيونو لاندې ږدي په بل ځاى کې راځي چې:

والمراة تنخفض في سجودها وتلزق بطنها بفخذيها لان ذلک استرلها (وفي موضع اخر) وان كانت امرة جلست على اليتها اليسرى اخرجت رجليها من الجانب الايمن لانه استرلها. (هدايه، ج/١ص ١١١).

يعنې ښځه به نښتې سجده کوي، ورنونه به دګيډې سره نښلوي، چې دا ډېر پټونکي دي ښځې لره او دفقهې په بل ځاى کې راځي چې ښځه به دواړه پښې خې طرف ته اوباسي او په چپ کوناټې به کينې ځکه چې دا ډېر پټونکي دي دښځې لپاره.

## مذهب المالكيه

(وَ) نُدِبَ مُجَافَاةُ (أَيْ مُبَاعَدَةُ) رَجُلٍ فِيهِ (أَيْ فِيْ سُجُوْدِهٖ) فَلَا يَجْعَلُ بَطْنَهُ عَلَيْهِمَا (اَيْ عَلٰى فَخِذَيْهِ)، (وَ) مُجَافَاةُ (مِرْفَقَيْهِ رُكْبَتَيْهِ) أَيْ عَنْ رُكْبَتَيْهِ. (وَ) مُجَافَاةُ (ضَبْعَيْهِ) اَيْ مَا فَوْقَ الْمِرْفَقِ إِلَى الْإِبْطِ (جَنْبَيْهِ) أَيْ عَنْهُمَا مُجَافَاةً (وَسَطًا) فِي الْجَمِيعِ. وَأَمَّا الْمَرْأَةُ فَتَكُوْنُ مُنْضَمَّةً فِي جَمِيعِ أَحْوَالِهَا. (الشرح الصغير للدردير المالكى، ج١ص ٣٢٩)

يعنې دسړي لپاره مستحبه داده چې په سجده کې ګېډه د ورنونو څخه لرې وساتي او څنګلې د ځنګنونو څخه لرې وساتي او ښځه به نښتې سجده کوي.

## مذهب الشافعيه

قَالَ الشَّافِعِيُّ وَالْأَصْحَابُ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ يُسَنُّ أَنْ يُجَافِيَ مِرْفَقَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ وَيَرْفَعَ بَطْنَهُ عَنْ فَخِذَيْهِ وَتَضُمُّ الْمَرْأَةُ بَعْضَهَا إِلٰى بَعْضٍ (وَقَالَ بَعْدَ اَسْطُرٍ) وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُقِلَّ بَطْنَهُ عَنْ فَخِذَيْهِ لِمَا رَوَى الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا سَجَدَ جَخَّ" رُوِيَ "جَخَّى" وَالْجَخُّ الْخَاوِي وَإِنْ كَانَتْ اِمْرَأَةً ضَمَّتْ بَعْضَهَا إِلٰى بَعْضٍ لِأَنَّ ذٰلِكَ أَسْتَرُلَهَا). (شرح المهذب، ج ٣ص ٤٠٤ وضع اليدين والركبتين والقدمين فى السجود).

سنت طریقه داده چې څنګلې دتشو څخه جدا کړي او ګیډه دورنونو څخه جدا کړي او ښځې به څنګلې دتشو سره نښلوي او ګیډه به دورنونو سره نښلوي.

همدا رنګې امام شافعي رحمه الله په کتاب الام، ج اص ۱۱۵) کې لیکلي دي چې (واجب للمرءة فی السجود ان تنضم بعضها الی بعض وتلصق بطنها بفخذها، وتسجد کأستر مایکون لها وهکذا احب لها فی الرکوع والجلوس) یعنی ښځه به نښتي سجده کوي همداسې به په رکوع او په سجده کې هم کوي.

## مذهب الحنابلة

قَالَ الْإِمَامُ الْخِرَقِي الْحَنْبَلِي رحمه الله: وَالرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ فِي ذٰلِكَ سَوَآءٌ، إِلَّا أَنَّ الْمَرْأَةَ تَجْمَعُ نَفْسَهَا فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ وَتَجْلِسُ مُتَرَبِّعَةً أَوْتَسْدُلُ رِجْلَيْهَا فَتَجْعَلُهُمَا فِي جَانِبِ يَمِينِهَا. الْأَصْلُ أَنْ يَثْبُتَ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ مِنْ أَحْكَامِ الصَّلَاةِ مَا يَثْبُتُ لِلرِّجَالِ، لِأَنَّ الْخِطَابَ يَشْمَلُهَا، غَيْرَ أَنَّهَا خَالَفَتْهُ فِي تَرْكِ التَّجَافِي، لِأَنَّهَا عَوْرَةٌ، فَاسْتُحِبَّ لَهَا جَمْعُ نَفْسِهَا، لِيَكُونَ أَسْتَرَ لَهَا، فَإِنَّهُ لَا يُؤْمَنُ أَنْ يَبْدُوَ مِنْهَا شَيْءٌ حَالَ التَّجَافِي. وَكَذٰلِكَ فِي الْإِفْتِرَاشِ، قَالَ أَحْمَدُ رحمة الله تعالی علیه: وَالسَّدْلُ أَعْجَبُ إِلَيَّ. وَاخْتَارَهُ الْخَلَّالُ. ( المغنی لابن قدامه، ج اص ۵٦۲ )

امام خرقي فرمائي چې نارینه او زنانه په دې کې برابر دي، مګر دا چې ښځه به په رکوع او په سجده کې خپل ځان راټولوي او کیني به په چارزانو او یا به سدل کوي، چې دواړه پښې ښي طرفته او باسي او په چپ کوناټې باندې کیني.

ابن قدامه حنبلي ددې په شرحه کې فرمائي چې اصل داده چې ښځې ته دلمانځه هغه احکام ثابت شي کوم چې دسړیو دي، ځکه خطاب دواړو ته شامل دی.

مګر ښځه دسړي سره په دې کې مخالفه ده، چې سړی به ګیډه د ورنونو او څنګلي د زنګنو څخه لرې ساتي او ښځه به یې سره نښلوي، ځکه چې دا د ښځې لپاره ښه پټوونکي دي، دتجافی په حالت کې ددې خطردی چې څه اندام یې ښکاره شي.

## د يو څو نورو فقهاوو او محدثينو اقوال هم وګورئ

**١ـ امام بيهقي رحمه الله فرمايي چې:** وَجُمَّاعُ مَا يُفَارِقُ الْمَرْأَةَ فِيهِ الرَّجُلَ مِنْ أَحْكَامِ الصَّلَاةِ رَاجِعٌ إِلَى السِّتْرِ، وَهُوَ أَنَّهَا مَأْمُورَةٌ بِكُلِّ مَا كَانَ أَسْتَرَ لَهَا وَالْأَبْوَابُ الَّتِي تَلِي هَذِهِ تَكْشِفُ عَنْ مَعْنَاهُ وَتَفْصِيلِهِ، (السنن الكبرى تحت حديث رقم ٣٣٢١ كتاب الصلوة باب ذكر صلوة وهو في أخرى.

دمانځه هغه احکام چې ښځه د سړي څخه جدا کوي د ستر په قانون باندې مبني دی، ښځې ته حکم دی چې دهغو ټولو شيانو لحاظ وکړي کوم چې دستر لپاره کار ورکوي او کوم بابونه چې را روان دي هغه دا مقصد واضحوي، په بل ځای کې فرمايي: باب مايسحب للمرءة من ترک التجافی فی الركوع والسجود. (السنن الكبرى ج ٢ صـ ٢٢٢ كتاب الصلوة، دا باب په بيان ددې کې دی چې ښځه به په رکوع او په سجده کې کلاو والی نه راولي.

**٢ـ محدث امام عبدالرزاق رحمه الله فرمايي چې:** باب تكبيرة المرءة بيديها وقيام المرءة وركوعها وسجودها. (منصف عبدالزاق ج ٣ صـ ١٣٧ كتاب الصلوة، باب دی په بيان دتکبير دښځې کې په لاسونو باندې او په بيان دقيام او درکوع او سجدې دښځې کې.

**٣ـ محدث امام ابن أبى شيبه رحمه الله فرمايي چې:** المرءة كيف تكون فى سجودها. مصنف ابن ابي شيبه كتاب الصلوة. ښځه به څرنګه سجده کوي؟

**٤ـ فقيه او محدث امام محمد رحمه الله فرمايي چې:** كيف تجلس فى الصلوة؟ كتاب الآثار صـ ٤٤. ښځه به په لمانځه کې څنګه کيني؟ په بل ځای فرمايي چې: أحب الينا ان تجمع رجليها فى جانب ولا تنصب انتصاب الرجل. كتاب الاثار صـ ٤٤. زمونږ په نيز بهتره دا ده چې ښځې دې په قعده کې پښې يو طرف ته وباسي، او دنارينه ؤ په شان دې نه دروي.

**٥ـ محدث امام نووي الشافعي رحمه الله فرمايي چې:** ويسن للرجل ان يجافى مرفقيه عن جنبيه ويسن للمرءة ضم بعضها الى بعضٍ وترک المجافات. شرح المهذب ج ٣ صـ ٤٠٤ صفة الركوع. دسړي لپاره سنت طريقه دا ده چې خپلې څنګلې د اړخونو څخه جدا وساتي او دښځې لپاره سنت طريقه دا ده چې يو دبل سره يې ونښلوي او جدا والی ختم کړي.

**٦ـ محمدث امام سيوطي رحمه الله فرمايي چې:** وتضم بعضها الى بعض في الركوع والسجود. (الاشباه والنظائر، القول في احكام الانثى وماتخالف فيه الذكر. او ښځه به په رکوع او په سجده کې اندامونه يو دبل سره ننبلوي.

**٧ـ شيخ الاسلام علامه ابن دقيق العيد رحمه الله فرمايي چې:** قالوا المرءة تضم بعضها الى بعض لان المقصود منها التصون والتجمع والتستر، وتلك الحالة اقرب الى هذاالمقصود. (احكام الاحكام ،تجافى اليدين عن الجنبين فى السجود)

دفقهاؤ د وينا مطابق به ښځه خپل اندامونه يو دبل سره ننبلوي ځکه چې د دې په وجه دفتنې څخه حفاظت او راټوليدل او پرده چې اهم مقاصد دي ښه حاصليږي.

**٨ـ علامه شمس الأيمه سرخسي رحمه الله فرمايي چې:** فَأَمَّا الْمَرْأَةُ فَتَحْتَفِزُ وَتَنْضَمُّ وَتُلْصِقُ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا وَعَضُدَيْهَا بِجَنْبَيْهَا هٰكَذَا عَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ- فِي بَيَانِ السُّنَّةِ فِي سُجُودِ النِّسَآءِ وَلِأَنَّ مَبْنٰى حَالِهَا عَلَى السِّتْرِ فَمَا يَكُونُ أَسْتَرَ لَهَا فَهُوَ أَوْلٰى لِقَوْلِهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ مَسْتُورَةٌ» (المبسوط ج ١، كتاب الصلوة ، كيفية الدخول فى الصلوة)

ښځه به داسې سجده کوي او خپله ګيډه به د ورنونو سره ننبلوي او خپلې مټې به د څنګلونو سره ننبلوي ، دښځو لپاره همداسې مسنونه سجده دحضرت علي رضي الله عنه څخه رانقل شوې ده، او دا وجه هم ده چې دښځي دحالت مدار په ستر او په پرده باندې دی، نبي صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې ښځه عورت دی او مستوره ده، نو کوم حالت چې دستر او دپردې وي همغه ورته بهتر دی، په بل ځای کې فرمايي چې: فَأَمَّا الْمَرْأَةُ فَيَنْبَغِي لَهَا أَنْ تَقْعُدَ مُتَوَرِّكَةً لِمَا رُوِيَ: «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَأَى امْرَأَتَيْنِ تُصَلِّيَانِ فَلَمَّا فَرَغَتَا دَعَاهُمَا وَقَالَ: اسْمَعَانِ، إِذَا قَعَدْتُمَا فَضُمَّا بَعْضَ اللَّحْمِ إِلَى الْأَرْضِ» وَلِأَنَّ هٰذَا أَقْرَبُ إِلَى السِّتْرِ فِي حَقِّهِنَّ)

ښځه دې په قعده کې په تورک کيني يعني خپلې دواړه پښې دې يو طرفته اوباسي.......او دا هيئت دښځو په حق کې دزياتې پردې باعث دی، په يو بل ځای کې فرمايي: (وَتَقْعُدُ الْمَرْأَةُ فِي صَلَاتِهَا كَأَسْتَرِ مَا يَكُونُ لَهَا) لِمَا رَوَيْنَا أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «قَالَ لِتِلْكَ الْمَرْأَةِ: ضُمِّي بَعْضَ اللَّحْمِ إِلَى الْأَرْضِ»، وَلِأَنَّ مَبْنٰى حَالِهَا عَلَى التَّسَتُّرِ فِي خُرُوجِهَا، فَكَذٰلِكَ فِي صَلَاتِهَا يَنْبَغِي أَنْ تَتَسَتَّرَ بِقَدْرِ مَا تَقْدِرُ عَلَيْهِ، قَالَ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- «الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ مَسْتُورَةٌ» ( المبسوط ج ١ كتاب الصلوة، باب الحدث فى الصلوة )

ښځه دې په داسې هيئت باندې کيني په کوم کې چې دستر ډير رعايت وي ځکه چې دنبي ﷺ څخه روايت دی چې يوې ښځې ته يې وفرمايل چې دخپل بدن بعضې حصه دزمکې سره ولګوه، او دا وجه هم ده چې په بهر وتلو کې دښځې دحالت مدار په ستر او په پرده باندې دی، همدارنګه به په مونځ کې هم وي چې دخپل طاقت په اندازه باندې به پرده کوي نبي ﷺ فرمايي چې ښځه عورة دی او مستوره ده.

**۹ـ علامه ظفر احمد العثماني فرمايي چې:** ودلالة الاحاديث المذكورة على هيئة جلوس المرءة ظاهرة، البعض منها وانكان ضعيفا، كحديث رواه ابن عدي فى الكامل، ولكن البعض يتقوى بالبعض، فالمسألة ثابتة بالحديث المرفوع ولله الحمد، والقياس ايضا يقتضي مخالفه هيئة المرءة في جلوسها وسجودها عن هيئة الرجال، لكون مبنى احوالهن على التستر، والاحاديث المذكورة مؤيدة لها، اعلاء السنن ج ٣ صـ ٣٢)

دمذکوره احاديثو دلالت په هيئت دکيناستلو دښځې باندې ظاهر دی، او ددې مسئلې بعضې احاديث اګر چې ضعيف دی لکه دابن عدي فى الكامل حديث لکن بعضې احاديث دبعضو نورو تقويت راولي، لدې وجې دښځې او دسړي دکيناستلو په کيفيت کې فرق دمرفوع حديث څخه ثابت شو لله الحمد او قياس هم ددې تقاضی کوي چې دښځې دسجدې او دکيناستلو هيئت دی دسړي سره فرق ولري ځکه چې دښځې داحوالو مدار په ستر او په پردې باندې دی او دا مذکور احاديث ددې تايد کوي.

**۱۰ـ على بن سليمان الحنبلي رحمه الله فرمايي چې:** وَالْمَرْأَةُ كَالرَّجُلِ فِي ذٰلِكَ إِلَّا أَنَّهَا تَجْمَعُ نَفْسَهَا فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ، وَكَذَا فِي بَقِيَّةِ الصَّلَاةِ بِلَا نِزَاعٍ (الانصاف ج ٢ باب صفة الصلوة) يعنې ښځه به په رکوع او په سجده او په باقي ټولو حالاتو کې اتفاقا خپل ځان راټولوي.

**۱۱ـ علامه صاوي المالكي رحمه الله فرمايي چې:** وَأَمَّا الْمَرْءَةُ فَتَكُوْنُ مُنْضَمَّةً فِيْ جَمِيْعِ أَحْوَالِهَا بُلْغَةِ السَّالِكِ (المعروف بحاشية الصاوي على الشرح الصغير ج ١ مندوبات الصلوة) يعنې ښځه به په ټولو حالاتو کې راټول مونځ کوي.

## دلامذهبه وکتوري اهلحديثو دمصنفينو يو څو حوالې

(۱)وحيدالزمان ليکي چې: واذا صلت المرءة فلتحتفزوا، اذا جلست، واذا سجدت، ولا تخوي كما يخوي ا لرجل. لغات الحديث جلد اول كتاب (ح) صـ۹۸) يعنې ښځه به دسړي په شان کلاو سجده نه کوي بلکې راټوله سجده به کوي، همدارنګه په نزل الابرار ج ۱ صـ۸۵ کې ليکي چې: الا ان المرءة ترفع يديها عند التحريم الى ثديها ولا تخوي فى السجود كالرجل بل تنخفض، وتلصق، وتضم بطنها بفخذيها.

(۲) په فتاوى علماء اهل حديث کې ليکي چې دښځې او دسړي په مونځ کې په فرق باندې دمذاهبو اربعهٔ وغيرهٔ تعامل را روان دى. فتاوى علماء اهل حديث ج ۳ صـ ۱۴۹ وفتاوى غزنويه صـ ۲۷.

دلامذهبو يو مشهور عالم مولوى عبد الحق الهاشمى مهاجر مکى هم په دې فرق قائل دى او په دې يې يو رساله ليکلې ده په نامه د (نصب العمود في تحقيق مسئلة تجافي المرأة في الركوع والسجود والقعود)

**مثال:** رسول الله ﷺ فرمائي: چې مچ په لوښي کې وغورځيږي نوغوپه په کې ورکړى بيايې ترينه لرې کړئ ځکه دده په يوه وزرکې مرض دى او په بل کې دواده او مچ دمرض والاوزر مخکې کوي محدثينو دې حديث لپاره علت را ايستلې دى، چې دمچ په رګونو کې روانه وينه نه شته نو په هرشي کې چې داعلت موجود وي نو همدا حکم به يې وي چې ددې په غورزيدلو څه شى نه نجسيږي.

همدارنګې په قران، حديث او اجماع سره داثابته ده چې ښځه د ستراوپردې شى دى اودستراوپردې يې دومره اهتمام شوى دى چې بعضې اجماعي سنتونه هم ترينه ساقط دي لکه ،اذان ،اقامت ، امامت بلکې بعضې فرائض ترينه ساقط دي ،لکه دجمعې لمونځ او جهاد ،نو په لمانځه کې هم ددوي دپردې پوره خيال ساتل شوى دى.

## په احاديثو او په اثارو کې دښځې او دسړي په مونځ کې فرق

## ۱- دتکبير تحريمه سره دلاسونو په اوچتولو کې فرق

**نارينه:** نارينه به لاسونه تر غوږونو پورې اوچتوي ، (۱) عن مالک بن الحويرث أنه رأى النبي صلى الله عليه وسلم ...وقال... حتى يحاذي بهما فروع أذنيه (صحيح مسلم، ج ۱ ص ۱۶۸، باب استحباب رفع اليدين في تكبيرة الاحرام)

(۲)عن وائل بن حجر رضي الله عنه: أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ وحاذى بإبهاميه أُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: يَرْفَعُ إِبْهَامَيْهِ إِلَى شَحْمَةِ أُذُنَيْهِ.

(مشکوة ،ج ۱ص ۸۶) باب صفة الصلوة).

وائل بن حجر رضي الله عنه فرمائي چې ما رسول الله ﷺ وليدلو چې لاسونه يې داوګوپه برابرۍ پورته کړل اوغټې ګوتې يې دغوږونوسره برابري کړې اوپه يوروايت کې راځي چې غټې ګوتې به رسول الله ﷺ د غوږونو دنرميوسره برابرولې، نوحاصل داچې دلاسونوبرابرول داوګوسره معنى يې داده چې ورغوي داوګوسره برابروه اوغټې ګوتې دغوږونودنرميوسره برابروه.

(۳)عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه ,قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَبَّرَ حَتَّى حَاذَى بِإِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ (الحديث) حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چې ما رسول الله ﷺ وليدلو چې الله اکبر يې وويلو تردې چې دلاسونوغټې ګوتې يې دغوږونوسره برابري کړي. (الدارقطني ، ص ۳۴۵) بهيقي ج ۲ص ۹۹).

(٤)وَعَن مَالك بن الْحُوَيْرِث رضي الله عنه قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ.

(متفق عليه مشکوة/ ج ۱ص ۷۵ باب صفة الصلوة)

**زنانه:** زنانه به لاسونه تراوګو اويا سينو پورې او چتوي :دحضرت وايل رضي الله عنه څخه روايت دى چې: عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ: يَا وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ! إِذَا صَلَّيْتَ فَاجْعَلْ يَدَيْكَ حِذَاءَ أُذُنَيْكَ وَالْمَرْأَةُ تَجْعَلُ يَدَيْهَا حِذَاءَ ثَدْيَيْهَا).

يعنې ماته نبي ﷺ وفرمايل چې يا وايله چې کله دې لمونځ کولو نو لاسونه تر غوږونو پورې پورته کړه او ښځه به لاسونه ترسينو پورې پورته کوي. کنزالعمال حديث نمبر ۱۹۶۴۰). المعجم الکبير، رقم ۱۷۴۹۷)

فانقيل: ددې حديث په سند کې أم يحيى مجهوله ده امام هيثمي فرمايي چې ولم اعرفها او دمجهول راوي روايت معتبر نه وي؟

قلنا ۱-: دامام هيثمي د لم اعرفها په وجه په سند هيڅ اثر نه غورزيږي.

۲- دام يحى نوم کبشه دى (تاريخ دمشق جزء ۶۲، صـ ۳۹۰) هلته سند داسې دى: حدثنا ميمونة بن عبدالجبار بن وايل قال سمعت عمتي كبشة أم يحيي او ددې ښځه ميمونة بنت حجر بن عبد الجبار روايت کوي (اکمال الکمال جزء ۲صـ ۴۷۸) لهذا مجهول الحال هم نده.

دوهم روايت: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، قَالَ: أَنا شَيْخٌ لَنَا، قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءً رَحِمَهُ اللَّهُ، سُئِلَ عَنِ الْمَرْأَةِ: كَيْفَ تَرْفَعُ يَدَيْهَا فِي الصَّلَاةِ؟ قَالَ: «حَذْوَ ثَدْيَيْهَا (مصنف ابن ابي شيبه ج ۱صـ ۲۷۰، باب فى المرأة اذا ا فتتحت الصلوة الى اين ترفع يديها )، دشيخ نوم مسمع بن ثابت دى (مصنف ابن ابي شيبه ج ۲صـ ۵۵٤، باب فى ركعتى الفجر اذا فاته )

دحضرت عطاء رحمه الله څخه پوښتنه وشوه چې ښځه به لاسونه څرنګه اوچتوي؟ هغه ورته وفرمايل چې تر سينو پورې.

دريم روايت : عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ زَيْتُونٍ رحمة الله عليه، قَالَ: رَأَيْتُ أُمَّ الدَّرْدَاءِ رضي الله عنها، تَرْفَعُ كَفَّيْهَا حَذْوَ مَنْكِبَيْهَا حِينَ تَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ ( مصنف ابن ابى شيبه ج ۲صـ ٤۲۱، باب فى المرأة اذا افتتحت الصلوة الى اين ترفع يديها)

حضرت أم الدرداء رضى الله عنه به د تكبير تحريمه سره لاسونه تر اوګو پورې او چتول د أم الدرداء نوم خيرة دى او جليل القدره صحابى اويا تابعى ده.

## د لاسونو په تړلو کې فرق

**نارينه:** د نارينه وو لپاره سنت طريقه داده چې د نوم څخه لاندې لاسونه کيږدي، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه قَالَ: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَ يَمِينَهُ عَلَى شِمَالِهِ فِي الصَّلَاةِ تحت السُّرَّةِ

وايل بن حجر رضی الله عنه فرمايي چې ما نبي کريم صلی الله عليه وسلم وليدلو چې خپل ښی لاس يې په چپ لاس دنوم څخه لاندې کيښودلو (مصنف ابن ابی شيبه ،باب وضع اليمين علی الشمال) مونږ د وضع اليدين تحت السرې په رساله کې تقريبا اوه ديرش احاديث ليکلي دي.

**زنانه:** ښځه به په سينه لاسونه ږدی ۱- (**عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ رَحِمَهُمُ اللهُ قَالَ: «تَجْمَعُ الْمَرْأَةُ يَدَيْهَا فِي قِيَامِهَا مَا اسْتَطَاعَتْ** (مصنف عبدالرزاق ج ۳ صـ ۴۹، باب تكبير المراة بيديها وقيام المرأة وركوعها وسجودها)

ښځه به په قيام کې تر څو يې چې طاقت وي لاسونه به راټولوي او لاسونه چې پوره راټول شي نو په سينه کيښودلی شي.

۲- سلطان المحدثين ملا علی القاري رحمه الله فرمايي چې: والمرأة تضع (يديها) على صدرها اتفاقا لان مبنى حالها على الستر (فتح باب البنايه ج ۱صـ صـ ۲۴۳، سنن الصلوة) يعنی ښځه به اتفاقا لاسونه په سينه ږدي ځکه چې دښځې حال په ستر بنا دی.

۳- علامه عبدالحی الکهنوي رحمه الله فرمايي: چې واما فی حق السناء فاتفقوا على ان السنة لهن وضع اليدين على الصدر لانها ما استرلها (السعايه ج۲، ۱۵۶) د ښځو لپاره سنت طريقه داده چې په سينه لاسونه کيږدي ځکه چې پدې کې پرده زياته ده.

## په رکوع کې فرق

**نارينه:** عَنْ سَالِمٍ الْبَرَّادِ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: أَتَيْنَا عُقْبَةَ بْنَ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيَّ أَبَا مَسْعُودٍ رضي الله عنه، فَقُلْنَا لَهُ: حَدِّثْنَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، " فَقَامَ بَيْنَ أَيْدِينَا فِي الْمَسْجِدِ، فَكَبَّرَ، فَلَمَّا رَكَعَ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَجَعَلَ أَصَابِعَهُ أَسْفَلَ مِنْ ذَلِكَ، وَجَافَى بَيْنَ مِرْفَقَيْهِ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ

(سنن ابی داود ج ۱صـ ۱۳۳، باب صلوة من لايقيم صلبه فی الركوع والسجود)

سالم البراد رحمه الله فرمايي چې مونږ عقبه بن عمرو الانصاري ته ورغلو او ورته مو وويل چې مونږ ته د رسول الله صلی الله عليه وسلم دلمونځ په باره کې حديث بيان کړه ، هغه په مسجد نبوي کې

زمونږ په منځ کې ودریدلو تکبیر تحریمه یې و کړو چې کله یې رکوع وکړه نو لاسونه یې په زنګنونو کیښودل او خپلې ګوتې یې د زنګونو څخه ښکته کړې او څنګلې یې د اړخونو څخه جدا کړې.

**زنانه:** ښځه به راټوله رکوع کوي چې لاسونه یې د ګیډې سره لګیدلي وي، حضرت عطاء فرمایي چې (تَجْتَمِعُ الْمَرْأَةُ إِذَا رَكَعَتْ تَرْفَعُ يَدَيْهَا إِلَى بَطْنِهَا، وَتَجْتَمِعُ مَا اسْتَطَاعَتْ، فَإِذَا سَجَدَتْ فَلْتَضُمَّ يَدَيْهَا إِلَيْهَا، وَتَضُمَّ بَطْنَهَا وَصَدْرَهَا إِلَى فَخِذَيْهَا، وَتَجْتَمِعُ مَا اسْتَطَاعَتْ" (مصنف عبدالرزاق رقم ۵۰۶۹)

ښځه به راټوله رکوع کوي لاسونه به د ګیډې سره لګوي او حتی الوسع به ځان راټولوي ، او په سجده کې به هم لاسونه ځان ته راټولوي او ورنونه به دګیډې سره لګوي .

## په سجده کې فرق

**نارینه:** نارینه به ازاده کولاو سجده کوي ۱- (عَنْ مَيْمُونَةَ رضي الله عنها «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا سَجَدَ جَافَى يَدَيْهِ، حَتَّى لَوْ أَنَّ بَهْمَةً أَرَادَتْ أَنْ تَمُرَّ تَحْتَ يَدَيْهِ مَرَّتْ»

(سنن نسائي ج ۱ص ـ ۱۶۷، باب التجافی فی السجود)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله سجده کوله نو خپله ګیډه به یې دلاسونو څخه دومره لرې ساتله چې که سیرلي د لاسونو لاندې د تیریدلو اراده کړې وی، نو تیردلی شو .

۲- (عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ رحمه الله، قَالَ: وَصَفَ لَنَا الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ رضي الله عنه، فَوَضَعَ يَدَيْهِ، وَاعْتَمَدَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، وَرَفَعَ عَجِيزَتَهُ، وَقَالَ: «هَكَذَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ»

(ابوداود ج ۱ص ـ ۱۳۷، باب صفة السجود)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به سجده کې لاسونه او زنګنونه ایښی وو ،ورفع عجیزته)

**زنانه:** (۱) عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى امْرَأَتَيْنِ تُصَلِّيَانِ فَقَالَ: "إِذَا سَجَدْتُمَا فَضُمَّا بَعْضَ اللَّحْمِ إِلَى الْأَرْضِ فَإِنَّ الْمَرْأَةَ لَيْسَتْ فِي ذَلِكَ كَالرَّجُلِ.

(السنن للبهیقی ، حدیث نمبر ۳۳۲۵ باب مایستحب للمرءة من تـرک التجـافی ج ۲ص ۲۲۳) ( اعلاء السنن بحواله مراسیل ابی داود، ج ۳ص ۱۹ حدیث نمبر ۸۴).

رسول الله ﷺ په دووزنانه ووتيريدوچې هغوئ لمونځ کولونو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې کله تاسو سجده کوله نودبدن بعضې حصې د زمکې سره ولګوئ ځکه چې پدې سلسله کې ښځې دسړيو په شان نه دي.

(٢) عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا جَلَسَتِ الْمَرْأَةُ فِي الصَّلَاةِ وَضَعَتْ فَخِذَهَا عَلَى فَخِذِهَا الْأُخْرَى، وَإِذَا سَجَدَتْ أَلْصَقَتْ بَطْنَهَا فِي فَخِذَيْهَا كَأَسْتَرِ مَا يَكُونُ لَهَا، وَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يَنْظُرُ إِلَيْهَا وَيَقُولُ: يَا مَلَائِكَتِي أُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهَا.

( بهيقى حديث نمبر ٣٣٢٤ والكامل لابن عدي ج ٢ صـ ٢١٤،ج ٢ص ٢٢٣ ) ( كنزالعمال ،ج ٧ ص ٥٤٩ حديث نمبر ٢٠٢٠٣)

عبدالله بن عمر ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله ښځه په لمانځه کې کيناستله نويوورون دې دبل ورون سره ولګوي اوچې کله سجده کوي نوګيډه دې دورنونوسره ولګوي ،څرنګه چې دسترزياته حالت دی، ځکه چې الله ﷻ دې ته ګوري اوملائکوته وائي چې تاسوشاهدانې اوسئ چې مادې ښځې ته مغفرت کړی دی.

(٣) حضرت ابوسعيدخدری ﷺ فرمائې چې نبي کريم ﷺ نارينه وو ته حکم کړی وو (ان يتجاوفوافي سجودهم ) يعنې اندامونه يودبل څخه لرې وساتئ اوزنانه وو ته يې حکم کړی ووچې (ان ينخفضن في سجودهن) چې نښتې سجده وکړئ ( بيهقي ج ٢/٢٢٢).

( ٤) څلورم خليفه الراشد حضرت على ﷺ فرمائي: اذاسجدت المرءة فلتحتفزولتضم فخذيها. چې کله ښځه سجده کوي نواندامونه دې يودبل سره يوځای کوي اونښتې سجده دې کوي. (ابن ابى شيبه ،ج ١ص ٣٠٢/ باب فى المرءة كيف تكون فى سجودها؟ حديث نمبر ٢٧٩٣ بيهقى ،ج ٢ص ٢٢٣) وعبدالرزاق حديث نمبر ٥٠٧٢)

(٥) دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه پوښتنه وشوه په باره د لمانځه دښځې کې نوهغه جواب ورکړو(تجتمع وتحتفز) چې نښتې اوراټوله دې شي. (مصنف لابن ابى شيبه ،ج ١ص ٢٧٠)حديث نمبر ٢٧٩٤)

(۶) عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله أَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ بَطْنَهُ عَلَى فَخِذَيْهِ إِذَا سَجَدَ كَمَا تَضَعُ الْمَرْأَةُ" (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۱ص ۲۷۰) امام مجاهد به په سجده کې مکروه ګڼله چې یو سړی دې ګیډه په ورنونو کیدي لکه څرنګه یې چې ښځه کوي.

(۷) په همدې طریقه عمل جاري وو لکه څرنګه چې په کوفه کې امام ابراهیم نخعی رحمه الله دافتوی ورکړه چې ښځې دی د سړیو په شان کولاو سجده نه کوي بلکې بالکل راټوله نښتي سجده دې کوي په مدینه منوره کې حضرت مجاهد او په بصره کې امام حسن بصری رحمه الله همدغه فتوی ورکوله . (مصنف ابن ابی شیبه، كتاب الصلوة باب کیف تکون المرءة فی سجودها حدیث نمبر ۲۷۹۷ وحدیث نمبر ۲۷۹۵ وحدیث نمبر ۲۷۹۶ عن الحسن وقتادة قالا اذا سجدت المرأة فانها تنضم ما استطاعت ولا تتجافى لكى لا ترفع عجيزتها) مصنف عبد الرزاق حدیث نمبر ۵۰۷۱ باب تکبیر المرءة بیدیها الخ ج ۱/ ص ۳۰۲/ ۳۰۳). په صحابه وو ﷺ، تابعینو، او تبع تابعینو رحمه الله کې هیچا دې څخه انکار ندی کړی او دا یمه یې اربعه وو هم ورباندې اجماع ده.

## په قعده کې فرق

**نارینه:** نارینه وو ته افتراش اولی دی، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ ﷺ: «إِنَّمَا سُنَّةُ الصَّلَاةِ أَنْ تَنْصِبَ رِجْلَكَ الْيُمْنٰى وَتَثْنِيَ الْيُسْرٰى (بخاري ج ۱صـ ۱۱۴، باب سنة الجلوس) دلمانځه سنت طریقه داده چې ښی پښه و دروې او چپه پښه څملوې.

**زنانه:** عن ابن عمر ﷺ سئل كيف كنّ النساء يصلين علي عهد رسول الله ﷺ قال كن يتربعن ثم امرن ان يحتفزن (جامع المسانيد، ج ۱ص ۴۰۰).

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې ښځو به د نبی ﷺ په زمانه کې څرنګه لمونځ کولو، عبدالله ابن عمر ﷺ جواب ورکړو چې ښځې به په اول کې په پلتړي (چارزانو) باندې کیناستې بیا ورته امروشو چې ښې راټولې لمونځ وکړئ.

# په مواضع الصلوة کې فرق

**نارینه:** د نارینه وو لمونځ په مسجد کې افضل دی عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَلَاةٌ مَعَ الْإِمَامِ أَفْضَلُ مِنْ خَمْسٍ وَعِشْرِينَ صَلَاةً يُصَلِّيهَا وَحْدَهُ». (صحیح مسلم ج ۱ ص ۲۳۱)

په جماعت لمونځ دیو اځي لمونځ څخه پنځه ویشت درجې زیات فضیلت لري.

**زنانه:** د زنانه وو لمونځ په کور کې افضل دی.

(۱) حضرت ام حمید چې دعظیم صحابی ابو حمید الساعدی بی بی ده فرمائي چې زمونږ د قبیلې ښځې زما خاوند مسجد ته د تللو څخه منع کړی وي.

مادرسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ وچې زما زړه غواړي چې ستاسو سره په جماعت لمونځ وکړم لکن زما خاوند مې ددې څخه منع کوي، نو رسول الله ﷺ ماته وفرمایل چې ستاسو په کوټه کې لمونځ دبرنډې څخه بهتر دی اوپه برنډه کې دانګړ څخه بهتر دي اوپه انګړ کې لمونځ کول (زما سره په مسجد نبوی کې) د جماعت دلمونځ څخه بهتر دی. (طبرانی، مجمع الزواید، ج ۲ ص ۳۴).

ددې څخه وروسته ام حمید ﷺ حکم وکړ وچې زما په کور کې په تیاره کوټه کې ماته دلمانځه ځای جوړ کړئ اودی تر وفات پورې په هغې کې لمونځ کولو. (مجمع الزواید، ج ۲ ص ۳۴).

(۲) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «لَوْ أَدْرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ المسجد

ام المومنین حضرت عایشه رضی الله عنها فرمائي که رسول الله ﷺ دغه ازادي لیدلې وې کومه چې اوس ښځو ظاهره کړې ده نو رسول الله ﷺ به ښځې دمسجد څخه منعه کړې وې. (بخاری، ج ۱/ ص ۱۲۰، مسلم/ ج ۱/ ص ۱۸۳/ عبد الرزاق، ج ۳ ص ۱۴۹).

(۳) حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ به ښځې دمسجد څخه شړلې او فرمایل به یې چې ستاسو لپاره ستاسو کورونه بهتر دي. (مجمع الزواید، ج ۲ ص ۳۵).

(۴) حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ به دجمعې په ورځ ښځې په وړوتیکو ویشتې اودمسجد څخه به یې ایستلې. (عمدة القاری، ج ۳ ص ۲۲۸) دا هر څه دصحابه وو په موجودګۍ کې شوي دي.

مخکې ذکر شو چې دلامذهبو په مشهوروکتابونوفتاوی غزنویه ،اوفتاوی علماء اهلحدیث کې هم په یوځای کې دافرق منلي شوی دی اودمراسیلو دابوداودهغه حواله یې ورکړی ده چې مونږپه دوهم نمبرکې لیکلی ده اوبیایې لیکلي دي چې په همدې باندې داهل سنت والجماعت مذاهبواربعه وواتفاق اوتعامل راروان دی بیایې دڅلورو واړو مذاهبو حوالې رانقل کړي دي بیایې لیکلي دي چې خلاصه داچې دښځوپه باره کې (انضمام وانخفاض) د احادیثو اودتعامل د جمهوروڅخه ثابت دی اوددې څخه انکارد احادیثو دکتابو نواوداهل علمودتعامل څخه بې خبري ده . (فتاوی غزنویه ص ۲۷/ ۲۸/ فتاوی علماء اهلحدیث ،ج ۳ ص ۱۴۸ / ص۱۴۹).

نومذکوراحادیث اودامت اجماع په صراحت سره دابنائي چې په دې مسایلوکې دنراودښځې په مینځ کې فرق دی .دابن حزم الظاهري اودده دمقلدینوسره هیڅ دلیل نشته، نه ورسره دقران ایت شته اونه ورسره درسول الله ﷺ حدیث شته اونه ورسره دکوم خلیفه الراشد فتوی شته، البته که دام درداء ﷺ داثرڅخه استدلال کوي نودهغې داثرحال لاندې وګوره .

## دام الدرداء ﷺ اثر

عَنْ مَكْحُولٍ ﷺ، «أَنَّ أُمَّ الدَّرْدَاءِ ﷺ، كَانَتْ تَجْلِسُ فِي الصَّلَاةِ كَجِلْسَةِ الرَّجُلِ»

په لمانځه کې دسړیوپه شان کیناستله . (المصنف لابن ابی شیبه ، ج ۱ص ۲۷۰). مونږ وایوچې ددې اثرڅخه استدلال دډیرووجوهو څخه صحیح ندی

(۱) اګرچې حافظ مزي رحمه الله دې بي بي ته صحابیه ویلی ده، لکن نوروټولو محدثینو او ناقدینو ورته تابعیه ویلی ده، فلهذا د اصحابیه نده بلکې تابعیه ده ( فتح الباری ، ج ۲ص ۲۵۲ )تهذیب الکمال ج۱۱ص ۷۹۶) وفي الفتح : وعمل التابعي بمفرده ولولم يخالف لا يحتج بـه(ج۲ ص۲۵۲) یعنې دیوتابعي عمل اګرچې داصولوڅخه مخالف هم نوي دلیل نه شي کیدلی.

(۲) بالفرض که دابی بی صحابیه ومنلي شي، نوبیادادیوی صحابی خپله رایه ده اوددې خپلې رائي لپاره یې په تائید کې نه درسول الله ﷺ قول یافعل پیش کړی دی اونه یې دکوم خلیفة الراشد فتوی پیش کړي ده اونه یې بل چاته ددې عمل دعوت ورکړی دی، لهذاددې لمونځ دښځودنورمتواترلمونځ په مقابل کې داسې دی لکه څرنګه چې یوشاذقرائت دمتواترقرائت په مقابله کې راشي اوظاهره ده چې

هيڅ مسلمان دمتواترقرائت په مقابله کې په شاذ قرائت عمل نکوي او نه په دې باندې دعمل کولو لپاره نورو مسلمانانو ته دعوت ورکوي.

(۴) که څوک ووائي چې کله دا اثر قابل داستدلال نه دی نو بيا ولې امام بخاری رحمه الله دا پخپل کتاب کې ذکرکولو؟ نو جواب دادی چې امام بخاری دا اثر ددې لپاره پخپل کتاب کې نه دې رانقل کړې چې دښځو د لمانځه دطريقې لپاره ترينه استدلال وکړي، بلکې صرف ددې خبرې دتقويت لپاره يې ذکرکړي دي چې دنارينه وو دکيناستلو کيفيت په لمانځه کې څرنګه دی؟

**حافظ ابن حجررحمه الله فرمائي:**

وَعُرِفَ مِنْ رِوَايَةِ مَكْحُولٍ رضي الله عنه أَنَّ الْمُرَادَ بِأُمِّ الدَّرْدَاءِ الصُّغْرَى التَّابِعِيَّةُ لَا الْكُبْرَى الصَّحَابِيَّةُ لِأَنَّهُ أَدْرَكَ الصُّغْرَى وَلَمْ يُدْرِكِ الْكُبْرَى وَعَمَلُ التَّابِعِيِّ بِمُفْرَدِهِ وَلَوْلَمْ يُخَالِفْ لَا يُحْتَجُّ بِهِ وَإِنَّمَا وَقَعَ الِاخْتِلَافُ فِي الْعَمَلِ بِقَوْلِ الصَّحَابِيِّ كَذٰلِكَ وَلَمْ يُورِدِ الْبُخَارِيُّ رحمة الله عليه أَثَرَ أُمِّ الدَّرْدَاءِ لِيُحْتَجَّ بِهِ بَلْ لِلتَّقْوِيَةِ.( فتح الباری، ج ۲ص ۲۵۲)

يعنې دا ام الدرداء هغه صحابيه ام الدرداء نده، بلکې بله ام الدرداء ده چې تابعيه وه، ځکه دمکحول ملاقات دتابعيی ام الدرداء سره شوی وو او دصحابی ام الدرداء ﷺ سره نه وو شوی او امام بخاری دا اثر داستدلال لپاره نه دی رانقل کړئ بلکې ددې لپاره يې رانقل کړی دی چې دسړي دلمانځه دکيفيت تقويت ورباندې راشي.

## د صلوا کمارايتموني اصلي حديث ځخه استدلال

لامذهبه حکيم محمدصادق سيالکوټي په خپل کتاب سبيل الرسول د، ص ۲۴۸ څخه تر، ص ۲۵۰) پورې دفقهي اودحديث د اختلاف دثابتولو لپاره په دولسم نمبرباندې دا مسئله ليکلی ده او ليکلي يې دي چې: صلوا کما رأيتموني اصلي. [بخاری شريف] لمونځ کوئ ای زنانه وو او نارينه وو لکه څرنګه يې چې زه کوم.

په دې حديث کې هيڅ تفرقه نشته چې نارينه دی يو قسم لمونځ کوي او زنانه دی بل قسم لمونځ کوي بلکې په دې کې دا حکم دی چې زنانه او نارينه دواړه دی يې درسول الله ﷺ په طريقه کوي.

دحضرت ابوحميد ساعدي ﷺ څخه روايت دی: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يرفع يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ (مشكوة باب صفة الصلوة) كله به چې رسول الله ﷺ لمانځه ته ودريدلونو دواړه لاسونه به يې اوچت کړل ترديې چې داوګو سره به يې برابر کړل او بيا ليکي چې:

## دفقه اختلاف

درسول الله ﷺ مذکور فعل دنارينه وو او زنانه وو دواړو لپاره يو برابر دي او فقهي تقسيم کړی دی.

(يرفع يديه حتي يحاذي بابهاميه شحمتي اذنيه) نارينه به لاسونه دغوږونو ترنرميو پورې پورته کوي.

(والمرءة ترفع يديهاحذاء منكبيها) اوزنانه به لاسونه تراوګوپورې پورته کوي.

**اول جواب:** لامذهبانو! په دې حديث خو تاسو عمل نه شئ کولئ ځکه چې په دې حديث کې خو دليدلو ذکر دی (كما رأيتموني) او تاسو خو نبي ﷺ ندي ليدلی نو څرنګه به هغسې مونځ وکړی په کوم قسم سره مو چې نبي ﷺ ليدلی دی؟ لهذا دا خطاب هغو (صحابه وو) ته دی چې نبي ﷺ يې ليدلی دی مونږ به هغسې مونځ کوو څرنګه چې صحابه وو وربانديې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ليدلی دی.

**دوهم جواب:** د(صلوكمارايتموني) [الحديث] څخه دلامذهبو استدلال صحيح نه دی.

اول ددې وجهې څخه چې ددې جملې سياق او سباق ديوی خاصې واقعې پورې تعلق لري هغه واقعه داده چې: حَدَّثَنَا مَالِكٌ رحمه الله، أَتَيْنَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ شَبَبَةٌ مُتَقَارِبُونَ، فَأَقَمْنَا عِنْدَهُ عِشْرِينَ يَوْمًا وَلَيْلَةً، وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِيمًا رَفِيقًا، فَلَمَّا ظَنَّ أَنَّا قَدِ اشْتَهَيْنَا أَهْلَنَا - أَوْ قَدِ اشْتَقْنَا - سَأَلَنَا عَمَّنْ تَرَكْنَا بَعْدَنَا، فَأَخْبَرْنَاهُ، قَالَ: «ارْجِعُوا إِلَى أَهْلِيكُمْ، فَأَقِيمُوا فِيهِمْ وَعَلِّمُوهُمْ وَمُرُوهُمْ - وَذَكَرَ أَشْيَاءَ أَحْفَظُهَا أَوْ لَا أَحْفَظُهَا - وَصَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي، فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ، وَلْيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ»

خلاصه داده چې يو خاص وفد د رسول الله ﷺ سره شل ورځې ميلمانه وو کله چې رخصتيدل رسول الله ﷺ ورته اووه (۷) حکمونه ذکر کړل په هغې اووه (۷) حکمونو کې يو حکم دا وو چې (صلوا كمارايتموني اصلي): ای ميلمنو لمونځ کوئ لکه څرنګه يې چې زه کوم، پدې کې څلور حکمونه د صلوا څخه مخکې دي ۱- ارجعوا ۲- فأقيموا ۳- علموهم ۴- مروهم. او دوه حکمه د صلوا څخه

وروسته دي ۱- فليؤذن، ۲- وليؤمكم، اوددې ټولو تعلق د نارينه وو سره دي نو د صلوا كما رأيتموني تعلق به هم د نارينه وو سره وي.

دوهم دا چې كه دا عام ومنونو ددې په عموم باندې هغه وخت عمل ضروري دي تر څو پورې چې كوم شرعي دليل ددې سره معارض پيدا نه شي او كه كوم خصوصي دليل پيدا شي چې په هغې كې دبعضو افرادو او يا دبعضې اعمالو حكم ددې سره معارض بيان شوى وي نو بيا دهغې خصوصي دليل له وجهې به دغه بعضې افراداو اعمال ددې حديث دعموم څخه مستثنى كولى شي، لكه څرنګه چې ضعفاء او مريضان اتفاقا دخاصو دلايلو له وجهې ددې حديث دعموم څخه مستثنى دي.

لامذهبه امين الله البشاوري په امين الفتاوى كې دامين بالجهر په مسئله كې داسې ليكلي دي چې په عموماتو باندې استدلال كول داهل زيغو او مبتدعينو او دمنكرينو دحديث طريقه ده. (امين الفتاوى ص ۲۶۷).

لهذا ددې حديث څخه دلامذهبو دا استدلال صحيح ندى چې په ټولو كيفياتو كې دنارينه وو او زنانه وو لمونځ يو برابر دى همدا جوابونه محدثينو ذكر كړي دي.

**لكه څرنګه چې حافظ ابن حجر الشافعي فرمائي:**

وَهٰذَا إِذَا أُخِذَ مُفْرَدًا عَنْ ذِكْرِ سَبَبِهِ وَسِيَاقِهِ أَشْعَرَ بِأَنَّهُ خِطَابٌ لِلْأُمَّةِ بِأَنْ يُصَلُّوا كَمَا كَانَ يُصَلِّي فَيَقْوَى الِاسْتِدْلَالُ بِهِ عَلَى كُلِّ فِعْلٍ ثَبَتَ أَنَّهُ فَعَلَهُ فِي الصَّلَاةِ لَكِنَّ هٰذَا الْخِطَابَ إِنَّمَا وَقَعَ لِمَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ وَأَصْحَابِهِ بِأَنْ يُوقِعُوا الصَّلَاةَ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي رَأَوْهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهِ نَعَمْ يُشَارِكُهُمْ فِي الْحُكْمِ جَمِيعُ الْأُمَّةِ بِشَرْطِ أَنْ يَثْبُتَ اسْتِمْرَارُهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى فِعْلِ ذٰلِكَ الشَّيْءِ الْمُسْتَدَلِّ بِهِ دَائِمًا حَتّٰى يَدْخُلَ تَحْتَ الْأَمْرِ وَيَكُونَ وَاجِبًا وَبَعْضُ ذٰلِكَ مَقْطُوعٌ بِاسْتِمْرَارِهِ عَلَيْهِ وَأَمَّا مَا لَمْ يَدُلَّ دَلِيلٌ عَلَى وُجُودِهِ فِي تِلْكَ الصَّلَوَاتِ الَّتِي تَعَلَّقَ الْأَمْرُ بِإِيقَاعِ الصَّلَاةِ عَلَى صِفَتِهَا فَلَا نَحْكُمُ بِتَنَاوُلِ الْأَمْرِ لَه. (فتح البارى، ج ۱۳ ص ۲۳۷)

فلهذا دمخكنيو احاديثو او دمجتهدينو په اجماع سره دنارينه وو او د زنانه وو دلمانځه په كيفياتو كې فرق شته.

په كومو احاديثو كې چې دنارينه وو لپاره تر او ګو پورې دلاسونو پورته كول راغلي دي، نو ددې ترجمه دا نده چې دلاسونو كوتې به يې تر او ګو پورې پورته كولې، لكه څرنګه چې يې لامذهبان كوي، بلكې وايل بن حجر ﷺ د رسول الله ﷺ ددې فعل معنى داسې بيانوي.

أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ وحاذى بإبهاميه أُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: يَرْفَعُ إِبْهَامَيْهِ إِلَى شَحْمَةِ أُذُنَيْهِ. (مشكوة ،ج ١ص ٨٦) باب صفة الصلوة).

وائل بن حجر ﷺ فرمائي چي ما رسول الله ﷺ وليدلو چي لاسونه يې داوګوپه برابرۍ پورته کړل اوغټي ګوتې يې دغوږونو سره برابري کړې او په يوروايت کې راځي چي غټې ګوتې به رسول الله ﷺ د غوږونو دنرميو سره برابرولې، نو حاصل دا چي دلاسونوبرابرول داوګوسره معنى يې داده چي ورغوي داوګوسره برابروه اوغټې ګوتې دغوږونودنرميوسره برابروه.

## مساجدو ته دښځو راتلل

لامذهبان اعتراض کوي چي رسول الله ﷺ فرمائي چي ښځې دسړيو سره داخترونوپه لمونځ کې شريکې دي اودايې هم فرمايلي دي چي زنانه مساجدوته دراتللو څخه مه منع کوئ.

حالانکه احنافو دزنانه وو راتلل مساجدوته مکروه ګڼلي دي همدارنګې يې دزنانه وو راتلل جماعت، جمعې او اخترونوته هم مکروه ګڼلي دي، چي دا درسول الله ﷺ سره په ښکاره مقابله ده.

**الجواب:** لکه څرنګه چي منکرين دحديثو چي ځانونوته اهل قرآن وائي او دا پوروپاګند کوي چي احاديث دقران څخه مخالف دي، مثلا دوي وائي چي په قران کريم کې دتبتل حکم دی الله ﷻ فرمائي: (وَتَبَتَّلْ اِلَيْهِ تَبْتِيْلًا) [المزمل]. اوپه حديث کې دتبتل څخه منع راغلې ده (ان النبي ﷺ نهي عن التبتل) [ترمذی ،ج ١/ ص٣٩٨].

همدارنګې په قران کريم کې دمسافروغيره لپاره داحکم دی چي: (وَاَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ) يعني روژه نيول ورته بهتردي اوپه حديث کريمه کې راځي چي (ليس من البرالصيام في السفر: په سفرکې روژه نيول هيڅ نيکي نده، اهل قرآن وايي چي: داپه ښکاره دالله ﷻ دحکم سره مقابله ده.

دغې ګمراهانوتـه چي ځان تـه اهل قـران وائي مونږپـه جواب کې وايـو چي داستاسـوناپوهي د ه تاسودناپوهی له وجهې دامقابله راولئ. همدارنګې دلامذهبه غيرمقلدينو همدا حال دی چي دحديث اود فقهې په مابين کې دمقابلې دثابتولولپاره چلونه اودوکې کوي، نولکه څرنګه چي مونږاهل قـرآن تـه وايو چي په فهم دقرآن کې زمونږ درسول الله ﷺ په فهم اعتماد دی نه داهل قرآن په فهم، نو همدارنګې

مونږ اهلحديثو غير مقلدينو تـه وايـو چې دحديثو پـه فهم کې زمـونږ اعتماد پـه فقهـا وو دی، نـه دغير مقلدينو په فهم او همدا راته الله ﷻ او رسول الله ﷺ رابنودلي دي چې په فهم دفقهاء واعتماد وکړو الله ﷻ فرمائي : (ليتفقهوافي الدين).

اورسول الله ﷺ فرمائي : (ألفقهاء أعلم بمعاني الحديث).

دلامذهبو په غلط فهمۍ مونږ اعتماد نه کوو، په زيربحث مسئله کې مونږ وايو چې صيغه دأمر کله دوجوب لپاره وي لکه (وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ) کله داستحباب لپاره وي لکه (فَكُلُوْا مِنْهـا وَاَطْعِمُـوا الْبَـائِسَ الْفَقِيْرَ) او کله داباحت لپاره وي لکه (وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا) .

نو فقهاء فرمائي چې دنارينه وو لپاره په جماعت باندې دلمانځه حکم تاکيدي دی او دزنانه وو لپاره نه تاکيدي دی او نه استحبابي ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائي چې که په کورونو کې زنانه او ماشومان نه وی نو مابه دهغو کورونو دسوزولو امر کړی وی چې نارينه يې مسجد ته نوي راغلي، نو زنانه وو ته په کورونو کې دلمانځه اجازه ثابته شوه او ددې سره رسول الله ﷺ فرمائي:

(۱) خيرمساجدالنساء قعر بيوتهن (مستدرک حـاکم، ج ۱ص ۲۰۹). يعني بهترين دلمانځه ځای دزنانه وو لپاره دکورونو منځنۍ حصه ده .

(۲) دحضرت أم سلمی ؓ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې دښځې لمونځ په کورکې دمسجد څخه بهتر دی او بيا په کوټه کې دانګړ څخه بهتر دی ...الخ (طبرانی مجمع الزوايد، ج ۲ص ۳۴)

(۳) عن ابن عمر ؓ قال لاتمنعوانساء کـم المسـاجدوبيوتهن خـيرلهن . (مستدرک حاکم، ج ۱ص ۲۰۹). يعني ښځې مو دمساجدو څخه مه منع کوئ خو کورونه ددوي لپاره بهتر دي دمساجدو څخه.

(۴) ام المومنين حضرت بی بی عايشه رضی الله عنها فرمائي چې رسول الله ﷺ په مسجد کې ناست وو چې يوه ښځه راغله چې زينت يې کړی وو او په نازسره روانه وه، رسول الله ﷺ وفرمايل چې ای خلکو خپلې ښځې مو منع کړئ چې دزينت لباس واغوندي او په ناز باندې مسجد ته راشي، ځکه چې بنی اسرائيل ترهغې نه وو هلاک شوي تردې چې ددوی ښځو ښايسته لباس واغستو او په نازونو مساجدو ته داخليدلی او کماقال رسول الله ﷺ. (ابن ماجه ،ج ۳ص ۲۷۶).

(۵) حضرت ابو هريرة ﷺ يوه ښځه وليدله چې خوشبوي يې لګولې وه او مسجد ته روانه وه. حضرت ابو هريرة ﷺ وفرمايل اى دالله بندّه ته چيرته روانه يې؟ هغې ورته وويلي چې مسجد ته روانه يم. حضرت ابو هريرة ﷺ ورته وفرمايل چې تاخوشبويې لګولې؟ هغې ورته وويل چې هو! حضرت ابو هريره ﷺ وفرمايل چې: ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې کومه ښځه خوشبوئي ولګوي او مسجد ته راشي دهغې لمونځ نه قبليږي ترهغې چې غسل وکړي (يعني چې دخوشبوئي اثرترې ختم شي) (ابن ماجه، ج ۳ص ۲۷۶).

(٦) حضرت ام حميد چې دعظيم صحابى ابو حميد الساعدى بى بى ده فرمائي چې زمونږ د قبيلې ښځې زما خاوند مسجد ته د تللو څخه منع کړي وي.

ما د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړو چې زما زړه غواړي چې ستاسو سره په جماعت لمونځ وکړم لکن زما خاوند مې د دې څخه منع کوي، نو رسول الله ﷺ ماته وفرمايل چې ستاسو په کوټه کې لمونځ د برنډې څخه بهتردى او په برنډه کې دانګړ څخه بهتر دي او په انګړ کې لمونځ کول (زما سره په مسجد نبوى کې) د جماعت د لمونځ څخه بهتردى. (طبرانى، مجمع الزوايد، ج ۲ص ۳۴).

د دې څخه وروسته ام حميد ﷺ حکم وکړو چې زما په کور کې په تياره کوټه کې ماته د لمانځه ځاى جوړ کړئ او دى تروفات پورې په هغې کې لمونځ کولو. (مجمع الزوايد، ج ۲ص ۳۴).

(۷) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «لَوْ أَدْرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ.

ام المومنين حضرت عايشه رضى الله عنها فرمائي که رسول الله ﷺ دغه ازادي ليدلې وې کومه چې اوس ښځو ظاهره کړې ده نو رسول الله ﷺ به ښځې د مسجد څخه منعه کړې وې. (بخارى، ج ۱/ ص ۱۲۰، مسلم/ ج۱/ص ۱۸۳/ عبد الرزاق، ج ۳ص ۱۴۹).

(۸) حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ به ښځې د مسجد څخه شړلې او فرمايل به يې چې ستاسو لپاره ستاسو کورونه بهتر دي. (مجمع الزوايد، ج ۲ص ۳۵).

(۹) حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ به د جمعې په ورځ ښځې په وړوتيګو ويشتې او د مسجد څخه به يې ايستلې. (عمدة القارى، ج ۳ص ۲۲۸) دا هر څه د صحابه وو په موجودګې کې شوي دي.

(۱۰) حضرت عمر﷛ مسجد ته تللو نو دده بی بی حضرت عاتكه ﵂ هم ورپسې روانه شوه نو حضرت عمر﷛ ډیر غوصه شو. (مجمع الزواید، ج ۲ ص ۳۳) دد ې احادیثو څخه یو څو خبرې معلومېږي.

درسول الله ﷺ په زمانه كې دبني ساعد دقبیلې خلكو خپلې بیبیانې مسجد ته دتللو څخه منع كړې نبي ﷺ داخلك ملامته نكړل بلكې بیبیانو ته یې په كورونو كې دلمونځ كولو ترغیب وركړ ولكه څرنګه چې د شپږم نمبر لاندې تفصیل وشو.

حضرت عایشي رضی الله عنها، حضرت عبدالله بن مسعود﷛، او حضرت عبدالله بن عمر﷛ دنورو صحابه وو په موجوده ګۍ كې زنانه په ډیرې سختۍ سره مسجد ته دتللو څخه منع كولې او هیڅ صحابي یې مخالفت نه كولو.

نونن چې لامذهبان په دې زور لګوي چې زنانه دې مساجدو ته ځي په عام جماعت، جمعه، او عیدینو كې دې شریكیږي، كیدی شي چې ددوي امام به ځان درسول الله ﷺ څخه زیات متقي او پرهیزګار حسابوي او پخپل مسجد به دمسجد نبوی څخه دزیات مقدس خیال كوي اوننۍ څلوارلسمه صدۍ به د دورنبوت اودور صحابه﷛ و څخه بهتره ګڼي او پخپلو ښځو به دخیرون القرون دبیبیانو په نسبت زیات اعتماد كوي. كه داسې نه وي نو په كوم كار چې نبی ﷺ هیڅ تاكید ندی كړی، صحابه كرامو یې شدید مخالفت كړی دی، نو لامذهبان یې ولې دومره مؤكد ګڼي اوددې په وجه فقهاوو ته بدردوائي اوددې په وجه په مساجدو كې فتنې او فسادونه جوړوي.

فیصله وكړئ چې ایا ددې فحاشئ اوعریانئ په دور كې غیرمقلدین ددې ګارنټي وركوي چې ښځې به خوشبویي، پاوډر، سرخي، او سفیدې نه استعمالوي؟ او خپل نظرونه به ټیټ ساتي؟ او په لاره كې به دفساقو او دفجارو نظرونه هم ټیټ وي.

خلاصه داچې فقهاوو دفتنې اودفسادله وجهې دزنانه ووتلل مساجدو ته مكروه ګڼلي دي، دكومې فتنې تصور چې په خیر القرون كې موجود وو نن ترینه څرنګه انكار كیدلی شي؟

## دصحابه و رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ او تابعينو أثار او أقوال حجت دي

دا خبره په یاد لرئ چې داهل سنت والجماعت په نیز دصحابه كرامو رضی الله عنهم اقوال او افعال حجت دی.

(۱) رسول الله ﷺ فرمايي چې زما امت به درې اويا ډلې شي په دوي کې به يوه ډله جنتي وي صحابه ؤ رضی الله عنهم پوښتنه وکړه چې هغه به کومه ډله وي؟ نبي ﷺ وفرمايل چې (ما انا عليه واصحابي) يعنی هغه ډله به جنتي وي کومه چې زما او زما دصحابه ؤ رضی الله عنهم په طريقو باندې روانه وي. (ترمذي، وابوداؤد)

(۲) حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې که څوک پيروي کول غواړي نو دصحابه ؤ رضي الله عنهم پيروي دې وکړي ځکه چې دا حضرات دټول امت په نسبت پاک زړي دي او ډير غټ علماء دي.

المدخل ج ۱ فصل فی العالم وکيفية نيته ،اعلاء الموقعين ج ۲ فصل عقد مجلس المناظرة بين مقلد وبين صاحب حجة ومقام الصحابة ص ۴۱).

همدارنګه تابعين هم دي کومو چې دصحاب ؤ رضی الله عنهم څخه بالذات استفاده کړې ده لکه حضرت عطاء رحمه الله، حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله، حضرت قتاده رحمه الله، حضرت زهري رحمه الله، حضرت مجاهد رحمه الله، حضرت حسن بصري رحمه الله، وغيرهم، خصوصا دهغو اثارو په قبلولو کې هيڅ شک نه شته کوم چې دمرفوعو احاديثو مطابق وي.

وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ إِذَا صَحَّ لَهُ قَوْلٌ عَنْ وَاحِدٍ مِنَ الْمَعْـرُوفِينَ مِـنَ الصَّـحَابَةِ - رَضِيَ اللهُ عَـنْهُمْ - قَضٰى بِهِ وَقَدَّمَهُ عَلَى الْقِيَاسِ لِقَـوْلِهِ - صَـلَّى اللهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ - «أَصْـحَابِي كَالنُّجُـومِ بِـأَيِّهِمْ اقْتَـدَيْتُمْ اهْتَدَيْتُمْ».

(المبسوط للسرخسي ، كتاب اداب القاضي ج ۸ والحاصل ان قول الصحابي حجة يجب تقليده عندنا اذا لم ينفه شئٌ أخر من السنة . (رد المحتار باب الجمعة ج ۲ وفتح القدير ج ۲ باب صلوة الجمعة وقال الخطيب رحمه الله فی الموقوفات علی الصحابة جعلها كثير من الفقهاء بمنزلة المرفوعات الى النبي ﷺ فی لزوم العمل بها وتقديمها علی القياس والحاقها بالسنن. (مقدمة فتح الملهم ج ۱ صـ ۱۱۵ قول التابعي الكبير الذي ظهر فتواه في زمن الصحابة حجة عندنا كالصحابة . (قواعد فی علوم الحديث مقدمه اعلاء السنن صـ ۱۳۲)

# فهرس

## مسئلة الامين

**په امين الفتاوى يو نظر**

**دنامه نه لاندې لاسونه کېښودل**

**د رفع اليدين مسئله**

## د ښځې او د سړي په لمونځ کې فرق

